يَهْدِيْ إِلَى الرُّشْدِ فَآمَنَّا بِهِ

په پښتو ژبه کښې آسان، عام فهم او تحقیقي انداز کښې، علمي او الهامي نکاتو باندې مشتمل، لاجوابه علمي تحفه

# رُشْدُ الْقُرْآن

## فِي تَفْسِيرِ آيَاتِ الْقُرْآن

شپږم جلد

د ابتداء سورة سبا نه تر آخر سورة حجرات پورې

تألیف

شیخ القرآن والحدیث حضرت مولانا أُسَیْدُ الله صاحب حفظه الله

جدید مکتبه رشیدیه
محله جنګي قصه خواني پېښور
091-2580074

حنفی شافعی

بسم اللہ الرحمٰن الرحیم

# کفایت دینی کتب خانہ

## کفایت اللہ ابن صدیق

واٹس ایپ گروپ ٹیلی گرام چینل

اس گروپ میں کتابیں اہل السنۃ والجماعت، حنفی، شافعی، مالکی، حنبلی، دیوبند ، علماء حق کے عقائد کے مطابق ہوں گی مختلف زبانوں میں اسلامی کتابیں پشتو عربی اردو فارسی جیسے تفسیریں، فتاویٰ درسی کتب خارجی کتب و غیرہ۔

easypaisa

کفایت اللہ ابن صدیق

+923052488551
+923247442395





مالکی حنبلی

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

يَهۡدِيۡ اِلَى الرُّشۡدِ فَاٰمَنَّا بِهٖ وَلَنۡ نُّشۡرِكَ بِرَبِّنَاۤ اَحَدًا

په پښتو ژبه کښې آسان، عام فهم او تحقيقي
انداز کښې، علمي او الهامي نکاتو باندې مشتمل ، لاجوابه علمي تحفه

# رشد القران




## فی تفسیر آیات القرآن

شپږم جلد

له ابتداء د سورة سبا نه تر اخر د سورة حجرات پورې

تاليف
شيخ القرآن والحديث
حضرت مولانا أسيد الله صاحب رحمه الله

جديد مكتبه رشيديه
محله جنگی قصه خوانی پشاور 091-2580074

بسم الله الرحمن الرحيم



د کتاب نوم : **رشد القران فی تفسیر آیات القرآن**

تالیف : شیخ القرآن والحدیث حضرت مولانا **أسید الله** صاحب رحمه الله

تصحیح ونظر ثانی : مولانا تقی الله صاحب

جلد : شپږم

صفحات : ٦٣٠

د چاپ اول ځل : ٢٠١٧ء

جدید مکتبه رشیدیه
محله جنگی قصه خوانی پشاور 091-2580074

د کتاب تر لاسه کولو ځایونه

| | | |
|---|---|---|
| پشاور | کندوز | بغلان |
| اکوړه خټک | غزني | لوګر |
| کوټه | جلال اباد | خوست |
| پروان | قندهار | |

| رکوعاتها (۶) | سورة السبا مکية | آیاتها (۵۴) |
| --- | --- | --- |
| | بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | شروع کوم په نامه د الله چه بخښونکي دی مهربانه | |

## ترتیبها حسب التسلسل (۳۴) وحسب النزول (۵۸)

سورة السبأ مکيّ دې ، ترتیب قرآن په لحاظ (۳۴) دې او د ترتیب نزولی په لحاظ (۵۸) دې، دَسورة لقمان نه ورستو او د زُمر نه قبل نازل شویدې.

**حصّه رابعه:** دَسورة السبأ نه د قرآن پاک څلورمه حصه شروع کیږی او پدی حصه کښ زیاده تر مضمون دَقیامت ذکر کیږی ، لکه څنګه چه مخکښې درې واړه حصّی مُصدرې وې( شروع شوې وې ) په ﴿اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ﴾ سره ،نو دغه شان دا حصه هم مصدره ده﴿اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ﴾ سره او هر چه دې سورة فاطر نو د هغې په شروع کښ﴿اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ﴾ ځکه راغلي ده چه دا دواړه سورتونه شریک دی په مبدئیت کښې دا سورة مبدأ دې لپاره د سورة یٰسین، صفّت او د سورة الزّمر یو مضمون لپاره ، او سورة فاطر مبدأ دې لپاره د حوامیمو سبعؤو او د سورة الزمر اکثرو مضامینو لپاره ، نو پدې وجه د دواړو سورتونو په شروع کښ﴿اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ﴾ راغلې ده.

**ربط اسمی:** ربط اسمی ئی دادې چه په سورة احزاب کښې دا وؤ چه تاسو په توحید قائم اوسیږئ که احزاب ستاسو مقابلې ته راشی نو فتح او کامیابی به ستاسو وی لکه په غزوه احزاب کښ چه تاسو ته فتح ملاوه شوه،اوس سورة سبأ کښی فرمائي چه کچرته مشرکان مسئله د توحید او مني نو دادوئ لپاره بهتره ده ورنه په انکار به ورته هغه سزا میلاویږی چه قوم سباء ته میلاؤ شوه.

**ربط معنوی:** ئي دا دې چه د سورة سجدی نه د مسئلي د توحید نوې پهلو شروع شوی وه چه د هغې مقصد نفی د شرک فی الشفاعة وؤ ، نو په سورة سجده او احزاب کښی ئی په تفصیل سره بیان اوشو ،اوس پدې سورة کښی د څلورو شبهاتو جوابونه دی چه په نفی د شفاعت قهری یعنی نفی د شرک فی الشفاعة باندې واردیږي،او دا شبهات د انبیاؤ ، جناتو ، او د فرشتو متعلق دی.

## تفصيلی خلاصه

دسورت مرکزی دعوه اثبات دَ توحید په صورت دَ نفی شفاعت قهری کښ ده، دې باندې پنځه دلیلونه پیش کیږی، څلور (۴) عقلی او یو دلیل نقلی.

اول دلیل عقلی ٱلَّذِی لَهُۥ مَا فِی ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِی ٱلۡأَرۡضِ (آیت ۱)

دویم دلیل عقلی قُلۡ مَن یَرۡزُقُكُم مِّنَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ (آیت ۲۴)

دریم دلیل عقلی: قُلۡ إِنَّ رَبِّی یَبۡسُطُ ٱلرِّزۡقَ لِمَن یَشَآءُ (آیت ۳۶)

څلورم دلیل عقلی: (آیت ۳۹) قُلۡ إِنَّ رَبِّی یَبۡسُطُ ٱلرِّزۡقَ لِمَن یَشَآءُ دا په حقیقت کښ دَ دریم دلیل عقلی اعاده ده.

دلیل نقلی: وَیَرَى ٱلَّذِینَ أُوتُوا۟ ٱلۡعِلۡمَ (آیت نمبر ۶)

څلور شبهاتو جوابونه ذکر کیږی.

اوله شبه: داؤد علیه السلام مستحق دَ اولوهیت او شفیع قهری دې (آیت ۱۰)

دویمه شبه: سلیمان علیه السلام مستحق دَ الوهیت او شفیع قهری دې (آیت ۱۲)

دریمه شبه: جنات غیب دان او شفیع قهری دی، (آیت ۱۳)

څلورمه شبه: ملائک مستحق دَ الوهیت او شفیع قهری دی (آیت ۱۴)

اته (۸) طریقی دَ تبلیغ په کښ ذکر کیږی.

اوله طریقه دَ تبلیغ: وَإِنَّآ أَوۡ إِیَّاكُمۡ لَعَلَىٰ هُدًى (آیت ۲۴)

دویمه طریقه دَ تبلیغ: قُل لَّا تُسۡـَٔلُونَ عَمَّآ أَجۡرَمۡنَا (آیت ۲۵)

دریمه طریقه دَ تبلیغ: قُلۡ یَجۡمَعُ بَیۡنَنَا رَبُّنَا (آیت ۲۶)

څلورمه طریقه دَ تبلیغ: قُلۡ إِنَّمَآ أَعِظُكُم بِوَٰحِدَةٍ (آیت ۴۶)

پنځمه طریقه دَ تبلیغ: قُلۡ مَا سَأَلۡتُكُم مِّنۡ أَجۡرٍ فَهُوَ لَكُمۡ (آیت ۴۷)

شپږمه طریقه دَ تبلیغ: قُلۡ إِنَّ رَبِّی یَقۡذِفُ بِٱلۡحَقِّ عَلَّٰمُ ٱلۡغُیُوبِ (آیت ۴۸)

اوومه طریقه دَ تبلیغ: قُلۡ جَآءَ ٱلۡحَقُّ وَمَا یُبۡدِئُ (آیت ۴۹)

اتمه طریقه دَ تبلیغ: قُلۡ إِن ضَلَلۡتُ فَإِنَّمَآ أَضِلُّ عَلَىٰ نَفۡسِی (آیت ۵۰)

نهه (۹) تخویفات بیانیږی

(۱)وَٱلَّذِينَ سَعَوْ فِيٓ ءَايَٰتِنَا مُعَٰجِزِينَ (آیت ۵) (۲)أَفَلَمْ يَرَوْاْ إِلَىٰ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ (آیت ۹)

(۳)لَقَدْ كَانَ لِسَبَإٍ فِي مَسْكَنِهِمْ ءَايَةٌ آیت ۱۰ تا ۲۱) (۴)وَقَالَ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ لَن نُّؤْمِنَ (آیت ۳۱تا۳۳)

(۵)و مآأَرْسَلْنَا فِي قَرْيَةٍ مِّن نَّذِيرٍ (آیت ،۳۵،۳۴) (۶)وَٱلَّذِينَ يَسْعَوْنَ فِيٓ ءَايَٰتِنَا (آیت ۳۸)

(۷)وَيَوْمَ يَحْشُرُهُمْ جَمِيعًا ثُمَّ يَقُولُ (آیت ۴۰) (۸)وَكَذَّبَ ٱلَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ وَمَا بَلَغُواْ (آیت ۴۵)

(۹)وَلَوْ تَرَىٰٓ إِذْ فَزِعُواْ فَلَا فَوْتَ (آیت ۵۴،۵۱)

درې شکوې ذکر کیږي.

(۱)وَقَالَ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ لَا تَأْتِينَا ٱلسَّاعَةُ (آیت ۳) (۲) وَقَالَ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ هَلْ نَدُلُّكُمْ (آیت ۹)

(۳) وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هَٰذَا ٱلْوَعْدُ آیت ۳۰،۲۹)

(تمت)

| ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ ٱلَّذِي لَهُۥ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِي ٱلْأَرْضِ |
|---|
| تمام خدائی صفتونه الله ﷻ لره دی،هغه الله چې ده لره دی هرهغه څه چې په اسمانونو کښې دی،اوهرهغه څه چه په زمکه کښې دی |
| وَلَهُ ٱلْحَمْدُ فِي ٱلْءَاخِرَةِ وَهُوَ ٱلْحَكِيمُ ٱلْخَبِيرُ ① يَعْلَمُ مَا يَلِجُ فِي ٱلْأَرْضِ وَمَا يَخْرُجُ |
| اوده لره دي حمدپه اخرت کښې،اودې حکمتونو والاخبردار دې،عالم دې په هغه څه چې ننوځي په زمکه کښې اوپه هغې چې راواوځي |
| مِنْهَا وَمَا يَنزِلُ مِنَ ٱلسَّمَآءِ وَمَا يَعْرُجُ فِيهَا ۚ وَهُوَ ٱلرَّحِيمُ ٱلْغَفُورُ ② |
| ددې نه،اوپه هغې چې راکوزیږي داسمان نه،اوپه هغې چه خیژی اسمان ته،اوهغه رحم کونکې بخښونکې دې. |

﴿ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ﴾ دادعوه دسورت ده،چه تمام صفتونه د خدایٔ توب صرف الله ﷻ لره دی،بل څوک ورسره شریک نشته نه بل څوک متصرف شته اونه شفیع قهری ﴿ٱلَّذِي لَهُۥ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِي ٱلْأَرْضِ﴾دااول دلیل عقلی دې په مذکورې دعوې د توحید باندې د دې دلیل دوه حصې دی ، دا د دلیل اوله حصه ده چه پدیکښې د تصرف ذکر دې،چه په ټولو کائناتو کښې متصرف او مختار صرف الله ﷻ دې ﴿وَلَهُ ٱلْحَمْدُ فِي ٱلْءَاخِرَةِ﴾څنګه چه په دنیا کښې مستحق د حمد صرف الله ﷻ دې نو دغه شان په آخرت کښې هم مستحق د حمد صرف الله ﷻ دي ، كقوله تعالیٰ: وقالوا الحمد لله الذی صدقنا وعده".اودغه شان"وتری الملائكة حافين من حول العرش يسبّحون بحمد ربهم"او دغه شان"وقيل

الحمد لله رب العالمين،" وغيرها من الايات دنيا كښې د الله ﷻ حمد لپاره دعبادت دي او په آخرة كښې لپاره د تلذذ او فرحت دي﴿وَهُوَ ٱلْحَكِيمُ﴾ الله ﷻ حكيم دي، هيڅ كار ئى هم د حكمت نه خالى نه دي. تول نظام د كائناتو په حكمت سره چلوى﴿ٱلْخَبِيرُ﴾ د هر چا په حال باندى خبر دار دي ، نو د هر محتاج لپاره صرف هغه كار ساز دي﴿يَعْلَمُ مَا يَلِجُ فِى ٱلْأَرْضِ﴾ دادَ دليل دويمه حصه ده. او پديكښې دغيب دانئ ذكر دي يعنى د تولو كائناتو د ذري ذري علم صرف الله ﷻ ته دي، ﴿مَا يَلِجُ فِى ٱلْأَرْضِ﴾ نه مراد ،د باران اوبه ،تخم،مړى وغيره مراد دى نو مطلب دا دي چه د زمكې د اندرونى حصې علم هم صرف الله ﷻ ته دي﴿وَمَا يَخْرُجُ مِنْهَا﴾او د زمكې بيروني حصې علم هم الله ﷻ ته دي. او د دي نه مراد نباتات ،معدنيات وغيره دى﴿وَمَا يَنزِلُ مِنَ ٱلسَّمَآءِ﴾ يعنى د آسمان بيرونى حصه علم هم الله ﷻ ته دي،مراد د دي نه فرشتې،احكامات وغيره دى﴿وَمَا يَعْرُجُ فِيهَا﴾ دَ آسمان اندرونى حصې علم هم صرف الله ﷻ ته دي مراد د دينه فرشتې،دانسانانو عملونه وغيره دي، كقوله تعالى: اليه يصعد الكلم الطيبُ والعمل الصالح يرفعه، نودَدليل د دواړو حصّونه دا ثابته شوه چه د تولو كائناتو مالك، خالق ،كار ساز او متصرف صرف الله ﷻ دي نو دا دعوه ثابته شوه چه ﴿ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ﴾يعني د حمد او صفاتو الوهيت مستحق صرف الله ﷻ دي.

**فائده:**﴿وَمَا يَعْرُجُ فِيهَا﴾ ذكر شو، "اليها"ذكر نه شو پديكښې اشاره ده قبوليت د اعمالو ته ځكه چه ﴿إِلَىٰ﴾ د غايه لپاره راځي نو كه (اليها) ئي وئيلى ي نو صرف اسمان ته به رسيدل مراد وو. په آيت كريمه كښې﴿ٱلسَّمَٰوَٰتِ﴾ جمع راوړل او﴿ٱلْأَرْضِ﴾واحد راوړلو وجه دَسورة الانعام په اول آيت كښې تيره شويده هلته ئي اوګورئ.

وَقَالَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ لَا تَأْتِينَا ٱلسَّاعَةُ ۖ قُلْ بَلَىٰ وَرَبِّى لَتَأْتِيَنَّكُمْ ۙ

اووائى هغه كسان چې كفرئى كړيدې نه به راځي مونږته قيامت،ته أووايه،ولې نه،قسم مې دې وى په رب خپل خامخا به راځي تاسوته،

عَٰلِمِ ٱلْغَيْبِ ۖ لَا يَعْزُبُ عَنْهُ مِثْقَالُ ذَرَّةٍ فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَلَا فِى ٱلْأَرْضِ

چې عالم دي په غيب باندې،نه پټيږي دهغهٔ دعلم نه،په اندازې دَيوې ذرې په اسمانونوكښې.اونه په زمكه كښې.

| وَلَآ اَصۡغَرُ مِنۡ ذٰلِكَ وَلَآ اَكۡبَرُ اِلَّا فِيۡ كِتٰبٍ مُّبِيۡنٍ ۟ۙ لِّيَجۡزِيَ الَّذِيۡنَ |
|---|
| اونه یو وړوکې څیز ددې زرې نه، اونه لوئ، مګرپه کتاب ښکاره کښې دی. دپاره ددې چې بدله ورکړی الله ﷻ هغه کسانوته |
| اٰمَنُوۡا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ ؕ اُولٰٓئِكَ لَهُمۡ مَّغۡفِرَةٌ وَّرِزۡقٌ كَرِيۡمٌ ۝ |
| چې ایمان ئې راوړې دې اوعملونه کوی نیک، دغه کسان هم دوئ لپاره مغفرت اورزق عزت والادې. |
| وَالَّذِيۡنَ سَعَوۡ فِيۡۤ اٰيٰتِنَا مُعٰجِزِيۡنَ اُولٰٓئِكَ |
| اوهغه کسان چه کوشش کوې په(باطلولو د)ایاتونوزمونږ، کښې، (ګمان بې داوی) چې عاجزه کونکی دې مونږلره، دغه کسان |
| لَهُمۡ عَذَابٌ مِّنۡ رِّجۡزٍ اَلِيۡمٌ ۝ |
| هم دوئ لپاره عذاب دې ډیر سخت دردناک . |

﴿وَقَالَ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا﴾ دا شکوه ده چه کافران صرف د توحید نه منکر نه دی بلکه د قیامت نه هم منکر دی او وائی قیامت نشته دې﴿قُلۡ بَلٰى وَرَبِّيۡ﴾دا جواب شکوه ده او دلیل دې په وقوع قیامت باندې، یعنی قیامت انکارېدې خبره دې چې انسان روح دَجسم نه جدا شي اوجسم یې په خاوره کښ ایره ایره شی، اومنتشراوبالکل روک شي(کما فی قوله تعالی وقالوا ا أذا ضللنا فی الارض...)نوبیا به ددې منتشراوروک اجزاؤ پته څنګه اولګی اوچې هغه معلوم شی نوبیابه ورله داروح دکوم ځائی نه رواستې کیږی؟الله تعالی ورته جواب کښ فرمائی چې﴿عٰلِمِ الۡغَيۡبِ﴾هیڅ ګرانه خبره نده، الله تعالی عالم الغیب دې، دَروح تهکانه هم هغه ته معلومه ده اوکومې فرشتې یی چې وړی هغه ورته هم معلومې دی، اودهغه شان دَ کائنات ذرې ذرې باندې دهغه نظروی، وړوکی نه وړوکې شې هم دَ هغه نه پټ نشی پاتې کیدې، نوستاسو منتشراجزاهغه ته ټول معلوم دی، نوکله چې داثابته شوه چې دَروح اوبدن اجزا خوالله تعالی په علم کښ دی، اودَالله تصرف اوقدرت خوپه اول دَ سورت کښ ثابت شویدې نوده دینه بعث بعدالموت اووقوع قیامت امکان ثابت شو. اوکله چې دَ یوامر ممکن خبر، مخبر صادق ورکړی چې﴿لتاتینکم﴾نوبیادَ هغې انکار هیڅ وجه نه پاتې کیږی ﴿عٰلِمِ الۡغَيۡبِ﴾ صفت دې یا بدل دې دَ﴿وَرَبِّيۡ﴾. نه ﴿فِي السَّمٰوٰتِ﴾کښې اشاره ده علم د الله ﷻ ته په ارواحو باندې او

په فرشتو باندې څکه چه ارواح په اسمانونو کښې وي او په﴿فِي ٱلْأَرْضِ﴾کښې اشاره ده علم د الله پاک ته په اجسامو باندې څکه چه اجسام په زمکه کښې دی نو چه په ارواحو اجسادو باندې عالم دې نو دَهغې په یوځائ کولو هم قادر دې نو دوباره پیدا کیدل څه بعید ندی ﴿وَلَآ أَصْغَرُ مِن ذَٰلِكَ﴾ اصغر مبتدا دې ،او« في كتب مبين» مستثني مفرغ ورله خبر دې. او ذلک دپاره مشار الیه ﴿ذَرَّةٍ﴾ دې یعنی دَذرې نه هم اصغر.

تر١٩صدئ عیسوې پورې دا عام اعتقادوُچه په کائناتو کښې تولو نه وړوکې جزء ذره ده،او دا جزء لایتجزی دې. بیا سائنسدانانو دا انکشاف اوکړو چه ذره جزء لایتجزی نه ده څکه دا درې اجزاء باندې مشتمله ده . (١) الیکټرون (٢) پروټون (٣) نیوټرون،بلکه د دې نه هم وړوکې جزء شته،د قرآن دا آیت پدې صریح گویان دې﴿إِلَّا فِي كِتَٰبٍ مُّبِينٍ﴾ نه مراد د اکثرو په نیز لوح محفوظ دې ، یعنی علم الهی(روح) نو دا به تاکید شی د﴿لَا يَعْزُبُ عَنْهُ﴾بعضې وائی دینه صحائف د ملائکو مراد دی

﴿لِّيَجْزِيَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟﴾ بشارت اخرویه دې،اودَقیامت وقوع غرض بیانیږی چې قیامت به څکه راځی چې دا دنیادَ عمل ځائ دې،اوقیامت دَجزااوبدلې ځائ دې،نودیره بی انصافی ده چې یوکس عمل اوکړی اوبیا ورله اجر دَهغې ورنکړې شی،نو الله تعالی به قیامت ضرور روالی چې مؤمنانو ته دهغوئ حسن عمل بدله ورکړی ﴿مَّغْفِرَةٌ﴾داپه بدله دَایمان کښ دې چې ایمان دوجې نه به الله تعالی دَ هر مؤمن مغفرت کوې ﴿وَرِزْقٌ كَرِيمٌ﴾او دابه په بدله دَ عمل صالح کښ وې. عزت والا رزق دادې چې انسان نه دَهغې په حصول سترې شې اونه پری دچااحسان راشی.

﴿وَٱلَّذِينَ سَعَوْ فِيٓ ءَايَٰتِنَا﴾ ای فی ابطال آیاتنا،دا تخویف اخروی دې،مراد د کوشش نه اعتراضونه کول دی او خلق منع کول دی د ایمان نه﴿مُعَٰجِزِينَ﴾حال دې، یعنی حال دا چه پخپل زعم کښی عاجزه کونکي دی الله ﷻ لره.

| وَيَرَى ٱلَّذِينَ أُوتُوا۟ ٱلْعِلْمَ ٱلَّذِيٓ أُنزِلَ إِلَيْكَ مِن رَّبِّكَ هُوَ ٱلْحَقَّ |
| --- |
| او کتړي هغه کسان چه ورکړيشي دي هغوته علم هغه کتاب چې نازل کړې شویدي تاته دَطرفه دَرب ستانه ، حق |

وَيَهْدِيْٓ اِلٰى صِرَاطِ الْعَزِيْزِ الْحَمِيْدِ ۝٦ وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا هَلْ نَدُلُّكُمْ

اودا چې هدايت كوي داكتاب لارې دهغې ذات ته چې غالب دې.ستائلې شوېدې اووائي كافران.آيااوښايو موتاسوته

عَلٰى رَجُلٍ يُّنَبِّئُكُمْ اِذَا مُزِّقْتُمْ كُلَّ مُمَزَّقٍ ۙ اِنَّكُمْ

داسې سړې چه خبردركوى تاسوته داچې هركله ذرې ذرې كړيشئ تاسوپه ډيروزرې كيدوسره،نو بيشكه تاسوبه

لَفِيْ خَلْقٍ جَدِيْدٍ ۝٧ اَفْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا اَمْ بِهٖ جِنَّةٌ ۭ بَلِ الَّذِيْنَ

پورته كولې كيږئ په نوى پيدا كولو سره آياه دتړليدى په الله تعالى دروغ قصداًياپه ده باندې ليونتوب دې،بلكه هغه كسان

لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ فِي الْعَذَابِ وَالضَّلٰلِ الْبَعِيْدِ ۝٨ اَفَلَمْ يَرَوْا اِلٰى مَا

چې ايمان نه راوړې په اخرت باندې په عذاب كښې به وى(په آخرت كښې)اوپه گمراهئ لرې كښې دى (په دنياكښې).آيانو دوئ نه گورې هغه

بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ مِّنَ السَّمَاۗءِ وَالْاَرْضِ ۭ اِنْ نَّشَاْ

چې په مخكښې ددوئ دې اوهغه چې دورستودوئ دې، د آسمان او زمكې نه.كچرې خوښه شى زمونږ

نَخْسِفْ بِهِمُ الْاَرْضَ اَوْ نُسْقِطْ عَلَيْهِمْ كِسَفًا مِّنَ السَّمَاۗءِ ۭ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ

خسف خښبه كړومونږ دوئ په زمكه كښې،يابه راواوغورځوومونږپه دوئ باندې تكړې دآسمان نه.بيشكه په ديكښې خامخا

لَاٰيَةً لِّكُلِّ عَبْدٍ مُّنِيْبٍ ۝٩

نښانه دقدرت ده دهرداسې بنده لپاره چې انابت(رجوع)والاوي،

﴿وَيَرَى ٱلَّذِينَ أُوتُوا ٱلْعِلْمَ﴾ دا دليل نقلى دې د علماؤ داهل كتابونه ،په توحيد او په حقانيت د قرآن ،يعنى د اهل كتابو صحيح علماء هم پدې گواه دى چه په تا باندې كوم قرآن او د توحيد وحى كيږى دا حق دې. من عندالله دې ، اوخلقو ته هدايت كوى وصول الى الله ته ، رؤيت نه مراد رؤيت قلبى دې،يعنى يقين كوى اوحق يې گڼړى ﴿ٱلَّذِينَ أُوتُوا ٱلْعِلْمَ﴾ ورله فاعل دې،مراد ورنه هغه علماء د اهل كتابو دى چه ايمان ئې راوړې وؤ ، لكه عبدالله بن سلام ﷺ او د هغه ملگرى. بعضِ وائي مراد ورنه صحابه كرام ﷺ او ټول مؤمنان دى ﴿ٱلَّذِىٓ أُنزِلَ إِلَيْكَ﴾ مفعول اول دې د﴿يَرَى﴾ مراد ورنه

مسئله د توحید او قرآن دي﴿هُوَ﴾ ضمیر فصل دي﴿ٱلْحَقَّ﴾ مفعول ثاني دي . ﴿وَيَهْدِىٓ﴾ اظهر قول دا دي چې دا فعل په تاویل اسم کښې عطف دي په ﴿ٱلْحَقَّ﴾ باندې اي وهاديا او﴿يَهْدِىٓ﴾کښې ضمير مستتر راجع دي﴿ٱلَّذِىٓ أُنزِلَ﴾ ته یعني اهل کتابو حقاني علمادا اعتقاد هم لري چې دا قرآن دَ الله تعالی دین طرف ته راهنمائ کوی،او یا جمله حالیه ده او جمله حال واقع ده دَ ﴿ٱلَّذِىٓ أُنزِلَ﴾نه

﴿وَقَالَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ هَلْ نَدُلُّكُمْ﴾دا شکوه ده د کافرانو نه چه دوئ بطور تعجب او استهزاء یو بل ته وائی چه دانبی خودیر عجیبه غونډې خبره کوی چې کله تاسو بالکل ټکړې ټکړې او ذرې ذرې شئ نو بیا به هم تاسو دوباره پورته کیږئ،یا خودې قصدا په الله ﷻ دروغ راتړی او یالیونې دې ﴿هَلْ نَدُلُّكُمْ عَلَىٰ رَجُلٍ﴾دَ رَجُل نه مراد ئي حضور ﷺوؤ تعبیر ورنه په ﴿رَجُلٍ﴾ سره د باب تجاهل نه دې،ګویا که دې عام سړې دې څوک ئی خاص پیژنی نه او دا خبره کوی( روح ) ﴿إِذَا مُزِّقْتُمْ كُلَّ مُمَزَّقٍ﴾ اذا شرطیه دې او جواب شرط محذوف دې،چې محشرون دې ﴿كُلَّ مُمَزَّقٍ﴾مفعول مطلق دې ﴿ممزق﴾ مصدر میمي دې ،یعنی تر دې حد پوري ټکړې شئ چې هغې نه ورستو نو ټکړې کیدل ممکن نه وی،یا ﴿ممزق﴾ظرف مکان دې یعني ټکړې ټکړې شئ او اجزا خو منتشر او هرځائی کښې خواره واره شی،څه په هواګانو کښې والوزی څه دَریابونو نذر شی،څه ځناوراوخوری او څه خاور کښې وراسته او روک شی،دې باوجود به تاسو دوباره راپورته کیږئ،داجمله معترضه ده او دبعث الموت په استحاله او عدم امکان کښې مبالغه دپاره راوړلې شوې ده﴿إِنَّكُمْ لَفِى خَلْقٍ جَدِيدٍ﴾جمله قائم مقام ددوؤ مفعولو ده د ينبئكم دپاره.

﴿أَفْتَرَىٰ عَلَى ٱللَّهِ﴾ افترانه مراد کذب عن عمد دې یعنی دې دوؤه خبرونه یوه ضرورده یاخو دې قصدا اوعمدا په الله ﷻ باندې دروغ تړی،اویالیونې دې چې څه یې په خوله راځی هغه وائی.شروع کښې همزه استفهام ده او همزه وصلی د باب افتعال کښې د همزه استفهام پوجه حذف ده ای ا افترى، ﴿بَلِ ٱلَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِٱلْءَاخِرَةِ﴾ دا جواب شکوه ده "بل"دااضراب دپاره دې،یعنی اصل خبره داده چې داکافران پخپله غټ پاګلان دی،ځکه چې دوئ دومره واضحه دلائلونه انکار کوی اوحق پریګدی اوګمراهی خوخوی،اودآخرت لوئ اجر و ثواب نه ځان محرومه کوې،اوعذاب اختیاره وی. ﴿ٱلْعَذَابِ﴾دا په مقابلې دَ﴿أَفْتَرَىٰ عَلَى ٱللَّهِ﴾کښې دې چې دروغوسزا عذاب ده او عذاب

کښې خوبه دوئ وی نبی کريم ﷺ به نه وی لهذا دروغ ژن هم دوئ دی نبی کريم ﷺ نه دي ﴿والضَّلَالِ الْبَعِيدِ﴾دا په مقابلې ﴿ام به جنة﴾کښې دې. چې پاګلان هم دوئ دی. چې دومره واضحه دلائلو باوجود دبعث الموت نه انکار اوډخپلو توهماتو اتباع کوی

﴿أَفَلَمْ يَرَوْا إِلَىٰ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ﴾زجراوتخويف دې منکرينودبعث بعد الموت ته . چونکه د دوئ دې اشکال د الله تبارک وتعالیٰ عظيم قدرت نه ناواقفيت دې . نو ځکه په ديکښې د الله تبارک وتعالیٰ د قدرت مظاهر ذکر کيږي. چې دوئ خپل مخکښې اوشاته پراته زمکه اوآسمانونو باندې غورنکوی چې دا عظيم آسمانونه زمکې پيداکول ګران دی يادډوئ؟اودوئ سره دومره خوف نشته چې دااسمان اوزمکه زمونږ په قبضه قدرت کښې دی که مونږ اوغواړو نو قارون پشانته به يې زمکه کښې دننه کړو او يا اصحاب الايکه پشان پرې ډک ټوټې باران اوروو.دابعث بعد الموت دپاره ډيرلوئ دليل دې خو که څوک حقيقت پسندوی.اوحق ته رجوع کول غواړی.

| وَلَقَدْ | آتَيْنَا | دَاوُدَ | مِنَّا | فَضْلًا | يَاجِبَالُ | أَوِّبِي | مَعَهُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| او يقينا چې ورکړې وو مونږ داود ﷺ ته دخپل طرف نه فضل حکم کړې وو مونږ اې غرونو تسبيح وايئ تاسو دده سره | | | | | | | |
| وَالطَّيْرَ | وَأَلَنَّا | لَهُ | الْحَدِيدَ | أَنِ | اعْمَلْ | سَابِغَاتٍ | وَقَدِّرْ |
| اومسخرکړی وو مونږ مارغان.اونرمه کړيوه مونږ ده لره أسپنه .چه جوړه وه زغرې کاملې اواندازه کوه | | | | | | | |
| فِي | السَّرْدِ | وَاعْمَلُوا | صَالِحًا | إِنِّي | بِمَا | تَعْمَلُونَ | بَصِيرٌ |
| په اودلو(جوړولو)[1] کښې اوعمل کوئ نيک.بيشکه څه ستاسوعملونولره ليدونکې يم. | | | | | | | |

﴿وَلَقَدْ آتَيْنَا دَاوُدَ مِنَّا﴾ د تمهيد نه بعد أوس د څلور شبهاتو جوابونه ذکر کيږی دا د اولې شبهې جواب دې. شبهه دا ده چه د داود ﷺ د حالاتو نه معلوميږی چه هغه مستحق د الوهيت وو ځکه چه غرونه ، مرغان. اوسپنه وغيره د هغه تابع وو او د مخلوقاتو تابع کيدل صفت د الوهيت دې نو معلومه شوه چه داود ﷺ هم مستحق د الوهيت دې اوشفاعت اختيارورسره دې. حاصل د جواب دا دې چه داود ﷺ ته صفات د الوهيت نه وو حاصل.اونه هغه ته شفاعت اختيار شته بلکه د هغه سره

[1] دويمه ترجمه اوکم وخت لګوه په جوړولو دزغروکښې.

چه کوم صفات وؤ نو هغه زمونږ د طرفه فضل او احسان وؤ بطور معجزه ورته میلاؤ شوی وؤد هغه په اختیار کښې نه وؤ ،مستحق د الوهیت خو هغه وی چه هغه ته اختیار کل حاصل وی ﴿ دَاوُدَ﴾ مفعول اول دی ﴿فَضْلًا﴾مفعول ثانی دی، ﴿فَضْلًا﴾نه مراد رسالت کتاب. او د ټولې دنیا بادشاهی،او هغه معجزات دی چه ذکر ئې ورستو را روان دي،او تعبیر ترینه په فضل سره ځکه اوشو چې معلوم شی چې داد داؤد ﷺ څه ذاتی کمال نه وؤ بلکه زمونږ فضل اوعنایت وؤ اوددې وجهی نه هم چې داټول کمالات دبنی اسرائیلو په انبیاؤ کښې صرف داؤد ﷺ کښې جمع شوی وؤ،نو ددې اعتبارسره گویاهغه فضیلت زیات دی ﴿يٰجِبَالُ أَوِّبِي مَعَهُ﴾ دا اوله معجزه ده،داود ﷺ ته الله ﷻ دومره ښکلې اواز ورکړې وؤ چه کله به ئې تسبیح کوله یا دزبور تلاوت به ئې کولو نو غرونو او مارغانو به ورسره هم تسبیح کولو په زبان قال سره او الله ﷻ په دې قادر دې ، لکه څرنګه چه د حضور ﷺ په لاس کښې او د ابوبکر ﷺ په لاس کښې کاڼرو تسبیح کړې وه.

**سوال**:واردیږي چې تسبیح دَالله ﷻ خوهرمخلوق کوي کقوله تعالٰی:وَاِن من شيءٍ الايسبّح بحمده... ( بنی اسرائیل ) او معجزې لپاره خو خرق عادت کیدل شرط دې نو بیا څنګه د داؤد ﷺ سره غرونو تسبیح کول معجزه شوه ؟ **جواب** دا دې چه د کوم تسبیح دلته ذکر دې دا په زبان قال سره وه ، هر چا به اوریدله او پوهیدل به وربانديې،

﴿يٰجِبَالُ﴾نه مخکښې قلنا مقدر دې ﴿أَوِّبِي﴾مشتق دې د تأویب نه . بار بار وئیلو ته ووائې ای رجعّی معه التسبیح ﴿وَالطَّيْرَ﴾ مفعول به دې دَ(سخّرنا) فعل مقدرلپاره ،او تسخیر دَ مارغانو مطلب دا دې چه مارغان به په هواء کښې د ده په آواز باندې جمع کیدل اوتسبیح به ئې ورسره کوله، کقوله تعالٰی: والطیر محشورة کل له اواب (ص : ۱۸) ﴿وَأَلَنَّا لَهُ الْحَدِيدَ﴾دا دویمه معجزه ده ، الله ﷻ د داود ﷺ دپاره اوسپنه نرمه کړی وه اوسپنه به دَده په لاس کښې موم شوه چې کوم طرف ته به یې غوختله تاووله،نه به ورته ستړکې ضرورت وؤ نه د اور،اونه د میخ. بعضی وائی نرمولونه مراد دادې چې دومره قوت ئې ورته ورکړې وؤ چه اوسپنه به ورته د شمع په شان نرمه ښکاریده او څه به چه ئې ترینه جوړول غوښتل بغیر په اور کښې د ګرمولو نه به ئې جوړول.او سبب د دې هغه دې چه په احادیثو کښې راغلې دې چه کله داود ﷺ بادشاه شو ، نو د شپې به ئې د بادشاهت لباس بدل کړو او عام لباس کښې به را اووتلو ، د خلقو نه به ئې تپوس نه کول چه ستاسو بادشاه څنګه سړې دې. نو خلقو به ئې

تعریف کولو ، یو ځل ورته الله ﷻ فرشته د انسان په صورت کښی را اولیږله ، داود ﷺ ورنه د عادت مطابق تپوس اوکړو نو هغی ورته اووئیل چه ښه سړی دی خو چه یو عادت پکښی نه وی ، نو ده ورنه تپوس اوکړو چه څه عادت ؟ نو هغی ورته اووئیل چه دی پخپله هم او د ده اهل عیال هم د بیت المال نه خوراک کوی . نو داود ﷺ الله ﷻ ته سوال اوکړو چه ماته داسی کسب راکړه چه هغه څه سبب جوړ کړم او د بیت المال نه پری مستغنی شم ، نو الله ﷻ ورته اوسپنه نرمه کړه او د زغرو چل ئی ورته اوښودلو ، زغری به ئی جوړه ولی ، یوه زغره به ئی په څلور زره (۴۰۰۰) درهمو باندی خرڅوله، چاوئیلی دی چه روزانه به ئی یوه زغره جوړه وله او په شپږ زره (۶۰۰۰) درهمو به ئی خرڅوله ، نو دوه زره (۲۰۰۰) به ئی پخپل ځان او او اهل و عیال لګولی او څلور زره درهمه به ئی صدقه کول . په حدیث کښی راځی: کان داود ﷺ لایأکل الاّ من عمل یده (بخاری فی البیوع)

﴿أَنِ ٱعۡمَلۡ﴾ أن تفسیر یه دی او تفسیر کوی دَ اوحینا فعل مقدر "ای اوحیناالیه ان اعمل" یا أن مصدریه دی ، حرف جر پکښی حذف دی ، ای: الناله الحدید لعمل سابغات (روح) یعنی زغرو جوړولو دپاره مو ورته اوسپنه نرمه کړی وه﴿سَٰبِغَٰتٖ﴾ صفت دی د موصوف مقدر دپاره "ای دروعا سابغات" یعنی زغری کاملی او پوره ،چی نه آزادی وی نه تنګی نه لندی وی نه اوګدی بلکه څه برابر وی. ﴿وَقَدِّرۡ فِي ٱلسَّرۡدِ﴾ "ٱلسَّرۡدِ" نسج الدّروع، ته وائی ، یعنی د زغرو جوړول او د هغی کړئ یو بل کښی ورکول ، جوړونکی ته " سراد" یا" زراد" وائی او﴿ قَدِّرۡ﴾ د تقدیر نه مشتق دی دلته ئی دوه معنی دی (۱) اوله دا چه د زغرو کړئ په اندازه جوړه وه یعنی چه نه دومره فراخی وی چه غشی ترینه اوزی،او نه ډیری تنګی وی.څکه چه بیا به ورسره ګرځیدل ګران وی، نه دومره نرئ وی چی د توری یو ګوزار ته هم ټینګه نه شی.او نه دومره غټی وی چی درنی او ثقیلی وی،ورل ،ګرځول ئی مشکل وی .( خطیب وغیره ) (۲) دویمه معنی دا ده چه وخت کم لګوه په جوړولو د زغرو کښی،څکه دا کسب دی او کسب بقدر الحاجة وی، باقی ټول وخت عبادت ته ورکوه. ﴿وَٱعۡمَلُواْ صَٰلِحًاۖ﴾ جمع یا د تعظیم پوجه ده. یا امر داؤد ﷺ او ال داؤد ﷺ دواړو ته دی.

| وَلِسُلَيۡمَٰنَ | ٱلرِّيحَ | غُدُوُّهَا | شَهۡرٞ | وَ | رَوَاحُهَا | ط |
|---|---|---|---|---|---|---|

او(مسخر کړی وه مونږ)سلیمان لره هوا ،رفتار(صبائی دهغی په مسافت دیوی میاشتی وؤاوبیګائی رفتارئ په مسافت

شَهْرٌ ۚ وَاَسَلْنَا لَهٗ عَيْنَ الْقِطْرِ ؕ وَمِنَ الْجِنِّ مَنْ يَّعْمَلُ

دیوې میاشتې وو. بہولې وه مونږ دده دپاره چینه دتانبې.او مسخر کړي وو مونږ ده لره بعض د پیریانو نه هغه چه کار به ئې کولو

بَيْنَ يَدَيْهِ بِاِذْنِ رَبِّهٖ ؕ وَمَنْ يَّزِغْ مِنْهُمْ عَنْ اَمْرِنَا نُذِقْهُ

دده په مخکښې په حکم درب دده سره.اوچابه چه نافرماني وکړه په دوئ کښې دحکم زمونږ.اوبه څکوو مونږ دده ته

مِنْ عَذَابِ السَّعِيْرِ ﴿۱۲﴾

دعذاب داورنه.

﴿وَلِسُلَيْمٰنَ الرِّيْحَ﴾ سخرنا ورنه مخکښې مقدر دي . دا جواب د دویمې شبهې دې.شبهه داوه چه جنات او هوا وغیره د سلیمان ﷺ تابع وو . دا څیزونه د هغه په اختیار کښې وو.دا دلالت کوی پدې چه هغه مستحق د الوهیت دې،اودشفاعت اختیار ورسره هم دې. حاصل د **جواب** دا دې چه دا څیزونه مونږ هغه دپاره مسخر کړي وو، د هغه په دې کښې اختیار نه وو.بلکه د هغه خو پخپل ځان هم اختیار نه وو.مرګ وربان‌دې راغې.مرګ نه بچ نه شو.﴿غُدُوُّهَا شَهْرٌ وَّرَوَاحُهَا شَهْرٌ﴾ غدو د سهار نه تر زوال پورې وخت ته وائی او رواح د زوال نه تر غروب آفتاب پورې وخت ته وائی . هوا الله ﷻ د سلیمان ﷺ مسخر کړې وه .د هغې رفتار به داسې وو چه کومه فاصله به چه په میاشت کښې طې کیدله نو سلیمان ﷺ به هغه صرف په وخت د صباځ کښې یا په وخت د بیګاځ کښې طې کوله، نو ګویا چه په یوه ورځ کښې به ئې د دوو میاشتو برابر سفر کولو . حسن بصری رحمه الله وائی :

كان يغدو على بساطه من دمشق فينزل باصطخر يتغدى بها و يذهب رائحامن اصطخر فيبيت بكابل ، وبين دمشق واصطخر شهر كامل للمسرع وبين اصطخر وكابل شهر كامل للمسرع (ابن كثير) يعنى سهار به د دمشق نه روان شو نو د غرمې ارام او خوراک به ئې په اصطخر کښې اوکړو .او بیا به د اصطخر نه روان شو نو شپه به ئې کابل کښې اوکړه . د دمشق او اصطخر په درمیان کښې پوره د یوې میاشتې مزل دې لپاره دتیز رفتاراو دغه شان داصطخراوکابل په مینځ کښې هم دیوی میاشتې مزل دې.دیوتیزرفتار مسافرپه اعتبارسره

﴿وَاَسَلْنَا لَهٗ عَيْنَ الْقِطْرِ﴾.دا دویم انعام دې چې مونږ وزله دتانبې چینه جاري کړې وه.د زمکې نه به داسې راوته لکه دابو چینه.﴿وَمِنَ الْجِنِّ مَنْ يَّعْمَلُ بَيْنَ يَدَيْهِ﴾ دا دریم انعام دې. او جناتو د استحقاق د الوهیت رد هم دې. الله ﷻ جنات هم د سلیمان ﷺ لپاره مسخر کړی وو چه مختلف کارونه به ئې

پرې کول او چا به چه نافرماني کوله نو سخته سزا به ئې ورکوله ﴿وَمِنَ الْجِنِّ﴾ متعلق دې د مقدر سره، ای و سخرنا له من الجن. ﴿بِإِذْنِ رَبِّهِ﴾ ای بامره عزوجل (روح) دینه معلومه شوه چه دا تسخیر د سحر په وجه نه وو بلکه خالص د الله ﷻ په امر او حکم سره وو. ددې آیت نه معلومیږي چې جناتو نه کار اخستل جائز دی، خو دا په دو (۲) شرطونو سره (۱) یو دا چې جائز کار د پاره وی، ناجائز کار نوی لکه چاته تکلیف رسول وغیره شو (۲) دویم دا چې جائزې طریقې سره وی ناجائز طریقې سره کار اخستل. هغه خپل قابو کښې راوستل او خپل اطاعت ګزار جوړول شرعا جائز ندی ﴿وَمَن يَزِغْ مِنْهُمْ عَنْ أَمْرِنَا﴾ یعنی په جناتو کښې چه څوک زمونږ د حکم نه نافرماني اوکړی. یعنی د سلیمان ﷺ اطاعت اونکړی نو سخت عذاب به ورته ورکوو ﴿نُذِقْهُ مِنْ عَذَابِ السَّعِيرِ﴾ اکثرو په نیز دینه مراد د جهنم عذاب دې. بعضې وائي دنیوی عذاب ورنه مراد دې. چه سلیمان ﷺ سره یو فرښته وه د اور کوړه ورسره وه کوم پیری به چه نافرماني کوله هغه به ئې ورباندې وهلو. پیری به فرښته نه لیدله. بعضې روایاتو کښې دی چه چا به نافرماني کوله هغه به ئې سیزه ولو. او جناتو ته د اور نه تکلیف رسیږی ځکه هغوئ محض د اور نه نه دی پیدا بلکه اغلب عنصر پکښې اور دې (روح).

| يَعْمَلُونَ لَهُ مَا يَشَاءُ مِن مَّحَارِيبَ وَتَمَاثِيلَ وَجِفَانٍ كَالْجَوَابِ |
|---|
| جوړول به دوئ دده لپاره هغه چه غوښتل به هغه، عبادت خانې، اوصورتونه اوخانکونه په شان دحوضونو. |
| وَقُدُورٍ رَّاسِيَاتٍ ۚ اعْمَلُوا آلَ دَاوُودَ شُكْرًا ۚ وَقَلِيلٌ مِّنْ عِبَادِيَ الشَّكُورُ ﴿١٣﴾ |
| اودیګونه په خپل ځائ ولاړ، زمونږ ورته اوویل عمل کوئ اې آل دداؤد دشکر، اولږ دی دبندګانوزمانه شکرکونکی |

﴿يَعْمَلُونَ لَهُ مَا يَشَاءُ﴾ دی آیت کښې تفصیل دې د هغه کارونو چه سلیمان ﷺ به د جناتو نه اغستل ﴿مَّحَارِيبَ﴾ محاریب جمع د محراب ده. مکان مرتفع یعنی اوچت ځای ته وائی. یعني اوچت اوچت عمارتونه به ئې جوړول. ځنې مفسرین فرمائی چې دا تسمیه الکل باسم الجز ده او مراد ترینه جماتونه او مسجدونه دی. لکه بیت المقدس وغیره شو چه دا هم جناتو جوړ کړې وو لکه ورستو راروان دی ﴿وَتَمَاثِيلَ﴾ جمع د تمثال ده، تصویر ته وائي اکثر مفسرینو په نیز د جاندار تصاویر مراد دی. پیریانو به سلیمان ﷺ لپاره د ملائکو، انبیاؤ او صلحاؤ تصویران جوړول. او دا د حضرت سلیمان ﷺ شریعت کښې جائز وو. زمونږ شریعت کښې ترینه منع راغلیده. او کوم احادیثو کښې چې

دَتصویرمذمت راغلیدي، اومصورانو ته شرارخلق الله ویلی شویدی، چې دینه معلومیږی چې سابقه شرائعو کښې هم تصویر جائز نه وؤ، نوهغې نه مراد هغه تصویران دي چې عبادت خانو کښې وؤ او دغه شان هغه مصوران دی چې بت پرستی په غرض یې تصویرونه جوړول. بعض محققین فرمائی چه تماثیل نه مراد غیر ذی روح اشیاؤ تصاویر دی لکه گل کاری شوه. اوذی روح تصویر دَحضرت سلیمان ﷺ شریعت کښې هم ممنوع وؤ. لکه موجوده تورات نه معلومیږی(آسان ترجمه قرآن)البته زمونږ شریعت کښې دَ تصویرونو ممانعت اتفاقی مسئله ده اوګڼ شمیر حدیثونه پدې دلالت کوی لکه بخاری ، مسلم وغیره کښې په روایت د عبدالله ابن مسعود ﷺ دا حدیث راغلې دې، اشد الناس عذاباً یوم القیامة المصوّرون یعنی قیامت کښې به د ټولو نه سخت عذاب تصویرونه جوړونکو ته وی. بل حدیث کښې دی کل مصوّر فی النار

﴿وَجِفَانٍ﴾جمع دَ جفنة ) ده دخوراک سکاک، غټ لوخی ته وائی لکه خانک. ټپ وغیره ﴿کَالْجَوَابِ﴾ جمع دَ جابیة ده غټ حوض ته وائی ، مطلب دا دې چه د خوراک . سکاک غټ غټ لوخی به وؤ . چه په هغه کښې به د حوض اومره اوبه راتلې ، ﴿وَقُدُورٍ﴾ جمع دَقدر ده، دیګ، ﴿رّٰاسِیٰتٍ﴾ای ثابتات علی الاثافی لاتنزل عنها لعظمها ( روح ) یعنی دومره غټ دیګونه به وؤ چه پخپل ځائ به پراته وؤ چابه راوړلې نشو

﴿اَعْمَلُوْٓا اٰلَ دَاوٗدَ شُكْرًا﴾"قلنا"ورنه مخکښې مقدر دې﴿اٰلَ﴾ منادی دې، حرف ندا محذوف ده . ﴿شُكْرًا﴾ یا مفعول له دې ،ای لاجل الشکر ، اشاره ده پکښې دیته چه مناسب دا ده چه نیک عمل د شکر او محبت پوجه وی، نه د خوف او رجاء په وجه. یا مفعول به دې د﴿اَعْمَلُوْٓا﴾ دپاره. یعنی شکر کوئ. یا صفت دې د موصوف محذوف لپاره ای اعملوا عملا شکراً ، وغیر ذالک من الاقوال.

صاحب د روح۔ المعانی په حواله دَبیهقی وغیره د ابن مسعود ﷺنه نقل کړیدی چه کله ال داود ﷺ ته دغه حکم اوشو نو یو وخت به هم په دوئ نه راتلو مګر یو به پکښې ولاړوؤ عبادت به ئی کولو . په یو روایت کښې دی چه د داود ﷺخاندان د ورځې او د شپې وختونه تقسیم کړی وؤ. په کور کښې به ئی داسی وخت نه راتلو چه یو کس به د الله ﷻ په عبادت کښې مشغوله نه وؤ ، سلیمان ﷺ به پخپله د وربشو روټئ خوړله ، او په مسکینانو باندی به ئی دُرمک خوړلو ،چرته ئی هم په مړه ګیډه خوراک نه وؤکړې، چاورته دې باره کښې عرض اوکړونواوئی فرمائیل چه د لوږې

خلقو احساس راسره وي د حضرت فضيل رحمه الله نه منقول دي چه کله دا حکم اوشو نو داود عليه السلام عرض اوکړو چه يا الله ! څه ستا شکر څنګه پوره کړم . څکه چه څما قولي . فعلي شکر هم ستا د طرفه يو نعمت دې نو پدې نعمت باندي هم.شکر ادا کول پکار دي وهلم جرا نو الله عزوجل ورته اوفرمائيل الان شکرتني ، يعني اوس تا شکر ادا کړو چه هر نعمت دی څما طرفه نه اوګڼړلو. او د شکر حق ادا کولو نه دی څان عاجزه کړو . ﴿وَقَلِيلٌ مِّنْ عِبَادِيَ ٱلشَّكُورُ﴾ پدې کښې تحريض دې مؤمنانو ته د شکر کولو دپاره.

**لطيفه**: حضرت عمر رضي الله عنه د يو کس نه واؤ ريدل چه دا دعائي کوله . **اللهم اجعلني من القليل** حضرت عمر رضي الله عنه ورته اووئيل . دا څنګه دعا ده هغه ورته او وئيل چه الله عزوجل فرمائي : **و قليل من عبادي الشكور** .نو څه غوارم چه څه د دغې قليل نه جوړ شم. عمر رضي الله عنه او وئيل : **كل الناس اعلم من عمر**.

| فَلَمَّا قَضَيْنَا عَلَيْهِ الْمَوْتَ مَا دَلَّهُمْ عَلَىٰ مَوْتِهِ إِلَّا دَابَّةُ الْأَرْضِ |
|---|
| پس هرکله چې حکم وکړومونږ په ده باندې د مرګ نوخبرورنکړوجناتوته په مرګ دهغه مګر چنجی دزمکې |
| تَأْكُلُ مِنسَأَتَهُ ۖ فَلَمَّا خَرَّ تَبَيَّنَتِ الْجِنُّ أَن لَّوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ الْغَيْبَ |
| چه خوړه نی همسادهغه،پس هرکله چې راپرېوتلودې پوهه شول پيريان پدی کچرته دوئ ته پته لګيدلې دغيبو |
| مَا لَبِثُوا فِي الْعَذَابِ الْمُهِينِ ۝ |
| نو نه به وې دوئ «دومره وخت» په عذاب ذليلوونکی کښې. |

﴿فَلَمَّا قَضَيْنَا عَلَيْهِ ٱلْمَوْتَ﴾ دا دريمې شبهی جواب دې، مشرکانو ګمان وؤ چه جناتو ته د غيب علم حاصل دې ،نو دوئ مستحق دالوهيت دی، دلته جناتو پخپله اقرار اوکړو چه : **ان لوكانوا يعلمون الغيب مالبثوا فى العذاب المهين** . دارنګه دې آيت کښې تنبيه ده خلقو ته چه د مرګ نه نجات او خلاصی نشته ورنه سليمان عليه السلام ته به نجات ميلاؤ شوې وؤ (کبير).

**د سليمان عليه السلام د مرګ واقعه** : روايت دې چه حضرت داؤد عليه السلام د بيت المقدس تعمير شروع کړې وؤ . ليکن هغه سليمان عليه السلام ته د پوره کولو وصيت اوکړو او پخپله د پوره کيدلو نه مخکښې

وفات شو، سليمان ﷺ به د جناتو نه د تعمير كار اخستلو د بيت المقدس تعمير ئې هم هغوئ ته حواله كړو، كله د چه د بيت المقدس جوړيدل قريب شول، نو د سليمان ﷺ د وفات كيدلو وخت هم راغې، دا د پيغمبرانو خصوصيت دې چه دوئ ته د وفات كيدلو نه مخكښې اطلاع وركولې كيږي او اختيار ورنه اغستلې كيږي، سليمان ﷺ سره دا فكر لا حق شو چه څما په مرګ سره به د بيت المقدس تعمير نيمګړې پاتې شي او جنات به كار پريدي، او لاړ به شي، نو الله ﷻ نه ئې سوال اوكړو چه په داسې طريقه ماته مرګ راكړه چه جنات څما د مرګ نه خبر نه شي، تعمير كار به هم شروع وي او دوئ به هم پدې پوهه شي چه مونږ ته علم غيب نشته، نو چه كله ئې اخرى وخت رانيزدې شو نو جناتو ته ئې د تعمير نقشه حواله كړه، او حكم ئې ورته اوكړو هغوئ ورنه ګير چاپيره د شيشو كمره جوړه كړه، د ده معمول وؤ چه كله به خپلې عبادت خانې ته داخل شو نو ډيره زمانه پكښې معتكف وؤ، نو حسب معمول ئې عبادت شروع كړو او خپله عصا ئې د زني (ذقن) لاندې كيخودله، نو پدغه شان حالت كښې ورنه فرشتې روح قبض كړو، د عصا پوجه پخپل ځائ ولاړ وؤ، د بهر نه داسې په نظر راتلو چه عبادت كوي، د جناتو دا مجال نه وؤ چه كمرې ته راشي او اوګوري تر دې چه د بيت المقدس تعمير پوره شولو، الله ﷻ يو چنجې (وينه) د ده په عصا مسلط كړو هغه به عصا خوړله، تر دې چه عصاء كمزورې شوه او ماته شوه، نو سليمان ﷺ را پرې وتلو، پدغه وخت كښې جناتو ته د سليمان ﷺ د مرګ علم اوشو. جناتو ته هم معلومه شوه او تولو خلقو ته معلومه شوه چه دوئ ته علم غيب نشته،. د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما منقول دې چه د مرګ نه ورستو يو كال پورې سليمان ﷺ عصا باندې تكيه وؤ، بعضې رواياتو كښې دې چه كله جناتو ته دا معلومه شوه چه د سليمان ﷺ د مرګ څه وخت تير شويدې، نو هغوئ مدې معلومولو دپاره دا تدبير اوكړو چه وينه چنجې ئې په لرګې مسلط كړو، نو چه په شپه كښې ئې څومره مقدار اخوړلو نو د هغې د حساب نه ئې معلومه كړه چه عصاء سليمانې باندې يو كال تير شويدې.

**فائده:** نقل دې چه د سليمان ﷺ عمر تول درې پنځوس (۵۳) كاله وؤ، ديارلس (۱۳) كاله عمر كښې ورته بادشاهي ميلاوه شوې وه (۴۰) څلويښت كاله بادشاهي ئې كړې وه، د بيت المقدس تعمير ئې د بادشاهي په څلورم كال شروع كړې وؤ. (روح المعاني)

﴿فَلَمَّا قَضَيْنَا عَلَيْهِ﴾اى حكمنا عليه بالموت،﴿مَا دَلَّهُمْ﴾ضمير جناتو ته راجع دې ﴿إِلَّا دَابَّةُ الْأَرْضِ﴾ دابة الارض نه مراد وينه دې چې،لرګې دنده نه بالكل ختم كړي،﴿مِنسَأَتَهُ﴾ عصا ته وائي په حبشي ژبه كښې، بعضې وائي چه دا عربي لفظ دې د، (نساء) نه مشتق دې شړلو او ورستو كولو ته وائي. د

عصا په ذريعه سره هم انسان مضر څيزونه لرې کوی نو څکه عصا، ته هم منسأ ونيلې کيږی ﴿فَلَمَّا خَرَّ تَبَيَّنَتِ ٱلْجِنُّ﴾ ﴿تَبَيَّنَت﴾ يافعل متعدی دې﴿ ٱلْجِنُّ﴾ئی فاعل دې﴿أَن لَّوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ﴾ ئي مفعول دې، مطلب دا دې چه جناتو ته خپل حال ښکاره شو او پوهه شول چه مونږ ته علم غيب نشته، دوئ اګر چه پدی پوهه وو ليکن دا ورته تهکماً اوئيلې شول ،اويا (۲)﴿تَبَيَّنَت﴾فعل لازمی دې پمعنی د ظهرت، ﴿ٱلْجِنُّ﴾مبدل منه دې او﴿أَن لَّوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ﴾ ترينه بدل اشتمال دې. بدل مقصود دې ،نو مطلب دا شو چه خلقو ته دا خبره ظاهره شوه چه جنات ته علم غيب نه دې حاصل، ورنه پوره يو کال به ئی په دومره مشقت کښی نه تيره ولو﴿فِي ٱلْعَذَابِ ٱلْمُهِينِ﴾ نه مراد هغه د محنت او مشقت والا کار دې چه د بيت المقدس په تعمير کښی سليمان ﷺ پدوئ مقرر کړې وو چه د لرې لرې نه به ئی کانړی اوګتی راوړې وغيره، (والله اعلم).

| لَقَدْ كَانَ لِسَبَإٍ فِي مَسْكَنِهِمْ ءَايَةٌ ۖ جَنَّتَانِ عَن يَمِينٍ وَشِمَالٍ ۖ |
|---|
| يقينا چې وه،دقوم سبادپاره په ابادئ ددوئ کښې نشانه،دوه قطارونه دباغونووځې طرف،دښار،اوکس طرف ته،دښار، |
| كُلُوا مِن رِّزْقِ رَبِّكُمْ وَٱشْكُرُوا لَهُۥ ۚ بَلْدَةٌ طَيِّبَةٌ وَرَبٌّ |
| (مونږورته حکم وکړو)خورئ رزق درب خپل نه اوشکرکوئ دهغه ،ستاسودښار(آب هوادي)مزيداره ده اوستاسورب |
| غَفُورٌ ۝ فَأَعْرَضُوا فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ سَيْلَ ٱلْعَرِمِ وَبَدَّلْنَٰهُم |
| بخونکې دې پس دوئ اعراض وکړونوراوليږو مونږپه دوئ باندې سيلاب ددېم اوورموکړودوئ ته |
| بِجَنَّتَيْهِمْ جَنَّتَيْنِ ذَوَاتَىْ أُكُلٍ خَمْطٍ وَأَثْلٍ وَشَىْءٍ مِّن سِدْرٍ قَلِيلٍ ۝ |
| په بدل ددوؤباغونوددوئ کښې دوه نورباغونه،چې وؤ دميوؤ بدمزی والا.اودغزونووالا او څه دبيرې ونې چې لګې وې |
| ذَٰلِكَ جَزَيْنَٰهُم بِمَا كَفَرُوا ۖ وَهَلْ نُجَٰزِىٓ إِلَّا ٱلْكَفُورَ ۝ |
| داسزاورکړه مونږدوئ ته په سبب دکفرددوئ،اوسزانه ورکوؤمونږمګرناشکره ته |

﴿لَقَدْ كَانَ لِسَبَإٍ فِي مَسْكَنِهِمْ ءَايَةٌ﴾ داتخويف دنيوی دې ما قبل کښی داؤد ﷺ اوسليمان ﷺ واقعه بيان شوه چه هغوئ شکر ګزار بندګان وو ،دلته د قوم سبا ذکر دې چه د الله ﷻ د نعمتونو ناشکری

کونکی وۀ، په قرآن مجید کښی د اصلاح د منکرینو لپاره دری طریقې ذکر کیږی (۱) تقلیل دنیا (۲) عذاب دنیا (۳) عذاب عقبی، نو دلته د اصلاح دپاره د عذاب دنیا یوه نمونه ذکر کیږی، چه لکه څرنګه قوم سباء د ناشکرئ او د سرکشئ په وجه د تمامو نعمتو نه محروم شول او عذاب ورباندی راغې،نو دغه شان مشرکینو باندی هم د الله ﷻ عذاب راتلې شی۔

سبا د یو قوم نوم دې چه په یمن کښی اباد وۀ، مأرب د دوئ دارالسلطنت وۀ، د دی قوم یو نیکه وۀ چه د هغه اصل نوم عبدشمس بن یشجب وۀ، سباء ئی لقب وۀ، (۴۸۴) کاله ئی حکومت کړې وۀ (روح)نو د ده خاندان او قبیلی ته قوم سباء وائی،الله ﷻ پدی قوم باندی د رزق دروازی فراخې کړې وې،د عیش، ارام، هر قسمه اسباب ورته ورکړې شوی وۀ، زراعت، تجارت کښی ډیر مخکښی وۀ، ډیر وخته پوری په هر قسمه راحت او عیش کښ پراته وۀ، د عیش وعشرت په انهماک کښ په ځائ د شکر او طاعت، په کفر او ګمراهئ کښی مبتلا شول (۱۳) دیارلس بستیانی وی، الله ﷻ ورته (۱۳) پیغمبران لیږلی وۀ او د هغوئ په ذریعه ئی ورته د توحید او د نعمتونو د شکر ادا کولو حکم اوکړو، پغمبرانوورباندی ډیر کوششونه اوکړل لیکن دوئ د خپل کفر نه منع نه شول، الله ﷻ ورباندی سیلاب راوستلو چه په هغی سره د دوئ بستیانی او باغونه او ډیر خلق هلاک شول،

**فائده**:عبدالشمس سباء بن یشجب د خپل مرګ نه مخکښی خپل قوم ته د نبی آخر الزمان محمد ﷺ بشارت ورکړې وۀ او یو څو اشعار ئی وئیلی وۀ چه په هغی کښی ئی د حضور ﷺ د بعثت ذکر او تمنا کړې وه چه کاش څه د هغه په زمانه کښی موجود وې، نو مابه د هغه مدد کولو خپل قوم ته ئی په حضور ﷺ باندی د ایمان راوړلو او د هغه د مدد کولو تلقین کړې وۀ، د هغه یو څو اشعار دا دی:

| | |
|---|---|
| يُـسمىٰ احـمدٌ ياليت انّى | اُعـمر بعد مبعثه بعام |
| فـاعضده واحبوهُ بنصر ى | بكلّ مدججٍ وبكل رام |
| متىٰ يـظهر فكونوا ناصريه | ومن يلقاهُ يبلغه سـلام |

﴿فِى مَسۡكَنِهِمۡ﴾مسکن اسم مکان دې، مراد ورنه د دوئ وطن او آبادیانی دی.چه د هغی نوم مأرب وۀ د یمن دارالسلطنت وۀ، د صنعاء ښارته نیزدی وۀ﴿ءَايَةٌ﴾دلائل د قدرت د الله ﷻ او د توحید ورنه مراددی﴿ءَايَةٌ﴾مبدل منه دې،﴿جَنَّتَانِ عَن يَمِينٍ وَشِمَالٍ﴾ ورنه بدل دې.یا دا خبر د مبتدا

محذوف دي اى هى جنتان ،( روح المعانى ) د﴿ جَنَّتَان ﴾نه مراد دوه باغونه ندي. بلكه دوه سلسلې او قطارونه ورنه مراد دى يو قطار د باغونو د شهر خى طرف ته وؤ او بل كس طرفته وؤ . پدى باغونو كنبى به داسى ميوه دارى ونى وى چه يوى ښځى به په خپل سر خالى ټوكرئ كيخودله نو چه د باغ د يو سر نه به بل سر ته لاړه نو ټوكرئ به ئى پخپله د ميوؤ نه ډكه شوه.

﴿ كُلُواْ مِن رِّزْقِ رَبِّكُمْ ﴾قلنا يا قال لهم نبيهم، ورنه مخكښى مقدر دې ، يعنى انبياؤ ورته اوونيل چه د خپل رب دركړې شوى نعمتونو نه فائده واخلئ او د خپل منعم حقيقى شكر ادا كړئ، بعضى وائې دا قول حقيقى نه دې بلكه بلسان الحال دي﴿بَلْدَةٌ طَيِّبَةٌ وَرَبٌّ غَفُورٌ ﴾دلته مبتدا محذوف دې ، اى بلدكم بلدة طية وربكم رب غفور، يعنى ستاسو دا ښار ډير پاكيزه دې ، اب و هوائى مزيداره ، خوشبو داره ده ،اوبه ئى خوږى دى ، نه پكښى ډيره گرمى شته نه پكښې ډيره سردى ، ماشى مچان ، لړمانان ماران وغيره پدى شهر كښى نه وؤ ، حتى چه يو مسافر به راغې او په جامو كښى به ئى سپږې ، يا كتمل وؤ نو د دى آب و هوا په وجه به مړه شول.

﴿فَأَعْرَضُواْ فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ ﴾دى كښى سبب او تفصيل د عذاب ذكر كيږى ،چه دوئ د ايمان راوړلو نه اعراض اوكړو ، پيغمبرانو تكذيب ئى اوكړو او ورته به ئى وئيل چه الله ﷻ په مونږ باندى هيڅ نعمت ندى كړې ﴿سَيْلَ ٱلْعَرِمِ ﴾جمع د ( عرمة )ده، عرم نه څه مراد دى ؟ پدى كښى مختلف اقوال دى: (١) عرم پمعنى د شديد سره دې ، يعنى سخت سيلاب مو ورباندى راوستلو (٢) د عرم نه مراد وا دى ده چې كومى نه سيلاب راغلې وؤ ، (٣) عرم نه مراد ډيم او بند دې . (۴) بعضى وائي سخت باران ته وائي (٥) بعضى وائى چه د عرم نه مراد هغه منگكان دى چه د ډيم بنيادونه ئى كمزورى كړى وؤ. نو اضافت د سيل ورته د اذنى ملابست پوجه شويدې.

ابن عباس رضي الله عنهما نه منقول دى چه دا ډيم بلقيس جوړ كړې وؤ، ځكه چه قوم سباء به په اوبو جګړى كولې ، دغه شان د ابنار د دوؤ غرونو په مينځ كښى وؤ ، باران پوجه به ورباندى اوبه راتلى ، نو بلقيس د دوؤ غرونو په مينځ يو مضبوط پلن ډيم جوړ كړو ،پدى كښى به د باران اوبه جمع كيدلې ، يو لوئ ډيم ورنه جوړ شو ،هرى قبيلى ته ورنه نهر وتلې وؤ ، خپلى زمكي او باغونه بۀ پرى اوبه كول ،كله چه الله ﷻ د دوئ د تباه كولو اراده وكړه نو په ډيم باندى ئى منگكان مسلط كړل چه هغوئ د ډيم بنيادونه كمزورى كړل نو چه د باران او سيلاب اوبه راغلى نو ډيم مات شولو.

او تول بنار په اوبو کښی ډوب شولو ، دې ډیم نه علاوه قوم سباء نور هم ډیمونه جوړ کړی وو . د
ټولو نه غټ او مشهور دا ډیم وو چه دی ته (سدّ مأرب) وائی .

﴿وَبَدَّلْنٰهُم بِجَنَّتَيْهِمْ جَنَّتَيْنِ﴾ دا سیلاب عذاب الهی وو، اوبه ئی زهریله وی .نود باغونو میوي ئی
ترخی کړې ﴿أُكُلٍ خَمْطٍ﴾ موصوف صفت دی ﴿أُكُلٍ﴾ میوی ته وائی او ﴿خَمْطٍ﴾ ترخي اوبد مزي ته
وائی ﴿وَأَثْلٍ﴾ عطف دې په ﴿أُكُلٍ﴾ ای ذواتي اثل ، دا غز اوني ته وائي . چه نه پکښی میوه وی او نه ئی
سورې وی . ﴿وَشَيْءٍ مِّن سِدْرٍ قَلِيلٍ﴾ دا هم عطف دې په ﴿أُكُلٍ﴾ او ﴿قَلِيلٍ﴾ صفت دې د ﴿سِدْرٍ﴾ .مراد
ورنه کرکنړه ته ،ځنګلی بیره ورته هم وائی ،یا ﴿قَلِيلٍ﴾ صفت دې د ﴿شَيْءٍ﴾ ای وشئ قلیل من سدرٍ .نو
مطلب دا دې چه د دوئ په باغونو کښی د سیلاب نه بعد ترخی میوی او ازغی داری ونی زیاتی
وی ، او بیري پکښی لږې وی (زاد المسیر ،روح)

﴿ذٰلِكَ﴾ بیان دسبب دې یعنی دا تبدیل د ښه باغونو په خرابو باغونو سره بدله وه د ناشکرئ د
دوئ ﴿بِمَا كَفَرُوا﴾ کفر نه مراد یا ناشکری ، کفران نعمت دې ،بعضِ وائی مراد ورنه کفرکول دی په
هغه (۱۳) دیارلس انبیاؤ چه دوئ ته مبعوث شوی وو . ﴿وَهَلْ نُجَازِي إِلَّا الْكَفُورَ﴾ (کفور) دمبالغی
صیغه ده ،یعنی ډیر کفر کونکې ، نو معنی دا شوه چه مونږه صرف ډیر کفر کونکی ته سزا ورکوو .
**سوال** دلته کښی د عذاب حصر په کافرانو پوری اوشو ، حلانکه ډیر ځله په مسلمانانو باندی هم
عذاب راغلې دې ، **جواب** (۱) د سزا نه دلته مراد داسی عمومی عذاب دې لکه په قوم سباء باندی
چه راغلې وو ،داسی عمومی عذاب کافرانو دپاره خاص دې ، مسلمانانو باندی عمومی عذاب نه
راځی (۲) د مؤمن عذاب په حقیقت کښی عذاب نه وی بلکه هغه امتحان او تزکیه وی . او کافر ته
عذاب حقیقتاً وی . (کشاف ، روح).

وَجَعَلْنَا بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ الْقُرَى الَّتِي بَارَكْنَا فِيهَا قُرًى ظَاهِرَةً

اوګرځولی وو مونږه په مینځ د دوئ کښی او په مینځ د هغه کلو کښی، چې برکتونه اچولی دي مونږه هغې کښی ،کلي متصل په لاره کښی ،

وَقَدَّرْنَا فِيهَا السَّيْرَ ۖ سِيرُوا فِيهَا لَيَالِيَ وَأَيَّامًا آمِنِينَ ﴿١٨﴾ فَقَالُوا رَبَّنَا

او اندازه کړیوه مونږ په دیکښی رفتار (مونږ ورته اووې) ځئ په دیکښی د شپې او د ورځې په امن کښی . پس وویل دوئ اې ربه زمونږه!

| بَعِّدْ | بَيْنَ | اَسْفَارِنَا | وَظَلَمُوْٓا | اَنْفُسَهُمْ | فَجَعَلْنٰهُمْ | اَحَادِيْثَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| لري والې راوله په مينځ دسفرنوزمونږكښ اودوئ ظلم اوكړوپه ځانونوخپلونو اوګرځول مونږدوئ دعبرت قصې. | | | | | | |

| وَمَزَّقْنٰهُمْ | كُلَّ | مُمَزَّقٍ | اِنَّ | فِيْ | ذٰلِكَ | لَاٰيٰتٍ | لِّكُلِّ | صَبَّارٍ | شَكُوْرٍ ⑲ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اوجداجداموكړل دوئ په ډيرجداكولوسره،بيشكه پديكښ خامخادلائل دتوحيددي،دهرصبركونكي شكركونكي لپاره. | | | | | | | | | |

﴿وَجَعَلْنَا بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ الْقُرَى الَّتِي بٰرَكْنَا فِيهَا﴾ دی آیاتونو کښې په قوم سباء باندې د یو بل انعام اودَدوئ دَناشکرئ ذکر دې، برکت والا قریو نه مراد د ملک شام کلی دی ، برکت والا ورته ځکه وائی چه پدی کلو کښې اونی ، میوی ، ډیری وی او خلق ئی هم مالداره وؤ ، و ذلک بکثرة اشجارها واثمارها والتوسعة علی اهلها ( روح المعانی )د ارض القرآن مصنف ﷫ لیکلی دی چه د قوم سباء د دولت او مالدارئ بنیاد تجارت وؤ ،یمن د یو جانبه د هندوستان د سواحلو په مقابله کښې واقع دې او بل جانب ئی د افریقی په مقابله کښې واقع دې ، د حبشی او هندوستان نه به سره زر، قیمتی کانړی ، عطرونه او دغه رنګه نور قیمتی خیزونه یمن ته راتلل، یمن نه به قوم سباء په اوښانو باره ول د بحر احمر په وچه وچه به ئی شام مصر ته وړل ، نو چونکه یمن نه شام ته ډیره فاصله وه نو په لاره کښې نیزدی نیزدی ډیر کلی وؤ. نو دهغی دا فائده وه چه مسافر به نه ستړې کیدلو. لوږه تنده به ورته نه لګیدله ، د خوراک څکاک سامان وړلو نه به بی غمه وؤ . ګویا چه پدغه لارو باندی سفر نه وؤ، بلکه یو قسم تفریحی سیر سیاحت وؤ﴿قُرًى ظٰهِرَةً﴾ ظٰهرةً پمعنی دَ متواصلة سره دې ،یعنی یو بل سره متصل کلی وؤ او ظاهرةً ئی ورته پدې اعتبار اووئیل چه یو مسافر به د یو کلی نه را اووتلو نو بل کلی به ورته ښکاره کیدلو . ځکه چه هر کلی به د سړک په کناره اباد وو. بعضی وائی ﴿ظٰهِرَةً﴾ پمعنی د معروفة دې ، یعنی د دې کلو خلق به د دوئ پیژندګلو وؤ . نو د دوئ میلمستیا به ئی کوله ، ﴿وَقَدَّرْنَا فِيهَا السَّيْرَ﴾ یعنی د هر کلی نه بل کلی ته معین او یوشان مقدار وؤ و او دا نیمه ورځ وه، مفسرین ﷭ وائی چه یو کس به سهار د کور نه را اووتلو نو په اسانئ سره به غرمی ته بل کلی ته اورسیدلو ، خوراک ، قیلوله به ئی اوکړه ، چه ماسپخین به روان شو نو د نور غروب کیدلو نه مخکښې به بل کلی ته اورسیدلو ، بعضی وائی د هر کلی په مینځ کښې به یو میل فاصله وه، ﴿سِيرُوا فِيهَا﴾ مخکښې ورنه،(قلنا) مقدر دې، ﴿لَيَالِيَ وَأَيَّامًا﴾ مفعول فیه دې ﴿ءَامِنِينَ﴾حال دی

او مطلب دا دي چه د سفر لارې بې خطره وې ، شپې او ورځې هر وخت به ئې سفر کولې شو . په لارې کښې ډاکې وغيره نه وې . قتادة رحمه الله وائي چه کچرته يو سړی ته به د خپل پلار قاتل هم مخې ته راغې نو هغه ته به ئې په دوران د سفر کښې هيڅ نه وئيل ( روح )

﴿فَقَالُوا رَبَّنَا بَاعِدْ بَيْنَ أَسْفَارِنَا﴾ دې کښې د دوئ د نادانۍ او د ناشکرۍ ذکر دې ،کله چه دوئ پدې عيش عشرت کښې ډيره موده تيره کړه نو سرکشي ئې شروع کړه او پخپله ئې دعا اوکړه چه اې ربه ! زمونږ پدې سفر کښې لرې والې راوله . دا دعا داسې وه لکه بني اسرائيلو چه ويلي وو : لن نصبر على طعام واحد فادع لنا ربک يخرج لنا مما تنبت الارض( بقرة : ۶۱ ) او دلرې والي دعا کولو سره ئې مقصود فخر او تکبر کول وو په فقراء ،چه امير به لرې سفر کولې شي ځان سره به د سفر توښه اوړې شي او غريب به دا کار نه شي کولې، دغه رنګه مقصود ئې دا وو چه څومره د لرې نه څيز راوړې شي نو قيمت ئې هم زيات وي . ظاهر دا ده چې دوئ دا دعا په لسان قال سره کړيده ، امام رازی رحمه الله وائي چه په زبان حال سره وه ، يعنې د دوئ د ناشکرۍ مطلب دا وو چه زمونږ نه دې دا نعمت واخستلې شي﴿وَظَلَمُوا أَنفُسَهُمْ﴾يعنې په تکذيب د رسولانو او د ناشکرۍ په وجه ئې پخپل ځان باندې ظلم اوکړو﴿فَجَعَلْنَاهُمْ أَحَادِيثَ﴾"احاديث" جمع د "احدوثة" ده آفسوس ناکې اوحيرانه کونکې واقعې ته وائي. چه خلق ورنه عبرت واخلي ، يعنې دوئ مو د ورستو خلقو دپاره د عبرت قصې اوګرځولې ﴿وَمَزَّقْنَاهُمْ كُلَّ مُمَزَّقٍ﴾تمزيق نه مشتق دې ، ټکړې ټکړې کولو ته وائي. مطلب دا دې چه د خاورو په شان مو ذرې ذرې کړل چه هوا ګاني ئې الوځوي ،ليکن جمهور مفسرين وائي چه مطلب او مراد د ټکړې ټکړې کولو نه تفريق او منتشر کول دي چه په مختلفو ملکونو کښې تقسيم شول بعض شام ته لاړل ، بعضې مدينې ته لاړل ، بعضې عراق ته ، بعضې عمان ته لاړل . صاحب د ارض القرآن د دوئ د زوال او سقوط تو جيه داسې کړې ده چه يونانيانو ، روميانو په مصر او شام باندې قبضه اوکړه او د افريقې ، هندوستان تجارت ئې د برې لارې په ځائ په بحرې لارې شروع کړو . مال تجارة به ئې د بيړو په ذريعه مصر ته او شام ته وړلو نو پدې وجه د قوم سباء تجارت برباد شو ، والله اعلم ، ﴿إِنَّ فِي ذَٰلِكَ﴾مشار اليه واقعه د قوم سباء ده.يعنې ديکښې په طاعتو باندې صبر کونکو. شهوات اوخواهشاتو نه پرهيز کونکو اوهرحال کښې الله تعالى شکرادا کونکو دپاره ډيرې نښانيانې دي، چې دصبر اوشکرڅه فوائد دی اوناصبرۍ اوناشکرۍ څه نتيجه راوځي.

| وَلَقَدْ صَدَّقَ عَلَيْهِمْ إِبْلِيسُ ظَنَّهُ فَاتَّبَعُوهُ إِلَّا فَرِيقًا |
| --- |
| اويقينا چې رشتيااومندلويه دوئ باندې ابليس ګمان خپل پس اتباع ئې اوکړه دوئ دهغه. سوی ډيوې ډلې |
| مِّنَ الْمُؤْمِنِينَ ۝ وَمَا كَانَ لَهُ عَلَيْهِم مِّن سُلْطَانٍ إِلَّا لِنَعْلَمَ مَن يُؤْمِنُ |
| د مؤمنانو .اونه وؤدابليس دپاره په دوئ باندې څه زورمکرددې پاره چې مونږمعلوم کړوجدا کړوهغه څوک چې ايمان راوړي |
| بِالْآخِرَةِ مِمَّنْ هُوَ مِنْهَا فِي شَكٍّ ۗ وَرَبُّكَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ حَفِيظٌ ۝ |
| په اخرت دهغه چانه چه هغه دآخرت نه په شك کښې دي.اورب ستاپه هرڅيزنګهبان دې. |

﴿وَلَقَدْ صَدَّقَ عَلَيْهِمْ إِبْلِيسُ ظَنَّهُ﴾ ﴿عَلَيْهِمْ﴾ضمير يا قوم سباء ته راجع دې . يا عام انسانانو ته .او مطلب دا دي چه شيطان کوم ګمان کړې وو. چه .ولا ضلنّهم ولأمنينهم.او دغه رنګه . ولا تجد اكثر هم شاكرين ،نو هغه ئې رشتيا اومندلو ،اى وجد ظنّه صادقاً ( روح )،﴿فَاتَّبَعُوهُ إِلَّا فَرِيقًا مِّنَ الْمُؤْمِنِينَ﴾،من بيانيه دي اى الا فريقاً هم المؤمنون لم يتبعوه ( روح المعانى ) او اتباع نه مراد اتباع ده په كفر كښې،مطلب دا دې چې اتباع اوكړه دوئ د ابليس په كفر كښې مګر يو فريق اونكړه چه هغه مؤمنان دی او د تقليل نسبت ورته په اضافت سره كفارو ته شويدې

﴿وَمَا كَانَ لَهُ عَلَيْهِم مِّن سُلْطَانٍ﴾ ﴿لَهُ﴾ضمير مجرورابليس ته راجع دې او﴿سُلْطَانٍ﴾ يابمعنى د تسليط كښې دې،يعنى الله ﷻ چې ابليس په انسانانومسلط كړيدې نو دينه مقصود ازميخت اوامتحان دې چې څوک په آخرت ايمان راوړى اوڅوک پكښې شک كوى.اويا﴿سُلْطَانٍ﴾ بمعنى دتسلط او استيلاء،زبردستى،كښې دې يعنى شيطان په دوئ باندې هيڅ زور زبردستى نه وه نه ورسره مادى قوت وؤاو نه څه دلائل ،صرف وسوسى وې.اودې ته صرف اجازت ورله الله ﷻ ځكه وركړيدې چې پته اولګى چې څوک خواهشاتو پسى ځى اوڅوک په حق قائم پاتى كيږى ﴿لِنَعْلَمَ﴾ بمعنى د ﴿لنميز﴾ دې ،﴿وَرَبُّكَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ حَفِيظٌ﴾ دا د پوره تخويف خلاصه ده.چې ستارب په هر څيز نګران دې،هرڅيز حركاتواو سكناتو پته ورته لګى،څوک ترينه هم پټې دلې نشى.لهذا د شيطان په وسوسو باندې مه خطا كيږئ د الله ﷻ اطاعت كوئ

| |
|---|
| قُلِ ادْعُوا الَّذِينَ زَعَمْتُم مِّن دُونِ اللَّهِ لَا يَمْلِكُونَ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ فِي السَّمَاوَاتِ |
| ــه ووايه رااوبلئ تاسوهغه چه گمان كوئ تاسو چي داآلهه دي ماسواد الله ﷻ نه، ندي مالكان په اندازې دذرې په اسمانوكښ |
| وَلَا فِي الْأَرْضِ وَمَا لَهُمْ فِيهِمَا مِن شِرْكٍ وَمَا لَهُ مِنْهُم مِّن ظَهِيرٍ ﴿٢٢﴾ |
| اونه په زمكه كښ، اونيشته دوئ لره پدي دواړوكښ څه برخه اونيشته الله ﷻ لره ددوئ نه هيڅ څوك مددگار. |
| وَلَا تَنفَعُ الشَّفَاعَةُ عِندَهُ إِلَّا لِمَنْ أَذِنَ لَهُ ۚ حَتَّىٰ إِذَا فُزِّعَ |
| اونفع نه وركوي شفاعت په نزد الله اگركه فرشته وي سوى دهغه كس نه چي اجازت وركړې وي الله هغه لپاره دشفاعت، تردي چه يره لرې كړېشي |
| عَن قُلُوبِهِمْ قَالُوا مَاذَا ۙ قَالَ رَبُّكُمْ ۖ قَالُوا الْحَقَّ ۖ |
| دهغوئ دزړونونه تپوس وكړي لاندې فرشتې دبره فرشتونه څه حكم وكړورب ستاسو، نودوئ ورته اووائي چي حق حكم ئې وكړو |
| وَهُوَ الْعَلِيُّ الْكَبِيرُ ﴿٢٣﴾ |
| اوهغه اوچت دې ذات دده، اولوئ دې صفات دده. |

﴿قُلِ ادْعُوا الَّذِينَ زَعَمْتُم مِّن دُونِ اللَّهِ﴾، دا د څلورمې شبهې جواب دې. دا شبهه د فرشتو متعلق ده دوئ به وئيل چي فرشتې عجيب وغريب تصرف وقدرت والادي، آسمانونو كښ اوسيږي، الله ﷻ ته ډيرې مقربې دي، نو دوئ هم مستحق دعبوديت اوالوهيت دي، اودَدوئ عبادت كولو پوجه به زمونږ سفارش هم الله ﷻ ته كوي ﴿ادْعُوا﴾ كښې امر د توبيخ او تعجيز دپاره دې، يعنې چه دا خپل مزعومه آلهه را اوبلئ چه تاسو نه څه ضرر دفع كړي يا درته څه نفع دركړي . نو كه تاسو پخپله دعوه كښې رشتينې ئې نو سوال به مو قبول كړي .( روح ). ﴿زَعَمْتُم﴾ اى زعمتوهم آلهة ( روح ) . ( هم ) مفعول اول دې . تخفيفاً حذف شوي دې ( الهةً ) مفعول ثانى دې . حذف شوي دې دَوجې دَدينه چه صفت ئې يعنې ﴿مِّن دُونِ اللَّهِ﴾ سد مسد گرځيدلې دې

الله ﷻ ورله څلور جوابونه وركوى على سبيل الترقى ﴿لَا يَمْلِكُونَ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ﴾، دا اول جواب دې . چه فرشتې او دغه شان ستاسو نور معبودان د ذرې برابر هم د څه څيز مالكان نه دى ، نه د خير نه د شر ، نه د نفع نه د نقصان ، نو څنگه دوئ آلهه دى ﴿فِي السَّمَاوَاتِ وَلَا فِي الْأَرْضِ﴾ دى ذكر لپاره

د تعميم دي،ټول موجودات ورنه مراد دی ،یعنی دوئ په ټولو موجوداتو کښې د هیڅ څیز مالکان نه دی ،یا د اسمان او زمکښې ذکر ځکه اوشو چه دوئ بعضې آله سماوی وؤ لکه فرشتې ، کواکب ، او بعضې ارضی وؤ . لکه اصنام.یا پدې وجه چه اسباب د خیر او شر یاسماوی وی یا ارضی . نو د دواړو نه نفی اوشوه چه د دوئ قدرت او ملکیت په دواړو نشته دې نو څنګه معبودان دی . ﴿وَمَا لَهُمْ فِيهِمَا مِن شِرْكٍ﴾،دویم جواب دې على سبيل الترقى،یعنې ملکیت خوې خود نشته چې څه کښې شراکت داری هم نشته دَالله ﷻ سره.په تصرف کښې﴿وَمَا لَهُۥ مِنْهُم مِّن ظَهِيرٍ﴾ ای معین ، دریم جواب دې على سبيل الترقى يعنى ملكيت اور شراكت خوڅه کوې،چې الله ﷻ سره څه معامله انجام کولو کښې مددګاری هم ندی . بلکه الله ﷻ تن تنها بغير د بل چا د تعاون نه ټول کارونه کوی. ﴿لَهُ﴾ضمیر راجع دې الله ﷻ ته ﴿منهم﴾ ضمیر مصداق معبودان باطله دی.

﴿وَلَا تَنفَعُ ٱلشَّفَٰعَةُ﴾ څلورم جواب دی على سبيل الترقى چې دَ دې هرڅه نه قطع نظر ،دوئ دَ الله ﷻ په نیز دومره صاحب حیثیت هم ندی چې الله ﷻ دَ اجازت او مرضئ نه بغير دَ چاسفارش اوکړی یعنی تاسو داګمان مه کوئ چې فرشتې به زمونږ سفارش اوکړی ځکه چې اول خودوئ سفارش کښې خود مختاري ندی.ترڅو پورې چې ورته الله ﷻ طرف نه اجازت نوی میلاؤشوې، سفارش نشی کولې،اودویم داچې سفارش به دهغه چاکوی چې دَدې مستحق ‌ غووی،اوکفار اومشرکین ددې مستحق ندی. ﴿وَلَا تَنفَعُ﴾ پمعنی دَ "لاتوجد" سره دې ،ای لا توجدُ رأساً ( روح ) یعنی بالکل شفاعت به نشی کولې، لیکن چونکه مقصود د شفاعت نه نفع وی نو ځکه دلته نفي د نفع اوشوه .﴿إِلَّا لِمَنْ أَذِنَ لَهُۥ﴾ دا استثنا مفرغه ده ، مستثنیٰ منه ئې حذف شویده تقدیر دا رنګه دې : ولا تنفع الشفاعة لاحد الا لمن اذن له ( البحرالمحيط ) د "لاحدٍ" او د "مَن"نه مراد یا مشفوع له دې ، نو معنی به دا شی چه شفاعت هیڅ چاته هم نفع نه ورکوی ماسویٰ د هغه کس نه چه هغه په باره کښې د شفاعت اجازت میلاؤ شوې وی،او مراد ورنه مشفوع له مومن دې لقوله تعالى : ( الا مَن شَهد بالحقّ ))(زخرف) یا د "لاحدٍ"او د "مَن" نه مراد شفیع دی،ای الّا لشافعٍ اذن له ان يشفع(بحر)یعنی شفاعت به صرف هغه څوک کوی چه اجازت ورته میلاؤ شوې وی مراد ورنه انبیاء ،ملائک ،شهداء وغیره دی او ظاهره ده چه

د تعمیم دې،ټول موجودات ورنه مراد دی ،یعنی دوئ په ټولو موجوداتو کښې د هیڅ ځیز مالکان نه دی ،یا د اسمان او زمکښې ذکر ځکه اوشو چه دوئ بعضې آله سماوی وؤ لکه فرشتې ، کواکب . او بعضې ارضی وؤ ، لکه اصنام یا پدې وجه چه اسباب د خیر او شر یاسماوی وی یا ارضی . نو د دواړو نه نفی اوشوه چه د دوئ قدرت او ملکیت په دواړو نشته دې نو ځنګه معبودان دی ﴿وَمَا لَهُمْ فِيهِمَا مِن شِرْكٍ﴾ ،دویم جواب دې علی سبیل الترقی،یعنی ملکیت خوې خود نشته چې څه کښې شراکت داری هم نشته دَالله ﷻ سره په تصرف کښې﴿وَمَا لَهُۥ مِنْهُم مِّن ظَهِيرٍ﴾ ای معین ، دریم جواب دې علی سبیل الترقی یعنی ملکیت اور شراکت خوڅه کوې،چې الله ﷻ سره څه معامله انجام کولو کښې مددګاری هم ندی . بلکه الله ﷻ تن تنها بغیر د بل چا د تعاون نه ټول کارونه کوی.﴿له﴾ضمیر راجع دې الله ﷻ ته ﴿منهم﴾ ضمیر مصداق معبودان باطله دی.

﴿وَلَا تَنفَعُ ٱلشَّفَٰعَةُ﴾ څلورم جواب دی علی سبیل الترقی چې دَ دې هرڅه نه قطع نظر ،دوئ دَ الله ﷻ په نیز دومره صاحب حیثیت هم ندی چې الله ﷻ دَ اجازت او مرضئ نه بغیر دَ چاسفارش اوکړی یعنی تاسوداګمان مه کوئ چې فرشتې به زمونږ سفارش اوکړی ځکه چې اول خودوئ سفارش کښې خود مختاري ندی.ترڅو پورې چې ورته الله ﷻ طرف نه اجازت نوی میلاؤشوې، سفارش نشی کولې،اودویم داچې سفارش به دهغه چاکوی چې دَدې مستحق ګڼوی،اوکفار اومشرکین ددې مستحق ندی ﴿وَلَا تَنفَعُ﴾ پمعنی دَ "لاتوجد" سره دې ،ای لا توجدُ رأساً ( روح ) یعنی بالکل شفاعت به نشی کولې، لیکن چونکه مقصود د شفاعت نه نفع وی نو ځکه دلته نفي د نفع اوشوه ﴿إِلَّا لِمَنْ أَذِنَ لَهُۥ﴾ دا استثنا مفرغه ده ، مستثنیٰ منه ئی حذف شویده تقدیر دا رنګه دې : ولا تنفع الشفاعة لاحد الا لمن اذن له ( البحرالمحیط ) د "لاحدٍ" او د "مَن"نه مراد یا مشفوع له دې ، نو معنی به دا شی چه شفاعت هیڅ چاته هم نفع نه ورکوی ماسویٰ د هغه کس نه چه هغه په باره کښې د شفاعت اجازت میلاؤ شوې وی،او مراد ورنه مشفوع له مومن دې لقوله تعالی : ( الا مَن شَهد بالحق »(زخرف) یا د"لاحدٍ"او د "مَن" نه مراد شفیع دی،ای الاّ لشافعٍ اذن له ان یشفع(بحر)یعنی شفاعت به صرف هغه څوک کوی چه اجازت ورته میلاؤ شوې وی مراد ورنه انبیاء ،ملائک ،شهداء وغیره دی او ظاهره ده چه

دوئ ته هم اجازت د کفارو باره کښې نه دې میلاؤ شوې . بلکه مؤمنانو باره کښې به شفاعت کوی لقوله تعالیٰ: ولا یشفعون الا لمن ارتضیٰ ( انبیاء : ۲۸ ).

﴿ حَتَّىٰٓ إِذَا فُزِّعَ عَن قُلُوبِهِمْ ﴾ دیکښې دَ نفی شفاعت قهری مزید وضاحت دې. چې فرشتې به څنګه دَ الله ﷻ اجازت اومرضئ نه بغیر دَچا سفارش اوکړی ،هغوئ خوحال دادې چې هغوئ په وخت د نزول د حکم الهی کښې یریدونکی وی ،دهیبت پوجه ئې زړونه رپیږی، خبرې نشی کولې بیا چه کله خوف لږ شی نو بیا د یو بل نه تپوس کوی چه الله ﷻ څه حکم نازل کړیدې ،

﴿فُزِّعَ﴾ باب تفعیل دې . خاصیت ئې دلته سلب مأخذ دې . ای ازیل الفزع چه خوف لرې کړې شی د هغوئ د زړونو نه ﴿عَن قُلُوبِهِمْ﴾ ضمیرراجع دې فرشتو ته فرشتوذکر دلته اګرچه لفظا نشته خو حکما شته دې. څکه چې دا آیت ملائکو په باره کښې دَمشرکینو اعتقاد اووهم تردید کښې نازل شوې دې د ابو هریره ﷺ نه روایت دې چه : اذا قضی الله تعالی الامر فی السّماء ضربت الملائکة اجنحتها خضعا لقوله تعالی کانه سلسلة علی صفوانٍ فاذا فزع عن قلوبهم قالوا ما ذا قال ربکم قالوا الذی قال الحق وهو العلیّ الکبیر. یعنی کله چه الله ﷻ یو امر فیصله په اسمانونو کښې کوی ‹حکم نازلوی› نوفرشتې د عاجزئ ‹او خوف › په وجه خپلې وزری وهی د الله ﷻ کلام ته او کلام د الله ﷻ داسې وی لکه یو زنځیر چه په یو غټ کاڼړی ‹ ګټ › باندې غوړه ولې کیږی او کله چه د فرشتو د زړونو نه رُعب لرې کړیشی نو بیا یو بل ته وائې الله ﷻ څه او فرمائیل :﴿قَالُوا۟ ٱلْحَقَّ﴾ضمیر راجع دې پورتنی فرشتوته

بعض مفسرینو دَ﴿ قُلُوبِهِمْ ﴾ ضمیر مرجع من اذن له ګرځولې دې نودې تقدیر باندې بیادې جملې کښې دَشفعا او مشفعینو لپاره دَ شفاعت اذن کیفیت بیانیږی،یعنې دوئ به الله ﷻ په دربار کښې انتهائی خوف وفزع حالت کښې حاضروی،دَهیبت نه به مدهوشه وی،په هیڅ به نه پوهیږې خوکله چې اجازت میلاؤ شې نو بیابه یې دَ زړه خوف کم شی او یوبل نه به تپوس اوکړی چې الله ﷻ څه اوفرمائیل

فائده: ‹حتی› دَغایت لپاره راځی ،اودا تقاضه کوی دَ ماقبل مغیا ،چې هغې سره دحتی مابعد جملې ارتباط وی،اودلته حتی ماقبل اومابعد جملو کښې هیڅ ارتباط نشته،څکه چې ‹اذا فزغ عن قلوبهم› غایت نشی ګرځیدې لپاره دَ ‹لا تنفع الشفاعة›، دې وجهې نه مفسرینو ‹حتی› نه مخکښې عبارت مقدر منلې دې، اول تفسیر مطابق به تقدیر داسې وی:لا تنفع الشفاعة الالمن اذن له ولوکان من

الملائكة،فانهم يخافون الله ويفزعون اذا اوحى اليهم حتى اذا فزع)اودويم تفسير مطابق به تقدير داسي وي(فانهم واقفون بين يديه خاشعين ساكتين،لايقدر احد منهم ان يتكلم حتى إذا فزع..

| |
|---|
| قُلْ مَنْ يَّرْزُقُكُمْ مِّنَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ قُلِ اللّٰهُ ۙ وَاِنَّآ اَوْ اِيَّاكُمْ |
| ته اوايه څوك رزق دركوي تاسوته دآسمانونواوزمكې نه،ته اوايه چې الله ﷻ دركوي.اوبيشكه مونږياتاسوكښې يو فرقه |
| لَعَلٰى هُدًى اَوْ فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ﴿٢٤﴾ قُلْ لَّا تُسْــَٔلُوْنَ عَمَّآ اَجْرَمْنَا |
| ضرورپه هدايت ده ياپه گمراهئ ښكاره كښې ده، ته ا وايه ستاسونه به سوال نشي كيدې دهغې چې مونږكوم جرم وكړو |
| وَلَا نُسْــَٔلُ عَمَّا تَعْمَلُوْنَ ﴿٢٥﴾ قُلْ يَجْمَعُ بَيْنَنَا رَبُّنَا ثُمَّ |
| اوزمونږنه به سوال نشي كيدې دهغه عملونوچه تاسويې كوئ ته اوايه جمع به كړي مونږ خپل مابين كښې رب زمونږبيا به |
| يَفْتَحُ بَيْنَنَا بِالْحَقِّ ۭ وَهُوَ الْفَتَّاحُ الْعَلِيْمُ ﴿٢٦﴾ قُلْ اَرُوْنِيَ الَّذِيْنَ |
| فيصله اوكړي زمونږپه مينځ كښې په حقه سره،اوهغه فيصله كونكې عالم دې ته ووايه اوښايئ ماته هغه |
| اَلْحَقْتُمْ بِهٖ شُرَكَاۗءَ كَلَّا ۭ بَلْ هُوَ اللّٰهُ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿٢٧﴾ |
| چې تاسوپيوست كړيدي گرځولي دې دالله ﷻ سره شريكان،هرگزشريك ندى،بلكه شان دادې چه صرف الله ﷻ عزيزحكيم دې. |

﴿قُلْ مَنْ يَرْزُقُكُم مِّنَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ﴾ دا دويم دليل عقلى دې په توحيد على سبيل الاعتراف من الخصم،چه دوئ هم دا اعتراف كوى چه مونږ ته رزق راكونكې صرف الله ﷻ دې. او ددوئ آلهه د ذرى برابر هم دَ څه څيز مالكان نه دى﴿قُلِ اللّٰهُ﴾يعنى كه دوئ انكار كوى دَيرى د الزام نه،ته ورته جواب كړه چه رازق صرف الله ﷻ دې،چې تاسو په خپله دَدې اعتراف كوئ﴿وَاِنَّآ اَوْ اِيَّاكُمْ﴾دا اوله طريقه د تبليغ ده يعنى كله چې ثابته شوه داخبره چې رازق هم يو الله ﷻ دې نو اوس تاسو اوايئ چې څوك په هدايت اوڅوك گمراه دى.مونږ ياتاسو؟مونږ صرف دَ مالك اورازق حقيقى عبادت كوو اوتاسو ورسره شريكان گرځوئ .﴿لَعَلٰى هُدًى اَوْ فِى ضَلٰلٍ﴾كلام مبنى نه دې په شك باندى . څكه چه حضور ﷺ ته د خپل ځان هادى كيدو باندى هيڅ شك نه وؤ.بلكه دا د(جادلهم بالتى هى احسن ) يوه نمونه ده.څكه چه مخاطب ته كافر او گمراه ، مشرك اونيلې شى نو دا طريقه په هغه

کښې جوش او اشتغال پیدا کوي ، نو په ناحقه مقابلې ته تیاریږي . او چه دا ورته اونیلې شي چه په مونږ کښې یو کس په غلطئ دې نو هغه حق ته تیاریږي ، دیته اهل بیان استدراج وائي لکه په شعر د حسان بن ثابت ﷛ کښې دي :

اتهجوه ولست بکفء فشرکما لخیرکما الفداء

﴿قُلْ لَّا تُسْـَٔلُوْنَ عَمَّاۤ اَجْرَمْنَا﴾ دا دویمه طریقه د تبلیغ ده یعنی حق او حقیقت اتباع پکار ده ساتي شوي غلطیانې اوخامیانې ،نوهغه په چاکښې نشته، که زمونږ نه څه جرم اوشي نوزمونږ نه به دهغې باره کښې تپوس کیږي اوستاسو نه څه ګناه اوشي نوستاسو نه به دهغې باره کښې تپوس کولې کیږي.دا انفرادي غلطیانې دحق اتباع نه مانع نه دي ګرځول پکار.دلته خپلو غلطیانو اوخامیانو طرف ته نسبت د جرم اوشو اودمخاطب غلطیانو اوخامیانو ته نسبت دمطلق عمل اوشو .دیکښې تنبیه ده نرمې لهجې اختیارولو اوسبق ورکول دي داعي ته ددې خبرې چې خپله ورکې غلطي دې هم لوئ جرم ګڼړي اوکه دبل نه لوئ جرم هم اوشي هغه معمولي ګڼړل پکار دي نو دي سره هم د حق تالاش کولو ته انسان اماده کیږي،

﴿قُلْ یَجْمَعُ بَیْنَنَا﴾ دا دریمه طریقه د تبلیغ ده ،یعنی دومره دلائلو اود تبلیغ نه باوجود که درسره خبره اونه منې نوطیش کښې مه راځئ اوبدرد په خائ ورته صرف دومره اووایئ چه د قیامت په ورځ الله ﷻ زمونږاوستاسو په مینځ کښې د حق فیصله کوي چه څوک په حق دي او څوک په باطله،حق والا به جنت ته داخل کړي او باطل به جهنم ته﴿وَهُوَ الْفَتَّاحُ الْعَلِیْمُ﴾ دا د ماقبل جملې تتمه ده "الفتاح" صیغه د مبالغې ده یعنی ډیرې فیصلې کونکې ذات، دیکښې اشاره ده قوت د فیصلې ته."العلیم" ډیر علم والا هر څه باندې عالم او دیکښې اشاره ده ده انصاف اوحکمت باندې مبنې فیصلې ته،یعنی الله ﷻ هغه ذات دې چې قوت دفیصلې هم لرې او دهغه فیصله انصاف او حکمت باندې مبنی وي ﴿قُلْ اَرُوْنِیَ الَّذِیْنَ اَلْحَقْتُمْ بِهٖ شُرَكَآءَ﴾،دا ثمره ده د دلائلو سابقو،یعنی ما قبل دلائلو نه معلومه شوه چه الله ﷻ تن تنهادآسمانونواوزمکې مالک دې دآسمانونو زمکې نه صرف هغه رزق ورکوي،هغه خالق دې متصرف اوخود مختاردې،نو اې پیغمبره!ته ورته اووایه چې کوم شریکان چې تاسو الله ﷻ سره ګرځولي دي ماته خواوخائ چې کوم خائي اوکوم شی کښې ورسره شریک دي؟اوڅه دلیل دې پدې؟ ،رؤیت نه مراد یا رؤیت علمي دې،چې همزه باب افعال سره درې مفعولو ته متعدي کیږي،اول مفعول ورله "یا"ضمیر متکلم دې،دویم ورله "الذین" اسم

موصول دي اور دريم ورله شركاء دي،او يارؤيت نه مراد رؤيت بصري دې.اودوه مفعولو ته متعدي كيږي،اول مفعول ورله"يا" ضمير متكلم دي،اودويم ورله"الذين" اسم موصول دې.او شركاء حال دې، دَ "الذين"نه، "اراءة"مطالبه كول،باوجود دَدينه چې هغه معبودان بالكل ښكاره وؤ هرچاته ښكاريدل،ديكښې دَ هغوئ خطاو غلطي اظهار مقصود دي،اوأَلْحَقْتُم فعل راوړلو كښې اشاره ده ديته چې دا حقيقتاً معبودان نه دي بلكه دوئ هځې الله ﷻ سره ملحق كړي دي.

﴿كَلَّا﴾يعني چرته هم نشي كيدې چې دوئ څوك يوداسې ذات پيش كړي چې هغه الله ﷻ شريك وي اويا پدې باندې څه دليل پيش كړي.﴿بَلْ هُوَ ٱللَّهُ ٱلْعَزِيزُ ٱلْحَكِيمُ﴾يعني الوهيت مستحق هغه ذات كيدې شي چې په هر چابروئ،چاته يې څه حاجت اوضرورت نوي،اوهركارېې محكم اودَحِكمت نه ډک وي،نوپه دغه اوصافو سره موصوف ذات صرف يواځې الله ﷻ دې چه غالب دې په هر څه او حكمتونو والا دې. ﴿هو﴾ضميرشان دې ،اولفظ﴿ٱللَّهُ﴾مبتدا دې﴿ٱلْعَزِيزُ ٱلْحَكِيمُ﴾ئې خبر دې.

| وَمَآ أَرْسَلْنَٰكَ إِلَّا كَآفَّةً لِّلنَّاسِ بَشِيرًا وَنَذِيرًا وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ ٱلنَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٢٨﴾ |
|---|
| اونه ئي ليږلې مونږته مګرټولوخلقولپاره زيري وركونكي اويرونكي ليكن زيات دَخلقونه نه پوهيږي. |
| وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هَٰذَا ٱلْوَعْدُ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ ﴿٢٩﴾ قُل لَّكُم مِّيعَادُ يَوْمٍ |
| اووائي دوئ چې كله به وي داوعده دقيامت،كچرې يئ تاسورښتني.اوايه ته ستاسودپاره تاريخ دَيوې ورځې مقررې دې. |
| لَّا تَسْتَـْٔخِرُونَ عَنْهُ سَاعَةً وَلَا تَسْتَقْدِمُونَ ﴿٣٠﴾ |
| چې نه به شئ ورستوكيدې دَهغې نه يوساعت اونه به مخكښې كيدې شئ. |

﴿وَمَآ أَرْسَلْنَٰكَ إِلَّا كَآفَّةً لِّلنَّاسِ﴾ ،اثبات توحيد نه پس اوس دَرسالت ذكردې،اودَمشركينو دَ سوال جواب هم دې،چې دوئ به نبي كريم ﷺ ته وئيل كچرته نه په رښتيادَ الله ﷻ پيغمبر يې نو زمونږ فرمائشي معجزې مونږ ته اوښايه.الله ﷻ جواب وركوي چې اې پيغمبره،ته مونږ ټول عالم لپاره پيغمبر جوړكړې ليږلې ئې،اوته دَ الله ﷻ واقعي پيغمبريې،پاتې شول دَ دوئ فرمائشونه اومطالبې پوره كول نو دادَمنصب رسالت وظيفه نه ده.بلكه منصب رسالت وظيفه بشارت اوانذار

د ه. چې فرمانبرداروته به دَ جنت بشارت اونافرمانه به دَالله ﷻ عذاب نه ېره وی داخو ډېره واضحه خبره ده خوبیا هم دوئ پدې نه پوهیږی. ﴿كَآفَّةً﴾ دکف.نه مشتق دې منع کولو په معنی کښې راځی.اودَعموم لپاره استعمالیږی.ځکه چې دې سره هم منع رازی دَافرادودَخروج نه راجحه داده چه﴿كَآفَّةً﴾ حال دې د ﴿لِّلنَّاسِ﴾نه.حال په ذوالحال مجرور باندې مقدم شوې دې د وجې د اهتمام د عموم بعثت نه . اي الا للناس كافةً يعني هر ملک. هر قوم. هرې طبقې ته . هرې زمانې خلقو ته مبعوث ئې ﴿بَشِيرًا﴾زیرې ورکونکې د جنت ئې هغه چاته چه ستا اطاعت اوکړی ﴿وَنَذِيرًا﴾ یره ونکې ئې د عذاب نه هغه چالره چه ستا نافرمانی اوکړی . دا دواړه صفتونه حال جوړیږی دَضمیر مفعول نه.

﴿وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هَٰذَا الْوَعْدُ﴾ دا شکوه ده چه کله دې مشرکینو ته اوئیلې شې چې قیامت ورځ شته.هغې کښې به الله ﷻ فیصله اوکړی چې څوک په حق اوڅوک په باطله ولاړ وو.نودوئ ورسورې استهزا کوی اووائی چه هغه وخت موعود به کله وی چه د حق او باطل فیصله پکښې اوشی.

﴿قُل لَّكُم مِّيعَادُ يَوْمٍ﴾دا جواب شکوه ده،چونکه سوال د دوئ بطور استهزاء وو نو جواب ئې هم بطور تهدید اوشو چه د ورځې تاریخ په علم الهی کښې معین دې چه راشی نو پته به درته اولګی . په خپل وخت به راځی د چا په طلب او طنز سره نه راځی.

| |
|---|
| وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لَن نُّؤْمِنَ بِهَٰذَا الْقُرْآنِ وَلَا بِالَّذِي بَيْنَ يَدَيْهِ |
| اووائی کافران هرګزمونږایمان نه راوړوپدې قرآن اونه په هغه کتابونوچې دده نه مخکښې دي. |
| وَلَوْ تَرَىٰ إِذِ الظَّالِمُونَ مَوْقُوفُونَ عِندَ رَبِّهِمْ يَرْجِعُ بَعْضُهُمْ إِلَىٰ بَعْضٍ |
| اوکحرې ته اوبنې،ای پیغمبره،چې کله ظالمان ولاړوي په حضور د رب خپل کښې.چې ګرځوي به بعضې دَدوئ نه بعضو ته |
| الْقَوْلَ يَقُولُ الَّذِينَ اسْتُضْعِفُوا لِلَّذِينَ اسْتَكْبَرُوا لَوْلَا أَنتُمْ |
| خبره وائی به هغه کسان چې ضعیفان ؤوخپلومشرانوته چې کچرته تاسو نه وي |

| |
|---|
| لَكُنَّا مُؤْمِنِينَ ۝ قَالَ الَّذِينَ اسْتَكْبَرُوا لِلَّذِينَ اسْتُضْعِفُوا أَنَحْنُ صَدَدْنَاكُمْ عَنِ الْهُدَىٰ |
| نوو به مونږ مؤمنان .او به وائي مشران لیډران خپلو کشرانو اتباعو ته .آیا مونږ منع کړي وئ تاسو د هدایت نه. |
| بَعْدَ إِذْ جَاءَكُمْ بَلْ كُنْتُمْ مُجْرِمِينَ ۝ وَقَالَ الَّذِينَ اسْتُضْعِفُوا لِلَّذِينَ اسْتَكْبَرُوا |
| ورستو ددې نه چې راغلې وو تاسو ته .بلکه وئ تاسو پخپله مجرمان او او به وائي ضعيفان کشران اتباع خپلو مشرانو ته |
| بَلْ مَكْرُ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ إِذْ تَأْمُرُونَنَا أَنْ نَكْفُرَ |
| بلکه منع کړي وو مونږ ستاسو چل ول په شپې اوورځې کښې کله چې امر کولو تاسو مونږ ته ددې چې مونږ کفر کړو |
| بِاللَّهِ وَنَجْعَلَ لَهُ أَنْدَادًا وَأَسَرُّوا النَّدَامَةَ لَمَّا رَأَوُا الْعَذَابَ |
| په الله ﷻ باندې او او ګرځو مونږ هغه لره شریکان. او پټه به کړي دوئ پښیمانتیا هرکله چې ویني دوئ عذاب. |
| وَجَعَلْنَا الْأَغْلَالَ فِي أَعْنَاقِ الَّذِينَ كَفَرُوا ۚ هَلْ يُجْزَوْنَ إِلَّا مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ۝ |
| او وا به چوو مونږ زنځیرونه په ستونو د کافرانو کښې .نه شي ورکولې دوئ ته جزا مګر د هغه عملونو چې دوئ به کول |

﴿وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لَن نُّؤْمِنَ بِهَٰذَا الْقُرْآنِ﴾ دا شکوه مع تخویف اخروی دې، روایت دې چه کفار مکه ؤ د اهل کتابو نه تپوس اوکړو په باره د حضور ﷺ کښې .هغوئ ورته خبرور کړو چه د دې پیغمبر صفات زمونږ په کتابونو کښې موجود دي . نو پدې خبره کفار غصه شول .او اوئ وئیل . مونږ پدې قرآن هرګز ایمان نه راوړو او نه د دینه مخکښې کتابونو باندې﴿بِالَّذِي بَيْنَ يَدَيْهِ﴾ نه مراد مخکښې کتابونه دی.﴿وَلَوْ تَرَىٰ إِذِ الظَّالِمُونَ﴾ دا تخویف اخروی دې. پدی کښې د کفارو او د مشرکینو انجام او په میدان حشر کښې د خپلو الهؤ سره د بحث مباحثی ذکر دې .چه په محشر کښې به دوئ په یو بل بارغورخوی.مفعول د﴿تَرَىٰ﴾ محذوف دې، ای ولو تری حال الظالمین. د ظالمانو نه مرادمشرکان.کافران دی.جواب د لَو مقدر دې ای لرأیت امراً فظیعاً ﴿يَقُولُ الَّذِينَ اسْتُضْعِفُوا﴾،چه مونږ پخپله څله مجرمان یو ؟بلکه ستاسو اقتدار او غلبه وه، کروفر وؤ .منصوبې خوجوړولې او مونږ خوبه استعمالولو .اوپه تنخواګانو اوپه خرچومودهوکه کښې مبتلا کړي وؤ د ضعیفا نو نه مراد اتباع او د ګمراهو پیرانو مریدان دی،چه خپلو متبوعینو او پیرانو ته به وائ .چه تاسو مونږ د

ایمان راوړونه منع کړی وؤ ﴿لِلَّذِينَ ٱسْتَكْبَرُوٓا﴾ مسرانو نه مراد گمراه مسبوعين دی ﴿لَوْلَآ أَنتُمْ﴾ انتم مبتدا دې خبر ئې محذوف دې چې صددتمونا عن الهدى يعنى كه تاسو مونږ د ايمان نه وې منع کړې نو مونږ خامخا ایمان راوړنکی وؤ.

﴿وَقَالَ ٱلَّذِينَ ٱسْتَكْبَرُوا﴾ متبوعين به ورنه انکار وکړی چه مونږ سره کوم طاقت وؤ چه تاسو مو د ایمان راوړو نه منع کړی وئ؟ کله چه تاسو ته حقه خبره ورسيده او پوهه شوئ بيا نو ولې مو ایمان نه راوړو . جرم کونکی پخپله وئ اوس ئې په مونږ راغورځوئ ﴿أَنَحْنُ صَدَدْنَٰكُمْ﴾ استفهام انکاری دې

﴿وَقَالَ ٱلَّذِينَ ٱسْتُضْعِفُوا﴾ رد دې په انکار د متبوعينو .چې مونږ پخپله ولې مجرمان يو؟بکه تاسو اقتدار اوغلبه وه .منصوبې به موجوړه ولې.مونږ به مو استعمالولو .په تنخواه گانو اوخرچو مو په دهوکه کښ مبتلا کړی وؤ . ﴿مَكْرُ ٱلَّيْلِ وَٱلنَّهَارِ﴾. ای بل صدنا مکرکم بنا فی اللیل والنهار . (روح) د ﴿مَكْر﴾ مضاف اليه حذف ده چه (كم)دې،او ظرف چه ﴿ٱلَّيْلِ وَٱلنَّهَارِ﴾ دې د هغې قائمقام گرځولې شويدې.او ﴿مَكْرُ﴾ فاعل دې د"صدنا" فعل محذوف يا مبتدا دې خبرئې محذوف دې يا بالعكس.اى مكر الليل والنهار سبب كفرنا ، يا سبب كفرنا مكر الليل والنهار (روح)﴿إِذْ تَأْمُرُونَنَآ﴾ بدل دې د ﴿ٱلَّيْلِ وَٱلنَّهَارِ﴾ نه ﴿وَأَسَرُّوا ٱلنَّدَامَةَ﴾ "اسرار" درې معنى دی : اظهار د پښيمانتيا .اخفاء د پښيمانتيا . او په زړه کښ پښيمانه کيدل . دلته درې واړه معنې صحيح دی . که اوله معنى مراد شی نو معنى به داشی چه کله دوئ عذاب او وينی نو خپل ندامت به ښکاره کړی، كقوله تعالى: ربّنا ابصرنا وسمعنا فارجعنا نعمل صالحاً. او که دويمه معنى شی نو مطلب به دا شی چه هر يو به د بل نه خپل خپل ندامت پټ کړی د وجې د پيغور او شرم نه .او که دريمه معنى مراد شی نو مطلب دا دې چه هر يو به په خپل زړه کښ پخپلو کارونو او په ترک د ايمان باندې پښيمانه وی .افسوس به کوی متبوعين به په ضلال اضلال دواړو باندې او اتباع به د ضلال په وجه،دادريمه معنى دلته زياته مناسبه ده ﴿وَجَعَلْنَا ٱلْأَغْلَٰلَ﴾ يعنى د قيامت په ورځ په مونږ د کافرانو په ستونو کښ زنځيرونه واچوؤ .جهنم ته بې راكاگو ﴿هَلْ يُجْزَوْنَ إِلَّا مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ﴾ يعنى دواړه فرقوته به د خپلو خپلو عملونو سزا ورکولې

کیږی . متبوعینو ته د خپل جرم په وجه . اتباعو ته د خپل جرم په وجه . کقوله تعالیٰ ولکل ضعف ولکن لا تعلمون (اعراف : ۳۸).

وَمَآ اَرْسَلْنَا فِیْ قَرْيَةٍ مِّنْ نَّذِيْرٍ اِلَّا قَالَ مُتْرَفُوْهَآ ۙ اِنَّا بِمَآ اُرْسِلْتُمْ بِهٖ

اونه وولیږلي مونږ په یو کلي کښې هیڅ پیغمبرمګرویل به مشرانودهغې.چې بیشکه مونږه په هغې چې تاسورالیږلې شوي یئ

كٰفِرُوْنَ ﴿۳۴﴾ وَقَالُوْا نَحْنُ اَكْثَرُ اَمْوَالًا وَّاَوْلَادًا ۙ وَّمَا نَحْنُ بِمُعَذَّبِيْنَ ﴿۳۵﴾

کفرکونکی یو.اواویل دوئ چې مونږزیات یوپه مالونواواولادونوکښې.اومونږته به عذاب نشي راکولی.

﴿وَمَآ أَرْسَلْنَا فِى قَرْيَةٍ مِّن نَّذِيرٍ﴾ دا تخویف دنیوی دې .او تسلی ده حضور ﷺ ته .چه د مکی د رؤساؤ او غتانو د اعراض او سرکشئ پوجه مغموم او مه خفه کیږه په هره زمانه کښې د انبیاؤ الله او د حق مخالفت هم دا سې بدبختو مالدارانو او مشرانو کړیدې ځکه چې دولت او ثروت نشه او د عزت او اقتدار غوښتلو جذبه د انسانانو سترګې ړندې کړي.﴿إِلَّا قَالَ مُتْرَفُوهَآ﴾جمع د "مترف" ده.د "ترف" نه مشتق دې . د ناز او نعمت زیاتوالی ته وائي ای المتوسعون فی النعم (روح) مراد ورنه مالداره او د قوم مشران دی . تخصیص د دوئ ځکه اوشو چه اغلب او اکثر تکذیب کونکی دوئ وی .ځکه چه دوئ د دنیا په عیش عشرت کښې مبتلا وی .شهواتو کښې منهمک وی . د کمزورو خلقو اهانت هم دوئ کوی . په خلاف د فقراء نه چه زړونه ئې خیر طرف ته زر متوجه کیږی پدې وجه اکثر اتباع د انبیاؤ فقراء وؤ. لکه په حدیث د هر قل کښې مذکوردی، ابن کثیر رحمه الله په روایت د ابن حاتم نقل کړیدی چه په زمانی د جاهلیت کښې دوه کسان په یو کاروبار کښې شریک وؤ . بیا د یو بل نه جدا شول . یو په مکه کښې پاتی شو او بل ساحلی علاقو ته لاړو . کله چه حضور ﷺ مبعوث شو نو ساحلی علاقی والا سړی خپل مکيّ والا ملګری ته خط اولیږلواودحضور ﷺ د حال ئې ورنه معلومات وکړل چه تاسو خلقو د حضور ﷺ نه څه اثر اغستې دې نو ده ورته په جواب کښې اولیکلو چه کمزورو خلقو ئې خبره منلی ده . او مالدارو خلقو ئې اتباع نه ده کړې . هغه ته چه دا خط ورسیدلو نو فوراً مکې ته راغې . معلومات ئې اوکړل د حضور ﷺ خوا ته حاضرشو او تپوس ئې ورنه اوکړو چه ته خلق څه شیز طرف ته راغواړې .نبی کریم ﷺ ورته اسلام ارکان بیان کړل . هغه ګواهی ورکړه . چه اشهد انک رسول الله او مسلمان شو . حضور ﷺ ورته تپوس اوکړو چه تا د دی

خبرې تصديق څنګه اوکړو نو دا ورته عرض وکړو چه په ابتداء کښې د تمامو انبياؤ منونکی ضعيف او مسکين خلق وی (ابن کثير)

﴿وَقَالُوا نَحْنُ أَكْثَرُ أَمْوَالًا وَأَوْلَادًا﴾ مفضل عليه محذوف ده ، اى نحن اكثر منكم اموالاً يعنى زمونږ مالونه او اولادونه د مؤمنانو نه زيات دی ، نو دا دليل دې زمونږ په حقانيت باندې. کچرته مونږ د الله ﷻ خوښ نه وؤ نو بياولې هغه مونږ له زيات مال او اولاد راکړيدې ؟ ﴿وَمَا نَحْنُ بِمُعَذَّبِينَ﴾ مونږ ته به هيڅ قسم عذاب نه راکولې کيږي ،دوئ قياس کړل امور او حالت دَ آخرت په امور د دنيا او حالت باندې. چه څرنګه مونږ په دنيا کښې په نعمتونو کښې يو دغه رنګه به په آخرت کښې هم يو

قُلْ إِنَّ رَبِّي يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَشَاءُ وَيَقْدِرُ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٣٦﴾

ته ووايه چې بيشکه رب زما فراخه کوي رزق چاته چې ئې خوښه شي او تنګوي رزق.ليکن ډير د خلقو نه پوهيږي.

وَمَا أَمْوَالُكُمْ وَلَا أَوْلَادُكُمْ بِالَّتِي تُقَرِّبُكُمْ عِنْدَنَا زُلْفَىٰ إِلَّا مَنْ

اوندی مالونه ستاسو او نه اولاد ستاسو په هغه مقام کښې چې قريب کړي تاسو مونږته په قريب کولو سره مګر هغه څوک

آمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا فَأُولَٰئِكَ لَهُمْ جَزَاءُ الضِّعْفِ بِمَا عَمِلُوا وَهُمْ

چې ايمان ئې راوړې وي او عمل کوي نيک،نو دغه کسان دوئ لره بدله ده دوه چنده،په سبب دَ عملونو دَ دوئ او دوئ به

فِي الْغُرُفَاتِ آمِنُونَ ﴿٣٧﴾ وَالَّذِينَ يَسْعَوْنَ فِي

په بالاخانو دَجنت کښې د امن په حالت کښې به وی او هغه کسان چې کوشش کوی

آيَاتِنَا مُعَاجِزِينَ أُولَٰئِكَ فِي الْعَذَابِ مُحْضَرُونَ ﴿٣٨﴾

دَ باطلولو دَ اياتونو زمونږ ګمان يې داوی چې عاجزه کونکي دی مونږلره دغه کسان به په عذاب کښې حاضرولې شي.

﴿قُلْ إِنَّ رَبِّي يَبْسُطُ الرِّزْقَ﴾ دا دريم دليل عقلی دې په توحيد ،او رددې د کافرانو د مذکوری خبری . يعنی ډيروالي د رزق او مالداری دليل د حقانيت نه دې ، او نه کموالي او غربت د باطل والی دليل دې ، بلکه دا خو د الله ﷻ تکوينی مصلحتونو باندی مبنی دې ، نو په دې باندې ثواب عقاب نه دی قياس کول پکار ځکه چه دارومدار د هغې په طاعت او عدم طاعت باندې دې. ﴿وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ

ٱلنَّاسِ لَا يَعۡلَمُونَ ﴾.اکثر خلق نه پوهیږي نو ګمان کوي چه دعزت اوشرافت اوحقانیت مالداری ده.اومعیار دحقارت اودباطل غربت دي

﴿وَمَآ أَمۡوَٰلُكُمۡ وَلَآ أَوۡلَٰدُكُم ﴾ دا زجر دي کافرانو ته .چې دوئ وائ چې زمونږ مال اواولاد زیات دي لهذا مونږه غوره یو اومونږله به عذاب نه راکولې کیږي.الله ﷻ ورته فرمائ چې بالکل غلط خبره ده. مال او د اولاد کثرت د الله ﷻ د قربت علامت نه دي او نه دقرب حاصلولو سبب دي . بلکه ایمان او عمل صالح د قرب سبب دي﴿ بِٱلَّتِي﴾صفت دې د موصوف محذوف ای بالخصلة و المکانة التي﴿ زُلۡفَىٰٓ﴾ مفعول مطلق دي﴿تُقَرِّبُكُمۡ ﴾ دپاره.من غیر لفظه ، قربت ته وائ ﴿إِلَّا مَنۡ ءَامَنَ وَعَمِلَ صَٰلِحٗا ﴾ استثناد "کم" ضمیر منصوب نه ده په "تقربکم" کښې یعنی مال اواولاد تاسوله څه نفع نشی درکولې ځکه چې تاسو کافران یئ.داخوصرف مؤمنانو له نفع ورکوي .چې مال دالله ﷻ په لار کښې خرچ کړي.اوخپل اولاد صحیح تربیت اوکړي اودین وربانديږ زده کړي بعض وائ استثناء ده د﴿وَمَآ أَمۡوَٰلُكُمۡ وَلَآ أَوۡلَٰدُكُم ﴾ نه . په حذف د مضاف سره : ای الا اموال من آمن وعمل صالحاً واولاد هم (روح)

﴿جَزَآءُ ٱلضِّعۡفِ﴾اضافت دمصدردي مفعول ته ."ٱلضِّعۡف"مصدردي دوه چنده کیدلو ته وائ لیکن دلته ورنه مرادمطلق زیاتوالي دي.لکه څنګه چه دولت والاخلق په دنیاکښې خپل دولت زیاتولو کوشش کوي .الله ﷻ به په آخرت کښې د مؤمنانو اعمال زیاته وي ، د یوې نیکئ اجر به کم نه کم لس ګنه زیاته وي ،کقوله تعالیٰ: من جآء بالحسنة فله عشر امثالها ،﴿وَهُمۡ فِي ٱلۡغُرُفَٰتِ ءَامِنُونَ﴾جمع د غرفة ده مراد ورنه بالاخاني د جنت دي.﴿ ءَامِنُونَ﴾دهر قسمه تکلیف نه به په امن کښې وي

﴿وَٱلَّذِينَ يَسۡعَوۡنَ فِيٓ ءَايَٰتِنَا ﴾ ای فی ابطال آیاتنا.دا تخویف اخروی دي کافرانو ته، چه د قرآن د آیاتونو او احکامو خلاف منصوبې جوړه وي نو دوئ به په آخرت کښې همیشه په عذاب د جهنم کښې پراته وي،﴿ مُعَٰجِزِينَ﴾ ای طالبین تعجیزها . یعنی طلب کونکی او اراده لرونکی د عاجزه کولو د آیاتونو او د دین د الله ﷻ . یعنی دا ګمان کوي چه مونږ به الله ﷻ او د هغه رسول مغلوب عاجز کړو.

قُلۡ إِنَّ رَبِّي يَبۡسُطُ ٱلرِّزۡقَ لِمَن يَشَآءُ مِنۡ عِبَادِهِۦ وَيَقۡدِرُ لَهُۥۚ

ته اواوایه بیشکه رب زمافراخه کوي رزق چالره چې ئې خوښه شي دبندګانوخپلونه اوتنګوی هغه لره رزق

وَمَآ اَنۡفَقۡتُمۡ مِّنۡ شَیۡءٍ فَهُوَ يُخۡلِفُهٗ ۚ وَهُوَ خَيۡرُ الرّٰزِقِيۡنَ ﴿۳۹﴾

او هغه چي خيرات کړئ تاسو څه خير په لاره دالله ﷻ کښي نو الله ﷻ به دهغي بدله درکوي. او الله تعالیٰ ښه رزق ورکونکی دی

وَيَوۡمَ يَحۡشُرُهُمۡ جَمِيۡعًا ثُمَّ يَقُوۡلُ لِلۡمَلٰٓئِكَةِ اَهٰٓؤُلَآءِ اِيَّاكُمۡ كَانُوۡا يَعۡبُدُوۡنَ ﴿۴۰﴾

او په هغه ورځ چي راجمع به کړي دوئ ټول بيا به وائي الله ﷻ ملائکو ته آيا دا خلق وو چي تاسو به ئي ستاسو به ئي عبادت کولو

قَالُوۡا سُبۡحٰنَكَ اَنۡتَ وَلِيُّنَا مِنۡ دُوۡنِهِمۡ ۚ بَلۡ كَانُوۡا يَعۡبُدُوۡنَ الۡجِنَّ ۚ اَكۡثَرُهُمۡ

او به وائي دوئ پاکي ده تا لره. ته زمونږ دوست ئي ، دوئ نه دي. بلکه وو دوئ چي عبادت به ئي کولو د شيطانانو ډيردوئ نه

بِهِمۡ مُّؤۡمِنُوۡنَ ﴿۴۱﴾ فَالۡيَوۡمَ لَا يَمۡلِكُ بَعۡضُكُمۡ لِبَعۡضٍ نَّفۡعًا

په هغوئ شيطانانو باندي ايمان راوړنکی وو. پس نن ورځ ندي مالك څوک ستاسو نه د خپل يار د نفع رسولو

وَّلَا ضَرًّا ؕ وَنَقُوۡلُ لِلَّذِيۡنَ ظَلَمُوۡا ذُوۡقُوۡا عَذَابَ النَّارِ الَّتِىۡ كُنۡتُمۡ بِهَا تُكَذِّبُوۡنَ ﴿۴۲﴾

او نه د ضرر لري کولو. او به وايو مونږ ظالمانو مشرکانو ته او څکئ عذاب د هغي اور چي وئ تاسو د هغي تکذيب مو کولو

﴿قُلۡ اِنَّ رَبِّىۡ يَبۡسُطُ الرِّزۡقَ﴾ دا دَدريم دليل اعاده ده. هغي کښي رد وو . په کافرانو. دلته وعظ نصيحت دي مؤمنانو ته ، چه د الله ﷻ په لاره کښي مال خرچ کړئ او د الله قرب حاصل کړئ . دفقر او افلاس نه مه يريږئ . الله ﷻ به د هغې عوض درکوی. د﴿يُخۡلِفُهٗ﴾ معنی يعطي بدله دَه دهغي بدل او عوض به الله ﷻ درکوی.که د مال په صورت کښي وی يا د قناعت او قلبي غناء په شکل کښي چه دا داسي خزانه ده چه فناء پري نه راځي ، يا په آخرت کښي به ئي ثواب درکړی . چه دا حتمي او لازمي دي. د ابو هريره ﷺ نه روايت دي چه حضور ﷺ فرمائي. ما من يوم يصبح العباد فيه الا ملكان ينزلان فيقول احدهما: اللهم اعط منفقاً خلفاً، ويقول الاخر: اللهم اعط ممسكاً تلفاً( بخاری ومسلم ).

ترجمه يعني هرسحر دوه فرشتې راکوزيږی،يوه فرشته داوائي،اې الله خرچ کونکی ته دهغې بدله ورکړه،اوبل خرچ نه کونکی شته مال هم تباه کړه

جابر بن عبد الله نه روايت دي چه نبی کريم ﷺ فرمائي كل ما انفق العبدنفقة فعلى الله تعالى خلفها ضامناً الا نفقةً فى بنيانٍ او معصية .يعنی بنده څه مال هم خرچ کوی الله جل جلاله دهغې عوض ذمه اغستې ده سوا دتعمير اودګناهونو خرچونه (روح المعانی،ازبیهقی)

﴿وَيَوْمَ يَحْشُرُهُمْ جَمِيعًا﴾ داتخويف اخروی دي مشرکانو ته،اوملائکو باره کښ چې دَ مشرکينو کوم خيال اوشبه وه نو په زبان دَ ملائکو دهغې ترديد اوجواب حکايت کيږي،يعنی الله جل جلاله به قيامت په ورځ دوئ هم خپل عدالت کښ حاضر کړي اوفرشتې هم ، بيابه دَ فرشتو نه تپوس اوکړې چې آيا دوئ ستاسوپه رضا اووينا سره ستاسو عبادت کولو .فرشتې به ورنه براءت اعلان اوکړی چې دوئ دراصل دَ شيطان عبادت کولو .چې څه به ئې ورته وئيل هغه به ئي منل﴿يَحْشُرُهُمْ﴾کښ هم ضمير عابدينو اومعبودينو دواړوته راجع دي.لکه سورت الفرقان کښ دی. ويوم يحشرهم وما يعبدون من دون الله. ﴿أَهَؤُلَاءِ إِيَّاكُمْ﴾ داشاره مشرکانو ته ده چه آيا دي ګمراهانو به ستاسو عبادت کولو .داسوال کول دتوبيخ او لاجوابه کولو د مشرکانو دپاره دي، ځکه چه الله جل جلاله عالم دي په منزه والی د ملائکو او دغه رنګه د عيسی عليه السلام

﴿قَالُوا سُبْحَانَكَ أَنْتَ وَلِيُّنَا مِنْ دُونِهِمْ﴾ دادَفرښتو جواب دي چه يا الله جل جلاله ستا ذات پاک دي.منزه دي د شريک نه مونږ خوستا ولايت اودوستی غواړو. ستادشمنانو سره دوستی نه کوؤ نوبيا څنګه کيديشی .چې مونږ ورته داوئيلی وی﴿بَلْ كَانُوا يَعْبُدُونَ الْجِنَّ﴾بل دَ اضراب انتقالی لپاره دي. يعنی دوئ چې زمونږ عبادت کولو دايې زمونږ په رضا اووينا سره نه کولو .بلکه شيطان په وينا اولمسون سره يې کولو .اود هغه اطاعت کولو. ﴿الْجِنَّ﴾نه مراد شيطان دي.!ودَ اطاعت نه تعبير په عبادت سره اوشو ځکه چې ناجائز امر کښ چااتباع دادرحقيقت دَ غير الله عبادت دي ﴿أَكْثَرُهُمْ بِهِمْ مُؤْمِنُونَ﴾ دويم ضمير جناتو ته راجع دي او اول مشرکانو ته راجع دي يعنی دَ دوئ اکثريت شياطينو تابع فرمان وو .چې هغوئ به ورته څه وئيل هغهٔ ئي منلو﴿أَكْثَرُهُمْ﴾يا خپلې حقيقی معنی کښ دې ځکه چې بعض مشرکين داسې هم وو چې فرشتو دَالوهيت قائل نه وؤ. اودې باره کښ ئ د شياطينو خبره نه منله.اويا اکثر پمعنی دَ کل کښ دي.چې دامشرکينو ټول د شيطانانو خبرې منی.خو احتياط دَوجهې نه تعبير ئې په اکثر سره اوکړو

﴿فَالْيَوْمَ لَا يَمْلِكُ بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ﴾ د مشركانو د رسواكولو دپاره به الله ﷻ د قيامت په ورځ فرښتو حال ښكاره كړي چه نن ورځ دوئ د يوې ذرې برابر هم تاسو ته نفع نشي دركولې نه شدعه كولي شي او نه درنه ذرې برابر تكليف لرې كولې شي ﴿بَعْضُكُمْ﴾ نه مراد معبودين دي او ﴿لِبَعْضٍ﴾ نه مراد عابدين دي (روح المعانی) ﴿وَنَقُولُ لِلَّذِينَ ظَلَمُوا﴾ عطف دې په ﴿يَقُولُ لِلْمَلَٰئِكَةِ﴾ د ظالمانو نه مراد دلته مشركان دي ﴿عَذَابَ النَّارِ الَّتِي﴾ "الَّتِي" صفت دې د "النَّارِ" په دې وجه ورته "بِهَا" ضمير د مؤنث راجع دې، او په سورة سجده (۲۰) كښې "عذاب النارالذي" "الذي" صفت دعذاب دې . نو په دې وجه ورته (به) ضمير د مذكر راجع دې

وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ آيَاتُنَا بَيِّنَاتٍ قَالُوا مَا هَٰذَا إِلَّا رَجُلٌ يُرِيدُ

اوكله چې لوستلې شي پدوئ باندې اياتونه زمونږ واضحه دوئ وائې ندې دا پيغمبر مگر يو سړې دې اراده لرې

أَنْ يَصُدَّكُمْ عَمَّا كَانَ يَعْبُدُ آبَاؤُكُمْ وَقَالُوا مَا هَٰذَا إِلَّا إِفْكٌ مُفْتَرًى ۚ

چې منع كړي تاسو دهغې نه چې عبادت به ئې كولو پلارانو ستاسو .اووائې دوئ ندی دا مگر دروغ جوړ كړې شوی دی.

وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لِلْحَقِّ لَمَّا جَاءَهُمْ إِنْ هَٰذَا إِلَّا سِحْرٌ مُبِينٌ ﴿٤٣﴾ وَمَا آتَيْنَاهُمْ

اوويل كافرانو په باره دحق كښې هركله چې راغې دوئ ته،ندې دامگر جادو ښكاره.اوندې وركړي مونږ دوئ ته

مِنْ كُتُبٍ يَدْرُسُونَهَا ۖ وَمَا أَرْسَلْنَا إِلَيْهِمْ قَبْلَكَ مِنْ نَذِيرٍ ﴿٤٤﴾ وَكَذَّبَ الَّذِينَ

كتابونه چې دوئ بې لولي هغه اوندې ليږلې مونږ دوئ ته مخكښې ستانه هيڅ پيغمبر اوتكذيب كړې وو هغه كسانو

مِنْ قَبْلِهِمْ وَمَا بَلَغُوا مِعْشَارَ مَا آتَيْنَاهُمْ

چې مخكښې وو ددوئ نه. اوندې رسيدلي داموجوده كافران لسمې حصې دهغې ته چې مونږ وركړې وو هغوئ ته.

فَكَذَّبُوا رُسُلِي ۖ فَكَيْفَ كَانَ نَكِيرِ ﴿٤٥﴾

نوتكذيب كړې وو هغوئ زما د رسولانو .نو څنگه وو گرفت زما

﴿وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ ءَايَٰتُنَا بَيِّنَٰتٍ﴾ دا شکوه ده د ضد او عناد د مشرکانو نه . چه کله دوئ ته حضور ﷺ زمونږ آیاتونه تلاوت کوی ، او توحید ته ئې راغواړی نو دوئ وائی دا سړې خو نه رسول دې نه نبی دې . بلکه مقصد ئې فقط زمونږ آبائی دین ختمول دی ﴿قَالُوا۟ مَا هَٰذَآ إِلَّا رَجُلٌ﴾ اشاره حضور ﷺ ته ده . والاشارة للتحقير قاتلهم الله ﴿عَمَّا كَانَ يَعْبُدُ ءَابَآؤُكُمْ﴾ اضافت د اباؤ مخاطبین ته د وجې د زبات غیرت پیدا کولو نه دې . یعنی دا سړې تاسو د هغه دین نه منع کوی چه ستاسو آباؤ اجدادو نه تاسو ته پاتې دې . ﴿وَقَالُوا۟ مَا هَٰذَآ﴾ اشاره قرآن ته ده ، دلته هم اشاره د تحقیر لپاره ده . ﴿وَقَالَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ لِلْحَقِّ﴾ دَحق نه مراد نبوت یا قرآن دې ، یعنی کافران وائی چه خامخا دا دعوه د نبوت چه ورسره معجزې هم دی . یا دا اسلامْ چه د ښځې خاوند ، پلار او خوی په مینځ کښې جدائی راوستونکې دې . یا دا قرآن چه د خلقو زړونه ورنه متاثره کیږی ، داندې مګر ښکاره جادو دې ( روح المعانی ) .

﴿وَمَآ ءَاتَيْنَٰهُم﴾ ضمیر راجع دې اهل مکه ؤ ته ، تخویف دنیوی دې ورته ، چه دوئ هم کچرته مخکنی قومونو په شان په غیر دَڅه دلیل نه تکذیب کوی نولکه څنګه چه هغوئ هلاک شول دوئ باندی به هم خما عذاب راشی ﴿مِّن كُتُبٍ يَدْرُسُونَهَا﴾ یعنی مونږه دوئ ته داسی هیڅ یو کتاب ندې ورکړې چه د شرک تعلیم وی پکښی او ﴿وَمَآ أَرْسَلْنَآ إِلَيْهِمْ قَبْلَكَ مِن نَّذِيرٍ﴾ نه مو داسی رسول ورته لیږلې دې چه شرک دعوت ورته ورکوی ، نو د کوم دلیل په بنیاد دوئ شرک کوی او دَحضور ﷺ تکذیب کوی . یا د آیت مطلب دا دې چه دا اهل مکه محض امیان دی ، نه ورسره سماوی کتاب شته او نه ورته نبی مبعوث شویدې . کما قال تعالٰی : ام اتینا هم کتاباً من قبله فهم به مستمسکون : ( الزخرف : ۲۱ ) نو د دوئ سره په تکذیب څه دلیل نشته . لکه اهل کتاب وائی ، اګر چه په باطله دی ، چه مونږ اهل کتاب یو . اهل شرع یو . د خپل دین نسبت یو رسول ته کوی ، لیکن تاسو سره خو دا دلیل باطل هم نشته نو تاسو ولې تکذیب کوئ ( روح ، بحر ) .

ده نبی کریم ﷺ نه مخکښ قریشوته بل پیغمبر یا نبی راغلیدې اوکنه؟ دابحث په سورة القصص اور الم سجده کښ تیر شویدې ، هلته یې ملاحظه کړئ اوڅه تفصیل یې په سورة یس کښ هم راروان دې .

﴿وَكَذَّبَ ٱلَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ﴾ لکه قوم نوح هود ، عاد وغیره ﴿وَمَا بَلَغُوا۟﴾ یعنی اهل مکه . ﴿مِعْشَارَ مَآ ءَاتَيْنَٰهُمْ﴾ ضمیر مخکنې امتونو ته راجع دې . مِعْشَار عشر یعنی ( ۱۰ ) لسمی حصی ته وائی . بعض

په نیز عشر العشیر یعنی سلمه حصی نه وائی . بعضی په نیز عشر معشراب نه وائي . یعنی زرمه ۱۰۰۰ حصه . یعنی دی اهل مکه ؤ نه د مخکنی امتونو هومره اوږده عمرونه . جسمانی . مالی قوتونه . چه هغوی ته ورکړي شوی وو . د هغی عشر العشیر هم ندې ورکړي شوې . نو هغوئ څنګه خو په عذاب سره هلاک شول نو ستاسو به څه حال وی چه عذاب درباندی راشی. ﴿فَكَيْفَ كَانَ نَكِيرِ﴾ ی انکاری

قُلْ إِنَّمَآ أَعِظُكُم بِوَاحِدَةٍ ۖ أَن تَقُومُوا لِلَّهِ مَثْنَىٰ وَفُرَادَىٰ ثُمَّ تَتَفَكَّرُوا ۚ

نه اووایه بیشکه زه وعظ کوم تاسو ته د یوی خبری هغه دا چې اودریږئ الله تعالی لپاره دوه دوه او یو یو بیا سوچ اوکړئ.

مَا بِصَاحِبِكُم مِّن جِنَّةٍ ۚ إِنْ هُوَ إِلَّا نَذِيرٌ لَّكُم بَيْنَ يَدَيْ عَذَابٍ شَدِيدٍ ۝

نشته ستاسو په ملګری باندی هیڅ قسمه لیونتوب.نه دی.دی مګر یره ونکی دی ستاسو دپاره مخکښې د عذاب سخت نه

قُلْ مَا سَأَلْتُكُم مِّنْ أَجْرٍ فَهُوَ لَكُمْ ۖ إِنْ أَجْرِيَ إِلَّا عَلَى اللَّهِ ۖ

ته اووایه هغه چې سوال کوم څه ستاسو نه د څه اجر مزدوری نو هغه دي ستاسو وی.ندې اجر زما مګر په الله ﷻ دی.

وَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدٌ ۝ قُلْ إِنَّ رَبِّي يَقْذِفُ بِالْحَقِّ عَلَّامُ الْغُيُوبِ ۝

او الله ﷻ په هر څیز باندې ګواه دې.ته اووایه بیشکه رب زما نازلوی حق.ډیر پوهیدونکي دی په غیبونو باندې.

قُلْ جَاءَ الْحَقُّ وَمَا يُبْدِئُ الْبَاطِلُ وَمَا يُعِيدُ ۝

ته اووایه راغی حق . او څه نوي کارکولی نه شی باطل او نه زوړ سرته رسولی شی

﴿قُلْ إِنَّمَآ أَعِظُكُم بِوَاحِدَةٍ﴾ ای بکلمة وبخصلة واحدة . دا خلورمه طریقه د تبلیغ ده. په دیکښې توحید او رسالت ته ترغیب دې . چه اې مشرکانو ضد او عناد پریږدئ . الله ﷻ ته په اخلاص سره متوجه شئ . بیا غور فکر اوکړئ نو تاسو ته به پخپله معلومه شی چه دا پیغمبر ﷺ څه لیوني نه دې چه ستاسو په هدایت باندی دومره مشقت کوی بلکه دا خو د الله ﷻ د طرفه د عذاب شدید راتلونه مخکی یره ونکی دی. ﴿أَن تَقُومُوا لِلَّهِ﴾ په تاویل د مصدر سره یا بدل دې د واحدة نه یا خبر د مبتدا محذوف دې ای هی قیامکم. قیام نه مراد قیام حسّی نه دې بلکه مراد ورته متوجه کیدل او کوشش

کول دی . ( روح ) د ﴿لِلَّهِ﴾ لفظ په ذکر کولو کښی اخلاص طرف ته اشاره ده چه د ضد او عناد نه خالی الذهن شی چه د حق قبولو استعداد . صلاحیت در کښی پیدا شی ﴿مَثْنَىٰ وَفُرَادَىٰ﴾ یعنی جدا جدا دوه دوه یا یواځی یواځی .ځکه چه په ازدحام کښی سړی صحیح فکر نشی کولې . بعضی وائی عدد خاص مقصود نه دی بلکه مقصد دا دی چه د فکر کولو دوه طریقی وی . په خلوت کښی یواځی پخپله غور کول یا د نورو سره مشوره کول نو چه پدی دواړو طریقو کښی کومه چه ستاسو خوښه وی هغی طریقی سره سوچ اوکړئ . بعضی وائی مراد ورنه د ورځی او د شپی سوچ فکر کول دی ، ان المثنی عمل النهار والفرادی عمل اللیل ( قرطبی ) ﴿ثُمَّ تَتَفَكَّرُوا ۚ مَا بِصَاحِبِكُم مِّن جِنَّةٍ﴾ صاحب ( ملګری ) نه مراد حضور ﷺ دی . تعبیر ورنه په لفظ د صاحب سره کولو کښی دیته اشاره ده چه کچرته یو سړی د بهر نه راشی ،حالاتو نه ئی واقف نه وی نو د مجنون شبه پری کیدلی شی . لیکن حضور ﷺ خو ټول عمرستاسو سره اوسیدلی دی د هغه د احوالو . اقوالو ،اعمالو نه تاسو ښه واقف یئ . د ده عقل . پوهه ،امانت. دیانت د پخوانه مسلم او معروف دی . د کمالات بشریه ؤ جامع دی . نو په تاسو واجبه ده چه تصدیق ئي اوکړئ.

﴿قُلْ مَا سَأَلْتُكُم مِّنْ أَجْرٍ فَهُوَ لَكُمْ﴾ دا پنځمه طریقه د تبلیغ ده . چه الله ﷻ پدی ګواه دی چه تاسو ته د تبلیغ کولو نه مقصد ځما اجرت اخستل،مال کټل نه دی بلکه څه خالص د الله ﷻ د رضا دپاره تبلیغ کوم،نو تاسو ولې ځما تصدیق نه کوئ ﴿فَهُوَ لَكُمْ﴾ کنایه ده د دینه چه بالکل څه نه غوارم . والمراد د نفی السوال رأساً ( روح ) ﴿وَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدٌ﴾ الله ﷻ په هر څه خبردار ، ګواه دی ، نو ځما په خلوص ، نیت ، صداقت هم ګواه دی.

﴿قُلْ إِنَّ رَبِّي يَقْذِفُ بِالْحَقِّ﴾ دا شپږمه طریقه د تبلیغ ده ﴿يَقْذِفُ﴾ قذف ویشتلو ته وائی،دلته ئي مفسرینو دری معنی کړی دي: (۱)یو دا چی دینه مراد نازلول او القاء کول دي ،او حق نه مراد قرآن او وحي ده . یعني الله ﷻ ستاسو هدایت دپاره قرآن او وحي رالیږلي دي . لهذا تاسو د دې اتباع اوکړئ او په احکاماتو ئي عمل اوکړئ،(۲) دویم دا چې دې معنی "بیان" ده ، یعني ځما رب حق بیانوي ، هغي ته غور کیدئ ، (۳) دریمه معنی ئي د غلبې او اظهار شوې ده ، چې ځما رب به حق له غلبه ورکوي ، لهذا تاسو ئي د اوس نه اتباع اوکړئ.

﴿قُلْ جَآءَ الْحَقُّ﴾ دا (۷) اومه طريقه د تبليغ ده په طور د پيشنګويۍ. چه حق به غالبه کيږي .او باطل به مغلوب کيږي. د (حق) نه مراد اسلام دې .يا قران .﴿وَمَا يُبْدِئُ الْبَاطِلُ﴾ باطل نه مراد کفر .شرک دې. داکنايه ده دَبالکل ختميدلونه .اوچې هيڅ رمق پکښې نشي پاتې .ځکه چې ژوندې ځيز يا خوځه نوې کارکوي اويازوړ سرته رسوي .نو الله ﷻ فرمائي چې" مايبدئ'' اوس به باطل نه څه نوې منصوبې جوړولې شي "ومايعيد" اونه به ئې زاړه خوبونه پورا شي يا مراد د باطل نه معبودان باطله دی او مطلب دا دې چه معبوذدان باطله نه اول ځل پيدا کول کولې شی او نه دوباره پيدا کول کوليشي يا ﴿مايبدئ﴾ نه مراد دنيا کښې نفع ورکول دی او ﴿يعيد﴾نه مراد آخرت کښې نفع رسول دی. (روح المعانی)

| |
|---|
| قُلْ اِنْ ضَلَلْتُ فَاِنَّمَآ اَضِلُّ عَلٰى نَفْسِيْ ۚ وَاِنِ اهْتَدَيْتُ |
| اووايه کچرې څه ګمراه يمه(بفرض محال) نوبيشکه خمادګمراه کيدلو نقصان به په ماوی.اوکچرې څه په هدايت يمه |
| فَبِمَا يُوْحِيْٓ اِلَيَّ رَبِّيْ ۗ اِنَّهٗ سَمِيْعٌ قَرِيْبٌ ۞ وَلَوْ تَرٰٓى اِذْ فَزِعُوْا |
| نوپه دې وجه چې وحې کوې ماته رب زما .بيشکه هغه اوريدونکې دې نزدې دې .اوکچرې اووينې ته کله چې دوئ ګبراؤشي. |
| فَلَا فَوْتَ وَاُخِذُوْا مِنْ مَّكَانٍ قَرِيْبٍ ۞ وَّقَالُوْٓا اٰمَنَّا بِهٖ ۚ |
| نونه به وې خلاصيدل ددوئ زمونږنه.اوبه نيولې شي دځائ نزدې نه اواوبه وائی دوئ ايمان راوړې دې مونږپه دې باندې. |
| وَاَنّٰى لَهُمُ التَّنَاوُشُ مِنْ مَّكَانٍ بَعِيْدٍ ۞ وَّقَدْ كَفَرُوْا بِهٖ مِنْ قَبْلُ ۚ |
| او چرته به دوئ ته په ګتو راځی ايمان دځائ لرې نه .اوپه تحقيق دوئ کفرکړې وو.پدې باندې مخکښې په دنياکښې |
| وَيَقْذِفُوْنَ بِالْغَيْبِ مِنْ مَّكَانٍ بَعِيْدٍ ۞ وَحِيْلَ بَيْنَهُمْ |
| او اندازې ئې لګولې دَ غيب په باره کښې دځائ لرې نه.اوحائل(رکاوټ)به واچولې شي په مينځ ددوئ کښې |
| وَبَيْنَ مَا يَشْتَهُوْنَ كَمَا فُعِلَ بِاَشْيَاعِهِمْ مِّنْ قَبْلُ ۚ اِنَّهُمْ |
| اوپه مينځ دَهغه څه کښې چې دوئ ئې غواړې(ايمان)لکه داکاربه اوکړيشي دډلودوئ سره چې مخکښې وې .بيشکه دوئ |

## كَانُوا۟ فِى شَكٍّ مُّرِيبٍۭ

وو په داسې شک کښې چې ډیر تردد کښې اوچونکې وو

﴿قُلۡ إِن ضَلَلۡتُ فَإِنَّمَآ أَضِلُّ عَلَىٰ نَفۡسِى﴾ دا اتمه (۸) طریقه دَتبلیغ ده.دې کښې په مخاطبینو باندې تعریض دې.او پدې عنوان کښې تلطف دې لپاره د دې چه مخاطب کښې اشتعال رانشي،یعنې دا کفار مکه تاته وائي چې تاخپل آبائي دین پریخودو نوته گمراه شولې.نو ته ورته اوایه کچرته څه گمراه یم نو څما دگمراهۍ وبال به صرف په ماوی،څمانه به ددې تپوس کولې کیږي.تاسوته ئې هیڅ نقصان نشته،اوکچرته څه په هدایت یم دَالله ﷻ وحی په سبب نو بیاتاسوله دهغې اتباع پکارده،کچرته حق طلب درکوی نو الله ﷻ سمیع ذات دې هرڅه اورې.حق ته به خوراهنمائی اوکړي،اوکه حق طلب درکښې نه وی اوخانی لی عنادنه کار اخلئ نو بیاواورئ چې الله ﷻ قریب ذات دې هلاک او برباد به موکړی

﴿وَلَوۡ تَرَىٰٓ إِذۡ فَزِعُواْ﴾ دا تخویف اخروی دې فزع نه مرادقبر نه پورته کیدو وخت کښې خوف او هیبت دې یعنې دابه ډیر خوفناک حالت وی چې دوئ به قبر نه خوف وهیبت کښې پورته شی اوالله ﷻ به ئ فورا خپل عذاب کښې گرفتار کړي ،مفعول د ﴿تَرَىٰٓ﴾ محذوف دې چه "الكفار" دې ، یا (فزعهم) دې .او جواب د (لو) هم محذوف دې چه لرایت امراً هائلاً (روح) ﴿فَلَا فَوۡتَ﴾ یعنې دَ تیختې ځائ به ورته نه میلاویږي.چې ازتختی دَ الله ﷻ نه بچ شي﴿وَأُخِذُواْ مِن مَّكَانٖ قَرِيبٖ﴾ اي من القبور. یعنې تختیدلې به نشي . قبرسره به بالکل نیزدې راونیولې شي داکنایه ده دَسرعت عذاب نه ﴿وَقَالُوٓاْ ءَامَنَّا بِهِۦ﴾ دې وخت کښې به بیا دوئ وائ چې مونږ ایمان راوړو،﴿به﴾ هاضمیر نبي ﷺ ته راجع دې ځکه چې ایمان په نبي ﷺ .الله ﷻ ، قرآن اوآخرت ټولو باندې ایمان ته شامل دې ﴿وَأَنَّىٰ لَهُمُ ٱلتَّنَاوُشُ﴾ دَایمان ځائې خودنیاوه.اوس دلته آخرت کښې ایمان چرته معتبر دې ﴿انى﴾ استبعاد لپاره دې.﴿ٱلتَّنَاوُشُ﴾ تناوش ونیلې کیږي،تناول الشئ باطراف الاصابع من بعد یعنې دَلرې یوشې دگتو په څوکو رانیول [كذا في الكنز الثمين] اودایوڅیز ته دَرسیدلو انتهائی درجه وی.نو مطلب دادې چې اوس دَ دوئ ایمان اعتبار بالکل ناممکن دې﴿مَّكَانِۭ بَعِيدٖ﴾ نه مراد دنیا ده.یعنې د ایمان راوړلو ځائ خود

دنیا ده چه دارالعمل ده . هغی نه خو اوس دوئ اخرت ته راغلل . آخرت خو دارالجزاء ده .نو اوس به څرنګه دوئ د ایمان راوړی

﴿وَقَدْ كَفَرُوا بِهِ﴾. ضمیر راجع دې هغې ته چه﴿ءَامَنَّا بِهِ﴾ ضمیر ورته راجع دې﴿مِن قَبْلُ﴾ یعنی په دنیا کښې .﴿وَيَقْذِفُونَ بِالْغَيْبِ﴾ څوک چه بلا دلیل محض ظنی.خیالی خبری کوی نو هغه ته د عربو په محاوره کښې قذف بالغیب او رجماً بالغیب وائی . دلته ورته مراد دا دې چه دوئ به الله ﷻ ته د شریک نسبت کولو . قیامت او بعث بعد الموت نه منکر وو . حضور ﷺ باره کښې به بې وئیل چه ساحر . شاعر . کاهن . مجنون دې (نعوذ بالله)او د دې خبره ورسره هیڅ دلیل نه وو ﴿مِن مَّكَانٍ بَعِيدٍ﴾ای من جهة بعیدة، دې کښې تمثیل دې دحال د دوئ د حال د هغه کس سره چه د لرې نه یو څیزولی . وینی ئې نه

﴿وَحِيلَ بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ مَا يَشْتَهُونَ﴾ حیل ماضی پمعنی د مضارع ده ای یُحال یعنی د دوئ او د دوئ د خواهش مینځ کښې به پرده حائله کړې شی یعنی خواهش به ئې پوره نه کړې شی . د خواهش نه مراد ابن عباس ﷺ فرمائی چه رجوع ده دنیا ته .بعض وائی ایمان قبلیدل دی .بعض وائی نجات میلاویدل دی د اور د جهنم نه ﴿كَمَا فُعِلَ بِأَشْيَاعِهِم﴾ دلته هم صیغه دماضی پمعنی د مضارع ده﴿مِّن قَبْلُ﴾ متعلق دې د﴿أَشْيَاعِهِم﴾ سره یعنی لکه څرنګه چه د دوئ اشباه یعنی د مخکنی امتونو کافرانو خواهش به نشی پوره کولې کیدلې دغه شان به د دوئ خواهش نه شی پوره کیدلې.﴿إِنَّهُمْ كَانُوا فِي شَكٍّ مُّرِيبٍ﴾یعنی دوئ په باره د حضور ﷺکښې او دغه رنګه په باره د بعث کښې او جنت کښې په ډیر سخت شک کښې پراته وو.

| ركوعاتها (۵) | سورة الفاطر مكية | آياتها (۴۵) |
| --- | --- | --- |
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بيحده مهربان او ډېر رحم كرونكي دي شروع كوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۳۵) وحسب النزول (۴۳)**

سورة الفاطرمكيَ دې،ترتيب قرآني لحاظ سره(۳۵)دې اوترتيب نزول اعتبار سره (۴۳) دي.نزلت بعدالفرقان.دې سورة ته سورة الملائكه هم وائي

**ربط معنوي**: ماقبل سورة سره ئې ربط معنوي دادې چې دعوه اومضمون دَدې سورة مرتب دي په ماقبل باندې.ماقبل سورة السباء كښې نفي دَشفاعت قهري يعني شفيع بلااذنه اوشوه نودې سورة كښې ترقي ده چې﴿ذَٰلِكُمُ اللَّهُ رَبُّكُمْ لَهُ الْمُلْكُ ۚ وَالَّذِينَ تَدْعُونَ مِن دُونِهِ مَا يَمْلِكُونَ مِن قِطْمِيرٍ﴾يعني شفاعت خو څه چې د كجهوري هډوكي دپټ مالكان هم نه دى

**ربط اسمي** په سورة السباء كښې ددې خبرې ذكروو چې قوم سبا دَ توحيد نه انكار په وجه هلاک شوی وواوس دې كښې په دې خبره دلائل ذكر كيږي چې فاطرالله ﷻ دي

**دعوه دَسورت**.داده چې دَټول كائناتو خالق.مالک متصرف الله ﷻ دې هغه سره بل څوک شريک نشته

**دسورة دَمضامينومختصره خلاصه**:

په مضمون دَتوحيدباندې دولس(۱۲)دلائل بيانيږي چې په هغې كښې يولس(۱۱)دلائل عقليه دي اويوپكښې دليل وحي دې،ځائ په ځائ دَدلائلوثمره اجمالاًياتفصيلاً بيانيږي. اوبشارتونه اوزجرونه هم پكښې ذكركيږي،دَدې سورة ابتداء هم په﴿الْحَمْدُ لِلَّهِ﴾ سره شويده څكه چې دامبداده لپاره دَحواميموسبعه ؤ.لكه څرنګه چې سورة السباء مبداده لپاره دَيسين، صفٰت.ص(كمامرّ فى اول السباء).

**تفصيلي خلاصه** دعوه دَسورت...الْحَمْدُ لِلَّهِ

په دعوی باندې يولس(۱۱)دلائل عقليه.

(۱)فَاطِرِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ (آيت ۱)(۲)مَّا يَفْتَحِ اللَّهُ لِلنَّاسِ (آيت ۲)(۳) هَلْ مِنْ خَالِقٍ غَيْرُ اللَّهِ آيت ۴)

(۴) وَاللَّهُ الَّذِي أَرْسَلَ الرِّيَاحَ (آيت ۹) — (۵) وَاللَّهُ خَلَقَكُم مِّن تُرَابٍ (آيت ۱۱)

(۶) وَمَا يَسْتَوِي الْبَحْرَانِ (آيت ۱۲) — (۷) يُولِجُ اللَّيْلَ فِي النَّهَارِ (آيت ۱۳)

(۸) يَا أَيُّهَا النَّاسُ أَنتُمُ الْفُقَرَاءُ (آيت ۱۵) — (۹) أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ أَنزَلَ (آيت نمبر ۲۷، ۲۸)

(۱۰) إِنَّ اللَّهَ عَالِمُ غَيْبِ (آيت ۳۸) — (۱۱) إِنَّ اللَّهَ يُمْسِكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ (آيت ۴۱)

يو دليل وحي ذكر كيږي. وَالَّذِي أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ (آيت ۳۱)

درې خله ثمره دَ دلائلو ذكر كيږي. (۱) لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ (آيت ۳)

(۲) ذَٰلِكُمُ اللَّهُ رَبُّكُمْ (آيت ۳۱) — (۳) قُلْ أَرَأَيْتُمْ شُرَكَاءَكُمُ (آيت ۴۰)

اته تخويفات دي.

(۱) يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّ وَعْدَ اللَّهِ حَقٌّ (آيت ۵) — (۲) الَّذِينَ كَفَرُوا لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيدٌ (آيت ۸)

(۳) وَالَّذِينَ يَمْكُرُونَ السَّيِّئَاتِ (آيت ۱۰) — (۴) وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ (آيت ۱۸)

(۵) ثُمَّ أَخَذْتُ الَّذِينَ كَفَرُوا (آيت ۲۲۲) — (۶) وَالَّذِينَ كَفَرُوا لَهُمْ نَارُ جَهَنَّمَ (آيت ۳۶)

(۷) وَأَقْسَمُوا بِاللَّهِ جَهْدَ أَيْمَانِهِمْ (آيت ۴۲) — (۸) أَوَلَمْ يَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ (آيت ۴۴)

خلور بشارتونه ذكر كيږي:

(۱) وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ (آيت ۷) — (۲) إِنَّمَا تُنذِرُ الَّذِينَ يَخْشَوْنَ (آيت نمبر ۱۸)

(۳) إِنَّ الَّذِينَ يَتْلُونَ كِتَابَ اللَّهِ (آيت نمبر ۲۹) — (۴) جَنَّاتُ عَدْنٍ يَدْخُلُونَهَا (آيت ۳۳)

دې علاوه څه زجرونه دي.

---

الْحَمْدُ لِلَّهِ فَاطِرِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ جَاعِلِ الْمَلَائِكَةِ

ټول صفتونه دَخدائ توب خاص الله ﷻ لره دي چې پيداكونكې دآسمانونو او دزمكې دې. گرځونكې دې فرښتو لره

رُسُلًا أُولِي أَجْنِحَةٍ مَّثْنَىٰ وَثُلَاثَ وَرُبَاعَ ۚ يَزِيدُ فِي الْخَلْقِ مَا يَشَاءُ ۚ

استاذې قاصدانې چه خاوندانې دوزرو دې دوه دوه او درې درې او خلور خلور. زياتول كوي په پيدائش كښې هغه قدر چې ئې خوښه وي

| إِنَّ | ٱللَّهَ | عَلَىٰ | كُلِّ | شَيۡءٖ | قَدِيرٞ | ① |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بیشکه | الله | تعالی | په | هرڅه | باندې | قادردې. |

﴿ٱلۡحَمۡدُ لِلَّهِ﴾ دادعوه دتوحیدده چې تمام صفات دالوهیت صرف الله جل جلاله لره دي. ﴿فَاطِرِ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ﴾ دااول دلیل عقلي دې په توحید فاطر دفطرنه مأخوذدې. ابداع، اختراع ته وائی. یعنی ابتداءً اول ځل یوشیزپیداکول پغیردنقشې نه. رئیس المفسرین حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنه فرمائی: کنتُ لاادري مافاطرالسموات والارض، حتیٰ اتاني اعربیان یختصمان فی بئرفقال احدهما: انافطرتُهایعني ابتدأتُها.

فطر په لغت کښې شق یعني شلیدلوته هم وائی لکه: (اذاالسماء انفطرت ای انشقت) نومعنی داده چې الله جل جلاله شلونکې دې اسمان لره لپاره دنزول د ارواحواوشلونکې دزمکې دې لپاره دخروج داجسادوپه ورځ دقیامت، داولې معنیٰ په اعتبارسره به مطلب داشي چې الله جل جلاله بغیردنقشې نه زمکې او اسمانونوپیداکونکې دې لهذامستحق دعبادت هم هغه دې.

﴿جَاعِلِ ٱلۡمَلَٰٓئِكَةِ رُسُلًا﴾ دیکښې نفي دشفیع قهري ده دفرشتونه، چې فرشتې نه متصرفې دي نه شفیع قهري بلکه دالله جل جلاله کارندې دي، په خدمت باندې ماموري دي، چې په هغې کښې یوخدمت انبیاؤته پیغامونه رسول دي، یاد ﴿رُسُلًا﴾ نه مراددادې چه دوئ واسطی دي په مابین دالله جل جلاله اودمخلوقاتوکښې، یعني دافرشتې دالله جل جلاله دقدرت اثارلکه باران، هوا، وغیره خلقو ته رارسوي. ﴿أُوْلِيٓ أَجۡنِحَةٖ﴾ داصفت دې د ﴿رُسُلًا﴾ اولو اسم جمع ده د ذو او ﴿اجنحة﴾ جمع د جناح ده. وزرته وائی. لیکن داحقیقت موږته ندې معلوم چې آیادملائکو د مارغانوپه شان وزرې دي اوکه بل شان . البته ابن جریج نه منقول دی چې ورې ورې بنرې دي پرې (روح)

﴿مَّثۡنَىٰ وَثُلَٰثَ وَرُبَٰعَ﴾ دایاصفت دې د ﴿أَجۡنِحَة﴾ یعنی دبعضوفرشتودوه دوه وزري دي. د بعضودرې درې. اودبعضوڅلور څلور. اوعددصرف په دیکښې ندې منحصرلکه ورستو راځی. یاحال دې دذوالحال محذوف نه. ای یُرسلون مثنیٰ وثلٰث وربٰع.

﴿يَزِيدُ فِي ٱلۡخَلۡقِ مَا يَشَآءُ﴾ د اکثرو مفسرینوپه نیزددې تعلق د ﴿أَجۡنِحَة﴾ سره دې. ای یزیدفی خلق الاجنحة للملائکة مایشاء (روح) چې عدددوزروپه دوه درې، څلورکښې ندې منحصر بلکه د بعضو

فرښتو وزرې زياتي دي. لکه دَ جبرئيل عليه السلام په باره کښې په حديث کښې دي رأيت جبرئيل عليه السلام عند سدرة المنتهیٰ وله ستة مائة جناح. اودَاسرافيل عليه السلام باره کښې دي له اثناعشرالف جناح.بعض مفسرين لکه قتاده رحمه الله وائی چې دَ زيادت فی الخلق معنیٰ عامه دَه.دفرښتووزروته هم شامله ده.اودَانسانانوپه تخليق کښې دَ خاص خاص صفتونوزياتوالي ته هم لکه ښه صورت،ښه سيرت.ښه اوازوغيره ته هم شامله ده (روح) ﴿إِنَّ ٱللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ﴾تعليل دې دَماقبل لهذاخپل حاجتونه صرف دَ الله تعالیٰ نه غواړئ

| مَا يَفْتَحِ ٱللَّهُ لِلنَّاسِ مِن رَّحْمَةٍ فَلَا مُمْسِكَ لَهَا ۖ وَمَا يُمْسِكْ |
|---|
| هغه چې کهلاؤ کړي الله تعالی دخلقودپاره څه رحمت نونشته څوک بندوونکي هغې لره.اوهغه چې بندکړي. |
| فَلَا مُرْسِلَ لَهُۥ مِنۢ بَعْدِهِۦ ۚ وَهُوَ ٱلْعَزِيزُ ٱلْحَكِيمُ ۝٢ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ ٱذْكُرُوا۟ نِعْمَتَ ٱللَّهِ |
| بيانشته آزادوونکې هغې لره ماسوادَالله تعالیٰ نه.اوالله تعالیٰ غالب دې حکمت والادې اې خلقو يادکړئ نعمت دَالله تعالیٰ |
| عَلَيْكُمْ ۚ هَلْ مِنْ خَٰلِقٍ غَيْرُ ٱللَّهِ يَرْزُقُكُم مِّنَ ٱلسَّمَآءِ وَٱلْأَرْضِ ۚ |
| په تاسوباندې. آياشته دې څوک خالق غيردَالله تعالیٰ نه چې رزق درکړي تاسوته دَاسمان نه اودَزمکې نه |
| لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ۖ فَأَنَّىٰ تُؤْفَكُونَ ۝٣ |
| نيشته دې لايق دَعبادت بل څوک مګرالله تعالیٰ دې،نوکوم طرف ته اړولې کيږئ تاسو. |

﴿مَّا يَفْتَحِ ٱللَّهُ لِلنَّاسِ مِن رَّحْمَةٍ﴾دادويم عقلي دليل دې په توحيدباندې.چې ورنکې ذات هم هغه دې هغه که په چا دَ نعمت او رحمت دروازې کولاوی کړې نو څوک يې بندونکې نشته او منع کونکې هم هغه دې نو که په چاد رحمت دروازې بندې کړی.نو څوک ئې خلاصونکې نشته. ورکونکې هم هغه دې،منع کونکې هم هغه دې،بل څوک نشته.هغه په هر څه قادراوهرکار کښې حکمت او مصلحت پنهان دې.

﴿مِن رَّحْمَةٍ﴾نکري ذکرکولوکښې اشاره ده عموم ته،چې پکښې دنياوي اخروي ټول نعمتونه داخل دي.لکه ارسال دَرُسل.ايمان،علم،عمل صالح کول،وغيره اودغه شان دنيوي نعمتونه لکه وسعت دَرزق.صحت،عافيت،امن،خوشحالي،وغيره اودغه شان په﴿وَمَا يُمْسِكْ﴾کښې هم

عموم دي ﴿فَلَا مُمْسِكَ لَهَا﴾ كښې ضمير راجع دې رحمة ته ﴿فَلَا مُرْسِلَ لَهُ﴾ كښې ضمير ما ته راجع دې ﴿مِن بَعْدِهِ﴾ اي من دونه ضمير مجرور الله ﷻ ته راجع دې. يعنى الله ﷻ نه ماسوا بل څوک دَ هغې په كولاولو قادر ندې. "بعد" دون په معنى كښې متعدد آيتونو كښې راغليدې. لكه فمن يهديه من بعد الله او يا ضمير مجرور امساک ته راجع دې چې فعل په ضمن كښې مذكوردې اي:بعد الامساک يعنى بندولونه نه ورستو څوک خلاصولو والا نشته. مغيرهؓ نه روايت دې چې حضورﷺ به چې كله دَمونځ نه فارغه شونوداكلمات به ئې ونيل اللّهم لامانع لمااعطيتَ ولامعطي لمامنعتَ ولاينفع ذاالجدّ منك الجد(ابن كثير). حضرت عامربن قيسؓ فرمائى چې كله زه سهارداخلورآياتونه تلاوت كړم نوماته دافكرنه وي چې سهاربه څه كيږي اونه مابنام دافكروي.(١)مايفتح الله للنّاس من رحمةٍ(٢)ان يمسك الله بضرّ فلاكاشف له الاّ هو(يونس: ١٠٧)
(٣)سيجعل الله بعدَعسرٍيسراً(٤) ومامن دابةٍ في الارض الاّعلى الله رزقها (هود:٦) روح المعاني.

﴿وَهُوَ ٱلْعَزِيزُ﴾ الله ﷻ غالب اوقادردې په هرڅه اوپه ارسال دَرحمة اوامساك باندې.
﴿ٱلْحَكِيمُ﴾ څه چې كوي په هغې كښې حكمت اومصلحت وي.

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ ٱذْكُرُوا۟ نِعْمَتَ ٱللَّهِ عَلَيْكُمْ﴾ ماقبل كښې ټولو مخلوقاتو باندې عمومي رحمت ذكرلو نه پس اوس خصوصى رحمت ذكر كيږي او هرا نسان ته دعوت فكر دې چې الله ﷻ وربانديې كوم احسانات او نعمتونه كړي دى،هغې باندې دې لګ غوراوكړي،﴿ اذكروا﴾ذكر نه مراد مطلق ذكر دې،قلبا لسانا او اعضاوؤ جوارحو سره،يعنى غووفكر اوكړي، چې دا نعمتونه د كوم خائى نه راغليدى او دَ الله ﷻ په وحدانيت ايمان روا ړئ،په ژبه ئې اقرار اوكړئ اوبيا ئې په اعضاوجوارحو سره شكر ادا كړئ،

﴿هَلْ مِنْ خَٰلِقٍ غَيْرُ ٱللَّهِ﴾ توحيد طرف ته دعوت فكر نه بعد اوس دريم دليل عقلى ذكر كيږي په توحيد .من زائد دې لپاره دَتاكيد يعنى غور وفكر كولو نه بعد تاسو خپله په انصاف سره اووايئ چې آيا الله ﷻ نه ماسوا خو بل څوک خالق شته ،چه چې ماده اوروح دواړه پيدا كړي؟ ﴿يَرْزُقُكُم﴾ آيا الله ﷻ نه ماسوابل څوک شته چه رزق دركړي؟ ﴿مِّنَ ٱلسَّمَآءِ وَٱلْأَرْضِ﴾ دې كښې اشاره ده دَ رزق متعدد مصادروته،يعنى بعض سماويه دى.لكه باران ،نمر، سپوږمۍ،

شو، اوبعض زمینی دی لکه غله وغیره شوه

﴿لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ﴾ثمره اونتیجه ده دَماقبل یعنی کله چه فاطر صرف الله ﷻ دې خالق هم صرف هغې دې،رازق هم صرف هغه نودینه داثابته شوه چې دالله ﷻ نه علاوه بل څوك دَعبادت لائق نشته دې.کارسازحاجت رواهم صرف هغه دې﴿فَأَنَّىٰ تُؤْفَكُونَ﴾زجردې مشرکانوته چې دومره دلائلوباوجودولې دَتوحیدنه انکارکوي:ای من این تصرفون عن توحیده مع اقرارکم بانه الخالق الرازق(خطیب).

وَإِن يُكَذِّبُوكَ فَقَدْ كُذِّبَتْ رُسُلٌ مِّن قَبْلِكَ ۚ وَإِلَى اللَّهِ

اوکه دوئ تاته دروغژن وائی نومه خفه کیږه په تحقیق دروغژن ویلی شویدي ډیررسولانوته ستانه مخکښې.اوخاص الله ﷻ ته

تُرْجَعُ الْأُمُورُ ﴿٤﴾ يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّ وَعْدَ اللَّهِ حَقٌّ ۖ فَلَا تَغُرَّنَّكُمُ الْحَيَاةُ الدُّنْيَا ۖ

گرځولي شی ټول کارونه.اې خلقو!بیشکه وعده دَ الله ﷻ دقیامت حقه ده نودهوکه دې نکړي تاسو ژونددنیا.

وَلَا يَغُرَّنَّكُم بِاللَّهِ الْغَرُورُ ﴿٥﴾ إِنَّ الشَّيْطَانَ لَكُمْ عَدُوٌّ فَاتَّخِذُوهُ عَدُوًّا ۚ

اونه دې د هوکه کړي تاسو په الله ﷻ باندې دهوکه باز(شیطان).بیشکه شیطان ستاسودُشمن دې نوجوړ کړئ هغه دشمن.

إِنَّمَا يَدْعُو حِزْبَهُ لِيَكُونُوا مِنْ أَصْحَابِ السَّعِيرِ ﴿٦﴾

بیشکه دې دعوت ورکوي دلې خپلې ته،چې شي دوئ دَاور والؤ نه.

﴿وَإِن يُكَذِّبُوكَ فَقَدْ كُذِّبَتْ﴾داتسلي ده حضورﷺ ته په عموم بلوئ سره اووعده ده حضورﷺ سره اووعید دې دشمنانوته یعنی ته ددې کفارو په تکذیب مه پریشانه کیږه دا معامله صرف یواځی ستاسره نده،بلکه ستانه مخکښې چې څومره پیغمبران راغلیدې نو دَ هغوئ هم داحال وو،حتی چې بعضو باندې پوره قوم کښې صرف یو اودوه کسانو ایمان راوړې وو ﴿رُسُلٌ﴾ په نکرې سره ذکرکولوکښې تعظیم اوکثرت ته اشاره ده.

﴿وَإِلَى اللَّهِ تُرْجَعُ الْأُمُورُ﴾او دا کافران دې بی غمه کیږی نه،کائنات کښې چې څه کیږی او څوك چې څه کوی ټولو هغې رجعه الله ﷻ ته کیږی نو د ستاسو اعمالوخبرهم الله ﷻ ته رسی.الله ﷻ به درله دنیا اوآخرت دواړوکښې دَهغې سزادرکوی.﴿الامور﴾جمع دَامرده اومرادتری

سؤون او چارې دی. دنیوی وی او که اخروی. تکوینی وی او که تشریعی

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ إِنَّ وَعۡدَ ٱللَّهِ حَقّٞ﴾ دا نحوینه اخروي دی. چې ټول خلقو ته ... متوجه کړی دي. د دنیا په عارضي ژوندمه مغروره کیږئ. او خپل ازلي دښمن موږ دهوکه نکړئ نه ... د الله ﷻ کښ د ﴿وَعۡدَ ٱللَّهِ﴾ نه مراد وعده د قیامت ده او د حساب کتاب ده.

﴿فَلَا تَغُرَّنَّكُمُ ٱلۡحَيَوٰةُ ٱلدُّنۡيَا﴾ دینه مراد د دنیا زندګی چمک دمک رنګ ورونق. د شهرت او مسرولی محبت وغیره دي. چې دا انسان پدې فانی ژوند دهوکه کړی او آخرت ورله برباد کړی

﴿وَلَا يَغُرَّنَّكُم بِٱللَّهِ ٱلۡغَرُورُ﴾ غرور بفتح الغين صيغه صفت ده ... یعنی انتهائي دهوکه باز او بضم الميم مصدر دې. او ﴿بِٱللَّهِ﴾ دې نه مراد هغه ټول احکام او افعال دی چې هغی حکم الله ﷻ انسان ته ورکړی دې او هغه ټول حقوق الهيه دي چې انسان سره متعلق دی. او دهوکه ورکول دا دی چې مختلفو حيلو اوتدبيرونو سره ني دا الله ﷻ د اطاعت نه اوګرځوی. کله ورله د الله ﷻ رحمت او مغفرت ذریعه جوکړی کړی. چې الله ﷻ غفوررحیم دی. خیر دی عبادت مه کوه. معاف به دې کړی. اوکله ورله د الله ﷻ حلم او بردباري ذريعه جوړه کړی. او دا ورته وائی چې کچرته پدې کښ څه نقصان وي نو تراوسه پوري به درته رسيدلي وی. کله ريا کاري، کله عجب، کله تکبر غرض انتهائی دهوکه باز دې هزار دامونه دی ورسره، ډیر په احتیاط چلیږئ

﴿إِنَّ ٱلشَّيۡطَٰنَ لَكُمۡ عَدُوّٞ فَٱتَّخِذُوهُ عَدُوًّا﴾ ماقبل تفصيل ذكر كيږی لف نشر غير مرتب طريقې سره پديكښ د انسان سره د شيطان د دشمنئ بيان دې چې شيطان ستاسو ازلي قديمي دشمن دي. دې خپل دشمن اوګڼئ. مخالفت ئی کوئ اصل دشمن اومخالفت ورسره دادې چې د توحيد او سنت لاره اختيار کړئ. ﴿لَكُمۡ عَدُوّٞ﴾ تقديم د ﴿لَكُمۡ﴾ د اهتمام پوجه دې. ﴿إِنَّمَا يَدۡعُواْ حِزۡبَهُۥ لِيَكُونُواْ مِنۡ أَصۡحَٰبِ ٱلسَّعِيرِ﴾ ديکښ د شيطان دشمنئ کيفيت بيان دې. چې د انسان له معصيت دعوت ورکوی. تردې چې ئې خپل ملګرې کړې، نو دخان سرئی جهنم ته بوځی،

﴿ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ لَهُمۡ عَذَابٞ شَدِيدٞۖ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ﴾

هغه خلق چې کفرئی کړیدې ددوئ دپاره عذاب سخت دې، اوهغه خلق چې ایمان ئی راوړی دې او عملونه کوي نيک

| لَهُمْ مَّغْفِرَةٌ وَّاَجْرٌ كَبِيْرٌ ۞ اَفَمَنْ زُيِّنَ لَهٗ سُوْٓءُ عَمَلِهٖ فَرَاٰهُ حَسَنًا |
| --- |
| ددوئ دپاره بخنه اوثواب لوئ دي آياهغه كس چي ښائسته كړي شوي وي ده ته بدعمل دده نودي گمان كوي به هغې د ده عمل |
| فَاِنَّ اللّٰهَ يُضِلُّ مَنْ يَّشَآءُ وَ يَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ فَلَا تَذْهَبْ نَفْسُكَ |
| پس بيشكه الله ﷻ گمراه كوي هغه څوك چي ئې خوښه شي اوهدايت وركوي هغه چاته چي ئې خوښه شي، پس نه دي ځي نفس ستا |
| عَلَيْهِمْ حَسَرٰتٍ اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌ بِمَا يَصْنَعُوْنَ ۞ |
| په دوئ باندي دوجې دافسوسونونه،بيشكه الله ﷻ عالم دې په هغه كارونوچې دوئ ئې كوي |

﴿اَلَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيْدٌ﴾تخويف اخروي دې كافرانوته چي دوئ ته به دشيطان سره دوستئ پوجه په آخرت كښ سخت عذاب وركولې كيږي،﴿وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا﴾بشارت اخروي دې مؤمنانوته،چي دوئ دشيطان سره دشمني اوكړه نوپه آخرت كښ به ورنه اجروركولې كيږي﴿مَّغْفِرَةٌ﴾مرتب دې په ايمان او﴿وَّاَجْرٌ كَبِيْرٌ﴾مرتب دې په عمل صالح(كبير)

﴿اَفَمَنْ زُيِّنَ لَهٗ سُوْٓءُ عَمَلِهٖ﴾ دا تسلي ده نبي كريم ﷺ ته،چي شيطان دشمني واضح كيدلونه بعد هم يوكس دَ شيطان په لاره ځئ او خپل دَهلاكت اسباب ځان لپاره دَنجات ذريعه گنړي او دَهدايت ورسره هډو طلب نه وي،نوته داسې كس ته مه پريشانه كيږه.الله ﷻ ښه خبردې چي دې څه كوي ﴿من﴾اسم موصول محلا مرفوع مبتدا دې﴿زُيِّنَ لَهٗ﴾جمله روله صله ده.خبرئې محذوف دې چې هغه افانت تهديه دې،استفهام انكاري دې،يعني ته هغه له هدايت نشې وركولې،دا آيت دَ سورت الزمر دې آيت په شان دې ﴿افمن حق عليه كلمة العذاب افانت تنقذ من في النار﴾[الزمر ١٩]﴿فَاِنَّ اللّٰهَ يُضِلُّ مَنْ يَّشَآءُ﴾ فاسببيه ده يعني هدايت اوضلالت دَ الله ﷻ په لاس كښ دى چاكښ چې دَهدايت طلب وى نو هدايت ورله وركړى او چاكښ چې طلب نه وى نو نه ئې وركوى اودوئ كښ دَ هدايت طلب نشته نو څنگه ورله هدايت وركړى.﴿فَلَا تَذْهَبْ نَفْسُكَ عَلَيْهِمْ﴾تفريع ده په ماقبل،چي يوكس دَشيطان په لارځي اودَهدايت طلبگار هم نه وى نو ته هم هغه ته مه پريشانه كيږه ﴿حَسَرٰتٍ﴾مفعول له دې دَ"لاتذهب"فعل لپاره.جمع ده دَ"حسرة"، غم او افسوس ته وئيلې كيږي،جمع روارلو كښ يو خوا دَ نبي ﷺ ديروار مختلفو پريشانيو طرف

ته اشاره ده او بل خوادې طرف ته اشاره ده چې دوئ ګنړ شمیر افعال داسې دي چې هغه قابل حسرت دي .نوته به په کوم کوم حسرت او افسوس کوی داسې خوپه افسوسونو ځان هلاک کړی﴿إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ بِمَا يَصْنَعُونَ ﴾دازجر تخويف دي يعنی الله ﷻ ښه خبر دې د دوئ په کارونه.چې شيطان ئی دشمن دې هغه سر ملګرتيا کوی او الله ﷻ ئې خالق رازق دې هدايت لپاره ورته رسولان او احکامات راليږی،دوئ دهغې تکذيب کوی.

| |
|---|
| وَاللَّهُ الَّذِي أَرْسَلَ الرِّيَاحَ فَتُثِيرُ سَحَابًا فَسُقْنَاهُ إِلَىٰ بَلَدٍ |
| اوالله ﷻ هغه ذات دې چې راليږي هواګانې نوراپورته کړي وريځ نوروانه کړومونږهغې لره په طرف ديوداسې کلي |
| مَيِّتٍ فَأَحْيَيْنَا بِهِ الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا ۚ كَذَٰلِكَ |
| چې مړه وي خاوره دهغې نوژوندئ کړومونږپدې سره زمکه روستودهغې دمړېدو(اوچېدو)نه.دغه شان(ستاسو) |
| النُّشُورُ ﴿٩﴾ مَنْ كَانَ يُرِيدُ الْعِزَّةَ فَلِلَّهِ الْعِزَّةُ جَمِيعًا ۚ إِلَيْهِ يَصْعَدُ الْكَلِمُ الطَّيِّبُ |
| دوباره پيداکول دي. څوک چې غواړي عزت نوالله ﷻ سره دې عزت ټول.خاص الله ﷻ ته خيژي کلمې پاکې |
| وَالْعَمَلُ الصَّالِحُ يَرْفَعُهُ ۚ وَالَّذِينَ يَمْكُرُونَ السَّيِّئَاتِ لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيدٌ ۖ |
| اوعمل نيک . پورته کوي الله ﷻ هغه،اوهغه خلق چې پټ تدبيرونه جوړوي دبدوکارونو ددوئ دپاره عذاب سخت دې. |
| وَمَكْرُ أُولَٰئِكَ هُوَ يَبُورُ ﴿١٠﴾ |
| اوتدبير ددوئ هغه به ناکامه کيږي. |

﴿وَاللَّهُ الَّذِي أَرْسَلَ الرِّيَاحَ ﴾داخلورم دليل عقلي دې په توحيد،اوپه بعث بعدالموت يعنی شيطان په لمسون او دهوکه کښ مه راځی،او اوخوګورئ د الله ﷻ په وحدانيت او په بعث بعدالموت څومره واضح دلائل موجود دی. چې د الله ﷻ په حکم سره هواراشي پدې سره وريځي راشي،باران اووريږي،وچه زمکه ورسره شنه شي نوداټول انقلابات د الله ﷻ په اختيارسره کيږي نولائق دعبادت هم صرف هغه دې،اودغه رنګه چې الله ﷻ لکه څرنګه په باران سره مړه ځمکه راژوندئ کړي نومړه انسانان به هم دقيامت په ورځ راژوندی کړي،

د﴿بَلَدٍ مَيِّتٍ﴾نه مراد شاړه اووچه زمکه ده،چې بوټي پکښ نه وي،﴿فَأَحْيَيْنَا بِهِ الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا ﴾د

ژوندي کولو نه مراد زرغونه کول او شنه کول دي.

﴿كَذَٰلِكَ ٱلنُّشُورُ﴾ په دېکښې اثبات دَحشر او نشر دي.اووجه دَتشبيه په څووجوهوسره ده (۱)لکه څنګه چې الله جَلَّ جَلَالُهُ اوچې زمکه په باران رحمت سره زرغونه کړي نو دغه شان به دَقيامت په ورځ مړه بدنونه هم راژوندي کړي.(۲)لکه څنګه چې الله جَلَّ جَلَالُهُ دَهواګانوپه ذريعه دَ وريځو ټکړي راجمع کړي نو دغه شان به دَانسانانو دَاعضاؤټکړي ټکړي هم راجمع کړي (۳)لکه څنګه چې الله جَلَّ جَلَالُهُ هواګاني اوچې زمکي ته راليږي نو دغه شان به الله جَلَّ جَلَالُهُ دَقيامت په ورځ دَ انسانانو بدنونو ته روحونه دَهغوئ رااوليږي اوژوندي به ئې کړي.(۴)څنګه چې زمکه په باران سره ژوندئ کيږي نو دهغه شان قيامت په روځ به هم الله جَلَّ جَلَالُهُ باران اوکړي او مړه به ژوندی شی دَمسلم په حديث مرفوع کښې دي چې الله جَلَّ جَلَالُهُ به دَپرخي په شان باران اوکړي نو دَخلقوبدنونه به ورنه پيداشي

﴿مَن كَانَ يُرِيدُ ٱلْعِزَّةَ﴾دَ شيطان دشمنئ او دهوکې تفصيلی ذکر نه بعداوس دَدنيا زندګئ دهوکې او دهغې نه بچ کيدلوبيان دې،دَدنيا زندګئ دهوکې حاصل اوخلاصه حصول دَ عزت دي څکه چې انسان ته مال کښې عزت ښکاری نوهغه دَ مال په باره کښې دَ الله جَلَّ جَلَالُهُ احکاماتو پرواه نه کوی،رياست او سردارئ کښې ورته عزت ښکاری نو دهغې دَ وجهی نه اسلام نه مخ ګرځوی .دنيا چمک دمک اورنګ رنګينی کښې روته عزت ښکاري نو الله جَلَّ جَلَالُهُ او قيامت نه غافله شی او هغې کښې مشغوله وی.الحاصل چې څومره اسباب دَ دهوکې دی هغې رجعه عزت ته کيږی،چې انسان ته په هغې کښې عزت ښکاری اوهغې په مقابله کښې اسلام اوالله جَلَّ جَلَالُهُ احکاماتونه مخ ګرځوی،نو الله جَلَّ جَلَالُهُ فرمائی چې داهسې دنظر دهوکه ده،حقيقی عزت الله جَلَّ جَلَالُهُ سره دي دَهغه نه طلب کړئ،اودَهغې طريقه داده چې په الله جَلَّ جَلَالُهُ ايمان راوړي او نيک عملونه اوکړئ .﴿فَلِلَّهِ ٱلْعِزَّةُ﴾قائمقام دَجزاء محذوفی.او علت ورله دي.أي فليطلبها عند الله ،لأن العزة كلها لله، ﴿جَمِيعًا﴾ نه مراددَدنيااوآخرت عزت دې،والمرادعزة الدنياوالاخرة(روح)ابن کثير رَحِمَهُ اللهُ دَانس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت نقل کړيدې چې حضور ﷺ فرمائی چې:انّ ربّكم يقولُ كلّ يومٍ اناالعزيزُفمن ارادَعزّالدارين فليطع العزيز.يعني الله جَلَّ جَلَالُهُ روزانه دافرمائی چې عزت ورکولوالاځه يمه نوڅوک چې دَدنيااودَاخرت دَعزت طلب ګاروي نوځمادې اطاعت کوي.﴿إِلَيْهِ يَصْعَدُ ٱلْكَلِمُ ٱلطَّيِّبُ﴾دېکښې دَعزت حصول طريقه بيانيږی چې اطاعت دې دالله جَلَّ جَلَالُهُ په ټولو طاعاتوکښې.او طاعات په دوه

قسمه دی (۱) قوليه (۲) فعليه دطاعاتو قوليؤو ذكر په اليه يصعد كښ اوشو او فعليؤو ذكر په والعمل الصالح يرفعه كښ اوشو. ﴿اليه﴾ كښ ضمير مجرور راجع دي الله ﷻ او ﴿ٱلْكَلِمُ ٱلطَّيِّبُ﴾ نه مراد هغه ټول نيک اموردی چې هغې تعلق دَ قول سره وی لکه کلمه طيبه شوه، تسبيح او تحميد شو، ذكرواذكار شول، دعاګانې شوی، وعظ ونصيحت اودرس وتدريس شو. او ﴿العمل الصالح﴾ نه مراد هغه ټول طاعات دی چې هغې تعلق د فعل سره دې ﴿يرفعه﴾ كښ ضمير مرفوع الله ﷻ ته او ضمير منصوب عمل صالح ته راجع دې، يعنی الله ﷻ ته پورته خيږی پاکې کلمې او هغه اوچتوی نيک عمل. صعود ونيلې کيږی "اذهاب في مكان عال" ته يعنی اوچت ځائ ته تلل، او رفع ونيلې کيږی "نقل الشئ من مكان الى اعلى منه" يعنی دَيو ځائ نه بل اوچت ځائ ته نقل كول، نورفع او صعود دلته خپلې معنى كښ نشی اغستې كيدې، ځکه چې دادلالت کوی په جهت اومکان. او الله ﷻ دَ جهت اومکان نه منزه دې، نو دلته ترينه مراد يارفع اوصعود كما يليق بشانه دې، اويا داکنايه دَ اعمالودَقبولولو او په هغې رضاکيدلونه ځکه چې رضااو قبوليت دوه صورته دی، يوداچې ته خپله ځانه بادشاه ته لاړ شی او هغه خوښ شی اومقام ومرتبه درله درکړی، نو صعود کښ ددې صورت ذکر دې، اودويم صورت چې هغه دَاول نه زيات افضل دې دا دې چې بادشاه تاطلب کړی اومقام ومرتبه درله درکړی اويرفعه كښ ددې صورت ذکردې، نودينه معلومه شوه چې طاعات فعليه من حيث المجموع افضل دی په طاعاتو قوليؤو باندې من حيث المجموع [التحرير والتنوير]

﴿وَٱلْعَمَلُ ٱلصَّٰلِحُ يَرْفَعُهُۥ﴾ کښ مفسرينو څو نور احتماله هم ذکر کړيدی: (۱) ﴿يرفع﴾ کښ ضميردَ فاعل ﴿ٱلْكَلِمُ ٱلطَّيِّبُ﴾ ته راجع دې اوضميردَمفعول عملِ صالح ته راجع دې اى الكلم الطيب برفع العمل الصالح (كبير، روح) يعني اوچتوي داکلمې عملِ صالح لره، يعني دَايمان اودَ ذکرپه ذريعې سره نيك عمل قبليږي (۲) ضميردَفاعل عملِ صالح ته راجع دې اوضميردَمفعول صاحب دَعمل ته، اودَرفعت نه مرادعزت دې، يعني عمل صالح انسان ته عزت اواوچت والې ورکوي،

(۳) ضميردَفاعل عمل صالح ته راجع دی اوضميردَمفعول ﴿الكلم الطيب﴾ ته راجع دې اى والعمل الصالح برفع الكلم الطيب (روح) نومطلب دادې چې دَانسان عمل دَده دَګفتارلپاره ميزان دې، که چرته ګفتاراوکردارکښ نی موافقت وؤنوبيابه دَقبليدولائق وي اوکه نه وؤ نو بيابه دَ ګفتار

هیڅ اعتبار نه وي (زاد المسیر)

﴿وَٱلَّذِينَ يَمۡكُرُونَ ٱلسَّيِّـَٔاتِ﴾ تخویف اخروي اوزجردي. چې کوم خلق اسلام ته غاړه ایخودلو په ځائی دَدین او اسلام ختمولو او دَحضور ﷺ خلاف منصوبي جوړه وي هغوئ دپاره سخته سزا مقرر ده. او دَدوئ هر منصوبه به ناکامه وي، دَ﴿ٱلسَّيِّـَٔاتِ﴾ مفعول مطلق دې موصوف محذوف اعتبار سره اي المكرات السيئات ﴿وَمَكۡرُ أُوْلَٰٓئِكَ هُوَ يَبُورُ﴾ "یبور" دَ "بوار" نه دې "بوار" کسادبازاری ته وئیلې کیږی یعنی یو انسان په کاروبار لویه سرمایه اولګوی. خوبیائی کاروبار اونه چلیږی اوبالکل ټپ شی نو دیته بوار وئیلی کیږی، نو الله ﷻ فرمائی چې دَدوئ مثال به هم دَ دغه سې سړې وی دوئ څومره هم منصوبې جوړې کړې. اوڅومره هم مالونه پرې خرچ کړی. آخر به دا ټولی شنډې اوناکامه شي اخروی اوحقیقي عزت خو څه کوې ظاهری عزت به نی هم په لاس رانشی ﴿اولئک﴾ مشارالیه کفار دی. اواسم اشاره بعید دَنفرت اظهار دلپاره راوړلې شوې ده.

| |
|---|
| وَٱللَّهُ خَلَقَكُم مِّن تُرَابٍ ثُمَّ مِن نُّطۡفَةٍ ثُمَّ جَعَلَكُمۡ أَزۡوَٰجًاۚ وَمَا تَحۡمِلُ مِنۡ أُنثَىٰ |
| اوالله پاك پیداکړي یئ تاسو دَخاوري نه بیائی دَنطفې نه بیائی ګرځولې یئ تاسو جوړې. اونه حامله کیږي یوه ښځه |
| وَلَا تَضَعُ إِلَّا بِعِلۡمِهِۦۚ وَمَا يُعَمَّرُ مِن مُّعَمَّرٍ وَلَا يُنقَصُ |
| اونه وضع دَحمل کوي مګرداپه علم دَالله سره وي. اوعمرنشي ورکولې خاوندعمرته. اونه کموالي کیدې شي |
| مِنۡ عُمُرِهِۦٓ إِلَّا فِي كِتَٰبٍۚ إِنَّ ذَٰلِكَ عَلَى ٱللَّهِ يَسِيرٞ ۝ |
| دَهغه دعمرنه مګرپه کتاب کښې لیکلی شوی دي. بیشکه داکار الله ﷻ ته اسان دي |

﴿وَٱللَّهُ خَلَقَكُم مِّن تُرَابٍ﴾ داپنځم دلیل عقلي دې په توحید چې الله ﷻ ستاسو جداعلیٰ حضرت ادم ﷺ دَخاوري نه پیدا کړو، تاسوئی دَاوبو دَیوې قطري نه پیدا کړئ بعض مذکر بعض مؤنث. دَاستقرارحمل نه تروضع حمل پوري ټولو مراحلو کښې ئی ستاسو ساتنه اوکړه. بیائی دَخپل مشیت مطابق هریو انسان ته زیات یا کم عمر مقرر کړو، غرض داچې ابتداء نه تر انتهاء پورې تاسو محتاج یئ اوزیرتصرف یئ دَالله ﷻ طبعًا، نو وضعًا ورته هم محتاج شئ صرف دَهغه نه غواړئ دَهغه عبادت کوئ.

﴿ثُمَّ جَعَلَكُمْ أَزْوَاجًا ﴾اى اصنافا،ذكرانا واناثا(روح)لکه بل خاى الله ﷻ فرمائي:اويزوجهم ذكرانا واناثا ﴿وَمَا تَحْمِلُ مِنْ أُنْثَىٰ وَلَا تَضَعُ إِلَّا بِعِلْمِهِ﴾مراد دَحمل اووضع حمل نه ټول حالات دَحمل اووضع دحمل دي.مثلاً مقدار دَحمل،او دَوضع وخت،شكل صورت دَبچي.نيك بخته.بدبخته وغيره ﴿وَمَا يُعَمَّرُ مِنْ مُعَمَّرٍ﴾يعني نه اوږده وي الله ﷻ عمر دَيو معمرلره.﴿وَلَا يُنْقَصُ مِنْ عُمُرِهِ﴾ دضمير مرجع (١)يابل معمر دې،كقولهم،عندي درهم ونصفه اى نصف درهم آخر نو مطلب دادې چې الله ﷻ چاته اوږد عمرورکوي نوهغه هم دَمخکني نه ليکلي شوې وي.اوچې چاته کم عمرورکوي ابتداءً نوهغه هم ليکلې شوې وي،يعني دَهرچاچې څومره عمروي هغه دَاول نه ليکلي شوې وي،دې صورت کښې دَ﴿وَمَا يُعَمَّرُ مِنْ مُعَمَّرٍ﴾او دَ﴿وَلَا يُنْقَصُ مِنْ عُمُرِهِ﴾مصداق جداجدا کسان دي (٢)بعض حضرات وائي دَدواړو مصداق يو کس هم کيدې شي.دې صورت کښې دَ﴿مِنْ عُمُرِهِ﴾ مرجع معمَّرمذكوردې اومطلب دادې چې دَهرچادَمقرره عمرنه څومره ووخت کميږي.داهم مكتوب كيږي،چې يوه ورځ تيريږي نودَيوي ورځي کم والې،دوه ورځي تيريږي نودَ دوؤ ورځو کموالې ليکلي کيږي،بلکه دَهرې ساه اغستنوسره کموالې راځي،لکه شاعر وائي:

حياتك انفاسٌ تُعدُّ فكلمّا　مضىٰ نفسٌ منهاانتقضت به جزء

(٣)بعض مفسرين وائي چې مصداق يو کس دې اوپه عمرکښې کمي اوبيشي دَتقدير معلق په اعتبارسره دي،لکه په بعضِ نيك عملونو لکه صدقه،صله رحمي وغيره سره په عمرکښې زيات والې راځي.په يوحديث کښې دي:من سرّه ان يُبسطَ له في رزقه وينسأ في اثره فليصل رحمهُ(بخاري،مسلم) يعني چې کوم سړې غواړي چې دَده په رزق کښې فراخي اوپه عمرکښې زياتوالې راشي نوهغه ته پکار دی چې صله رحمي داوکړي

**فائده**:په ظاهردَدې حديث نه معلوميږي چې په صله رحمي وغيرد نيك عمل سره په عمرکښې زياتوالې راځي.دَدې وجي نه بعضِ علماؤ داحديث اودې په شان حديثونو حمل په تقديرمعلق باندې کړيدې.دَدې تفصيل زمونږدې تفسيرپه دريم جلدصفحه(٤٤٤)کښې دَسورة الرعد آيت (٣٩)لاندې تيرشويدې هلته ئې اوګورئ،بعضِ علماء وائي چې دَدې مطلب په يوبل حديث کښې واضح شويدې چې حضرت ابودرداء ﷺ فرمائي چې مونږ دَدې مذكورحديث ذكر حضور ﷺ ته اوکړو.نوحضور ﷺ اوفرمائيل چې عمرخوالله ﷻ په نيزمقرر.مقدردې،چې کله نيته پوره شي نوبياهيڅ چاته ذره برابرهم مهلت نه ورکولې کيږي،بلکه په عمرکښې دَزياتوالي

نه مراد دادي چې الله جل جلاله به هغه ته نيك اولاد ورکړي چې هغوئ به ورته دمرګ نه پس دعاګاني کوي.نو دمرګ نه ورستوبه هم ده ته هغه فائده ميلاويږي کومه چې په ژوندکښې ورته ميلاويدله.نو دعمردزياتوالي نه مراددعمربرکت زياتيدل دي،والله اعلم.﴿ إِلَّا فِي كِتَٰبٍ ﴾ مراد ورنه لوح محفوظ دي﴿إِنَّ ذَٰلِكَ ﴾يعني دازيادت اوتنقيص دعمراودغه شان پيدا کول دانسان د نطفې نه الله جل جلاله ته ډير آسان دي

وَمَا يَسْتَوِي الْبَحْرَانِ ۖ هَٰذَا عَذْبٌ فُرَاتٌ سَائِغٌ شَرَابُهُ وَهَٰذَا مِلْحٌ أُجَاجٌ ۖ

اوندي برابردادوه دريابونه.دايوخوږدي تنده ماتونکي دي تيريدونکي دی په مرئ کښې اوبه دده.اودابل ترخوډي تريخ دي

وَمِن كُلٍّ تَأْكُلُونَ لَحْمًا طَرِيًّا وَتَسْتَخْرِجُونَ حِلْيَةً تَلْبَسُونَهَا ۖ وَتَرَى الْفُلْكَ

اوده‌ريونه خورئ تاسوغوښه تازه(دمهي)اوراوباسئ تاسوملغرې چې اغوندئ تاسوهغه.اووينې ته بيړئ

فِيهِ مَوَاخِرَ لِتَبْتَغُوا مِن فَضْلِهِ وَلَعَلَّكُمْ

په هغې کښې سيرونکي اوبوله دپاره ددې چې طلب کړئ تاسو فضل د الله جل جلاله نه.اودپاره ددې چې تاسو

تَشْكُرُونَ ﴿١٢﴾ يُولِجُ اللَّيْلَ فِي النَّهَارِ وَيُولِجُ النَّهَارَ فِي اللَّيْلِ وَسَخَّرَ

شکراوکړئ داخلوي الله جل جلاله شپه په ورځې کښې اوداخلوي ورځ په شپه کښې.اوپه خدمت کښې ئې لګولي دي

الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ كُلٌّ يَجْرِي لِأَجَلٍ مُّسَمًّى ۚ ذَٰلِكُمُ اللَّهُ رَبُّكُمْ لَهُ الْمُلْكُ ۚ

نمراوسپوږمۍ. داټول ګرځي دنيتي مقررې پورې،دغه الله جل جلاله رب دې ستاسو،ده لره بادشاهي ده،

وَالَّذِينَ تَدْعُونَ مِن دُونِهِ مَا يَمْلِكُونَ مِن قِطْمِيرٍ ﴿١٣﴾

اوهغه معبودان باطله چې تاسوورته سوالونه کوئ ماسوا د الله جل جلاله نه نوندي مالکان دوئ دپټ دهډوکي دکجورې

إِن تَدْعُوهُمْ لَا يَسْمَعُوا دُعَاءَكُمْ وَلَوْ سَمِعُوا مَا اسْتَجَابُوا لَكُمْ ۖ وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ

کچرې تاسوورته سوالونه کوئ نه اورې سوال ستاسو .اوبالفرض که واورې نشي قبولې ستاسوسوال اوپه ورځ دقيامت

| يَكْفُرُوْنَ | بِشِرْكِكُمْ ۚ | وَلَا | يُنَبِّئُكَ | مِثْلُ | خَبِيْرٍ ⑭ |
|---|---|---|---|---|---|
| به انكاروكړي | ستاسودشرك | نه،اوخبر به | درنكړي | تاته په شان دَ | خبير ذات (چې الله ﷻ دي) |

﴿وَمَا يَسْتَوِى ٱلْبَحْرَانِ﴾ داشپږم دليل عقلي دې په توحيد .چې داهم دَالله ﷻ دكمال قدرت دليل دې چې دَيوسمندراوبه ئې نهاية خوږې،تنده ماتونكې.هضميداره ګرخولي دي اودبل سمندراوبه ئې تروې،ترخې،ګرخولي دي،حالانكه ماده دَدواړويوه ده.دَدواړونه تاسوته تازه غوښه يعني ماهيان دركوي،جواهرات درته ميلاويږي،او داهغه سمندرې دی چې دې باندی ستاسو تجارت بنياد دې،نو تاسوله ئې په دې كښ كشتی اوجهازونو په ذريعی سره سفرآسان كړيدې ،نودامحض دَالله ﷻ فضل دې،نودهغه شكرادا كوئ اوخپل حاجتونه صرف دَهغه نه غواړئ.﴿هَـٰذَا عَذْبٌ﴾اى طيبٌ،خوږاومزيدار.﴿فُرَاتٌ﴾اى كاسرالعطش يعني تنده ماتونكې. يا پمعنى دَشديدالعذوبة يعني ډيرې زياتې خوږې او مزيدارې﴿سَآئِغٌ شَرَابُهُۥ﴾ اى سهل انحداره يعني په مرئ كښ اسانئ سره تيريدونكى اوبه.﴿وَهَـٰذَا مِلْحٌ﴾مالګينى اوبه.﴿أُجَاجٌ﴾اي مرّ يعنى تريخ ﴿وَمِن كُلٍّ تَأْكُلُونَ لَحْمًا طَرِيًّا﴾ مرادورنه دَمهي غوښه ده اونعبيرورنه په لحم سره اوشواوسه.كا اونه وئيلې شو.نپاره دَدې چې مقصوداړفائده اخستل دَماهي نه صرف اكل دي.بخلاف دَ نورو حيواناتو.او﴿لحما﴾ صفت ﴿طريا﴾ راوړلو كښ تنبيه ده پدې خبرې چې مهى غوښه تازه خوندكوى،غيرتازه كښې هغه خوند نه وى،چې كوم تازه كښ وى.

﴿وَتَسْتَخْرِجُونَ حِلْيَةً تَلْبَسُونَهَا﴾حلية نه مراد لؤلؤ اومرجان دې سورت الرحمن كښ دَ دې تصريح راغلې ده.يخرج منهما اللؤلؤ والمرجان او په صيغه دمذكرسره اشارده ده ديته چې دَملغرو استعمال سړي هم كوليشي په خلاف دَسروزرونه چې بطورزيورصرف دَښځولپاره جائزدي اودَ سړولپاره حرام دي،

دَدې آيت اوسورة رحمن ايت: (يخرج منهمااللؤلؤوالمرجان)نه معلوميږي چې زيورات اوملغرې دَدواړه قسمه سمندرونونه رااوځئ،حالانكه مشهوره داده چې ملغرې وغيره صرف دَمالګين سمندرنه راوځي.خوږواوبوالاسمندركښ ملغري نه وي.دَدې وجې نه بعض علماءدَدې دواړوآياتونوداسي تاويل كړيدې چې دلته﴿وَمِن كُلٍّ﴾ تعلق صرف دَ﴿تَأْكُلُونَ﴾ سره دي.تقديرې

عبارت دارنګه دي((ومن كلٍ تاكلون لحماً طرياً وتستخرجون من البحر الملح حلية))ليكن محققينو ظاهر د قرآن ترجيح وركړيده چې دَدواړه قسمه سمندرونونه رااوخي.البته دومره خبره دَه چې مالګين نه زياتي اودَخوږنه كمي ﴿وَتَرَى ٱلْفُلْكَ فِيهِ﴾اى فى كلٍ منهما﴿مَوَاخِرَ﴾اى شواق الماء اوبولړه شلونكي. دا جمله سورت النحل آيت ۱۴ كښ هم تيره شويده.خو په دې او هغې دوه فرقه دی (۱) هلته ﴿فيه﴾ مؤخراو﴿مواخر﴾ مقدم دې،وترى الفلك مواخر فيه،اودلته برعكس دې. (۲) هلته ﴿لتبتغوا﴾واؤ حرف عطف سره ذكر دې،ولتبتغوا من فضله،او دلته بغير دَ واؤ نه.دې فرق نكته مفسرينو دا ليكلې ده چې دَ دواړو آيتونو مقصود كښ فرق دې.هلته مقصود دَالله ﷻ نعمتونو ذكر او اثبات دې او دلته مقصود دَ الله ﷻ قدرت اوعجيب صنعت اظهاردې. نو "مخر" چونكه مستقل نعمت دې او"فيه" كښ مستقل نعمت ذكر نشته نو دې وجهې نه هلته "مواخر" مقدم كړې شو.او دلته چونكه مقصود دَ الله ﷻ قدرت او صنعت ذكر دې.او دَهغې اندازه دَ ظرف نه لګي چې "بحر" دې، نودى وجهې نه "فيه" مقدم كړيشو يعنى دومره عظيم الشان دَ غرونو پشان لهرونه،اوهرطرف ته اوبه او بس اوبه پديكښ الله ﷻ ستاسوړه كشتئ روانه كړې وى.داهغه لهرونه شلئ.او مخكښ ځى،آيا داسې بل څوك كولې شي ؟؟ هم دې نكتې د وجهى نه هلته "لتبتغوا" واؤ سره ذكر شو ځكه چې ابتغاء دَ رزق مستقل يو نعمت دې.اودلته بغير دَ واؤ نه ذكر شو.((روح المعانى ،التحرير والتنوير))

﴿يُولِجُ ٱلَّيْلَ فِى ٱلنَّهَارِ﴾داووم(۷)دليل عقلي دې په توحيد.چې دَټولو كائناتونظام دَالله ﷻ په قبضه قدرت كښ دې.پدې كښ تصرف كونكې صرف هغه دې.لهذاخپل حاجتونه صرف دَهغه نه غواړئ﴿كُلٌّ يَجْرِى لِأَجَلٍ مُّسَمًّى﴾مقرري نيتې نه مرادورځ دَقيامت ده،يادَنورلپاره كال دې اودَسپوږمئ لپاره مياشته.دغه مضمون مخكښې تيرشويدې مفصلاً

﴿ذَٰلِكُمُ ٱللَّهُ رَبُّكُمْ﴾ داپه تيرشوي دلائلوباندې تفريع اودويم ځل تفصيلي ثمره ذكركيږي ﴿ذَٰلِكُمْ﴾كښ اشاره محسوس بالبصر ته كيږي،نوذات دَالله ﷻ اګرچې پخپله محسوس بالبصرندې ليكن قدرونه ئې چونكه واضح دې نوګوياچې الله ﷻ پخپله واضح اومحسوس دې ﴿وَٱلَّذِينَ تَدْعُونَ﴾اى تدعونهم ﴿مَا يَمْلِكُونَ مِن قِطْمِيرٍ﴾دَ كجهورې هډوكى كښ درې څيزونه وى. فتيل. نقير. او قطمير.اودادرې واړه په قلت كښ مبالغې لپاره راځى.فتيل هغه تارنه

وائی چې دکجهورې هډوکی مینځ لاره کښ وی.نقیر هغه داغ ته وائی چې دَ هډوکی په ظاهر.بالکل مینځ باندې وی،او قطمیر هډوکی نه تاؤ لفافې ته وائی

﴿إِن تَدْعُوهُمْ﴾ضمیریاصرف بتانوته راجع دې یاټولومعبودانوته ملائکوته. جناتوته. عیسیٰ ﷺ ته،﴿لَا يَسْمَعُوا دُعَاءَكُمْ﴾ عدم سماع یادوجې دَدینه ده چې دوئ کښ استعداد دَ اوریدلونشته ځکه چې جمادمحض دی،یاداچه دَخپلوعابدینودَعبادت نه اعراض کونکی اوډیرلرې دی اویاداچه الله ﷻ دَهغوئ غوږونه محفوظ ساتلې دې دَشرکیۇ. قبیحو الفاظو آوریدلونه ((روح))﴿وَلَوْ سَمِعُوا مَا اسْتَجَابُوا لَكُمْ﴾یعني که بالفرض والتقدیرواورې هم نوقبلولې ئې نشي،عدم استجابت نه مرادیاعدم قبول دې،یاورنه حاجت پوره کول اونفع رسول دې﴿وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ يَكْفُرُونَ بِشِرْكِكُمْ﴾شرككم مصدرمضاف دې فاعل ته،أی اشراككم ایاهم.یعني حاجت پوره کول اونفع رسول خولرې خبره ده چې دَقیامت په ورځ به دوئ ستاسودَعبادت نه انکار کوې کقوله تعالیٰ:ماكنتم ايانانعبدون(یونس:۲۸).﴿وَلَا يُنَبِّئُكَ مِثْلُ خَبِيرٍ﴾ مرادورنه ذات دَ الله ﷻ دې. خطاب حضور ﷺ ته دې یاهرسامع ته،یعني څرنګه چې الله ﷻ دَبتانوحال بیان کړواودَهغوئ دَالوهیت نفې ئې اوکړه دغه شان ئې بل څوک نشي کولې.

| |
|---|
| يَا أَيُّهَا النَّاسُ أَنتُمُ الْفُقَرَاءُ إِلَى اللَّهِ وَاللَّهُ هُوَ الْغَنِيُّ الْحَمِيدُ ﴿١٥﴾ إِن يَشَأْ |
| اې خلقو تاسوټول ډیرمحتاجه یئ الله ﷻ ته،اوالله ﷻ هم دې غني دې ستائیلې شویدې.کچرې دَالله ﷻ خوښه شي |
| يُذْهِبْكُمْ وَيَأْتِ بِخَلْقٍ جَدِيدٍ ﴿١٦﴾ وَمَا ذَٰلِكَ عَلَى اللَّهِ بِعَزِيزٍ ﴿١٧﴾ وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ |
| ختم به کړي تاسواورابه ولي بل مخلوق نوې،اونه دې داکاربه الله ﷻ باندې ګران.اونشي بارکولې باراچتونکې بوج دَ بل څا. |
| وَإِن تَدْعُ مُثْقَلَةٌ إِلَىٰ حِمْلِهَا لَا يُحْمَلْ مِنْهُ شَيْءٌ وَلَوْ كَانَ ذَا قُرْبَىٰ |
| اوکچرې رااوبلي یودروندبارې خپل بارته نه به شي اوچتولې څوک ددې نه څه خیز.اګر که وي ئې دې رشته دار. |
| إِنَّمَا تُنذِرُ الَّذِينَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُم بِالْغَيْبِ وَأَقَامُوا الصَّلَاةَ وَمَن تَزَكَّىٰ |
| بیشکه ته یره وې هغه خلقولره چې یریږي دَرب خپل نه په غیبه اوپابندی کوی دَ مونځ.اوچاچه ځان پاک کړو((دګندګی دشرک نه، |

فَإِنَّمَا يَتَزَكَّىٰ لِنَفْسِهِۦ ۚ وَإِلَى ٱللَّهِ ٱلْمَصِيرُ ﴿١٨﴾

نو بیشکه دي خان پاکوي دفائدې دخپل خان دپاره.او خاص الله جل جلاله ته ګرځیدل دي

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ أَنتُمُ ٱلْفُقَرَآءُ إِلَى ٱللَّهِ﴾ دا اتم (٨) دلیل عقلي دې په توحید چې اې خلقو تاسو ټول په هرڅه کښې الله جل جلاله ته محتاج یئ.الله جل جلاله بې نیازه ذات دې.متصف دې په صفاتو دکمال سره.لهذا دهغه نه علاوه ستاسو بل معبود نشته

**سوال** دلته (انتم) مبتدا او (الفقراء) ئې خبر دې مبتدا خبر چې کله دواړه معرفه وي نو د تخصیص فائده ورکوي.نو مطلب به دا شي چې اې خلقو صرف هم تاسو بس الله جل جلاله ته محتاجه یئ.حالانکه ټول مخلوقات الله جل جلاله ته محتاجه دي.**جواب**:دلته (الفقراء) باندې الف لام د مبالغې دپاره دې.یعني تاسو ډیر زیات محتاجه یئ.ستاسو په مقابلې کښې د نورمخلوقاتو احتیاج د نیش برابر دې.ځکه چې تاسو په پیدائش.وجود اوبقاء سره سره مال ودولت.لباس خوراك ته هم محتاجه یئ.په خلاف د نورو مخلوقاتونه چې مال دولت،لباس.کوروغیره ته ندي محتاج. او بل دا چې انسان چونکه اشرف المخلوقات دې نو هغه ته خطاب اوشو اوضمناً ټولو مخلوقاتو ته شامل دې.

﴿ٱلْغَنِىُّ﴾ مستغني ذات دې دهرڅانه،﴿ٱلْحَمِيدُ﴾ ستایلې شویدې،دیکښې اشاره ده دیته الله جل جلاله صرف دانه چې مستغني دې اوخلق ورته محتاج دي،بلکه دهغوئ حاجتونو پوره کونکې هم دې.ځکه چې حقیقي غنا دا ده چې حاجتونه ئې پوره کړي احسانات پرې اوکړي.لیکن محتاجه ورته نه وي

﴿إِن يَشَأْ يُذْهِبْكُمْ﴾ دا تخویف دنیوي دې،او دالله جل جلاله دبې نیازئ بیان دې چې کچرته اوغواړي تاسو به فنا کړي او ستاسو په ځائ به یو بل مخلوق پیدا کړي چې هغه به ئې اطاعت کونکې توحید منونکې وي.﴿وَيَأْتِ بِخَلْقٍ جَدِيدٍ﴾ یعني نوې مخلوق به پیدا کړي چې ستاسو په شان سرکشه به نه وي.یا دا چه نوې عالم او مخلوق به پیدا کړي تاسو به ورنه ناآشنایئ.﴿وَمَا ذَٰلِكَ﴾ یعني دا ستاسو هلاکول او راتیان دخلق جدید الله جل جلاله ته څه مشکل ندی.

﴿وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ ۚ﴾ دا تخویف اخروي دې،چې دقیامت په ورځ به دیو ګناه ګار ګناه

بوج بل خوك نه شي اغستي.بلكه هرسړي به دخپل خپل گناه ذمه وارسزاواروي.ددي آيت كريمه اودسورة عنكبوت آيت(١٣ وليحملنّ اثقالهم واثقالامع اثقالهم.په مينځ كښې منافات نشته. ځكه چې هلته دضالين اومضلين ذكردې.يعني دهغوخلقوذكردې چې پخپله هم گمراه وي او نورخلق ئې هم گمراه كړي وڼوهغوئ به دخپل ضلالت بوج هم اوچتوي اوداضلال بوج هم. او دلته كښې صرف دضالين يعني دگمراهانوذكردې(روح)﴿وَإِن تَدْعُ مُثْقَلَةٌ إِلَىٰ حِمْلِهَا﴾ مُثقَلَة صفت دې دمحذوف اى:نفسٌ مثقلة.يعني داسې سړې چې دگناهونوبوج پرې پروت وي هغه كه بوج اوچتولوډپاره خپل قريبي رشته دار هم رااوغواړي لكه پلار،خوې،ښځه،خاوندخپل.ليكن هغه به ورنه انكاراوكړي.داپه ظاهركښې تكرارښكاري په حقيقت كښې تكرارنه دې،ځكه چې(١)په اوله جمله كښې نفي دحمل وه اجباراً،اوپدې كښې نفي دحمل ده اختياراًيعني په منت اوزارئ سره هم به هم يوكس دچادگناه بوج پخپل سرنه اخلي.(٢)ياپه اوله جمله نفي دحمل ده دټولوگناهونوچې محمول عنه بالكل بري شي اوپه دويمه كښې نفي دحمل ده دبعضې گناهونو لپاره دتخفيف(روح المعاني)،،ولو كان ذا قربى،، ضمير په "كان" كښې يا " مدعو" ته راجع دې. يعني اگرچې هغه كس چې دې ئې رابلي . د ده ذ خپلوانو نه وي ،بيا به ورله هم نيزدې نه راځي.او يا "داعي" ته راجع دې . يعني اگر كه دا رابلونكې د هغه رشته دار ولې نه وي خو بيا به ورله هم نيزدې نه رازي.

﴿إِنَّمَا تُنذِرُ ٱلَّذِينَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُم﴾ داتسلي ده نبي كريم صلي الله عليه وسلم ته او بشارت اخرويه دې،چې ستا تبليغ به هغه چاته فائده وركوي چې دا مذكور صفات وي پكښې،ضدي او عنادي نه وي.

﴿يخشون ربهم﴾اول صفت دې . صيغه د مضارع راوړلو كښې اشاره ده تجدد ته. چې هر وخت ئې د خشيت حالت وي او د خوف الهي ورسره استحضار وي. ﴿بِٱلْغَيْبِ﴾ نه مراد يابغيردليدلو نه،دې ياخلوت او يواځې والې ورنه مراد دې،يعني دالله ﷻ دعذاب نه يريږي حال داچې دوئ عذاب ليدلې نه دې.

﴿واقاموا الصلوة﴾دا دويم صفت دې. او د خشيت ثمره ده ،صيغه د ماضي دپاره د تحقق او تيقن ده . يعني خشيت كيفيت ئې دا وي چې دوئ د الله ﷻ هر عبادت او حكم تعميل ته داسې تيار وي لكه چې بس دوئ كړې وي، مونځ چونكه د ټولو نه اهم عبادت دې نو ځكه ئې

تخصيص اوشو ﴿وَمَن تَزَكَّىٰ فَإِنَّمَا يَتَزَكَّىٰ﴾ يعني چاچې دَشرك نه او دګناهونونه ځان پاك كړونوخپل ځان ته ئې فائده وركړه. الله جل جلاله ته به ئې رجوع كيږي نوپه تزكيه به ورته بهتره بدله وركړي

وَمَا يَسْتَوِي الْأَعْمَىٰ وَالْبَصِيرُ ۝ وَلَا الظُّلُمَاتُ وَلَا النُّورُ ۝ وَلَا الظِّلُّ وَلَا الْحَرُورُ ۝

اوندې برابرړوند اوليدونكي .اونه تيارې اونه رڼا.اونه سورې اونه ګرمي

وَمَا يَسْتَوِي الْأَحْيَاءُ وَلَا الْأَمْوَاتُ ۚ إِنَّ اللَّهَ يُسْمِعُ مَن يَشَاءُ ۖ وَمَا أَنتَ بِمُسْمِعٍ

اوندې برابرژوندي اونه مړي.بيشكه الله جل جلاله اوروي چاته چې ئې خوښه شي.اوته نشې اوروَلې

مَّن فِي الْقُبُورِ ۝ إِنْ أَنتَ إِلَّا نَذِيرٌ ۝ إِنَّا أَرْسَلْنَاكَ بِالْحَقِّ بَشِيرًا

هغه چاته چې په قبرونوكښ دي.نه يې ته مګرېره ونكې.بيشكه موږلېږلې ئې ته په حقه سره زيرې وركونكې

وَنَذِيرًا ۚ وَإِن مِّنْ أُمَّةٍ إِلَّا خَلَا فِيهَا نَذِيرٌ ۝ وَإِن يُكَذِّبُوكَ

اوېره ونكې اونه وؤيوامت په مخكنو امتونوكښ مګرتيرشوې وؤپه هغې كښ يرونكې.اوكه دوئ تاته دروغژن وائي نوصبركوه،

فَقَدْ كَذَّبَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ جَاءَتْهُمْ رُسُلُهُم بِالْبَيِّنَاتِ

نوپه تحقيق دروغژن ونيلي وؤهغه خلقوچې مخكښ وؤددوئ نه.راغلي وؤهغوئ ته رسولان دهغوئ په واضحومعجزوسره.

وَبِالزُّبُرِ وَبِالْكِتَابِ الْمُنِيرِ ۝ ثُمَّ أَخَذْتُ الَّذِينَ كَفَرُوا ۖ فَكَيْفَ كَانَ نَكِيرِ ۝

اوپه صحيفوسره اوپه كتاب روښانه سره(تورات)بيااونيول ماهغه خلق چې كفرئي كړيوؤنوڅنګه وؤعذاب زما.

﴿وَمَا يَسْتَوِي الْأَعْمَىٰ وَالْبَصِيرُ﴾ دې كښ مثالونه بيانيږي لپاره دَفرق په مابين دَمشرك چه ضدي اوعنادي دې اومؤمن كښ چې اهل خشيت والؤو نه دې. چې لكه څرنګه دامذكوره ځيزونه برابرندي دغه رنګه كافراومؤمن هم برابرندې، ﴿الْأَعْمَىٰ﴾نه مرادكافردې چې دَغيرالله عبادت كوي دلائل دَتوحيد اوقدرتونه دَتوحيدورته نه ښكاري﴿وَالْبَصِيرُ﴾ نه مرادمؤمن دې،

﴿وَلَا الظُّلُمَاتُ وَلَا النُّورُ﴾دويم "لا" دَتاكيدپاره مكررشو. "ظلماتو"نه مرادتياري دَباطل يعني دكفر او شرك تياري دي، او "نور"نه مرادرڼادَحق يعني ايمان اوتوحيدده. "ظلمات"جمع او "نور" مفرد ذكرشو .يادَدې وجې نه چې محاوره دغه شان ده يادا چه طريقې اولارې دَباطل

ډیرې دي. او دَ هدایت اودَحق لار یوه ده نوځکه نورمفرد ذکرشو. والله اعلم

﴿وَلَا ٱلظِّلُّ وَلَا ٱلۡحَرُورُ﴾ یعني نه ثواب اونه عقاب. یاورنه مراد جنت او جهنم دی. حرور مبالغه دَحَریعني شدة الحر. سموم هغه ګرمي ته وائ چې دَورځې وي اوحرورعام دې ورځې وي که دَشپې (کشاف)

﴿وَمَا يَسۡتَوِي ٱلۡأَحۡيَآءُ﴾ دابل مثال دې چې لکه جوندي اومړي برابرندی دغه شان مؤمن اوکافربرابرندي. احیاء نه مرادمؤمنان دي ځکه چې زړونه دَدوئ ژوندي وی په ایمان. اودَ اموات نه مرادکافران دي ځکه چې زړونه دَدوئ مړه وي په کفر. یاورنه علماء اوجهلاء مراددي، ﴿إِنَّ ٱللَّهَ يُسۡمِعُ مَن يَشَآءُ﴾ یعني چاته چې الله ﷻ هدایت ورکول غواړي نوهغه ته دَخبري اوریدلواودَالله ﷻ دآیاتونوقبلولوتوفیق ورکړي دَ﴿يُسۡمِعُ﴾نه مرادسماعِ قبول ده. ﴿وَمَآ أَنتَ بِمُسۡمِعٖ مَّن فِي ٱلۡقُبُورِ﴾ بمسمعِ کښې باء زائده ده لپاره دَتاکید. دې کښې وضاحت دَمثال دې اومراددَسماع نه دلته هم سماعِ قبول ده. ځکه چې مطلقِ سماع خوکافرانوته کیدله. نومطلب دادې لکه څرنګه ته ای پیغمبره! مړوته په کلام حق اورولوسره هدایت نه شي کولې اوهغوئ ته څه فائده نه شي ورکولې، ځکه چې هغوئ دَدارالعمل نه تلي دي. نودغه شان حال دَضداو عناد کونکي کافرانودې چې دَدوئ په زړونوباندې مهردَجباریت لګیدلې دې، زړونه ئې مړه دي. ازلي بدبختي ئې په قسمت کښې لیکلې شویده، نودَهدایت موندلونه محرومه دي.

ددې بیان نه معلومه شوه چې دَدې آیت دَسماع الموتیٰ سره هیڅ تعلق نشته، سماع الموتیٰ ځان له مستقله مسئله ده چې دَهغې تفصیل په سورة روم، نمل کښې تیردې.

﴿إِنۡ أَنتَ إِلَّا نَذِيرٌ﴾ یعني اې پیغمبره! ستاکارصرف یره ول دي دَعذاب دَالله ﷻ نه. هدایت ورکول چاته. داستاذمه واري نه ده، هغه دَالله ﷻ کاردې.

﴿إِنَّآ أَرۡسَلۡنَٰكَ بِٱلۡحَقِّ بَشِيرٗا وَنَذِيرٗاۚ﴾ تسلي ده حضور ﷺ ته. ﴿وَإِن مِّنۡ أُمَّةٍ إِلَّا خَلَا فِيهَا نَذِيرٞ﴾ یعنی په تیرشوي خلقوکښې هم هرقوم ته نبي رالیږلې شویدې دَهغوئ ذمه واري هم صرف تبلیغ کول وۀ دَچاپه اختیارکښې هم هدایت نه وۀ. نودغه شان ته هم دې قوم ته رالیږلې شوې یې. "نذیر" نه مراد دلته عام دي چې رسول وي یا غیر رسول.

﴿وَإِن يُكَذِّبُوكَ﴾ داهم تسلي ده، جزاء دَشرط محذوفه ده: ای فلاتحزن بتکذیبهم، یعني که دوئ

ـــ تكذيب كوي.ايمان نه راوړي نوته مه خفه کيږه ځکه چې دا سې سرکښه کفار د مخکنيو انبياؤ په وخت کښې هم وؤحالانکه چې انبياؤورته واضح معجزات پيش کړې وؤ او هدايت والاکتابونه ئې ورته راوړي وؤ ﴿وَبِالزُّبُرِ﴾وړې صحيفې لکه صحف ابراهيم﷤. ﴿وَبِالْكِتٰبِ الْمُنِيْرِ﴾لکه توراة،انجيل. ﴿ثُمَّ أَخَذْتُ الَّذِيْنَ﴾تخويف دنياوي دې کافرانوته

| |
|---|
| اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ اَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً ۚ فَاَخْرَجْنَا بِهٖ ثَمَرٰتٍ مُّخْتَلِفًا |
| آيا نه دې ليدلي تا چې بيشکه الله جل جلاله راورولې دې دآسمان نه اوبه.بيا راوباسلې دی مونږ پدې سره ميوې چې جداجدا دې |
| اَلْوَانُهَا ؕ وَمِنَ الْجِبَالِ جُدَدٌۢ بِيْضٌ وَّحُمْرٌ مُّخْتَلِفٌ اَلْوَانُهَا وَغَرَابِيْبُ سُوْدٌ ﴿٢٧﴾ |
| رنګونه دهغو. اودغرونوځه ټکړې سپينې دې اوځه سرې دې، مختلف دې رنګونه دهغې اوځه تکې تورې دې |
| وَمِنَ النَّاسِ وَالدَّوَآبِّ وَالْاَنْعَامِ مُخْتَلِفٌ اَلْوَانُهٗ كَذٰلِكَ ؕ اِنَّمَا يَخْشَى اللّٰهَ |
| اوبعضې دانسانانونه اودژندو سرونه اودځناورونه مختلف دې رنګونه دهغوئ دغه شان.بيشکه يريږي دالله نه |
| مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمٰٓؤُا ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ غَفُوْرٌ ﴿٢٨﴾ |
| په بندګانودهغه کښې عالمان. بيشکه الله زورآور.اوبخنه کونکې دی. |

﴿أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ أَنزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً﴾دا په توحيد نهم علقي دليل دې. چې الله جل جلاله له آسمان باران وروی اوبيا ورسره مختلفې ميوې پيدا کوی، دغرونو پشان مضبوط مخلوق ئې پيدا کړيدې بيا دهغې مختلفو حصو له ئې مختلف رنګونه ورکړی دی،دهغه شان انسانان اوځناورئې پيداکړيدی اومختلف رنګونه ئې ورته عطا کړی دی داټول د الله جل جلاله په وحدانيت اوقدرت دلالت کوی. ﴿أَلَمْ تَرَ﴾استفهام تقريري دې. يعني تا ليدلي دي﴿مِنَ السَّمَاءِ﴾ نه مرادجهت داسمان دې. ﴿فَأَخْرَجْنَا بِهِ﴾التفات دغائب نه متکلم طرف ته لپاره داظهاردکمال قدرت دالله جل جلاله دي. ﴿ثَمَرَاتٍ مُّخْتَلِفًا أَلْوَانُهَا﴾((الوانها ))نه مراد اقسام هم کيدې شی،ځکه چې د الوان اطلاق په انواعو او په اقسامو کيږی،يعنی بياوزسره الله جل جلاله دميوؤ مختلف اقسام وانواع پيداکړی دي لکه آم سيب،انذر،وغيره،اودمختلفو ميوؤ رنګونه هم مراد کيدېشی چې هرې ميوې له ئې جدا رنګ ورکړدې،او د يو نوع ميوې مختلف اصناف او رنګونه

مرادکیدې شي.چې یوه میوه وی خوپه هغې کښ مختلف رنګونه اوخوندونه وی.لکه سیب شو.څنی شین وی څنی سور وی.او څنی زیړ وی او دهغه شان دهر یو خوند اوذائقه هم بدله وی

﴿وَمِنَ ٱلۡجِبَالِ جُدَدٌۢ﴾ «من الجبال» خبر مقدم دې «جدد» مبتدا مؤخر دې جُددٌ جمع جدةٌ ده.دَوضوح او امتیاز معنی ورکوی.لارې ته وائی څکه چې دادَزمکې نورې حصې نه ممتازه وی.لکیرې ته هم وائی څکه چې داهم یوشې کښ ښه واضحه ښکاری اودلته ترینه مراد دَ غرونو هغه حصې دی چې هغه رنګونو اختلاف په وجه دَ یوبل نه جدااوممتاز ښکاری ﴿مُّخۡتَلِفٌ﴾ "مختلفٌ"صفت دې دَ﴿بِيضٌ وَحُمۡرٌ﴾ یعني سپین هم مختلف رنګونه دې،بعض تک سپین لکه مرمر.بعض دَمالګې په شان سپین دې وغیره،دغه رنګه سورکښې هم مختلف رنګونه دې. یعني اللهﷻ تنَ تنهاپخپل قدرت سره بعضې غرونه سپین پیداکړیدې.بعضې سره دې اوپدې کښ هم بعضې ډیرسپین دې.بعضې کم.بعضې ډیرسره دې.بعضې کم.او یا "مختلفٌ" صفت دې دَ"جدد" یعنی مختلف رنګونو والا حصی دی چې څنی سپینی دی څنی سرې او څنې تکې تورې ﴿وَغَرَابِيبُ سُودٌ﴾"غرابیب"جمع ده "غربیب" ده په تور والی کښ مبالغې اوتاکید لپاره استعمالیږی.قیاس تقاضه داده چې "سود غرابیب" وئیلی شوې وې. لکه اسود حالک. خو رعایت دَ فواصلو دوجې نه مقدم کړې شو(التحریر والتنویر)

﴿وَمِنَ ٱلنَّاسِ وَٱلدَّوَآبِّ﴾دامتعلق دې دَماقبل دلیل عقلي سره.چې لکه څرنګه چې اللهﷻ مختلف رنګونو والامیوې اومختلف رنګونو والاغرونه پیداکړیدې،دغه شان ئی انسانان هم مختلف رنګونو والا .څناورهم مختلف رنګونو والاپیداکړیدې،﴿من الناس﴾ خبر مقدم دې،او ﴿مختلف الوانه﴾مبتدامؤخر دې.

**فائده**:میوؤ اختلاف الوان کښ چونکه تجدد وی وقتا فوقتا تبدیلی پکښ راځی نو څکه هلته جمله فعلیه «فاخرجنا به ثمرات مختلفا الوانها» راوړلې شوه،چې داهم په تجدد اوحدوث دلالت کوی او غرونو .څناورو آو دَانسانانو رنګ کښ عام طورباندې تغیر وتبدیلې نه راځی نوځکه دلته جمله اسمیه راوړلې شوه چې هغه په استمرار دلالت کوی.

﴿كَذَٰلِكَ﴾اي:مثل الاراضي والثمار، مفعول مطلق تشبیهې دې،اي:مختلف الوانه اختلافا کائنا

كذالک.او یادا جدا جمله ده اي:كذالک الامر .او مابعد لپاره تمهید دي چې خبره هم دغه شان ده غور پرې اوکړه ،

﴿ إِنَّمَا يَخْشَى اللَّهَ﴾یعنی الله ﷻ داتفاوت صرف رنګونو پورې نه دې محدود کړې بلکه څنګه چې رنګونه کښې دوئ مختلف دي دغه شان په خوف وخشیت کښې هم مختلف درجات دي چاته دخوف اعلی درجه حاصله ده او چاته کمه او مدار ددې په علم باندې دې چې چا سره څومره درجه علم وي دومره به ورسره خوف هم وي.

دا آیت زجردې مشرکانو ته چې دومره واضحه واضحه دلائل دَ الله ﷻ په واحدانیت او قدرت قائم دی دې باوجود دوئ په الله ﷻ باندې ایمان نه راوړی او دهغه نه نه یریږی. صرف مؤمنان چې هغوئ ته دَ الله ﷻ دَ ذات وصفات علم دې.هغه ایمان راوړی او هغه نه یریږی دې آیت کښ دَاهل خشیت تعیین هم اوشو چې دَ هغې اجمالا ذکر په «انما تنذر الذین یخشون ربهم » کښ راغلې وؤ

دې آیت کښ دهر مؤمن چې هغه دَ الله ﷻ په ذات اوصفات جلیله باندې ایمان راوړي فضیلیت دې .خصوصا بیا په مؤمنانوکښ دعلماؤو فضیلت بیان دې.چې څومره لوئ عالم وی هومره به زیات دَ الله ﷻ نه خشیت والا وی.لکه حدیث شریف کښ راغلیدي "اني لاعلمکم بالله عزوجل واخشاکم له "[مسند احمد]حسن بصري رحمه الله فرمائی چې عالم هغه څوک دې چې په خلوت جلوت دواړوکښ دَالله ﷻ نه خوف کوي.اوچې دکوم څیزالله ﷻ ترغیب بیان کړې وي.نوهغه څیزده ته مرغوب وي اوچې کوم څیزدَالله ﷻ په نیزباندې مبغوض نودَهغې نه ده نه نفرت وي.حضرت ابن مسعود رضي الله عنه فرمائی:لیس العلم بکثرة الحدیث ولکن العلم عن کثرة الخشیة. یعني ډیرې خبرې کول علم نه دې.بلکه ډیره یره اوخشیت علم دې.یوصحابي ربیع بن انس رضي الله عنه فرمائی"من لم یخش فلیس بعالم"مجاهد رحمه الله فرمائی:انماالعالم من خشی الله.دې روایاتونه معلومه شوه چې عالم هغه نه دې چې صرف په عربي لغت،یاپه علم النحو.علم الصرف اونورو فنونو کښ ماهروي،تقوئ اوخوفِ خداپکښ نه وي(روح،ابن کثیروغیره)،﴿إِنَّ اللَّهَ عَزِيزٌ غَفُورٌ﴾علت دې دَوجوب دَخشیة.

إِنَّ الَّذِينَ يَتْلُونَ كِتَابَ اللَّهِ وَأَقَامُوا الصَّلَاةَ وَأَنفَقُوا مِمَّا رَزَقْنَاهُمْ سِرًّا

بیشکه هغه خلق چې لولي کتاب دَالله ﷻ قرآن اوپابندي کوي دَمونځ اوخرچ کوي دَهغې نه چې ورکړی دی مونږهغوئ ته په پټه

| وَعَلَانِيَةً يَرْجُونَ تِجَارَةً لَّنْ تَبُورَ ﴿۲۹﴾ لِيُوَفِّيَهُمْ أُجُورَهُمْ |
|---|
| او په ښکاره امید ساتي داسې سودا چې چرته به هم زیان نه مومي څکه چې پوره به ورکوي الله دوئ ته اجرونه ددوئ |
| وَيَزِيدَهُم مِّن فَضْلِهِ ۚ إِنَّهُ غَفُورٌ شَكُورٌ ﴿۳۰﴾ وَالَّذِي أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ |
| او زیات به ورکړي دوئ ته دفضل خپل نه.بیشکه الله ﷻ بخښونکي قدردان دي او هغه چې وحي کړېده مونږ تاته |
| مِنَ الْكِتَابِ هُوَ الْحَقُّ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ ۗ إِنَّ اللَّهَ |
| دکتاب نه هغه حق دې تصدیق کونکې دې دهغه کتابونه چې مخکښې دي دده نه. بیشکه الله ﷻ |
| بِعِبَادِهِ لَخَبِيرٌ بَصِيرٌ ﴿۳۱﴾ |
| په خپلو بندګانو یقینا چې خبردار دي لیدونکي دې |

﴿إِنَّ الَّذِينَ يَتْلُونَ كِتَابَ اللَّهِ﴾ دابشارة اخروي دې لپاره دمومنانو او دهغوئ بعض اوصاف بیانیږي چې دوئ دقرآن تلاوت کوي او دهغې په احکامو باندې عمل کوي.مونځ قائموي.مال خرچ کوي.نو دوئ ته به الله ﷻ خامخا ددوئ دعملونو پوره پوره اجرورکوي.

﴿الَّذِينَ﴾ اسم موصول اسم دې د إنّ او خبرورله «یرجون تجارة». ﴿يَتْلُونَ كِتَابَ اللَّهِ﴾ د الله ﷻ دکتاب نه مرادقرآن دې.تلاوت اونفس قرائت کښې فرق دې.تلاوت کښې اتباع معنی هم ملحوظه ده ،څکه چې ددا تلا یتلو پمعنی داتباع نه ماخوذ دې. نو دې لحاظ سره تلاوت په درې امورو باندې مشتمل دې:(۱)صرف الفاظ لوستل(۲)په معنی څان پوهه کول.څکه چې اتباع بغیرفهم د معنی نه نشی کیدې(۳) بیا ورباندې عمل کول ﴿سِرًّا وَعَلَانِيَةً﴾ یعني په پټه اوښکاره.یا﴿سرًا﴾دشپې ﴿علانیة﴾دورځې.

﴿يَرْجُونَ تِجَارَةً﴾ یعنی پدې عبادتونو ناز او فخر نه کوی او نه پدې باندې اجروثواب خپل استحقاق ګنړې بلکه دې عبادتونو باوجود دالله ﷻ دعذاب یروه ورسره وی،اودې سره سره داسې سودا امید ئی هم وی چې هغې کښې چرته تاوان نشته،چې هغه دآخرت ثواب اوجنت دې ﴿لِيُوَفِّيَهُمْ أُجُورَهُمْ﴾دایامتعلق دې﴿لَّن تَبُورَ﴾ پورې،یعني داتجارة دضائع کیدلونه څکه محفوظ دې چې الله ﷻ ددوئ دعملونو پوره پوره اجرورکوي،یامتعلق دې په محذوف پورې،ای فعلوا

ذلك نيوفيهم اجورهم(روح)، يعني دوئ نيك عملونه پدې وجه كوي چې الله جل جلاله ورته اجرورکړي
﴿وَيَزِيدَهُم مِّن فَضْلِهِ﴾زیادت دَفضل نه مراد یاورله حسنات مضاعف کول دي.یا قبولول د
شفاعت دَدوئ دي په حق دَهغه چاکښې چې چاورسره احسان کړې وي.بعضي وائي دینه مراد
دیدار الهی دې رزقناالله بفضله (روح). ﴿إِنَّهُۥ غَفُورٌ شَكُورٌ﴾تعليل دې دَماقبل.يعنی ډير مغفرت
كونكې دې ددوئ نه چې كومې خطاګانې شوي دي هغه ورته معاف كوي.اوقدردان دي .
عبادت ګزاروله دَهغوئ استحقاق نه زیات اجرونه ورکوي

﴿وَالَّذِيٓ أَوْحَيْنَآ إِلَيْكَ مِنَ الْكِتَٰبِ﴾دادلیل وحی دې په توحيد او دقرآن حقانيت اثبات دې.
يعنی كومې خبرې ته دوئ ته كوې داموني تاته وحی كړيدی اوبالكل حق خبرې دی .مخكښې
كتابونوكښې هم دهغه شان خبرې وې ﴿مِن﴾بيانيه دې.دَ﴿الْكِتَٰبِ﴾ نه مرادقرآن دې.يا﴿مِن﴾
تبعيضيه دې.دَ﴿الْكِتَٰبِ﴾نه مرادجنس كتاب دې.يعني خپلو كتابونوكښې چې كوم كتاب
وحي تا ته كوؤ.او يا﴿مِن﴾ ابتدائيه دې او﴿الْكِتَٰبِ﴾ نه مراد لوح محفوظ دې.يعني لوح
محفوظ نه چې كومه وحي تاته كيږي(روح)﴿إِنَّ اللَّهَ بِعِبَادِهِۦ﴾دادَمشركينو اشكال جواب دې.
مشركينو به وئيل چې ((لولا نزل هذاالقرآن على رجل من القريتين عظيم)) كچرته دا قرآن حق دې نو يو
غټ اوصاحب حيثيت كس باندې ولې ندې نازل شوې الله جل جلاله فرمائي چې دا دَ خمامرضی ده.
خكه خپل بندګان ښه پيژنم.دَهغوئ احوالونه خبر اودهغوئ مسلسل نګراني كوم. ماته ښه
پته ده چې څوك دَ دې لائق او اهل دې اوڅوك نه .نو اې نبي! ماتاله داقرآن دركړيدې او ته
مې دې شرف نه مشرف كړخولې ئې

﴿ثُمَّ أَوْرَثْنَا الْكِتَٰبَ الَّذِينَ اصْطَفَيْنَا مِنْ عِبَادِنَا﴾
بيا به ميراث كښې وركړومونږكتاب هغه خلقوته چې غوره كړيدي مونږ(په سبب دَايمان) دبندګانوخپلونه
﴿فَمِنْهُمْ ظَالِمٌ لِّنَفْسِهِۦ وَمِنْهُم مُّقْتَصِدٌ وَمِنْهُمْ سَابِقٌۢ بِالْخَيْرَٰتِ﴾
نوبعضي دَدوئ نه ظلم كونكي دي په خپل ځان.اوبعضي ددوئ نه درميانه دي. اوبعضي ددوئ نه وړاندې كيدونكي دي نېكونه

بِإِذۡنِ ٱللَّهِۚ ذَٰلِكَ هُوَ ٱلۡفَضۡلُ ٱلۡكَبِيرُ ۝ جَنَّٰتُ عَدۡنٖ يَدۡخُلُونَهَا يُحَلَّوۡنَ

په توفيق دالله تعالیٰ سره. .دا فضل لوئ دې(ددوئ دپاره) جنتونه دي داقامت داخليږي به دوئ هغې ته اغوستولي به شي

فِيهَا مِنۡ أَسَاوِرَ مِن ذَهَبٖ وَلُؤۡلُؤٗاۖ وَلِبَاسُهُمۡ فِيهَا حَرِيرٞ ۝

دوئ ته په جنت کښې دباؤگانو(بنگړي) دسرو زرو اوواغستولي کيږي به ورته ملغرې. اوجامې ددوئ به په جنت کښې ريښم وي

﴿ثُمَّ أَوۡرَثۡنَا ٱلۡكِتَٰبَ﴾ نبی کريم ﷺ باندې دقرآن ورکولواحسان واکرام نه بعداوس پدې امت باندې فضل واحسان ذکر کيږي چې دوئ الله تعالیٰ امت قرآن اوگرځولو.﴿ثُمَّ﴾تراخی لپاره دې يعنی غټ فضل خومې په تادااوکړو چې تاله مې قرآن درکړو اوبيا مې په دې امت اوکړو چې دوئ مې امت قرآن اوگرځولو.﴿أَوۡرَثۡنَا﴾پمعنیٰ دَ اعطينا دې ځکه ميراث هم عطاوي،بعض وائی پمعنیٰ دِاخرنا دې.معنی داده چې مونږمؤخرکړوقرآن دامم سابقونه او دې امّت نه مو ورکړو لپاره دَاکرام او اعزاز(زادالمسير،روح)﴿ٱلۡكِتَٰبَ﴾ مفعول ثاني دَ ﴿أَوۡرَثۡنَا﴾ دې او﴿ٱلَّذِينَ ٱصۡطَفَيۡنَا﴾ ورله مفعول اول دې.دينه مرادنبی کريم ﷺ امت دې.مفعول ثاني مقدم شويدې لپاره دَقصددَتعظيم او تشريف. دَجمهوروپه نيزدَ﴿ٱلۡكِتَٰبَ﴾ نه مرادقرآن دې.

﴿فَمِنۡهُمۡ ظَالِمٞ لِّنَفۡسِهِۦ﴾دې کښې دَ الذين اصطفينا تقسيم دې دقرآن سره طرز.عمل په اعتبار سره. (۱)ظالم لنفسه: دينه مراد هغه خلق دې چې دَقرآن په احکاماتو عمل نه کوی دَفرائضو او واجباتو پابندي نه کوی اوحرامونه اجتناب نه کوی، دوئ ته الله تعالیٰ ظالمان ځکه اوئيل چې د ايمان اوقرآن دولت ورکولو تقاضه داده چې دوئ‌ته په جنت کښې دخول اولی نصيب شي . خو دوئ پرې عمل اونه کړونو ځان ئې دَسزا مستحق اوگرځوو او دالله تعالیٰ قانون مطابق به د هغې گناهونو سزا ميلاويږی او دهغې نه بعد به جنت ته ځې

(۲)مقتصد دينه مراد هغه خلق دی چې دَ فرائضواوواجباتو پابندې کوی اوحرام اومکروه تحريمی نه ځان ساتی خو د نفلواو مستحباتو اهتمام نه کوی.دهغه خلق به جهنم نه په سلامتياکښې وی

(۳)سابق بالخيرات:دينه مراد هغه خلق دی چې دَفرائضو اوواجباتو پابندی اوحرامو او مکروه تحريمی نه اجتناب سره سره نفلی عبادتونو اومستحباتو هم پوره اهتمام کوی او

مکروه تنزیهی او بعض صورتونو کښې دځني مباحاتو نه هم ځان ساتي. سابقین خو سابقین دي او الله ﷻ په دځپل شان مطابق دوئ له اجرونه درکوي. کما قال تعالی والسابقون السابقون.

﴿سَابِقٌ بِالْخَيْرَاتِ﴾ سره ﴿بِإِذْنِ اللَّهِ﴾ دې لپاره ذکر شو چې څوک دا اونه واني چې دا ددء ذاتي کمال دي بلکه دا صرف دَ الله ﷻ فضل دي او هغه ورله آسانه کړيده

**فائده** په دې درې واړو اصنافو کښې ﴿ظَالِمٌ لِّنَفْسِهِ﴾ مقدم شو. وجه یاداده چې ظالمین یعنې نافرمانه ډېردي په نسبت سره اطاعت کونکوته. کماقال تعالی: وقليلٌ من عبادی الشكور (السباء) یا چا ویلي دي ظَالِمٌ ځکه مقدم شو چې دَ الله ﷻ د رحمت نه نا امیده نه شي. او ﴿سَابِقٌ﴾ ځکه مؤخر شو چې په عمل باندې په خود پسندئ او عُجب کښې واقع نه شي.

﴿ذَٰلِكَ﴾ مشارٌالیه یا وصف اخیردې. یعنې داسبقت نیکیانوته دَ الله ﷻ دَطرفه لوئ فضل دې. یا مشارالیه اصطفأده. یا مشارالیه دکتاب الله وارث ګرځول دي. یعنې څوک چې دَ الله ﷻ دکتاب وارث شي نو دا دَ الله ﷻ دَطرفه لوئ فضل دې.

﴿جَنَّاتُ عَدْنٍ﴾ دا بشارت دې مؤ منانو ته ﴿جنت﴾ خبردې دَمبتداء محذوف ای لهم جنّت عدنٍ. یامبتداء دې او ﴿يَدْخُلُونَهَا﴾ ئې خبراول دې ﴿يُحَلَّوْنَ فِيهَا﴾ ئې خبرثاني دې. ضمیردَجمع په ﴿يَدْخُلُونَهَا﴾ کښې مذکوره درې واړو اصنافوته راجع دې. یعنې دې درې واړو سره وعده دَجنت ده.

حضرت عمر ﷺ یوځل داآیت اولوستلواوبیانئ اوفرمائیل: قال رسول الله ﷺ: سابقُنا سابق ومقتصدنا ناج. وظالمنا مغفورله یعنی سابقین خو هسی سابقین دی دهغوئ خبره مه کوه. مقتصد هم به الله ﷻ عذاب نه بچ کړي او ظالم به اګرچې جهنم ته ځي، خو بلآخر به ئې راوباسی اوجنت کښې به ئې داخل کړي(قرطبي).

دغه شان حضرت ابودرداء ﷺ فرمائي مادحضور ﷺ نه واوریدل چې قال الله تعالیٰ﴿ثُمَّ أَوْرَثْنَا الْكِتَابَ الَّذِينَ اصْطَفَيْنَا مِنْ عِبَادِنَا ۖ فَمِنْهُمْ ظَالِمٌ لِّنَفْسِهِ وَمِنْهُم مُّقْتَصِدٌ وَمِنْهُمْ سَابِقٌ بِالْخَيْرَاتِ بِإِذْنِ اللَّهِ﴾ فامّاالذين سبقوافأُولٰئك يدخلون الجنّة بغيرحساب، یعنې سابقین بالخیرات به بغیرحسابه جنت ته داخلیږي، وامّاالذين اقتصدوافاولٰئك الذين يُحاسبون حساباً يسيراً، یعنې دَمقتصدینو سره به اسان حساب کیږي اوهرچې دریم قسم دې یعنې ظالم لنفسه نودوئ به اول په میدانِ محشرکښې

حصار کړی شي بیابه نی الله ﷻ پخپل رحمت سره جنت ته داخل کړي نو دوئ به وائی الحمدلله الذي اذهب عناالحزن(ابن کثیر) په روایت کښ دي چې دوئ به په شفاعت دنبي اکرم ﷺ سره جنت ته داخل کړې شي. نو ددې روایاتونه معلومه شوه چې وعده ددخول جنت ذکرشوي درې واړه قسمه خلقو لپاره ده

﴿يُحَلَّوْنَ فِيهَا﴾ يعني دې درې واړوته به دسروزرو کالي وراغستولې کيږي. ابوهريره ﷺ نه روايت دي چې مؤمن ته به ترهغه ځايه پورې کالي وراچولې کيږي ترکومه ځائ پورې چې داودس اوبه رسيږي.

﴿مِنْ أَسَاوِرَ﴾ من تبعيضيه دې، اى يُحلون بعض اساوِر(روح) گوياکه دې بنګړوته به امتيازاوتفوق حاصل وي بعضِ وائی مِن زائده دې. ﴿مِن ذَهَبٍ﴾ من بيانيه دې. ﴿وَلُؤْلُؤًا﴾ عطف دې په محل د﴿مِنْ أَسَاوِرَ﴾ اى ويُحلون فيها لؤلؤا (روح) بعضِ وائی مفعول دې دفعل محذوف اى ويؤتون لؤلؤاً. په حديث کښ دي چې ددوئ په سرو باندې به دملغروتاجونه وي چې دټولونه ادنی ملغره به دمشرق اومغرب مابين روښانه کوي (ترمذي) ﴿وَلِبَاسُهُمْ فِيهَا حَرِيرٌ﴾ يعني خالص ريښم به ددوئ لباس وي. په حديث کښ دي: من لبس الحرير في الدنيالم يلبسهُ في الاخرة(ابن کثير) چاچه دنياکښ دريښمولباس واچولو اخرت کښ به ئی نه اچوی، اوبل حديث کښ دي: هي لهم في الدنياولكم في الاخرة. داد کافرانو لپاره دنيا کښ دې او مؤمنانو له په آخرت کښ

| وَقَالُوا الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي أَذْهَبَ عَنَّا الْحَزَنَ ۖ إِنَّ رَبَّنَا |
|---|
| اووائی به دوئ. ټول صفتونه دخدائ توب الله ﷻ لره دي هغه الله ﷻ چې لرې ئی کړو زمونږنه غم. بيشکه رب زمونږ |
| لَغَفُورٌ شَكُورٌ ۝ الَّذِي أَحَلَّنَا دَارَ الْمُقَامَةِ مِنْ فَضْلِهِ |
| خامخابخنه کونکې قدردان دې. هغه الله ﷻ چې کوز ئي کړومونږ کوردهميشه اوسانږ(اوسيدو) ته په خپل فضل سره. |
| لَا يَمَسُّنَا فِيهَا نَصَبٌ وَلَا يَمَسُّنَا فِيهَا لُغُوبٌ ۝ وَالَّذِينَ كَفَرُوا |
| نه به رسيږي مونږته پدې کښ تکليف اونه به رسيږي مونږته پدې کښ ستوماني. اوهغه خلق چې کفرئی کړيدي |

لَهُمْ نَارُ جَهَنَّمَ لَا يُقْضٰى عَلَيْهِمْ فَيَمُوْتُوْا وَلَا يُخَفَّفُ عَنْهُمْ مِّنْ عَذَابِهَا

ددوئ دپاره اور دجهنم دي. فيصله به نشي كولې،پدوئ باندې چې مړه شي اونه به سي سپكېدلې ددوئ نه دعذاب دجهنم نه.

كَذٰلِكَ نَجْزِيْ كُلَّ كَفُوْرٍ ۞ وَهُمْ يَصْطَرِخُوْنَ فِيْهَا ۚ رَبَّنَآ

دغه شان مونږسزاورکوو هرناشكره ته(كافرته) اودوئ به چغې اوباسي په جهنم كښ.(وائى به) اى ربه زمونږه

اَخْرِجْنَا نَعْمَلْ صَالِحًا غَيْرَ الَّذِيْ كُنَّا نَعْمَلُ ؕ

اوباسه مونږه دجهنم نه،چې عمل اوكړومونږ نيك غير د هغې نه چې مونږ كولو،په دنياكښ

اَوَلَمْ نُعَمِّرْكُمْ مَّا يَتَذَكَّرُ فِيْهِ

(الله جل جلاله به ورته اوائى)آيا عمرنه ووُ دركړې مونږتاسوته دومره چې نصيحت په كښ حاصلولى شو

مَنْ تَذَكَّرَ وَجَآءَكُمُ النَّذِيْرُ فَذُوْقُوْا فَمَا لِلظّٰلِمِيْنَ مِنْ نَّصِيْرٍ ۞

هغه چاچه نصيحت ئى قبولولو.اوراغلې ووُتاسوته يره ونكې نوڅكئ(عذاب) نونيشته دې دپاره دظالمانوهيڅ مددګار

﴿وَقَالُوا الْحَمْدُ لِلّٰهِ﴾ماضي پمعنىٰ دمضارع ده.اى يقولون(روح)يعني اهلِ جنت به جنت نه داخليدلو وخت كښ وائى چې شكردې دالله جل جلاله چې دهرقسمه غم نه ئى مونږبې غمه كړو. تعبيرترينه په ماضي سره دوجې دتيقن نه اوشو﴿الْحَزَنَ﴾حزن نه مرادسختئ دقيامت دي.ابن عباس رضي الله عنه وائى حزن النارورنه مراددې،بعضِ وائى حزن الموت دي.نودابه په هغه وخت كښ وائى كله چې موت ذبح كړې شي،اولى داده چې هرقسمه حزن ددنيااوآخرت ورنه مراددى.په حديث كښ دي:ليسَ علىٰ اهلِ لااله الاّالله وحشةٌ فى قبورهم ولافى نشورهم،وكانّي انظرُالىٰ اهل لااله الاّالله وهم ينفضون التراب عن رؤسهم ويقولون الحمدلله الذي اذهب عنّاالحزن(ابن كثير).ترجمه په لااله الا الله والو باندې به نه قبركښ وحشت وى او نه دقبر نه پورته كيدووخت كښ. ګوياڅه هغه منظر وينم چې لا اله الا الله والا دخپلو سرونو نه خاورى څنډوئى اودا آيت به تلاوت كوى الحمد الله الذي اذهب عنا الحزن﴿اِنَّ رَبَّنَا لَغَفُوْرٌ﴾دااول دووصنفينولپاره،﴿شَكُوْرٌ﴾دادصنف ثالث لپاره

﴿دَارَ الْمُقَامَةِ﴾مصدرميمي دې،يعني دارالاقامة،هميشه لپاره دپاتې كيدوځائ.﴿لَا يَمَسُّنَا

فِيهَا نَصَبٌ ،، ای تعبٌ.نصبٌ ستړي والي او مشقت ته وائی او ﴿لُغُوبٌ﴾هغه فتوراو ستومانئ ته وائي چې دَتعب نه پيدا شي .نفي دَسبب اګرکه چې مستلزمه وي نفي دَمسبب لره مګردمبالغي دپاره صراحةً نفي اوکړی شوه﴿نَصَبٌ﴾جسماني ستړتياته او﴿لُغُوبٌ﴾روحاني نفساني ستړتياته وائی

﴿وَٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ ﴾داتخويف اخروي دي كافرانوته چې دوئ به تول عمرپه جهنم كښ پراته وي نه به پرې موت راځي چې دَعذاب نه خلاص شي اونه به ورنه په عذاب كښ څه كمي كيږي.

﴿وَهُمْ يَصْطَرِخُونَ فِيهَا ﴾ای يستغيثون بشدةٍ وعويلٍ(جلالين)يعني داكافران به تيزي ناري سوري وهي په جهنم كښ فريادبه كوي په ژړاانګولاسره﴿رَبَّنَآ أَخْرِجْنَا ﴾يقولون ورنه مخكښ مقدر دي،يعني دوئ به غواړي چې مونږجهنم نه راوباسلی شودنياته واپس كړې شونوبيابه مونږ نيك عملونه اوكړو ﴿نَعْمَلْ صَٰلِحًا﴾جواب امردي ﴿غَيْرَ ٱلَّذِى كُنَّا نَعْمَلُ ﴾ يعني شرك به نه كوؤ.

﴿أَوَلَمْ نُعَمِّرْكُم ﴾ ددوئ درخواست جواب دي،فيقال لهم ورنه مخكښ مقدردي.بطورزجربه ورته دَاللهﷻ دَطرفه جواب وركړې شي چې آيامونږتاسوته دومره عمرنه وؤدركړې چې حق مو پكښ پيژندلي وې اوتوحيدموقبول كړې وې؟ دينه باوجود چې تاسو ايمان نه راوړو نوبيا مو هم ستاسو نه دَايمان راوړواميد نشته بس جهنم كښ اوسئ

,,ما,,ظرفيه ده يا موصوفه او يا موصوله ده،يعنى دومره زمانه او عمر راجع قول دَادي چې دينه څه مخصوص مدت اوعمر نه دي مراد بلكه هر مكلف انسان باندې ضروربضرور دَومره وخت تيريږی چې پكښ غوروفكر اوكړی او حق ورته واضح شی او دهغه شان خامخا داسی څه سره واسطه راځی چې هغه دَده لپاره داعی دَحق وی او دَانسان عمرچې څومره زياتيږی دومره ورته دامواقع زياتې ميلاويږی، دي وجهی نه .په حديث كښ دي:اعذرالله تعالٰی الٰی امرئٍ اخرعمره حتّی بلغ ستين سنةً(بخاري وغيره) ﴿وَجَآءَكُمُ ٱلنَّذِيرُ﴾نذيرنه مرادپيغمبران او دَهغوئ نائبان او وارثان دی چې هغه داعيان دحق وی دينه مراد هغه مختلف حالات هم كيديشی چې هغه دانسان پام آخرت طرف ته ګرځوی،لكه بيمارئ شوې،عمر زياتيدل شو.دې وجهی نه بعض مفسرينو نذير نه مراد په ګيره كښې سپين ويخته لګيدل اغتسی دی او څنو ترينه دنوسی پيدائش اغستې دي،خلاصه دا چې "نذير"هر هغه چاته وئيلی كيږی چې انسان آخرت طرف ته متوجه كړی،خواه هغه پيغمبر او دهغه نائبان وی يانورحالات دژوندوی

فِيهَا نَصَبٌ ﴾ ای تعبٌ،نصبٌ ستړي والي اومشقت ته وائی او ﴿لُغُوبٌ﴾هغه فتور او ستوماني ته وائي چې دَتعب نه پیداشي .نفي دَسبب اګرکه چې مستلزمه وي نفي دَمسبب لره مګردمبالغي دپاره صراحةً نفي اوکړی شوه﴿نَصَبٌ﴾جسماني ستړتیاته او﴿لُغُوبٌ﴾روحاني نفساني ستړتیاته وائی

﴿وَٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ ﴾داتخویف اخروي دي کافرانو ته چې دوئ به ټول عمرپه جهنم کښې پراته وي نه به پرې موت راځي چې دَعذاب نه خلاص شي اونه به ورنه په عذاب کښې څه کمي کیږي.

﴿وَهُمْ يَصْطَرِخُونَ فِيهَا ﴾ای یستغیثون بشدةٍ وعویلٍ(جلالین)یعني داکافران به تیزي ناري سوري وهي په جهنم کښې فریادبه کوي په ژړاانګولاسره﴿رَبَّنَآ أَخْرِجْنَا ﴾یقولون ورنه مخکښې مقدر دې،یعني دوئ به غواړي چې مونږجهنم نه راوباسلی شودنیاته واپس کړې شونوبیابه مونږ نیك عملونه اوکړو.﴿نَعْمَلْ صَٰلِحًا﴾جواب امردي ﴿غَيْرَ ٱلَّذِى كُنَّا نَعْمَلُ ﴾ یعني شرك به نه کوؤ.

﴿أَوَلَمْ نُعَمِّرْكُم ﴾ ددوئ درخواست جواب دې،فیقال لهم ورنه مخکښې مقدردې.بطورزجربه ورته دَالله ﷻ دَطرفه جواب ورکړې شي چې آیامونږتاسوته دومره عمرنه وؤدرکړې چې حق مو پکښې پیژندلې وې اوتوحیدموقبول کړې وې؟ دینه باوجود چې تاسو ایمان نه راوړو نوبیا مو هم ستاسو نه دَایمان راوړوامید نشته بس جهنم کښې اوسئ

،،ما،،ظرفیه ده یا موصوفه او یا موصوله ده،یعنی دومره زمانه او عمر راجح قول دادې چې دینه څه مخصوص مدت اوعمر نه دې مراد بلکه هر مکلف انسان باندې ضرورېضرور دومره وخت تیریږی چې پکښې غوروفکر اوکړی او حق ورته واضح شی او دهغه شان خامخا داسی څه سره واسطه راځی چې هغه دَده لپاره داعی دَحق وی او دَانسان عمرچې څومره زیاتیږی دومره ورته دامواقع زیاتې میلاېږی، دې وجهی نه .په حدیث کښې دې:اعذرالله تعالٰی الٰی امریٍٔ اخرعمره حتٰی بلغ ستین سنةً(بخاري وغیره) ﴿وَجَآءَكُمُ ٱلنَّذِيرُ﴾نذیرنه مرادپیغمبران او دَهغوئ نائبان او وارثان دی چې هغه داعیان دحق وی دینه مراد هغه مختلف حالات هم کیدیشی چې هغه دانسان پام آخرت طرف ته ګرځوی،لکه بیمارئ شوې،عمر زیاتیدل شو.دې وجهی نه بعض مفسرینو نذیر نه مراد په ګیره کښې سپین ویخته لګیدل اغتسی دی او څنو ترینه دنوسی پیدائش اغستې دې،خلاصه دا چې "نذیر"هر هغه چاته وئیلی کیږی چې انسان آخرت طرف ته متوجه کړی.خواه هغه پیغمبر او دهغه نائبان وی یانورحالات دژوند وی

| |
|---|
| إِنَّ اللَّهَ عَٰلِمُ غَيْبِ السَّمَٰوَٰتِ وَالْأَرْضِ ۚ إِنَّهُ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ ۝ هُوَ الَّذِي |
| بيشكه الله ﷻ عالم دې په غيب دآسمانونو اودزمكې.بيشكه الله ﷻ نبه بوهه دې په خبرو دسينو باندې.الله ﷻ هغه ذات دی |
| جَعَلَكُمْ خَلَٰٓئِفَ فِي الْأَرْضِ ۚ فَمَنْ كَفَرَ فَعَلَيْهِ كُفْرُهُ ۖ وَلَا يَزِيدُ الْكَٰفِرِينَ |
| چې گرځولي يئ تاسو خليفه گان په زمكه كښې.پس هغه څوك چې كفرئي وكړونو په هغه دې وبال دكفر دهغه.اونه زياتوي كافرانولره |
| كُفْرُهُمْ عِندَ رَبِّهِمْ إِلَّا مَقْتًا ۖ وَلَا يَزِيدُ الْكَٰفِرِينَ كُفْرُهُمْ إِلَّا خَسَارًا ۝ قُلْ أَرَءَيْتُمْ |
| كفركول دهغوئ په نزدرب دهغوئ مگرغصه.اونه زياتوي كافرانولره كفر كول دهغوئ مگرتاوان.اووايه ته خبراكړئ |
| شُرَكَآءَكُمُ الَّذِينَ تَدْعُونَ مِن دُونِ اللَّهِ ۖ أَرُونِي |
| دشريكانوستاسو هغه چې سوالونه كوئ تاسودهغوئ نه ماسوادالله ﷻ نه. اوښائی ماته |
| مَاذَا خَلَقُوا مِنَ الْأَرْضِ أَمْ لَهُمْ شِرْكٌ فِي السَّمَٰوَٰتِ أَمْ ءَاتَيْنَٰهُمْ كِتَٰبًا |
| چې څه حصه پيداكړې ده دوئ دزمكې نه.يادوئ لره شركت دې په اسمانونوكښې.ياوركړيدې مونږدوئ ته كتاب |
| فَهُمْ عَلَىٰ بَيِّنَتٍ مِّنْهُ ۚ بَلْ إِن يَعِدُ الظَّٰلِمُونَ بَعْضُهُم بَعْضًا إِلَّا غُرُورًا ۝ |
| نودوئ په واضح دليل دی ددغه كتاب نه.بلكه نه كوي وعده ظالمان يو بل سره مگردَدهوكې |

﴿إِنَّ اللَّهَ عَٰلِمُ غَيْبِ السَّمَٰوَٰتِ وَالْأَرْضِ﴾ دالسم(١٠)دليل عقلي دې په توحيد.دې كښې دَالله ﷻ دَغيب دانئ ذكردې چې صرف الله ﷻ دآسمانونو اودَزمكې په هرپټ څيزباندې عالم دې.او دَسينو په رازونو باندې خبر دې لهذاصرف الله ﷻ دَهرچاليپاره كارسازاوگنړئ اوپه وخت دَمصائبوكښې صرف دَهغه نه غواړئ،دغه شان داآيت تعليل دې ماقبل دپاره چې الله ﷻ په هرڅه عالم دې،كچرته دوزخيان دنياته واپس هم كړی شي بيابه هم نيك عمل نه كوي.

﴿هُوَ الَّذِي جَعَلَكُمْ﴾داترغيب دې ايمان ته،چې مونږ په زمكه كښې تاسوخپل خليفه گان گرځولی يئ لهذا په خپله هم ايمان راوړئ او نوروته هم ددې دعوت وركوئ كفرمه كوئ كفر كښې ستاسونقصان دې،﴿خَلَٰٓئِفَ﴾دَخليفة جمع ده نائب اوقائمقام ته وائی،يعنی زمكې او كائنات انتظام وانصرام مې درته حواله كړې دې او هغې كښې دتصرف اجازت مې دركړې

دي يا دخلاف معنى ده يوبل پسې راتلونکی. يعنی يو راشی څه وخته پورې په دنيا کښ وی بيا لاړشی بل راشی او هغه دده مال ومتاع مالک جوړ شی دچاسره هم دا دنيا هميشه لپاره نه ده لهذا ايمان راوړئ کفر مه کوئ.

﴿قُلْ أَرَءَيْتُمْ شُرَكَآءَكُمُ﴾داثمره دَدلائلومذکورؤده دويم ځل اودَمشرکانونه دَدليل عقلي مطالبه ده په شرك،چې په کوم دليل تاسوداخپل بتان دَالله ﷻ سره شريکوي.آيادَځمکي څه حصه دوئ پيداکړيده؟ يادآسمانونوپه نظام کښ دَالله ﷻ سره شريك دي؟ څه لږ دَعقل نه خوکارواخلئ.﴿أَرُونِي مَاذَا خَلَقُوا﴾بدل اشتمال دي.دَ﴿أَرَءَيْتُمْ﴾نه ﴿أَمْ ءَاتَيْنَٰهُمْ كِتَٰبًا﴾دادَنقلي دليل مطالبه ده.چې عقلي دليل خودرسره نشته،نوداسې يومعتبرنقلي دليل پيش کړئ چې دَهغې په اساس تاسوشرك کوئ.﴿بَلْ إِن يَعِدُ ٱلظَّٰلِمُونَ﴾اضراب دي دَماقبل نه چې نه ورسره دليل عقلي شته نه ورسره دليل نقلي بلکه هسې يوبل ئې دهوکه کښ غورځولي دي.﴿إِن﴾نافيه دي.﴿بَعْضُهُم﴾ نه مرادمتبوعين اومشران دي،﴿بَعْضًا﴾نه مراداتباع دی.يعني متبوعين خپلو اتباعوته صرف دهوکه ورکوي اووعدي ورسره کوي چې:هؤلآء شفعاءنا عندالله.چې دا معبودان به زمونږ شفعاء وي.يا﴿بَعْضُهُم﴾نه مرادشياطين دي اودَ﴿بَعْضًا﴾نه مشرکان مراددي

إِنَّ اللَّهَ يُمْسِكُ السَّمَٰوَٰتِ وَالْأَرْضَ أَن تَزُولَا ۚ وَلَئِن زَالَتَا إِنْ أَمْسَكَهُمَا

بيشکه الله ﷻ ټينګ ساتلي دی آسمانو نه اوزمکه ده بې ځايه کيدلونه. اوکچېرې بې ځائ شي دادواړه نه به کړي راټينګ دوئ

مِنْ أَحَدٍ مِّنۢ بَعْدِهِۦٓ ۚ إِنَّهُۥ كَانَ حَلِيمًا غَفُورًا ۝٤١ وَأَقْسَمُوا بِاللَّهِ

هيڅ څوك ماسوئ دَالله ﷻ نه.بيشکه الله ﷻ ډيرصبرکونکي بخنه کونکي دي .اوقسمونه کوي دوئ په الله ﷻ باندې

جَهْدَ أَيْمَٰنِهِمْ لَئِن جَآءَهُمْ نَذِيرٌ لَّيَكُونُنَّ أَهْدَىٰ مِنْ إِحْدَى الْأُمَمِ ۖ

پاخه قسمونه خپل کچېرې راغې دوئ ته پيغمبرنوخامخا به وی دوئ يعني مونږه زيات په هدايت دَهرامت نه.

فَلَمَّا جَآءَهُمْ نَذِيرٌ مَّا زَادَهُمْ إِلَّا نُفُورًا ۝٤٢ اسْتِكْبَارًا فِي الْأَرْضِ

نوکله چې راغې دوئ ته پيغمبر نو زيات ئې نه کړو د دوئ مګرنفرت. چې تکبرکول وو په زمکه کښ

وَمَكْرَ السَّيِّئِ ۚ وَلَا يَحِيقُ الْمَكْرُ السَّيِّئُ إِلَّا بِأَهْلِهِ ۚ فَهَلْ يَنْظُرُونَ إِلَّا سُنَّتَ الْأَوَّلِينَ ۚ

[illegible] کېږي.مکربدمگرپه کونکي دهغه باندي.نودوئ انتظارنه کوي مگرد طریقي د اولینو.

فَلَنْ تَجِدَ لِسُنَّتِ اللَّهِ تَبْدِيلًا ۖ وَلَنْ تَجِدَ لِسُنَّتِ اللَّهِ تَحْوِيلًا ﴿٤٣﴾

نوهرگزاوبه نه مومي ته دطریقې دالله جل جلاله لره بدلیدل.اوهرگزاوبه نه مومي ته دطریقې دالله جل جلاله لره گرځېدل.

﴿إِنَّ اللَّهَ يُمْسِكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ﴾دایولسم(۱۱)دلیل عقلي دی په توحید.چي حفاظت کونکي دآسمانونواوزمکي صرف الله جل جلاله دی.الله جل جلاله نه ماسوی ئی بل څوك حفاظت نشي کولي.لهذا معبود.حاجت رواهم صرف الله جل جلاله اوګڼئ.﴿يُمْسِكُ﴾ مراددامساك نه حفاظت کول اوساتل دي ﴿أَن تَزُولَا﴾مفعول له دی ای کراهة ان تزولایا لئلا تزولا، زوال نه مراددهیئت موجوده نه بې ځایه کول اومنتقل کول دي.یاورنه مرادزلزلې راوستل دي ﴿وَلَئِن زَالَتَا﴾لام موطئه للقسم دي.﴿إِنْ أَمْسَكَهُمَا﴾ان نافیه دی.قرب قیامت ته چي کله په اسمانونواوزمکي زلزلې راشي نوبیابه ئی بل څوك حصارولي نشي،﴿مِّنۢ بَعْدِهِۦ﴾ بعد دلته په معنیٰ دسوی سره دي ای من سواه جل جلاله(جلالین).﴿إِنَّهُۥ كَانَ حَلِيمًا غَفُورًا﴾یعني بې شکه الله جل جلاله حلم والادی نو د مشرکانوپه تعذیب کښې جلدي نه کوي اوچي څوك توبه اوباسي نوتوبه ئی قبلوي.حالانکه مقتضیٰ دشرك داوه چي دانظام ئی ټول درهم برهم کړي وي.

﴿وَأَقْسَمُوا بِاللَّهِ﴾دازجردي قریش مکې وته اوتخویف اخروي دي.قریشوته چي کله معلومه شوه چي اهل کتابویعني یهودواونصاریٰ ،دځپلوانبیاؤکراموتکذیب کړي وو نواونی وئیل چي په دوئ دي لعنت وي چي دځپلوانبیاء کراموتکذیب ئې اوکړو،په الله مودې قسم وي کچرته مونږته رسول مبعوث شي نومونږبه دځپل نبي دېرزیات اطاعت کوؤ.دمخکښې خلقوپه شان تکذیب به ئې نه کوؤ.لیکن چي کله حضور ﷺ تشریف راؤړو.نبوت ورته ملاؤشو نو بیائی ورسره عداوت.نفرت شروع کړو.اودحضور ﷺ خلاف ئې منصوبې شروع کړې نودا آیاتونه نازل شو ﴿مِنْ إِحْدَى الْأُمَمِ﴾الف لام دعهدلپاره دي،معهودپدې سره تکذیب کونکي امتونه دي.یادا ستغراق لپاره دي،یعني دهرهرامت نه به زیات هدایت موندونکي اواطاعت

کونکي یو. ﴿فَلَمَّا جَاءَهُمْ نَذِيرٌ﴾ ضمیر راجع دي قریشو ته. د نذیر نه مراد حضور ﷺ دی.
﴿اسْتِكْبَارًا فِي الْأَرْضِ﴾ دي کښې درې احتماله دي (۱) بدل دې د نفورا نه (۲) مفعول له دی (۳) حال دي اي مستکبرین ﴿وَمَكْرَ السَّيِّئِ﴾ عطف دې په ﴿اسْتِكْبَارًا﴾ یا په ﴿نُفُورًا﴾ اضافت د موصوف دې صفت ته. یعني بدتدبیر او مکر. مراد د حضور ﷺ د قتل کولو منصوبې دي ﴿وَلَا يَحِيقُ﴾ ای لایحیط یا په معنی د لایصیب دې یعني دوئ خو د حضور ﷺ خلاف منصوبې جوړه وي لیکن قانون د الله ﷻ دا دې چې منصوبه جوړه ونکي پکښې پخپله راګیزیږي. شعر

کوهې مه کنه د بل سرې په لار کښې    هسې نه د کوهي په غاړه ستا لار شي

په یو روایت کښې دي لاتمکروا ولاتعینوا ماکراً فانّ الله تعالٰی یقول:ولایحیق المکرالسیئ الاّ باهله. (روح المعاني) او کفار مکئ و ته د دې منصوبو سزا په ورځ د بدر ورکړې شوه. که **سوال** او کړې شی چې د آیت نه معلومیږي چې د چا خلاف منصوبه او سازش کله هم کامیاب کیدلې نشي بلکه ماکرته نقصان رسي حالانکه ډیرځله سازش کامیاب شي مکرئی او چلیږي

**جواب** (۱) مکرنه دلته مکرِ خاص مراد دې چې نبي ﷺ سره مکر کول دي او دغه خلاف مصوبې جوړول دي. نو د دې ناکامه کیدل ظاهر دي (۲) یا مکرنه مراد عام دې لیکن کوم ځائ چې کامیاب شي نو هغه ځائ د دې اهل او مستحق وي. او آیت کښې د دې نفي نده بلکه اثبات دې (۳) یا دلته مراد د انجام په اعتبار سره دې. یعني اګرچې ظاهراً و في الحال د ده سازش کامیاب وي. لیکن انجام د ده به خراب وي (البحر المحیط)

﴿فَهَلْ يَنظُرُونَ إِلَّا سُنَّتَ الْأَوَّلِينَ﴾ یعني دوئ صرف دا غواړي چې عذاب راباندې نازل شي لکه په مخکني خلقو چې نازل وو. بدې وجه دوئ تکذیب کوي. بس انتظار دی کوی د الله ﷻ عادت کریمه نه بدلیږي عذاب به ورباندې راځي.

| أَوَلَمْ يَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ فَيَنظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ وَكَانُوا |
| --- |
| آیا دوئ نه دي ګرځیدلي په زمکه کښې چې ئې لیدلې وې څنګه وو انجام د هغه خلقو چې د دوئ نه مخکښې وو او وو هغوئ |
| أَشَدَّ مِنْهُمْ قُوَّةً وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُعْجِزَهُ مِن شَيْءٍ فِي السَّمَاوَاتِ وَلَا فِي الْأَرْضِ |
| ډیر سخت د دوئ نه په قوت کښې. او نه دي الله ﷻ چې عاجزه کړي هغه لره هیڅ څیز په اسمانونو کښې او نه په زمکه کښې. |

إِنَّهُ كَانَ عَلِيمًا قَدِيرًا ﴿٤٤﴾ وَلَوْ يُؤَاخِذُ اللَّهُ النَّاسَ بِمَا كَسَبُوا مَا تَرَكَ

بيشکه الله ﷻ دي عالم قادر او کچري نيولی الله ﷻ خلق په سبب دهغه عملونو چې دوئ کوي برخمی به نی نه وو.

عَلَىٰ ظَهْرِهَا مِن دَابَّةٍ وَلَٰكِن يُؤَخِّرُهُمْ إِلَىٰ أَجَلٍ مُّسَمًّى ۖ فَإِذَا جَاءَ أَجَلُهُمْ

په شادزمکه باندې هيڅ زنده سر، ليکن ورستوکوی دوئ لره تريوې نيټې مقررې پورې. پس هرکله چې راشي نيټه ددوئ

فَإِنَّ اللَّهَ كَانَ بِعِبَادِهِ بَصِيرًا ﴿٤٥﴾

(نوبدله به ورکړی هرچاته ځکه چه، الله ﷻ دی په بندګانو خپلو لیدونکي

﴿أَوَلَمْ يَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ﴾ داتخويف دنيوي دي اوماقبل دپاره استشهاددې.چې دوئ پخپلو سفرونو دتجارت کښ شام،يمن،عراق.ته دمکذبينُ دهلاکت مشاهده کړيده چې هغوئ ددوئ نه په هراعتبارسره ښه وو،الله ﷻ دتکذيب پوجه هلاك کړيدي نودوئ به هم هلاك کړي دادالله ﷻ سنت دې. ﴿مِن قَبْلِهِمْ﴾ نه مرادقوم نوح،عاد،ثمود وغيره دي، ﴿إِنَّهُ كَانَ عَلِيمًا قَدِيرًا﴾ تعليل دې دماقبل چې الله ﷻ لره څوك عاجزه کولې نشي دچادعذاب نه.ځکه چې الله ﷻ ډيرپوهه اوډيرقدرة طاقت والادې.

﴿وَلَوْ يُؤَاخِذُ اللَّهُ النَّاسَ﴾ دادالله ﷻ دحلم بيان دې چې الله ﷻ دچاګرفت نه کوي بلکه مهلت ورکوي چې انسان توبه اوباسي او که چرته مهلت ئې نه ورکولې نوپه مخ دزمکه به هيڅ هم ژوندې پاتې نه شي،نه انسان،نه حيوان،باقي تشريح ددې آيت کريمه دسورة النحل آيت (١) کښ تفصيلاًتيره شويده هلته ئې اوګورئ ﴿إِلَىٰ أَجَلٍ مُّسَمًّى﴾ مرادورنه ورځ دقيامت ده

﴿فَإِذَا جَاءَ أَجَلُهُمْ فَإِنَّ اللَّهَ﴾ يعني چې کله قيامت راشي نوبيابه الله ﷻ هرچاته خپل خپله بدله ورکوي:ان خيراًفخيرٌوان شراًفشرٌ،ځکه چې الله ﷻ دهرچاپه عمل خبرداردې.د ﴿فَإِذَا جَاءَ﴾ جزاء محذوفه ده چې(يجازي)دې او ﴿فَإِنَّ اللَّهَ﴾ دهغې قائمقام دې.اوتعليل دې ددغې جزاء محذوفي(روح).

تمت سورة الفاطر

| ركوعاتها (٥) | سورة يٰسين مكية | آياتها (٨٣) |
| --- | --- | --- |
| | بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بيحده مهربان او ډير رحم كونكي دې شروع كوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (٣٦) وحسب النزول (٤١)**

نزلت بعد الجنّ وقبل الفرقان.

**ربط اسمی**: ماقبل سورت سره ئی ربط اسمی دا دې چې هغې كښې د الله ﷻ دَ "فاطر" كيدلو اثبات اودهغې دلائل وو. اوس په دې سورت كښې ترغيب دې چې په توحيد داسې مستقيم پاتې شئ لكه څنګه چې صاحب يسين "رجل مومن" د استقامت مظاهره كړې وه.

**ربط معنوی**: ماقبل سورة فاطرسره ئې ربط معنوی داسې دې، چه ماقبل كښې په نفي دَشفيع قهري باندې دلائل بيان شول، دې سورة كښې ترقي ده چه شفيع قهري منونكی مونږ هلاك كړل نوخپلو معبودانوولې بچ نكړل، كمال قال تعالی: أَلَمْ يَرَوْا كَمْ أَهْلَكْنَا قَبْلَهُم مِّنَ الْقُرُونِ أَنَّهُمْ إِلَيْهِمْ لَا يَرْجِعُونَ ﴿٣١﴾

**خلاصه**

**تمهيد مع الترغيب**: آيت: ١ - ١٢

دعوه دَ سورت: لَّا تُغْنِ عَنِّي شَفَاعَتُهُمْ (آيت ٢٣)

**اووه (٧) دلائل عقليه ذكر كيږی په دعوې باندې**

(١) وَءَايَةٌ لَّهُمُ ٱلْأَرْضُ ٱلْمَيْتَةُ (آيت ٣٢، ٣٣) (٢) وَءَايَةٌ لَّهُمُ ٱلَّيْلُ نَسْلَخُ مِنْهُ (آيت ٣٧)

(٣) وَٱلشَّمْسُ تَجْرِى لِمُسْتَقَرٍّ لَّهَا (آيت ٣٨) (٤) وَٱلْقَمَرَ قَدَّرْنَٰهُ مَنَازِلَ (آيت ٣٩)

(٥) لَا ٱلشَّمْسُ يَنۢبَغِى لَهَآ (آيت ٤٠) (٦) وَءَايَةٌ لَّهُمْ أَنَّا حَمَلْنَا (آيت ٤١، ٤٤)

(٧) أَوَلَمْ يَرَوْا أَنَّا خَلَقْنَا لَهُم (آيت ٧١، ٧٣)

**پنځه شکوې دکافرانو نه ذکر کیږی**

(۱) یَٰحَسۡرَةً عَلَى ٱلۡعِبَادِ (آیت ۳۱) (۲) وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ ٱتَّقُواْ (آیت ۴۵. ۴۲)

(۳) وَإِذَا قِيلَ لَهُمۡ أَنفِقُواْ (آیت ۴۷) (۴) وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هَٰذَا ٱلۡوَعۡدُ (۵۳. ۴۸)

(۵) أَوَلَمۡ يَرَ ٱلۡإِنسَٰنُ أَنَّا خَلَقۡنَٰهُ (۸۳. ۷۷)

**شپږ تخویفات ذکر کیږی**

(۱) إِنَّا نَحۡنُ نُحۡيِ ٱلۡمَوۡتَىٰ (آیت ۱۲) (۲) لَهُم مَّثَلًا أَصۡحَٰبَ ٱلۡقَرۡيَةِ (آیت ۱۳ . ۱۹)

(۳) مَا يَنظُرُونَ إِلَّا صَيۡحَةً (آیت ۴۹ . ۵۳) (۴) وَٱمۡتَٰزُواْ ٱلۡيَوۡمَ أَيُّهَا ٱلۡمُجۡرِمُونَ (آیت ۵۹. ۲۵

(۵) وَلَوۡ نَشَآءُ لَطَمَسۡنَا عَلَىٰٓ أَعۡيُنِهِمۡ (آیت ۲۲) (۲) وَلَوۡ نَشَآءُ لَمَسَخۡنَٰهُمۡ عَلَىٰ (آیت ۲۷)

**دوه بشارتونه ذکر کیږی**

(۱) إِنَّا نَحۡنُ نُحۡيِ ٱلۡمَوۡتَىٰ آیت نمبر ۱۲ (۲) إِنَّ أَصۡحَٰبَ ٱلۡجَنَّةِ (۵۵ . ۵۸)

**دوه زجرونه ذکر کیږی**

(۱) أَلَمۡ يَرَوۡاْ كَمۡ أَهۡلَكۡنَا قَبۡلَهُم (آیت ۳۱) (۲) وَٱتَّخَذُواْ مِن دُونِ ٱللَّهِ ءَالِهَةً (آیت ۷۳. ۷۲)

او په آخر کښې **دسورت لب لباب** ذکر کیږی چې فَسُبۡحَٰنَ ٱلَّذِي بِيَدِهِۦ مَلَكُوتُ كُلِّ شَيۡءٖ وَإِلَيۡهِ تُرۡجَعُونَ

**فضائل** په حدیثونوکښې دسورة یٰسین ډیرفضائل راغلي دي.په یوروایت کښې دي دهرڅیزدپاره زړه وي.دقرآن شریف زړه سورة یٰسین دې.ځکه چې قرآن مقابل دشرك دې اودشرك بنیاداوزړه شفاعت قهري دې اوددې سورة اصلي دعوه نفي دشرك اونفي دشفاعت قهري ده.

دعطاء ابن ابي رباح نه روایت دې چې حضورﷺ فرمائیلي دي من قرأیسین فی صدر النهارقُضیتْ حوائجه.یعني چاچې دورځې په شروع کښې سورة یسین اولوستلودهغه ټولې ورځې حاجتونه پوره کړې شو.

په یوحدیث کښې راغلي دي چې څوك سورة یٰسین خاص دالله ﷻ درضاء لپاره اولولي

دهغه پوهيږي چې کله غوږ معاف کيږي.پس دا سورة به خپلو مړو ته دي اولولئ.په يوروايت کښ دي د سورة يسين نوم په تورات کښ منعمه،دی چي خپل لوستونکي دپاره ددنيا اوآخرت په نيکيو شامل دی.ددنيا وآخرت مصيبت لري کوي.دآخرت سره لري کوی

ددي سورة نوم رافعه،خافضه هم دي.دمؤمنانو مرتبې اوچتونکي اودکافرانو رچي خکته کونکي.يوروايت کښ دي چې حضورﷺ فرمائی چه خمازړه غواړي چه سورة يسين خما دهرامتي په زړه کښ وي

| يٰسٓ ۞ وَالْقُرْاٰنِ الْحَكِيْمِ ۞ اِنَّكَ لَمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ ۞ |
|---|
| الله ﷻ ته پوهيږي په مراد خپل ددينه.قسم دي په قرآن حکيم باندي.يقيناً ته خامخا د رسولانو نی |
| عَلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ۞ تَنْزِيْلَ الْعَزِيْزِ الرَّحِيْمِ ۞ لِتُنْذِرَ |
| اويقيناً ته نی په لاري سمې باندي. نازل کړي شوي دي د زوروزدات طرف نه چي رحم کونکي دي. چي اويروي ته |
| قَوْمًا مَّآ اُنْذِرَ اٰبَآؤُهُمْ فَهُمْ غٰفِلُوْنَ ۞ |
| هغه قوم چي نه وو يرولي شوي پلاران دهغوئ پس دوئ ناخبره دي. |

﴿يس﴾ دا د حروف مقطعاتو نه دي.تفصيل ئې په ابتداء د سورة بقري کښ تيرد ی.ابن عباس ﷺ فرمائي پمعنی د يا انسان دي.بعض وائی حبشي لفظ دي پمعنی د يارجل.بعض وائی دانوم دي د نومونو د الله ﷻ نه.بعض وائی د نبي اکرم ﷺ په نومونو کښ يو نوم دي.لکه په حديث کښ دي انّ الله تعالٰى سمّاني فی القرآن سبعة اسماء، محمّد،واحمد،وطه،ويسين، والمزّمل، والمدثر، وعبد الله(قرطبي) بعض وائی معنی ئې ياخير البشر ده،چاويلي دي د قرآن د نومونو نه يو نوم دي

﴿وَالْقُرْاٰنِ الْحَكِيْمِ﴾ای ذي حكمة.ددي ځائ نه ترآيت(۱۱)پوري تمهيد دي.پديکښ د حضور ﷺ صداقت ذکر کيږي.واؤ قسميه دي.قسم برائ استشهاد دي يعني مقسم به دليل گرځولي شوي دي په جواب قسم.اتصاف د قرآن په الحکيم سره اسناد مجازي دي.ځکه چه حقيقةً نسبت ئې الله ﷻ ته کيږي(روح).

﴿اِنَّكَ لَمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ﴾ دا جواب قسم دي . دي کښ د کافرانو دري خبرو رد دي(۱) اوله خبره

داچې ته دَ الله ﷻ رسول نه ئی.اي لست مرسلا(۲) دویمه خبره داچې ته داخیل آباؤو اجداد، دین خلاف روان ئی نوته گمراه ئی.(۳) دریمه خبره دا چې دا قرآن د الله ﷻ کتاب نه دي.﴿لمن الْمُرْسَلِينَ﴾دا داولې خبرې جواب دې.چې بالکل اویقینا دا الله ﷻ رسول ئی او داقرآن حکیم پدې گواه دې چې ته په حقه رسول ئي.اودې ستاد صداقت گواهي ورکوي

﴿عَلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ﴾ دیکښ دَ دویمې خبرې جواب دې. چې ته بالکل په سمې لارې ئی دوی گمراه دی. دایاخبرثاني دي دَ﴿إِنَّكَ﴾ای انك علی صراطٍ مستقیم .یامتعلق دې دَ﴿الْمُرْسَلِينَ﴾ ای لمن الّذین اُرسلوا علی صراطٍ مستقیم(روح) یعني ته دَهغه رسولانونه ئی چه په صراطِ مستقیم باندې لیږلی شوی وو

﴿تَنزِيلَ الْعَزِيزِ الرَّحِيمِ﴾دریمی خبری جواب دې. تنزیل مفعول مطلق دې دفعل محذوف ای نزّل تنزیل. دا هم جواب قسم تحت راځی. یعنی دا قرآن پخپله گواهی کوی چې دا دالله ﷻ حق کتاب دې.او هغه نازل کړیدې،نبی کریم ﷺ دخان نه نه دې جوړ کړی.﴿الْعَزِيزِ﴾ډیر زورآور . چې هغې یومظهردا دي چې تاسودهغه کلام مقابله هم نشی کولې او دهغې مثال راوړلونه عاجز یئ﴿الرَّحِيمِ﴾کامل رحمت والا دې .دې دووصفاتو ذکر کولو کښ ترغیب دې ایمان ته

﴿لِتُنذِرَ قَوْمًا﴾ بعثت مقصد ذکر کیږی، متعلق دې یا﴿تَنزِيل﴾یادَ﴿الْمُرْسَلِين﴾سره، یعني ته رالیږلې شوې ئی لپاره دَیرولو .﴿قَوْمًا﴾ نه مراداهل مکه دې.چه نیزدې زمانې کښې دوئ ته رسول نه وؤ راغلې ﴿مَّا أُنذِرَ آبَاؤُهُمْ﴾ راجع قول دا دې چې(۱)ما نافیه ده. جمله صفت ده دَ﴿قَوْمًا﴾ یعني داسې قوم چه اباؤته ئي انذارنه وؤشوي.اومراددَاباء نه قریب آباء دي. یعنی قوم حیثیت کښ وجود ته راتلونه بعد چې دَ دوئ کوم آباواجداد وو.هغه مراد دی.ځکه چه بعیدو ته اسماعیل ﷺ راغلې وؤ(۲)بعضِ وائی 'ما'موصوله بمعنی الذي دې.مفعول ثاني دې دَ﴿لِتُنذِر﴾ ای لتنذرقومًا الّذی انذرهُ الرسُل اباءهم الابعدین(روح)نومعنی دآیت داده چې ته اویروي هغه قوم چې یرولی وؤاباءِ بعیده دَدوئ رسولانو (۳)بعضِ وائی'ما'مصدریه دې نو جمله ټوله صفت دې لپاره دَمصدرمؤکد ای لتنذرَ قومًا انذاراً مثل انذارِالرسل اباءهم الابعدین

(روح)

﴿فَهُم غَٰفِلُونَ﴾كه"ما"نافيه شي نو داتفريع ده په﴿مَّآ أُنذِرَ﴾باندې . نومطلب دادې چې دَدوئ اباؤته انذارنه وؤشوې نودوئ پدې وجه غافله دي اودَهدايت نه بې خبره دي اوكه(ما)نافيه نشي بلكه موصوله يامصدريه شي نوبيادَدې جملې تعلق دَ﴿لِتُنذِرَ﴾ سره دې.نومعنیٰ به داشي چې ته اويروې داسې قوم چې هغوئ غافله دي دَهغه عذاب نه چې هغې سره ئې اباؤته انذارشوې وؤ(روح وغيره).

| لَقَدْ حَقَّ الْقَوْلُ عَلَىٰ أَكْثَرِهِمْ فَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ ۝ إِنَّا جَعَلْنَا |
|---|
| په تحقيق سره ثابته شوه داخبره په ډيرودوئ باندې نو څكه دوئ ايمان نه راوړي،بيشكه مونږګرځولي دي |
| فِي أَعْنَاقِهِمْ أَغْلَالًا فَهِيَ إِلَى الْأَذْقَانِ فَهُم مُّقْمَحُونَ ۝ وَجَعَلْنَا |
| په ستونوددوئ كښې طوقونه.نوهغه رسيدلي دي زنونه،پس دوئ سراوچت كړي شوي دي.اوګرځولې دې مونږ |
| مِن بَيْنِ أَيْدِيهِمْ سَدًّا وَمِنْ خَلْفِهِمْ سَدًّا فَأَغْشَيْنَاهُمْ فَهُمْ لَا يُبْصِرُونَ ۝ |
| مخې دَدوئ ته ديوال اوورستودَدوئ ته ديوال،پس پټ كړي دي مونږ دوئ نو دوئ هيڅ نه ويني، |
| وَسَوَاءٌ عَلَيْهِمْ أَأَنذَرْتَهُمْ أَمْ لَمْ تُنذِرْهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ ۝ |
| اوبرابره ده په دوئ كه يروې ته دوئ اوكه نه يروې دوئ،ايمان نه راوړي دوئ. |

﴿لَقَدْ حَقَّ الْقَوْلُ﴾ دبعثتِ مقصدذكركولو نه بعد اوس دَ مبعوث اليهم يعنى دَخلقو حالت بيان دې،چې دوئ ته كله پيغمبر راغى نو دوئ په دوه حصو كښې تقسيم شو ، څنوئى تكذيب اوكړو اوځنوپرې ايمان راوړو ،دې آيتونو كښې مكذبينوحالت بيان اوهغوئ ته تخويف دې، چې دوئ ته ضدوعناد په وجه حق نه ښكارى اوايمان نه روارې، لهذا دوئ دَ الله ﷻ عذاب مستحق ګرځيدلى دى ، دَ (اَلْقَوْل)نه مراد(١)ياعذاب دې،يعني دَضداوعناد اختيارولو پوجه پدوئ دَعذاب الهي فيصله شويده،(٢)ياورنه مراددا قول دَالله ﷻ دې ابليس ته،لاملئنّ جهنّم منكم اجمعين (٣)ياورنه مرادفيصله دَتقديرده يعني په علم دَالله ﷻ كښې داثابته ده چه دوئ

ايمان نه راوړي ﴿فَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ﴾ فاء تعريفيه ده يعنی مسلسل ضد وعناد سره جمع نه ﷺ ورته په زړونو باندې مهرجباريت لګولې دی نوځکه اوس دوئ ايمان نه راوړی

﴿إِنَّا جَعَلْنَا فِي أَعْنَاقِهِمْ أَغْلَالًا﴾ اعناق جمع دعنق ده .مرئ ته وائی. اغلالاجمع غل ده طوق ته وائی ﴿فَهِيَ﴾ ضمير اغلالو(زنځيرونو)ته راجع دې بعض وائی لاسونوته راجع دی.يعني لاسونه به ئې ځنوته رسيدلي وي.اول مرجع اولی دې.ځکه چه د لاسونو ذکر مخکښې نه دې سوی ﴿إِلَى الْأَذْقَانِ﴾اي واصلة الى الاذقان يعنى داطوق ئی ځنې پورې رسيدلي وی.﴿فَهُمْ مُقْمَحُونَ﴾ مشتق دې د الاقماح نه رفع الراس وغض البصر ته وائی. مُقمَح هغه چاته وائی چه سرئې پورته کړی او سترګې ئې ښکته وی.داپه پخوانوقيدخانوکښې قيديانو ته دَسزا ورکولويوه طريقه وه چي د دوئ به مرئ کښې به ئی زنځيرواچولونوتاؤراتاؤبه ئې کړواوځني لاندې به ئې ورته غوټه ورکړه وپه غوټه کښې به ئې ورته ميخ ټک وهلوچې هغه به دَقيدي ځنې سره اولږيدلونوقيديدې به سراوچت نيولي وؤ .نوتختيدلې به نشو

اکثرمفسرينو په نيز دادواړه آيتونه دَدوئ ضداوعناد تمثيل دې.لکه چې د يوسړی مرئ کښې غټ طوق اچولي شوې وی.چې دَهغې وجهې نه ئی سرپورته وی.نه سرلاندې کولې سی اونه اخوديخوا مخ ګرځولې شی.مخکښې ورته هم ديوال وی او ورستو هم ديوال وی.نونه دې مخکښې کتلې شی اونه تللې شی اونه ورستو.نو دهغه شان حالت دَدوئ دې .دحق نه نفرت اوباطل سره محبت دوئ دپاره طوق ګرځيدلې دې.دَحق نه تکبر اوايمان نه اعراض دقمح کيفيت ګرځيدلی دې.چې نه حق ته ټيټې دې شی.اونه ورته اوړيدې شی.او داخواهشات ورله ديوالونه ګرځيدلی دی چې دَدوئ نه چاپيره دی اودوئ ترينه ړق نشی وهلې اوګمراهئ کښې پراته دی.غرض داچه دوئ ضد وعناد په کفر کښې داسې راګير کړی دې چې دوئ نه مخکښې تلې شی نه ورستو.نه اخوا کتې شی نه ديخوا

بعض مفسرين وائی چې داتمثيل نه دې بلکه حقيقت دې.اودا آيت نازل دې په سبب دَيوې خاص واقعې.چې حضورﷺ يوه ورځ په مسجدکښې مونځ کولو .قراءت ئې هم په جهر سره کولو. نوکفاروته داډيربده اولږيده نوحضورﷺ ته دَتکليف ورکولودَپاره راپاسيدل. نو لاسونه ئې دَ مرو سره اونختل.اوسترګې ئې ړندې سوې. مخکښې ورستو ورته هيڅ نشول کتل.بيانبيﷺ ته راغلل.د نبيﷺ اودَصله رحمي واسطه ئې ورکړه. معافي ئې ترينه او

خبرنه. دحضور ﷺ په دعا سره ئې لاسونه کولاؤشول.نظرئې هم صحيح شو.ليکن ايمان ئې رانه وړلو. نود ﴿يسٓ ۝ وَٱلْقُرْءَانِ ٱلْحَكِيمِ﴾ نه تر﴿أَمْ لَمْ تُنذِرْهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ﴾پورې آيانونه نازل سول.مفسرينو ددې آيانونو په شانِ نزول کښې نورې واقعې هم ذکرکړيدي ليکن هغه ټول روايات ضعيف دي.البته داروايت د هغوئ نه سند په اعتبارسره قوي دې.وقال الشوکاني:وفی الباب رواياتٌ فی سبب ذلك،هذهِ الرّواية احسنهاواقربهاالی الصحة(فتح القدير).

بعض وائي چې داتړل دلاسونوحقيقة دي خوداددوئ په جهنم کښې دسزاکيفيت ذکر دې، لکه بل آيت کښې راغلي دي.اذالاغلال فی اعناقهم والسّلاسلُ يسحبون،تعبيرترينه په ماضي سره د وجې دتيقن نه شويدی.

﴿وَجَعَلْنَا مِنۢ بَيْنِ أَيْدِيهِمْ سَدًّا﴾دا دماقبل تمثيل تتمه ده چې دځپل ضدپوجه داسې دهدايت نه محرومه دی لکه دېوانسان مخې اوروستوهرطرف ته ديوال راچاپيره وي.دې پکښې راګير وي.تللې هم نسي.سترګې ئې هم تړلې وي کتل هم نشي کولې.﴿مِنۢ بَيْنِ أَيْدِيهِمْ﴾او﴿وَمِنْ خَلْفِهِمْ﴾ دټولوجهاتو نه کنايه ده

﴿وَسَوَآءٌ عَلَيْهِمْ﴾دماقبل توضيح اوتفريع ده،باقي تفسيرپکښې په تفصيل سره په ابتداء د سورة البقره کښې تيرد

| إِنَّمَا تُنذِرُ مَنِ ٱتَّبَعَ ٱلذِّكْرَ وَخَشِيَ ٱلرَّحْمَٰنَ بِٱلْغَيْبِ |
|---|
| بيشکه ته يرويې(نفع اخلي دنصيحت ستانه)هغه څوك چې تابع داري کوي دنصيحت اوويريږي درحمٰن نه په پټه سره، |
| فَبَشِّرْهُ بِمَغْفِرَةٍ وَأَجْرٍ كَرِيمٍ ۝ إِنَّا نَحْنُ نُحْيِ ٱلْمَوْتَىٰ وَنَكْتُبُ مَا |
| پس زيرې ورکړه ده ته د بخښنې اود اجر نيك. بيشکه مونږه به ژوندي کوؤمړي اوليکومونږهغه عملونه |
| قَدَّمُوا۟ وَءَاثَٰرَهُمْ ۚ وَكُلَّ شَىْءٍ أَحْصَيْنَٰهُ فِىٓ إِمَامٍ مُّبِينٍ ۝ |
| چې مخکښې ليږلي دي دوئ اونښې دعملونودوئ اوهرڅيزمحفوظ کړيدې مونږهغه په کتاب ښکاره کښې(لوح محفوظ). |

﴿إِنَّمَا تُنذِرُ مَنِ ٱتَّبَعَ ٱلذِّكْرَ﴾ دمکذبينودحالت بيان نه بعد اوس تصديق کونکواوايمان راوړونکو حالت بيان دې او هغوئ ته بشارتِ اخروي دې.يعنی دوئ دقران اتباع کوی او الله

ﷻ نه يريږي .او دهغې نتيجه داده چې ته ورته كوم نصيحت كوې نو هغه پرې اثركوي.

.﴿ٱلذِّكۡرَ﴾ نه مراد قرآن دي.اواتباع نه مرادتامل كول اوعمل كول دي ورباندې.روح

ياد:﴿ٱلذِّكۡرِ﴾ نه مراد وعظ اونصيحت دي﴿فبشره﴾دا بشارت دې﴿وَأَجۡرٖ كَرِيمٍ﴾نه مرادجنت دې اوجنت ته اجر كريم څكه وائی چې دابدله په كرم باندې مبنی ده څكه چې جنت او دهغې نعمتونو ابدی هم دی اوكامل هم دی،او دانسان اعمال محدود او ناقص دی د الله ﷻ شان لائق نه دی نو د محدود اوناقص اعمالوبدله ابدی اوكامله وركول محض كرم اوفضل دې.

﴿إِنَّا نَحۡنُ نُحۡيِ ٱلۡمَوۡتَىٰ﴾تكذيب كونكو اوتصديق كونكو دحالت بيان نه بعد اوس داآيت بطور تتمه اونتيجه ذكر كيږی چې پديكښ مؤمنانو ته ترغيب اوبشارت دې اوكافرانوته تخويفات اوزجر دې،چې تاسوڅه اعمال كوئ،موږ هغه ليكلو،آخر به مرئ اوبياخو به موږ قيامت په ورځ ژوندي كوو،اوحساب كتاب به درنه اخلو.كه نيک عمل خوكړې وی نو هغې بدله به درته ميلاويږی اوكه بدعمل خوكړې نو دهغې بدله به درته ميلاويږی.

﴿وَنَكۡتُبُ﴾ مرادكتابت نه حفاظت داعمالودې،څكه چې ليكل ذريعه دحفاظت ده﴿مَا قَدَّمُواْ﴾نه مرادهغه عملونه دي چې پخپله ئی كړي وي،اخرت ته ئی ليږلي وي﴿وَءَاثَٰرَهُمۡ﴾ پدې كښ دوه قوله دي(١)يوداچه مراددډینه اثرات اوثمرات دعملونودي چې ورستوخلقوته ئی پريدي،نوكه دنيك عملونواثرات وي نودهغې به انسان ته نيكه بدله وركولې كيږي اوكه بدعملونه وي دهغې گناه به ورته ميلاويږي،په حديث كښ دي:من سنّ فی الاسلام سنّة حسنة: فله اجرها و اجرمن عمل بها بعده من غيران يُنقص من اجورهم شئ،ومن سنّ فی الاسلام سنة سيئة: فله وزرها و وزرُ من عمل بهامن بعدهِ من غيران ينقصَ من اوزارهم شئ(مسلم،كتاب الزكوٰة) يعني چاچه په اسلام كښ يوه ښه طريقه رائجه كړه نوده ته به دهغې اجرهم اوورستوعمل كونكواجربه ورته هم وركولې كيږي،اودعمل كونكوپه اجركښ به څه كمی نه كيږي،اوچاچه غلطه طريقه رائجه كړه نودهغې گناه هم اوورستوعمل كونكوگنابه ورته هم ملاويږي،دعمل كونكوپه گناه كښ به څه كمی نه كيږي،دغه شان بل حديث كښ دي چې انسان ته دمرگ نه ورستوهمددرې قسمه عملونوثواب ملاويږي:(١)دصدقه جاريه، لكه جمات جوړه ول،كوهی كنستل.كتاب تصنيف كول وغيره (٢)چاته دعلم تدريس كول (٣) اولادصالحه دڅان نه ورستوپريښودل چې هغوئ

ورته دعا گاني کوي

(۲)یامراددَ ﴿وَءَاثَٰرَهُمۡ﴾نه نقش قدم دَعملونودي،يعني انسان چه نيك عمل دپاره خي نو دَ عمل ثواب هم اودَتللوثواب هم ورته ملاويږي.مثلاًدَمونځ دپاره قدمونه اغستل لکه داپه حديث کښ راغلي دي کله چې بنوسلمه قبيلي مسجدنبوي ﷺ ته دَقريب منتقل کيدلواراده اوکړه نوحضور ﷺ ورته اوفرمائيل:ديارَکم تُکتب اثارَکم.پدې وجه بعضودَدې تفسيرپه(خُطاهم الى المساجد)سره کړيدى.يعني جمات ته قدمونه اغستل.﴿وَكُلَّ شَىۡءٍ﴾ كل منصوب دى.په مااضمرعامله على شريطة التفسير،اى :واحصيناكل شئ.

﴿فِىٓ إِمَامٍ مُّبِينٍ﴾ يالوح محفوظ ورنه مراددې،ياورنه علم ازلي دَالله ﷻ مراددې،ياورنه عمل نامه دَانسان مرادده اوامام ورته خکه اوئيلې شوچې دَقيامت په ورځ به پدې کښ دَليکلي شوي خبرواقتداء کيږي،مخالفت به ورنه نه کيږي(روح) بعض غالي شيعه گان وائى دينه مرادحضرت علي ﷺ دې اومطلب دادى چې الله ﷻ حضرت علي ﷺ دَمعلوماتوخزانه گرځولي ده په شان دَلوح محفوظ،ليکن دالوئ جهالت اوبې خبري ده دَقرآن نه،ولايخفي مافى ذلك من عظيم الجهل بالكتاب الجليل نسال الله تعالىٰ العفووالعافية(روح المعاني).

وَاضۡرِبۡ لَهُم مَّثَلًا أَصۡحَٰبَ ٱلۡقَرۡيَةِ إِذۡ جَآءَهَا ٱلۡمُرۡسَلُونَ ۞ إِذۡ أَرۡسَلۡنَآ

اوبيان کړه دوئ ته مثال دَيو کلي والؤ،کله چې راغلل هغې ته رسولان،کله چې اوليږل مونږ

إِلَيۡهِمُ ٱثۡنَيۡنِ فَكَذَّبُوهُمَا فَعَزَّزۡنَا بِثَالِثٍ فَقَالُوٓاْ

دوئ ته دوه رسولان نوتکذيب اوکړو دوئ دَهغوئ دواړو،نومدد اوکړومونږپه دريم سره،نواوويل دوئ

إِنَّآ إِلَيۡكُم مُّرۡسَلُونَ ۞ قَالُواْ مَآ أَنتُمۡ إِلَّا بَشَرٌ مِّثۡلُنَا وَمَآ أَنزَلَ ٱلرَّحۡمَٰنُ

چې بيشکه مونږتاسوته راليږلی شوي يو،دوئ اويل نه يئ تاسومګرسړي زمونږپه شان،اوندې نازل کړې رحمان

مِن شَىۡءٍ إِنۡ أَنتُمۡ إِلَّا تَكۡذِبُونَ ۞ قَالُواْ رَبُّنَا يَعۡلَمُ إِنَّآ إِلَيۡكُمۡ لَمُرۡسَلُونَ ۞

هيڅ څيز،نه يئ تاسومګردروغ وايئ،اووئيل دوئ رب زمونږپوهيږي چې بيشکه مونږتاسوته خامخاليږلي شوي يو.

وَمَا عَلَيْنَآ اِلَّا الْبَلٰغُ الْمُبِيْنُ

او نشته نه موږ باندی مګر رسول ښکاره

﴿وَٱضْرِبْ لَهُم مَّثَلًا أَصْحَٰبَ ٱلْقَرْيَةِ﴾ دا د تخويف دنيوي يو د نمونه ذكر كيږي د پاره د هغه خلقو چي من دون الله ئي د خان د پاره شفعاء ګرځولي دي ﴿مَّثَلًا﴾ يا بمعنى د مثال دي يعنى د دوئ نه حضور مثال هغه كلى والا قصه بيان كړه چي هغوئ ضد وعناد كښ د دوئ په شان وو. مثلا مفعول ثانى دي د اضرب فعل لپاره او اصحاب القرية ورله مفعول اول دي. يا د مثلا نه حالت غريبه و اشناقصه ده. يعني دي اهل مكؤ ته د يو كلي والؤ عجيبه قصه بيانكړه نو دی ښکاره باندی. ﴿أَصْحَٰبَ ٱلْقَرْيَةِ﴾ بدل دي د ﴿مَّثَلًا﴾ نه.

دي ركوع كښ چي د كومي قصي ذكر دي مفسرينو ليكلي دي چي د دي كلي نوم انطاكيه وو. د دي خلق ټول بت پرست وو. عيسى عليه السلام ورته دوه خپل قاصدان اوليږل د پاره د دعوت. د دوه كسان چي كله د دي كلي ته نيزدي شول. نو يو شپونكي چه نوم ئی حبيب نجار وو. هغه سره ئی ملاقات اوشو. سلام نه ورستوئى دعوت ورته وركړو. چي موږ عيسى عليه السلام راليږلي يو د دي د پاره چي تاسو د بتانو عبادت مه كوئ او صرف د يو الله جل جلاله عبادت كوئ. هغه ورته معجزه د پاره د صداقت طلب كړه. نو دوئ سره هغه كرامات وؤ چي كوم د عيسى عليه السلام معجزي وي. نو ورته ئي اووئيل تشفى المريض، ونبرئ الاكمه، والابرص باذن الله. يعني موږ د لاعلاج مرضونو علاج كوؤ. نابينا او ابرص ته شفاء وركوؤ. نو د هغه يو خوي وؤ چي د يو ځو كالونه بيمار وؤ. دوئ لاړل او هغه ئي مسح كړونو هغه فوراً راپاسيدلو او تهيك ټاك شو. نو دي حبيب نجار ورباندي ايمان راوړلو. د دوئ خبر په كلي كښ خور شو. خلق به راتلل او د دوئ په بركت سره ورته شفاء ملاويدله. بادشاه خبرشونو دوئ ئی رااوغوښتل تپوس ئی ورنه اوكړو چي تاسو څوك يئ او د څه مقصد لپاره راغلي يئ. نو دوئ ورته اووئيل د عيسى عليه السلام طرف نه رسولان يو. او دعوت وركوؤ د عبادت د هغه ذات چي سميع بصير دي. او منع كوؤ موږ د هغه بتانو نه چي نه آوري او نه څه ويني. بادشاه دوئ اونيول په جيل كښ ئی قيد كړل. عيسى عليه السلام چه خبر شو. نو دريم كس ئی د هغوئ د نصرت د پاره اوليږلو. د دي كس خپل هيئت بدل كړو في الحال ئی چاته دعوت نه وركولو. د بادشاه درباريانو سره ئی تعلق جوړ كړو. او د بادشاه معتمد خاص

اوکرخیدلو .یوه ورځ ئی بادشاه ته اووئیل چې ستاپه جیل کښې دوه کسان قیددي.هغه دواړه رااوغواړه چې څه وائی؟بادشاه رااوغوښتل.ده ورنه تپوس اوکړوچې تاسودلنه چاراليږلي يئ.دوئ ورته اووئيل الله الّذي خلق كلّ شيئ وليس له شريك ،يفعل مايشاء ويحكم مايُريدُ.چې هغه اللهﷻ چې دهرڅه خالق دې.شريك ئی نشته.څه چې غواړي هغه کوي.اودهغې فيصله کوي.نوده ورنه تپوس اوکړوچې آیاتاسوسره څه معجزه شته.نودوئ ورته اووئیل بادشاه چې څه غواړي مونږبه هغه کوؤ.نوبادشاه يوهلك راوستلوچې مطموس العينين وؤ.دسترګوخائ دتندي په شان وؤ.دوئ دعاګانې شروع کړې.دهغه هلك دسترګوخائ اوچاؤدلو.دوئ خټه راوغسته دسترګوپه خائ ورته کیخودله.سترګې ئی جوړې شوې.نظرپکښې راغې.بیاورنه بادشاه دیومړي ژوندي کولومطالبه اوکړه.جنانچه مړې ئی راژوندې کړو.مړي اووئيل چې:انى دخلتُ سبعة اودية من النار،و انا احذركم ما انتم فيه فامنوا بالله.يعني څه دجهنم وومې(۷)طبقې ته داخل شوې ووم.څه ورنه تاسويره وم پس په اللهﷻ باندې ايمان راؤړئ.بادشاه اوبعضې نورخلق ددې واقعې په ليدلوسره ايمان راؤړلو.بعضوايمان رانه وړلو.

ليکن دلته اهل انطاکيه مراد اغستل حووجهو نه صحيح نه ده

(۱)اول دا چې دا واقعه دقرآن دسياق نه خلاف ده ځکه چې دقرآن نه دامعلوميږي چې د حبيب نجارنه ماسوئ.یوکس هم ایمان نه ووراوړی.بلکه ټول راجمع شول ددې رسولانو دقتلولو دپاره.حبيب نجارته چې پته اولږيده نوپه منډه راغې خلق ئې دقتل نه منع کول. اود رسولانواتباع حکم ئی ورته اوکړو.ليکن خلقودې هم اونبولو شهيدئ کړو.اللهﷻ جبرئيل ﷺ رااوليږلواودهغه کلې دروازې ئی اونيولې اوهست ناکه چغه ئی اووهله.په هغې سره ټول مړه شول

(۲)دويم داچې الفاظ دقرآن﴿إِذْ أَرْسَلْنَآ ،فَعَزَّزْنَا﴾نه متبادره داده چې دادالله ﷻ طرف نه رسولان وؤ.عيسى ﷺ قاصدان نه وؤ ځکه چې نسبت ئی الله ﷻ طرف ته شويدې

(۳)دريم داچې کلې والؤوپه دوئ باندې دااعتراض اوکړوچې﴿مَآ أَنتُمْ إِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُنَا﴾ يعنى تاسوخوزمونږپه شان انسانان يئ.نوکچرته دوئ دعيسى ﷺ قاصدان وؤنودااعتراض به ئی ورباندې نه وؤکړې.

(۴)څلورم داچې دلته مرسلون ذکر دې د دې اطلاق اګر چه په قاصدانو هم کيږی خو

متبادر اوقرآن کښ اکثر اطلاق ئې رسولانو باندې شوې دی.

(۵)پنځم دا چې دلته پوره کلی هلاکیدلو ذکر دې او دا خبره مسلمه ده چې سورات نزول نه بعد الله ﷻ دَ تکذیب په وجه پوره کلې چرته نه دې هلاک کړې.بلکه دجهاد وفتل حکم راغلې دې ،صاحب دَروح المعاني اګرچې ځنی اشکالاتو جوابونه کړیدی خو هغه څه ډېر قوی نه دی،صحیح خبره دحافظ ابن کثیر ده،چې یا خودا انطاکیه کلې دې نه.اوکه انطاکیه شی نو بیاترینه معروفه انطاکیه نه ده مراد .بلکه دې نوم باندې یوبل غیر معروف کلې دی.ځکه چه معروفی انطاکیې دَهلاکت ذکراسلامی اوغیر اسلامی مصادرو کښ چرته هم نه دې راغلی

﴿إِذۡ جَآءَهَا﴾دا بدل اشتمال دې، اصحاب القرية نه

﴿إِذۡ أَرۡسَلۡنَآ إِلَيۡهِمُ ٱثۡنَيۡنِ﴾اول ورته الله ﷻ دوه پیغمبران اولیږل .هغوئ الله ﷻ توحید طرف دعوت ورکړو .خوقوم دَهغوئ تکذیب اوکړو.﴿فَعَزَّزۡنَا بِثَالِثٖ﴾تعزیز مدد کولو او قوت ورکولو ته وائی، یعنی الله ﷻ ورپسې دریم پیغمبر هم اولیږلو،چې هغی سره اولنوته تقویت حاصل شو.دې درې پیغمبرانو نومونوباره کښې قوي روایت نشته .البته دابن عباس رضي الله عنهما نه منقول دی چې دیونوم صادق ،بل نوم صدوق او دریم نوم شلوم وو.﴿إِنَّآ إِلَيۡكُم مُّرۡسَلُونَ﴾ درې واړو پیغمبرانو ورله دعوت ورکړو چې مونږ دَ الله ﷻ پیغمبران یو تاسوته رالیږلی شوی یو. زمونږ خبره اومنئ

﴿قَالُواْ مَآ أَنتُمۡ﴾دادقوم طرف نه پیغمبرانو تکذیب دې چې مشتمل دې په دوو اعتراضاتو باندې،(۱)ماانتم الا بشر مثلنا یعنی منصب رسالت له خو فرشته پکار ده ،تاسو خوزمونږ په شان انسانان یئ،بیاځنګه رسولان کیدیشئ(۲)ماانزل الرحمن رحمن په تاسو هیڅ هم ندی نازل کړی،رحمن ذکرکولو کښ دیته طرف ته اشاره ده چې دَرحم تقاضه مساوات ده،چې مونږ هم بشریو او تاسوهم بشرئې،چې په مونږ وحی نه نازلیږی نو په تاسو به هم نه نازلیږی.رحمن ذکر کولو نه داهم معلومیږی چې دې خلقو الله ﷻ منلو.خو شرک ئې ورسره کولو او دَرسالت نه انکار کولو ﴿إِنۡ أَنتُمۡ إِلَّا تَكۡذِبُونَ﴾دادواړو اعتراضاتوخلاصه او نتیجه ده. یعنی دینه صفا معلومه شوه چې تاسو دروغ وایئ،نه ده الله ﷻ رسولان یئ او نه تاسو ته وحی کیږی

﴿قَالُواْ رَبُّنَا يَعۡلَمُ﴾دا دَرسولان طرف نه جواب دې،چې الله ﷻ ګواه دې چې مونږ دهغه

رسولان یو . یوخو دې وجهې نه چې هغه مونږ له کوم معجزات راکړی دی دغې نه انکار هیڅ وجه تاسو سره نشته،اوبل دې وجهې نه هم چه که مونږ په الله ﷻ باندې دروغ وئیلي او دَ الله ﷻ په نوم خوخلق گمراه کولې نو دهغه عذاب به مونږ نازل شوې وې.« ربنا یعلم » تعبیر کلام عرب کښې د قسم په ځائ استعمالیږي ، چونکه دا جواب دَ انکار په مقابله کښې دې . نو ځکه ئې مزید تاکید په قسم او لام تاکید سره راوړلې شو. ﴿وَمَا عَلَيْنَآ إِلَّا ٱلْبَلَٰغُ ٱلْمُبِينُ﴾زمونږ ذمه داری خو صرف صفا او سپینه خبره کول دی چې حق ورسره واضح شی.باقی منل نه منل ستاسو کار دې.

| قَالُوٓا | إِنَّا | تَطَيَّرْنَا | بِكُمْ ۖ | لَئِن | لَّمْ | تَنتَهُوا | لَنَرْجُمَنَّكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

اوویل دوئ بیشکه مونږ سپیره شو تاسود لاسه، قسم دې کچرې نه شوئ منع تاسو نو ضرور به سنگسار کړو مونږ تاسو

| وَلَيَمَسَّنَّكُم | مِّنَّا | عَذَابٌ | أَلِيمٌ ۞ | قَالُوا | طَائِرُكُم | مَّعَكُمْ ۚ |
|---|---|---|---|---|---|---|

اوخامخا او به رسیږي تاسو ته زمونږ طرف نه عذاب دردناك.اوویل دوئ چې سپیره والې ستاسو.تاسو سره دې.

| أَئِن | ذُكِّرْتُم ۚ | بَلْ | أَنتُمْ | قَوْمٌ | مُّسْرِفُونَ ۞ | وَجَاءَ | مِنْ | أَقْصَا | الْمَدِينَةِ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

آیاچه تاسو ته نصیحت وکړیشي نو تاسو بدفالي نیسئ بلکه تاسوئي قوم تیروندنکي دحدنه. اوراغې دَآخرسردَ ښارنه.

| رَجُلٌ | يَسْعَىٰ | قَالَ | يَا قَوْمِ | اتَّبِعُوا | الْمُرْسَلِينَ ۞ | اتَّبِعُوا | مَن |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

یوسړې چې منډې ئې وهلې.اوئ ویل:اې قومه ځما تابعداري اوکړئ دَپیغمبرانو.تابعداري اوکړئ دَهغه چاچه

| لَّا | يَسْأَلُكُمْ | أَجْرًا | وَهُم | مُّهْتَدُونَ ۞ |
|---|---|---|---|---|
| نه | غواړي | ستاسو نه | هیڅ | اجراودوئ | په | سمه | لار | دي. |

﴿قَالُوٓا إِنَّا تَطَيَّرْنَا بِكُمْ﴾.کله چې قوم سره دَتکذیب هیڅ دلیل پاتې نشو نوالزام تراشی او دهمکیانې ئی شروع کړې،چې ستاسو دلاسه مونږ سپیره شو ،بیماریانی اوقحطونه راباندې راغلل،کچرته تاسو منع نشولئ نو په کانړوویشتوویشتو خوبه مړه کړو اوسخته سزا به درله درکړو ، روایاتو کښې راځي چې کله دوئ درسولانو تکذیب اوکړو ، نو په دوئ باندې بارانونه بندشول.قحط اوبیماریانې پرې راغلې.نوپه پیغمبرانوئی بدفالي اونیوله چې ستاسو دَنحوست پوجه په مونږدا قحط اوبیماریانې راغلې.﴿لَئِن لَّمْ تَنتَهُوا﴾ اي عن الدعوة یعني که

تاسو دخپل دعوت دَتوحيدنه منع نه شوئ نومونږ به مو رجم کړو. ﴿وَلَيَمَسَّنَّكُم﴾ مثال به کړو سوځه
کانړوويشتلو. يادَرجم نه مراد ايذارسول. ياکنځل کول .بد رد ويل مراد دي. ﴿عَذَابٌ أَلِيمٌ﴾ نه
مرادسوزول. يادَبدن اعضاء کټ کول دي.

﴿قَالُوا۟ طَٰٓئِرُكُم مَّعَكُمْ﴾ داجواب دَرسولانو دي چې سبب دبدبختۍ ستاسو سره دی. مونږ
يو .اوهغه ستاسو غلطه عقيده اوقبيح اعمال دي. ﴿أَئِن ذُكِّرْتُم﴾ يعنی عجيبه خبره ده. مونږ
خوخيراوسعادت طرف ته رابللو اوتاسو بدفالي نيسئ. شروع کښ همزه استفهام او ان شرطيه
دي. دواړه جواب غواړي. البته چې چرته دواړه جمع شي نو بيا به يوجواب راوړلی شي او هغه
به دبل دپاره قائم مقام ګرځي. امام سيبويه صاحب وائي چه دَاستفهام جواب به ذکرکيږي
جواب شرط ته بياضرورت نشته. يونس رحمه الله وائی جواب شرط به ذکرکيږي. نوددهٔ
سيبويه رحمه الله په نيزتقديردارنګه دي. (ائن ذُکرتم تتطيّرون) "تتطيّرون" جواب استفهام دي مضارع
مرفوع ده ياماضي مقدرده. ای تطيّرتم. نومطلب دادي چې آياچې تاسوته چه نصيحت اوکړی
شي نوبيابدفالي نيسئ اوداسې خبري کوئ؟ اودَيونس رحمه الله په نيزبه تقديردارنګه دی ان
ذکرتُم تتطيّرو. مضارع مجزوم به جواب شرط وي ياماضي محلامجزوم ای تطيّرتم يعني چې
تاسوته نصيحت اوکړې شي نوبدفالي نيسئ(روح المعاني) ﴿بَلْ أَنتُمْ قَوْمٌ مُّسْرِفُونَ﴾ بل لپاره د
اضراب انتقالی دي، يعنی نور مودَحدنه تجاوز اوکړو. ځکه چې يوخومودَرسولانو بلا دليل
تکذيب اوکړو. بل خوورسره بد فالی اونيوله حالانکه هغوئ تاسو خير او سعادت طرف ته
رابلی. او بيا ورله دهمکئ هم ورکوئ

﴿وَجَآءَ مِنْ أَقْصَا ٱلْمَدِينَةِ رَجُلٌ﴾ رجل نه مراد حبيب نجار دي او دي دَ ښار بالکل آخر کښ
اوسيدو. اومؤمن وو کله چې دَقوم او رسولانو مينځ کښ خبري تري اوشوې او قوم درسولانو
تکذيب اوکړو اوهغوئ له ئی دهمکی ورکړه. نوپوره علاقه کښې داخبرخور شو. کله چې ده
ته پته اولګيده نودقوم په ايمان نه راوړلو ډير خفه شواوپه منډه منډه راغي او قوم ته ئی د
توحيد او رسولانو اتباع او دعوت شروع کړو. چې بالآخر دهغې پاداش کښ شهيد کړی
شو. رجل کښ تنوين دَ تعظيم لپاره دی چې دې عند الله يولوئ سړی وو .

﴿ٱتَّبِعُوا۟﴾ تکرار لپاره دَتاکيد دي ﴿مَن لَّا يَسْـَٔلُكُمْ أَجْرًا﴾ بدل دي المرسلين نه. يعنی څه دنيوی

مفادات حصلول نې مقصود نه دی چونکه دا ضروری نه دہ چې چا صرف دنیوی مفادات حصلول مقصود نه وی نو هغه اتباع دې ضروری شي نوځکه ورسره ﴿وهم مهتدون﴾ هم ذکر کړو یعنې دې سره سره دوی په حق او په سمه لار هم دی. نوځکه تاسو له ئې اتباع کول ضروری دہ

وَمَا لِيَ لَآ أَعْبُدُ الَّذِي فَطَرَنِي وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ﴿٢٢﴾ ءَأَتَّخِذُ

او څه دی ماله چې نه کوم عبادت دهغه ذات چې څه ئې پیداکړی یمه اوخاص هغه ته واپس ګرځولی شئ تاسو. آیاونیسم څه

مِنْ دُونِهِ آلِهَةً إِنْ يُرِدْنِ الرَّحْمَٰنُ بِضُرٍّ لَا تُغْنِ عَنِّي شَفَاعَتُهُمْ

ماسوی دالله څخه نورمعبودان کچرې اراده وکړې مالره رحمان دڅه ضرر.فائده به رانکړې ماته شفاعت دهغوی

شَيْئًا وَلَا يُنْقِذُونِ ﴿٢٣﴾ إِنِّي إِذًا لَفِي ضَلَالٍ مُبِينٍ ﴿٢٤﴾ إِنِّي آمَنْتُ

هیڅ قسمه او نه دوی ماخلاصولی شي.بیشکه زه به دغه وخت کښې څرګنده ګمراهۍ کښې یم.بیشکه ماایمان راوړی دی

بِرَبِّكُمْ فَاسْمَعُونِ ﴿٢٥﴾ قِيلَ ادْخُلِ الْجَنَّةَ ۖ قَالَ يَا لَيْتَ قَوْمِي يَعْلَمُونَ ﴿٢٦﴾

په رب ستاسوباندې پس واورئ زماخبره.اوویلې شوده ته چې داخل شه جنت ته.اوویل هغه هائې کاش چې قوم زماپوهیدلې.

بِمَا غَفَرَ لِي رَبِّي وَجَعَلَنِي مِنَ الْمُكْرَمِينَ ﴿٢٧﴾ وَمَا أَنْزَلْنَا عَلَىٰ قَوْمِهِ مِنْ بَعْدِهِ

په دې چې بخنه کړیده ماته رب زمااواوګرځولې ئې زه دمعززونه.اونه وو رالیږلې مونږ په قوم دده باندې ورستو دده مرګ کولو نه

مِنْ جُنْدٍ مِنَ السَّمَاءِ وَمَا كُنَّا مُنْزِلِينَ ﴿٢٨﴾ إِنْ كَانَتْ إِلَّا صَيْحَةً وَاحِدَةً فَإِذَا هُمْ

هیڅ لښکرداسمان نه اونه یو مونږه نازلونکي لښکرونه وزهلاکت ددوئ مګر یوه چغه وه نو بیادوی

خَامِدُونَ ﴿٢٩﴾ يَا حَسْرَةً عَلَى الْعِبَادِ ۚ مَا يَأْتِيهِمْ مِنْ رَسُولٍ إِلَّا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِئُونَ ﴿٣٠﴾

مړه پراته وو. هائې آفسوس په بندګانو.نه به راتلودوئ ته هیڅ رسول مګر دوئ به په هغه پورې ټوقې کولې

﴿وَمَا لِيَ لَآ أَعْبُدُ ٱلَّذِي﴾ داهم دحبیب نجاردبیان حصه ده.پدیکښې التفات دې د خطاب صیغې نه دمتکلم ته. دپاره ددې چه مخاطب په غصه کښې رانشي.اوتعریض دې چې دهغه ذات عبادت ولې نه کوئ چې هغه زمونږ خالق دې.اوهغه ته به رجوع وي

﴿ءَأَتَّخِذُ مِن دُونِهِۦٓ ءَالِهَةً﴾ دادعوه دسورت ده.یعني نفي دشفیع قهري.یعني آیاڅه دالله جل جلاله نه

ماسوی بل چاته هم اله اووایم.کچرته الله جل جلاله ماته عذاب راکول اوغواړي نوبيا د الله نه م سواماسوک نشي بچ کولې.اونه ځمادبچ کولو شفاعت کولې شي.﴿إِنِّيٓ إِذًا﴾یعني که بل چاته مې اله اووئیل نودابه ښکاره ګمراهي وي.ځکه چې کوم معبودانوپه لاس نه نفع وي اونه ضرر هغه قادرمطلق ذات سره شريك كول ښكاره ګمراهي ده.﴿إِنِّيٓ ءَامَنتُ بِرَبِّكُمْ﴾ ظاهردادی چې خطاب قوم ته دې.چې برسرميدان ئې ورته دَحقيقت اظهاراوکړو.دهغوئ دسزاپرواه ئې اونکړه.او«بربکم»وئیل هم دَتحقيق دَحق دی.اوتنبيه ده چې ستاسو خودساخته معبودان باطل دي

﴿فَٱسۡمَعُونِ﴾ای فاسمعوا قولي(روح)یعني ځماداقول ښه واورئ چې ماایمان راوړيدې په هغه رب چې ستاسوخالق دې اوتاسووربانديې كفرکړيدې څه ستاسوپرواه نه کوم.بعض وائی خطاب رسولانوته دې.دَابن مسعود رضی الله عنه نه مروي ده چې کله حبيب نجارداووئيل چې﴿يَٰقَوۡمِ ٱتَّبِعُواْ ٱلۡمُرۡسَلِينَ﴾ نودوئ دمرګ نه اونيولوچې مړيې کړي نوده رسولانوته اووئیل چې﴿إِنِّيٓ ءَامَنتُ بِرَبِّكُمۡ فَٱسۡمَعُونِ﴾ای فاشهدوا.یعني ځماپه ایمان باندې ګواه شئ

﴿قِيلَ ٱدۡخُلِ ٱلۡجَنَّةَ﴾ کله چې ده دَخپل ایمان اظهاراوکړونوقوم پرې راجمع شوتوپونه ئې ورباندې اووهل.په کاڼوئی اوويشتلو.اوده به وئیل اللّهم اهدِقومي.ترڅو چې په وهلو وهلو ئې مړ کړواوکولمي ئې بهرراوتلې.او بیا ئې کوهي ته اوغورځولو.بعض وائی چه اوئ سوزولو.بعض وائی په مرئ کښې ورته پړی واچول اودکلي په چوك كښې آويزان کړو.اوهغه درې واړه رسولان ئی هم شهیدان کړل.بعض وائې چې کله قوم دَده دَقتل قصد اوکړو.نو الله جل جلاله اسمان ته ژوندې اوچت کړو.ليکن دا قول کمزورې دې.﴿ٱدۡخُلِ ٱلۡجَنَّةَ﴾دینه مراد یا بشارت او زیری دې دَ دخول دَجنت چې فرښتې ځنکدن په وخت کښې نیک انسان له ورکوی.اویا حقیقتا دخول مراددې.او خطاب نه مقصود روح دې.یعنی روح ته ئی اوئیلې شی چې جنت ته داخل شه.ځکه چې دې شهید وؤ.اوشهیدانو روحونه دَ مرغیو په قالب کښې ګرځئ راګرځی او بعضو په ظاهر باندی حمل کړیدی

﴿قَالَ يَٰلَيۡتَ قَوۡمِي يَعۡلَمُونَ﴾ یعني چې کله ده دَجنت مشاهده اوکړه نوداتمنائی اوکړه چې آفسوس ځماقوم ځماپه حالت عالم وې نوتوبه به ئې کړې وه اوايمان به ئی راوړی

وو. دادرسولانو او د اولياؤ وعادت دي چې په هروخت کښې دخپل قوم داصلاح تمناکوي. په يوروايت کښې دي نصح قومه حياوميتًا(روح المعاني).

﴿وَمَآ أَنزَلْنَا عَلَىٰ قَوْمِهِۦ﴾ ضمير رجلٌ ته راجع دي ﴿مِنۢ بَعْدِهِۦ﴾ اى من بعدقتله ﴿مِن جُندٍ﴾ من زائده براى تاكيددي يعني هيڅ لښکر. دادهغې قوم دهلاکت بيان دي اودهغوئ تحقيرشان طرف ته اشاره ده. چې ددوئ دهلاکت لپاره الله ﷻ هيڅ لښکري هم رااونه ليږلي ﴿وَمَا كُنَّا مُنزِلِينَ﴾ اونه دازمونږدحکمت موافق ده چې ديوقوم دهلاکولودپاره ډيري لښکري رااوليږو. البته د بدرپه ورځ اودخندق په جنګ کښې فرشتې رااليږل دپاره دفضيلت دحضورﷺ دي

﴿إِن كَانَتْ إِلَّا صَيْحَةً وَاحِدَةً﴾ يعني صرف يوه چغه دجبرئيل وه چې بس بياهيڅ نه وو باقي. ټول مړه پراته وو. لکه روايت دي چې الله ﷻ جبرئيل عليه السلام رااوليږلو. دکلي دروازې ئې اونيولې اويوه سخته چغه ئې وربانديې اووهله چې دهغې په وجه ټول مړه شول. (روح) ﴿كَانَتْ﴾ ضمير مرجع "الوقعة" يا "الاخذة" دي چې په دې سياق دلالت کوي. ﴿فَإِذَا هُمْ خَامِدُونَ﴾ خمودنه مشتق دي. تپ ختلي اورته وائي. مرادورنه مړه کيدل اوهلاکيدل دي.

﴿يَٰحَسْرَةً عَلَى ٱلْعِبَادِ﴾ حسرت وئيلې کيږي شدة الندم يعنى انتهائى پښيمانتيا ته. اوراجح قول دادې چې دا الله ﷻ قول دى اوګله ئې ده دخپلو بندګانو. نه او حسرت په اعتبار اونسبت دبندګانو سره دې يعنى بندګانو دپاره ډير افسوس اوحسرت مقام دې چې الله ﷻ دوئ دهدايت لپاره خپل معززرسولان رااليږل. خو دوئ ديورسول هم احترام نه دې کړې بلکه استهزااو ټوقې مسخرې ئې ورپورې کړې دى. ﴿مَا يَأْتِيهِم﴾ مضارع په معنى دماضي استمراري ده. يعني دوئ ته به چې کوم رسول هم راتللونودوئ ورپورې استهزاء کوله. دينه حال يا استقبال مرادنه دې. لکه قادياني ملعون داستقبال معنى کوي اوخپل نبوت ورنه ثابتوي. دغه شان دلته دمکذبينوپه هلاکت باندې افسوس کړې شويدې دقادياني ملعون نه منکرخونه دې هلاک شوې بلکه قادياني ملعون پخپله هلاک شوې اوذليله شوې دې.

﴿أَلَمْ يَرَوْا كَمْ أَهْلَكْنَا قَبْلَهُم مِّنَ ٱلْقُرُونِ أَنَّهُمْ إِلَيْهِمْ لَا يَرْجِعُونَ ۝﴾

آيا نه دي ليدلي دوئ چې څومره هلاک کړيدي مونږه مخکښې ددوئ نه ډلې بيشکه دا هلاک شوي دوئ ژوندو ته واپس نه راځي

وَإِنْ كُلٌّ لَّمَّا جَمِيعٌ لَّدَيْنَا مُحْضَرُونَ ﴿٣٢﴾

او نه دي ټول مګر په ټول ډله په موږ پوري حاضر کړی شوي دي

«أَلَمْ يَرَوْا كَمْ أَهْلَكْنَا قَبْلَهُم» دا زجر دي يعنی آبادوی دومره نه کتل چي د ډيرو نه مخکښ امتونو ځه انجام ووچي کله ئی د رسولانو تکذيب اوکړو. ضمائر د غائب العباد ته راجع دی.حتی هغه کفارمکه اونوروکفاروتولوته شامل دي.«أَنَّهُم» ای القرون المهلكين.«إِلَيْهِم» ای الی المكذبين. ان سره اسم او خبره بدل اشتمال دي د «كَمْ أَهْلَكْنَا» نه

«وَإِن كُلٌّ» دا تخويف أخروي دي.چي دقيامت په ورځ به بيائول ژوندي کيږي اود حساب دپاره به مونږته حاضريږي.«إِن» نافيه دي «كُلٌّ» مبتدا دي او «لَمَّا» يمعنی د الا سره دي. «جَمِيعٌ» خبر اول او «مُحْضَرُونَ» خبر ثانی دي او «لَّدَيْنَا» ظرف متعلق دي «جميع» سره اوپا محضرون سره.دلته مشهوراشکال دي چي «جَمِيعٌ» څنګه خبرجوړيدي شی د «كُلٌّ» دپاره؛ځکه چي دواړو معنی يو ده «كُلٌّ» هم په احاطه اوشمول باندي دلالت کوی او «جَمِيعٌ» هم کوی.نو دِ دنه خو دخيل ذات سره خبرورکول لازميږی.اوداخوصحيح نه ده لکه الرجل رجل ونيلی صحيح نه دی. جواب د دي چي «جَمِيعٌ» يمعنی مجموع سره دي يعنی داحاطي اوشمول معني سره سره داجتماع معنی هم ورکوی.لهذا دواړو کښ فرق راغی اوخبر واقع کيدل ئی صحيح دی

وَآيَةٌ لَّهُمُ الْأَرْضُ الْمَيْتَةُ ۖ أَحْيَيْنَاهَا

او نخه (د توحيد) دوی لره زمکه مړه (وچه) ده . ژوندئ ښه کړو مونږ هغې لره.

وَأَخْرَجْنَا مِنْهَا حَبًّا فَمِنْهُ يَأْكُلُونَ ﴿٣٣﴾ وَجَعَلْنَا فِيهَا جَنَّاتٍ مِّن نَّخِيلٍ وَأَعْنَابٍ

اوراوباسوددي نه داني نودهغي نه خوری دوئ اوپيداکړيدی مونږه پدي کښي باغونه دکجورو اودانګورو نه

وَفَجَّرْنَا فِيهَا مِنَ الْعُيُونِ ﴿٣٤﴾ لِيَأْكُلُوا مِن ثَمَرِهِ

اوجاري کړيدی مونږ پدي کښ چينې.دپاره ددي چي اوخوری دوئ دميوی دهغی نه.

وَمَا عَمِلَتْهُ اَيْدِيْهِمْ ۭ اَفَلَا يَشْكُرُوْنَ ۝ سُبْحٰنَ الَّذِيْ خَلَقَ الْاَزْوَاجَ

اوندي پيداكړي دا ميوې لاسونو ددوی نو آيا شكر نه اوباسي دوی پاكي ده دهغه ذات لره چې پيدا كړي يې ټول جوړې

كُلَّهَا مِمَّا تُنْۢبِتُ الْاَرْضُ وَمِنْ اَنْفُسِهِمْ وَمِمَّا لَا يَعْلَمُوْنَ ۝

د ټولو خيزونو . د هغې پيداوارنه هم چې زرغونه وي ئې زمكه او د نفسونو د دوی نه هم . او د هغه څيزونو نه هم چې دوی يې نه پوهيږي

﴿وَءَايَةٌ لَّهُمُ ٱلْأَرْضُ ٱلْمَيْتَةُ﴾ دا اول عقلي دليل دې په دعوی د سورة يعني نفي د شفيع قهري باندې.چې دی مشركانو لپاره لوئ دليل وچه ځمكه ده چې مونږنی په باران سره شنه كړواوفصل ورنه پيداكړوچې دوئ ئی خوري.داصرف زمونږكاردې ددوئ خودساخته معبودانوپديكښ هيڅ قسمه شركت نشته.نوچې په تخليق كښ شريك ندی نو دعبادت لائق هم ندی اونه ورته شفاعتِ قهري حاصل دي﴿أَحْيَيْنَـٰهَا﴾ جمله صفت ده د﴿ٱلْأَرْضُ﴾لپاره .اوالارض كښ الف لام عهد ذهني په حكم دنكره كښ دې او ياجمله ورنه حال ده او احياء دارض نه مراد زرغونه ول دی﴿وَأَخْرَجْنَا مِنْهَا حَبًّا﴾جنس داني لكه غنم.وريشې.روجې وغيره دی. ﴿وَجَعَلْنَا فِيهَا جَنَّـٰتٍ﴾يعني صرف غله نه بلكه دَدوئ لذت لپاره موورته قسمه قسمه باغونه دكجورانګوروهم پيداكړيدي. نخيل جمع د نخل ده كجهوري ته وائی او اعناب جمع دَ عنب ده انګوروته وائی جمع رواړلو كښ مختلف انواعه ته ئی اشاره ده صرف دَدوؤميوو ذكراوشوځكه چې دادواړه كثيرالمنافع هم دي.اوعربوته مرغوبې هم دي.دغه شان دَدې پيداوارپه عربو كښ ډيردي﴿وَفَجَّرْنَا فِيهَا﴾يعني پخپل قدرت سره موورته په زمكه كښ چينې هم پيداكړيدی چې په هغې سره دوئ باغونه.زمكې پانړه كوي.

﴿لِيَأْكُلُوا﴾متعلق دې ﴿وَجَعَلْنَا﴾پورې.يعني باغونه دكجوروا ودَانګوروموددې دپاره پيدا كړي دي چې دوئ دَهغې ميوې اوخري.﴿مِن ثَمَرِهِ﴾ضميريا ﴿جَنَّـٰت﴾ته راجع دې په تاويل دَمجعول يا ماذكر سره.نوځكه مفردمذكرذكرشو.ياضميرالله ﷻ ته راجع دې.اواضافت دَثمرالله ﷻ ته ځكه اوشوچې هغه ئی خالق دې.يعني چې الله ﷻ دوئ له كومې ميوې

[1] دويمه ترجمه اواُوخري هغه چه ددوئ لاسونو جوړكړيدي

پیدا کړیدي هغه اُوخري ﴿وَمَا عَمِلَتۡهُ أَیۡدِیهِمۡ﴾ ضمير ئي ټولو مخلوقاتو ته .يعني ....... راجع دي ما یانافیه ده .ضمیرمنصوب په عملته کښې ثمر ته راجع دي .جمله په موضع د حال کښې ده .يعني حال داچي دوئ دغه میوې نه دي پیدا کړي بلکه خالق ئي الله جل جلاله دی .نو دوئ دَدي نعمت شکرنه اداء کوي اوشرك کوي .یا ما موصوله ده .مجرور محلا عطف ده په ﴿ثَمَرِهِ﴾ ای لیأکلوامن الذي عملته ایدیهم .يعني اوخري دوئ میوي هم اودهغی نه هم چي ددوئ لاسونوجوړکړيدي ،لکه جوس .مربّه .چاټ .وغیره

﴿سُبۡحَـٰنَ ٱلَّذِی﴾ دادلیل تتمه ده .چي الله جل جلاله دهغه شفعاؤاوشرکاؤنه پاك دی چي دا مشرکین ئی ورسره شریك کوي .﴿خَلَقَ ٱلۡأَزۡوَ ٰجَ﴾ ازواج جمع دزوج ده او دا په قرآن کښې دوه معنو کښې استعمال شوي دي .(١) ضد اوجوړه لکه ومن کل شئ خلقنا زوجين (الذاريات ٤٩)

(٢) قسم اوصنف لکه فانبتنا به ازواجا من نبات شئ (طه)، دلته دواړه معني اغستلي کیدې شی اولي معنې اعتبارسره به مطلب داوی چي الله جل جلاله دهرڅیز جوړه پیدا کړیده ﴿مِمَّا تُنۢبِتُ ٱلۡأَرۡضُ﴾ دنباتاتو هم چي ښځې بوټی مذکر دی اوښځې مؤنث ،﴿وَمِنۡ أَنفُسِهِمۡ﴾ انسانانو کښې هم چي ښځې سړی دی اوښځې ښځې ﴿مما لایعلمون﴾ يعنی دینه علاوه نوهم ډیر داسي څیزونه دي چي دهغې جوړو علم الله جل جلاله ته دي . تاسوته نشته ،خلاصه دا چي صرف الله جل جلاله هغه ذات دي چي جوړه اوشریک ئی نشته نوردهر چارشریک شته ،او دویمی معنی اعتبار سره مطلب دادي چي الله جل جلاله هغه ذات دي چي مختلف قسم میوې او فصلونه ئی پیدا کړی دي بیا په هرې میوه کښې خان له قسمونه دی رنګ اوخوند په اعتبار سره ، داسی مختلف انسانان ئی پیدا کړی دی ښځې مذکر اوښځې مؤنث .اوبیا په دوئ کښې هم رنګ ونسل اور قوت وضعف اعتبار سره مختلف قسمونه دی اودهغه شان نورډیرڅیزونه دی چي هغې مونږ ته علم نشته . ازواج دي معنی اعتبار سره عام دي

وَءَایَةࣱ لَّهُمُ ٱلَّیۡلُ نَسۡلَخُ مِنۡهُ ٱلنَّهَارَ فَإِذَا هُم مُّظۡلِمُونَ ۝٣٧ وَٱلشَّمۡسُ تَجۡرِی

اونخه دتوحید ددوئ دپاره شپه ده چي اوباسو مونږ دهغې نه ورځ ،نودوئ بیاپه تیاروکښې وي اونورروان دی .

لِمُسْتَقَرٍّ لَّهَا ۚ ذٰلِكَ تَقْدِيرُ الْعَزِيزِ الْعَلِيمِ ۝ وَالْقَمَرَ

ځائ دقرارئ خپل ته.داتلل دنوراندازه دَهغه ذات ده چي غالب دی.عالم دی. اوسپوږمئ

قَدَّرْنٰهُ مَنَازِلَ حَتّٰى عَادَ كَالْعُرْجُوْنِ الْقَدِيْمِ ۝ لَا الشَّمْسُ

په اندازه کړي دي مونږرفتاردد ي په منزلوکښ تردي چه داواپس شي په شان دخنګي دکجورې زړې. نه د نمر

يَنْۢبَغِيْ لَهَآ اَنْ تُدْرِكَ الْقَمَرَ وَلَا الَّيْلُ سَابِقُ النَّهَارِ ۗ وَكُلٌّ

وس شته چي ورسيږي سپوږمئ ته اونه شپه مخکښ کيدونکي ده په ورځ باندي. اوهريو دنور سپوږمئ نه

فِيْ فَلَكٍ يَّسْبَحُوْنَ ۝

پخپل مدار کښ لامبو ووهي

﴿وَءَايَةٌ لَّهُمُ ٱلَّيْلُ﴾دادويم دليل عقلي دې په توحيداوپه نفي دَشفيع قهري.يعني داهم دَالله جل جلاله دَواحدانيت دليل دې چې دَشپي ورځي تلل راتلل دَهغه په اختيارکښ دي. ددوئ خود ساخته معبودانو پکښ هيڅ قسم شرکت نشته ﴿ نَسْلَخُ﴾ د سلخ نه دي اوسلخ، نزع الجلد ته وائی.يعني دَخاروي څرمن دَهغه دَبدن نه اوباسل،اودلته ئی معنی دَ جدا کولوده او﴿نَسْلَخُ﴾ ذکربطوراستعاره تبعيه شوې دې.اومقصود دَورځې دَ شپې نه جداکولو کيفيت تشبيه ده دنزع الجلد سره . يعنی څرنګه چې څاوري نه څرمن ويستلې کيږی. نوڅاروی اصل وجود څرګند شی. دغه شان مونږ ورځ دَ شپې دَمخ نه لرې کړو شپه راشی.اصل او حقيقی فعل راوړلو په ځائ ﴿ نَسْلَخُ﴾ فعل ذکر کولو کښ يو خو ديته طرف ته اشاره اوشوه چې جهان کښ اصل تياره ده او الله جل جلاله پرې دَ رڼرا پرده خوره کړيده،اوبل اشاره ده پکښ تدريج ته. يعنی څنګه چې دَڅاروی نه پوستکی په ترتيب سره رورو ويستلې کيږی نو داسې الله جل جلاله هم دورځې پرده دَ شپې له مخه رو رو لرې کوی،نو دا دالله جل جلاله لوئ احسان دې چې تياره يودم نه روالی (الکنز الثمين)

﴿فَإِذَا هُم مُّظْلِمُونَ ﴾اي بعد تكامل الانسلاخ يعنی چې کله پرده مکمل لرې شی او اثرات ئی ختم

شي نو بيا توره تياره راشي. "مظلمون" صيغه دَاسم فاعل ده باب افعال نه او خاصيت ئې دخول دئ پکښې اي داخلون في الظلام يعنى خلق بيا په تياره کښې داخل شي.

﴿وَالشَّمْسُ تَجْرِي﴾ دا دريم دليل عقلي دې عطف دې په "اَلَّيْل" اى واية لهم الشمس ... الخ يعني بل دليل دَتوحيد دَدعوئ دپاره نوردې. چې پخپل معين وخت طلوع کوي. پخپل مدار بندي حي کوم ورته الله جَلَّ جَلَالُهٗ مقرر کړيدې منظم ځي. خپل مستقر ته سيدا روان وي. خپل اخري منزل ته اورسيږي او بيا دَ الله جَلَّ جَلَالُهٗ په حکم سره په بلې دورې شروع شي. نو دَنور دغه دَطلوع غروب ويل نظام دَهغه الله جَلَّ جَلَالُهٗ په قبضه کښې دې چې غالب. عليم دې. بل چاته ددې قدرت نشته

﴿لِمُسْتَقَرٍّ لَّهَا﴾ لام په معنى دَ (الى) دې او (١) مُستقر يا ظرف مکان دې. مرادو رنه دَنور هغه آخرى منزل دې چې هلته دَرسيدلو نه ورستو بيا هغه دوباره سفر شروع کوي. او هغه تحت العرش دى. په بخاري وغيره کښې دي چې ابوذر رضی الله عنه دَحضور صلی الله علیه وسلم نه دَدې مستقر پـه باره کښې تپوس اوکړو. نو حضور صلی الله علیه وسلم ورته اوفرمائيل مستقرها تحت العرش. چې دَدې مستقر يعني جائى قرار تحت العرش دې. په يو روايت کښې دي. چې حضور صلی الله علیه وسلم دَنور غروب کيدلو وخت کښې دَابوذر رضی الله عنه نه تپوس اوکړو چه آياتاته پته ده چه دانور چرته غروب کيږي. ابوذر رضی الله عنه دلاعلمئ اظهار اوکړو . نو حضور صلی الله علیه وسلم ورته اوفرمائيل: فانها تذهبُ حتّى تسجد تحتَ العرشِ. او دا مراد دى دَقول دَ الله جَلَّ جَلَالُهٗ و الشّمس تجري لمستقرلها ذلك تقدير العزيز العليم (بخاري کتاب التفسير). دې حديث باندې چې کوم اشکالات او دهغې جوابات دى دا يو اوګد بحث دې حضرت مولانا شبير احمد عثماني رحمه الله په خپله رساله "سجود الشمس" کښې په دې محققانه بحث کړې دې. هلته ئې ملاحظه کړئ. دا رساله دَتاليفات عثماني په ضمن کښې اداره اسلاميات نه شائع شوې ده.

(٢) يا مستقر ظرف زمان دې. مستقر زماني ورنه مراد دې. چې هغه ورځ دقيامت ده. او مطلب دادې چې دانور پخپل مدار کښې په يو محکم نظام سره حرکت کوي ليکن داحرکت ددهٔ دائمي نه دې. دې دپاره يو خاص مستقر او وخت دَقرار متعين دې چې کله هغه وخت راشي نو دَ ده حرکت به ختم شي. ﴿ذَٰلِكَ﴾ يعني دا نا آشنا او مضبوط او چليدل دَنور. چې عقول ورته حيران دى الله جَلَّ جَلَالُهٗ په حکم سره دى چې په هر څه غالب دې او عليم دې

﴿وَالْقَمَرَ﴾ دا څلورم دليل عقلى دې چې سپوږمئ ته اوګورئ الله جَلَّ جَلَالُهٗ ورله مختلف منزل

مقرر کړی دی هره ورځ په یومنزل کښ سفر کوي.او دمنزل په بدلیدلو سره دیکښ هم فرق راځی. دا میاشتی په سرکښ یوشان وی په مینځ کښ ترینه بدرکامل جوړ شی اوآخر کښ داسې شی لکه کجهورې زوړ ښاخ. دا قول الله ﷻ په خپل قدرت سره کوی.دبل چاپکښ هیڅ دخل نشته. القمر منصوب علی شریطه التفسیردې.ای: وقدرناالقمرقدرناهُ منازلَ.او «منازل» مفعول ثاني دې د «قدّرنه»چې پمعنی د صیّرنا دې. منازل دمنزل جمع ده.دطلوع اوغروب ځای ته وائی.منازل القمر دسپوږمۍ دَرفتاردپاره چې کوم حدودومقرردي هغې ته وائی چې د قول اته ويشت(۲۸) دی چې تفصیل ئی په سورة یونس (۵) جلد۳صفحه۱۷۲ کښ تیردې

﴿حَتَّىٰ عَادَ كَالْعُرْجُونِ الْقَدِيمِ﴾عرجون هغه ښاخ او ځانګې ته وائې چې هغې پورې دکجهورې غونچه لګیدلې وی کله چې کجهورې پخې شی نوغونچه ترې کټ کړې شی او دا پاتې شی .وخت تیریدو سره دا وچ او زیړ شی.او نرې اوکوږ شی (ابن کثیر)

عرجون یا د فعلون په وزن دې او نون پکښ زائد دې.او انعراج بمعنی اعوجاج (کوږوالی)نه ماخوذ دې.او یانون اصل دکلمې نه دې او بروزن فعلول دې.اودلته سپوګمۍ تشبیه عرجون سره په درې امورو کښ ورکول مقصود دې.(۱)زیړ والی کښ(۲)نری والی کښ (۳) اوکوږ والی کښ

﴿لَا الشَّمْسُ يَنبَغِي لَهَا﴾دا پنځم عقلی دلیل دې مخکښ دنور او سپوګمۍ ذات بطور دلیل ذکر وو.اوس دهغې نظام بطور دلیل ذکر کیږی.چې نوراوسپوګمۍ نظام باندې غور اوکړئ څومره په ترتیب سره روان دې.دسپوګمۍ اونور ځان ځان له رفتار دې چې په هغې سره چلیږی نوردورځې راخیژی.او سپوګمۍ د شپې.داسې نشی کیدې چې په شپه کښ نور راوخیژی.اویا سپوګمۍ دَورځې راشی.او شپه ترینه جوړه کړی.او دهغه شان دَهر یوجداجدا مدار دی چې په هغی کښ ګرځی. سپوګمۍ دنور مدار ته نه راځی او نور دَسپوګمۍ مدار ته نه ځی«ینبغي لَهَا» په معنی لایمکن سره دې او ینبغی فعل نفی په صورت کښ دَناممکن اومحال په معنی کښ ډیر استعمالیږی لکه سورت مریم کښ راځی"وما ینبغي للرحمن ان یتخذ ولدا"او دهغه شان یوحدیث کښ راځی"ان الله لا ینام ولا ینبغی له ان ینام" نو دلته هم لاینبغی دَ ناممکن په معنی کښ دې﴿أَن تُدْرِكَ الْقَمَرَ﴾ "ادراک" نه مراد ادراک په مسافت کښ دې یعنی کیدې نشې

چې نور خپل رفتار تيزکړي او سپوږمۍ ته اورسي .او په شپه کښې د سپوږمۍ سره اوخيژي ﴿وَلَا ٱلَّيۡلُ سَابِقُ ٱلنَّهَارِ﴾ ءالليل او والنهار نه مخکښې اية مقدر دي او اية الليل نه مراد سپوږمۍ او اية النهار نه مراد نور دي يعنې نه سپوږمۍ په نور مخکښې کيدې شي چې په ورځ کښې شپه جوړه کړي ﴿وَكُلٌّ فِي فَلَكٍ﴾ دهر يو لپاره خپل مداردي هغې کښې لامبو وهي او ګرځي. نور د سپوږمۍ مدار ته او سپوږمۍ د نور مدار ته نه راځي. فلک نه مراد آسمان نه دي. بلکه مدار مراد دي چې د آسمانونو نه خکته دي ﴿يَسۡبَحُونَ﴾ سبح. هرهغه ځاي کښې استعماليږي چې پکښې سهولت وي. نو مراد دادي چې دواړه بالکل په سهولت سره خپل مدار کښې ګرځي رفتار کوي

وَاٰيَةٌ لَّهُمۡ اَنَّا حَمَلۡنَا ذُرِّيَّتَهُمۡ فِي الۡفُلۡكِ الۡمَشۡحُوۡنِ ۝ وَخَلَقۡنَا لَهُمۡ

اوبله نخه ددوئ دپاره داده چې مونږ سواره کړيدي اولاددوئ په بيړئ ډکه کښې. اوپيدا کړيدي مونږ دوئ ته

مِّنۡ مِّثۡلِهٖ مَا يَرۡكَبُوۡنَ ۝ وَاِنۡ نَّشَاۡ نُغۡرِقۡهُمۡ فَلَا صَرِيۡخَ

په شان د بيړئ هغه څناور چې دوئ پرې سورلي کوي. اوکچرې اوغواړومونږ نوغرق به کړودوئ نو نه به وي خوک فرياد رسان

لَهُمۡ وَلَا هُمۡ يُنۡقَذُوۡنَ ۝ اِلَّا رَحۡمَةً مِّنَّا وَمَتَاعًا اِلٰى حِيۡنٍ ۝

دپاره ددوئ اونه به ني خوک بچ کولي شي. مګرنه نې غرقوو په مهرباني خپلې سره او دپاره د نفع ورکولو دې بو وخت پورې

وَاِذَا قِيۡلَ لَهُمُ اتَّقُوۡا مَا بَيۡنَ اَيۡدِيۡكُمۡ وَمَا خَلۡفَكُمۡ

اوکله چې اوويلي شي دوئ ته چې اوبريږئ دهغه عذاب نه چې ستاسو په مخکښې کښې دي اودهغه چې ستاسو ورسته دی

لَعَلَّكُمۡ تُرۡحَمُوۡنَ ۝ وَمَا تَاۡتِيۡهِمۡ مِّنۡ اٰيَةٍ مِّنۡ اٰيٰتِ رَبِّهِمۡ اِلَّا كَانُوۡا

دپاره ددې چې په تاسو باندې رحم اوکړيشي، اونه راځي دوئ ته هيڅ يوه نښه د نښودرب ددوئ نه مګروي دوئ

عَنۡهَا مُعۡرِضِيۡنَ ۝

دهغې نه مخ ګرځونکي

﴿وَءَايَةٌ لَّهُمۡ أَنَّا حَمَلۡنَا ذُرِّيَّتَهُمۡ﴾ داشپږم دليل عقلي دې په توحيد او په دعوى د سورة. چې داهم د الله ﷻ د واحدانيت دليل دې چې مونږ دوئ سره د اولادونه په ډکې کشتئ کښې سواره کړو او په

دریابونو سندونو کښې ئې صحیح سلامت پورې کړو .که الله ﷻ اوغواړي چې دوئ غرق کړي نوبیائې دېچ کولو دپاره ددوئ خوساخته معبودان ددوئ مددنشي کولې.مګرصرف الله ﷻ ئې پخپل فضل اورحمت سره بچ کړي اومهلت ورته ورکړي ترڅه مودې پورې

(ذرية)نسل ته وائي. امام راغب رحمه الله په مفردات القرآن کښې لیکلي دي چې اصلاً اطلاق دَ ذریة په وړو بچوکیږي.خوعرف کښې ئې اطلاق په وړو او لویو دواړوباندې کیږي.ښځوته هم ذريه ویلی کیږي لکه په حدیث کښې دي لاتقتلن ذرّية اى امراءة.او دَ لغت مشهورکتاب تاج العروس کښې په دې تصریح شویده چې داد اضدادو نه دې.اولاداوآباء دواړوته وائي.دلته هم داتولې معنې اخستل صحیح دي(۱)که ذرية نه مرادواړه بچي یاښځې شي نودمطلب دادې چې هغه ښځې اوواړه بچي چې دوئ ځان سره روان کړي وي په سفر کښې.(۲)اوکه ورنه مرادکباراولاد واغستې شي نو مطلب به دا شي چې دوئ ئې په سفرتجارت لیږي نو الله ﷻ ئې حفاظت کوي(۳)او که دَذرية نه مراداباء وي نو بیا فلك نه مراد سفينه دَنوح ده.چې په هغې کښې سوارکسان الله ﷻ دَطوفان نه بچ کړل

﴿وَخَلَقْنَا لَهُم مِّن مِّثْلِهِ﴾ضمیریامطلق فلك(کشتئ) ته راجع دې.نودَ﴿مَا يَرْكَبُونَ﴾نه مراد اوښان دي.یعنې دې اهلِ مکه ؤته مونږدکشتئ په شان ځاروي پیداکړیدي چې دوئ پرې رکوب کوي.عرب ددې وجې نه اوخ ته سفينه البر وائي.دغه شان دَنن صباغتې غتې ګاډي.ریل. جهاز وغیره ورنه هم مرادکیدې شي.یاضمیرپه(مثله)کښې فلك نوح ته راجع اى مثل فلك نوح نومرادورنه کشتئ دی.

﴿فَلَا صَرِيخَ لَهُمْ﴾صريخ فعيل بمعنى فاعل دی.یعنې مصرِخ.مصرخ مغيث اوامدادکولو والاته وائي.اى فلامغيث لهم(روح)یعنې کچرته مونږاوغواړوچې غرق ئې کړونوبیابه ئې څوك امدادوالانه وي اونه به ئې څوك دَغرق کیدلونه بچ کړي﴿إِلَّا رَحْمَةً مِّنَّا﴾مستثنى مفرغ ده.او مفعول له دي دَپاره دَ ينقذون فعل

﴿وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ اتَّقُوا﴾داشکوه ده دکفارمکۆونه.داشرط دې جزاورله مقدره ده چې (اعرضوا) دې پدلیلِ دَورستونې آیت﴿وَمَا تَأْتِيهِم مِّنْ آيَةٍ﴾یعنې چې کله دوئ ته اووئیل شي چې دَقیامت دَسزا او دَ خپلو بدو عملونو دَشامت نه اوبیریږئ ایمان راوړئ چې الله ﷻ درباندې رحم اوکړي

يعني عذاب نه درته نجات درکړي .نو دوئ دې خبرې نه اعراض او کړي

﴿مَا بَيْنَ أَيْدِيكُمْ﴾ مراد ورنه د دنيا عذاب دې چې د بد عملونو پوجه راځي. ﴿وما خلفكم﴾ نه مراد د آخرت عذاب دې.قتاده رحمه الله او مقاتل رحمه الله وائي چې ﴿مَا بَيْنَ أَيْدِيكُمْ﴾ نه مراد د تېرشوي امتونو عذاب دې.يعني اوېرېږئ د هغه عذاب نه چې په مخکنو قومونو باندې نازل وؤ او ﴿وما خلفكم﴾ نه مراد عذاب د آخرة دې (روح)

﴿وَمَا تَأْتِيهِم مِّنْ آيَةٍ﴾ ما نافيه دې.صيغه د مضارع د پاره د دلالت ده په استمرار باندې. يعني د ا اعراض کول د دوئ زور عادت دې ﴿مِّنْ آيَةٍ﴾ من زائد دې د پاره د تاکيد

وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ أَنفِقُوا مِمَّا رَزَقَكُمُ اللَّهُ قَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا

اوکله چې اوېلې شي دوئ ته چې خرچ کړئ د هغې مال نه چې درکړيدې تاسو ته الله ﷻ.نو وائي کافران

لِلَّذِينَ آمَنُوا أَنُطْعِمُ مَن لَّوْ يَشَاءُ اللَّهُ أَطْعَمَهُ إِنْ أَنتُمْ إِلَّا

استهزاءً مؤمنانو ته چې آيا مونږ طعام ورکړو هغه چاته چې که غوښتلی الله ﷻ نو خوراک به ئې ورته ورکړي وی.نه يئ تاسو مګر

فِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ ﴿٤٧﴾ وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هَٰذَا الْوَعْدُ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ ﴿٤٨﴾ مَا يَنظُرُونَ إِلَّا

په ګمراهئ ښکاره کښې.او وائی دوئ چې کله به وي دا وعده د قيامت که يئ تاسو رشتني.انتظار نه کوي دوئ مګر

صَيْحَةً وَاحِدَةً تَأْخُذُهُمْ وَهُمْ يَخِصِّمُونَ ﴿٤٩﴾ فَلَا يَسْتَطِيعُونَ تَوْصِيَةً

د يوې چغې د اسرافيل چې وبه نيسي دوئ او دوئ به جګړې کوي.پس طاقت به نه لري دوئ د وصيت کولو

وَلَا إِلَىٰ أَهْلِهِمْ يَرْجِعُونَ ﴿٥٠﴾

او نه به خپل اهل (کور) ته واپس تلې شي

﴿وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ أَنفِقُوا﴾ دا بله شکوه ده د کفار مکه ؤ نه چې کله دوئ ته د انفاق او مسلمانانو سره د صله رحمئ ترغيب ورکړې شي ، نو وائی چې کومو کسانو ته چې الله ﷻ رزق ندې ورکړې. الله ﷻ غريب کړی وي نو مونږ به ورته څه ورکړو

(١) دوئ دا قول استهزا باندې مبنی دې.يعنی کله چې دوئ ته د انفاق حکم او شي نو دوئ

وړپوړي مسخري شروع کړي. (۲) يا استدلال دي د تقدير نه. يعنی کوم کس چی الله ﷻ غريب
پيدا کړي دي او خوراک ورله نه ورکوی نو زمونږ څه کار دي چی مونږ ورله څه ورکړو. (۳) او
يا په تقدير باندي اعتراض دي چي الله ﷻ دوئ پيدا کړي دی. او ورله رزق ورکولو باندی
قادر هم دي خو دي باوجود ورله رزق او مال نه ورکوی نو مونږ نه څله ددی حکم کوی

﴿قَالَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا﴾ وضع داسم ظاهرپه موضع دضميرکښ اشاره ده علت دوئ
مذکورته. چي دوئ دکفرپه وجه داخبره کوي.

﴿إِنْ أَنتُمْ إِلَّا فِى ضَلَٰلٍ مُّبِينٍ﴾ (۱) ظاهره داده چي داقول دکافرانو دي مؤمنانوته. چی تاسو په
ښکاره ګمراهئ کښ يئ. څکه چي يوکس الله ﷻ غريب پيدا کړيدي اومال ورله نه ورکوی
حالانکه هغه په ورکولو قادر دي نو دينه باوجود دَ انفاق حکم کول اوددی ترغيب ورکول
داخو الله ﷻ رضا اومشيت خلاف ده (۲) او يا دا دالله ﷻ قول دي اومشرکينو ته دهغوئ
خبري جواب دي چي دوئ دومره نه پوهيږی چي حقيقت کښ خو الله ﷻ دټولو مخلوقاتو
رازق دي خو بندګانو دپاره ئی دررزق مختلف ذرائع پيداکړی دی. څني خلق ئی مالداره پيدا
کړيدی او دهغوئ رزق ذريعه ئی تجارت ګرځولي دي اوڅني خلق ئی غريبان پيداکړی دی. نو
دهغوئ رزق ذريعه ئی دامالدار ګرځولي دي چي دوئ به خپل مال کښ دهغوئ حصه کوی.
براه راست بغيردَذريعي او سبب نه الله ﷻ نه مالدارانو له رزق ورکوی او نه غريبانانوله. نو
دوئ له چي الله ﷻ کوم سبب او ذريعه دررزق ورکړي ده هغې نه خو دوئ څه فائده اوچتوی او
دغريبانانو په سبب اعتراضات کوی او دانفاق حکم نه انکار کوی نوداښکاره ګمراهی ده
نورهيڅ نه دی

﴿وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هَٰذَا ٱلْوَعْدُ﴾ داهم شکوه ده په ضمن دَتخويف کښ. چي دَقيامت باره کښ
دوئ استهزاءًتپوس کوي چي کله به راځي. ﴿مَا يَنظُرُونَ﴾ داددوئ دَسوال جواب دي. چي د
قيامت دَراتلومقرروخت چاته معلوم ندې. ناڅاپه به راځی. دوئ هم دَدي ناڅاپه چغی انتظار
کوي. ﴿إِلَّا صَيْحَةً وَٰحِدَةً﴾ مرادورنه نفخهٔ اولی دَاسرافيل ده چي پدې سره به ټول مخلوقات
مړه شي. ﴿وَهُمْ يَخِصِّمُونَ﴾ په اصل کښ يَختصمون دی تاپه صادبدل شوه اوادغام اوشو يعني
قيامت به داسي ناڅاپه راشي چي خلق به ددنياپه څيزونو. معاملاتو. تجارتونوکښ بحثونه
اوجګړي کوي. دقيامت متعلق به ئی په زړه کښ هيڅ خيال هم نه راځي. په حديث کښ دی

چې قیامت به په داسې حال کښې قائمیږي چې دوه کسانو به یوه کپړه خوره کړې وي او سوال سره به ئې سودا کوي. کپړه به ئې رانغښتې نه وي چې ناڅاپه به قیامت شي. یو سړی به د حوض د پاره ابو خور لیؤکړې وي. څاروي به ورته اوبه نه وي څکلي چې قیامت به راشي. یو سړي به تله کوزه نیولې وي او چته کړې به ئې نه وي چې قیامت به راشي. یو سړي به د خوراک لقمه خولې ته اوچته کړې وي. تیره کړې به ئې نه وي چې قیامت به پرې راشي

﴿فَلَا يَسْتَطِيعُونَ تَوْصِيَةً﴾ یعني د توبې او د وصیت کولو د پاره به ورته مهلت ملاؤ نشي ﴿وَلَا إِلَىٰ أَهْلِهِمْ يَرْجِعُونَ﴾ یعني هر سړي به پخپل پخپل ځای کښې مړشي اهل وعیال ته به لاړ نشي

وَنُفِخَ فِي الصُّورِ فَإِذَا هُمْ مِّنَ الْأَجْدَاثِ إِلَىٰ رَبِّهِمْ يَنسِلُونَ ۝ قَالُوا

او پوکې به وو هلې شي په شپیلۍ کښې (دوېم ځل) پس دوئ به د قبرونو څخه د خپل رب ته روان شي او به وائي دوئ

يَا وَيْلَنَا مَن بَعَثَنَا مِن مَّرْقَدِنَا ۜ هَٰذَا مَا وَعَدَ الرَّحْمَٰنُ وَصَدَقَ

های زمونږ تباهي چا را پورته کړو مونږ د خپل خوب ځای نه. دا خو هغه دي چې وعده ئې کړې وه رحمن او رښتیا وئیلي وو

الْمُرْسَلُونَ ۝ إِن كَانَتْ إِلَّا صَيْحَةً وَاحِدَةً فَإِذَا هُمْ جَمِيعٌ لَّدَيْنَا مُحْضَرُونَ ۝ فَالْيَوْمَ

پیغمبرانو دې په باره کښې، نه ده دا مګر چغه یوه ده پس دوئ به په جمع زمونږ مخکښې حاضر کړې شوي وي. پس نن ورځ

لَا تُظْلَمُ نَفْسٌ شَيْئًا وَلَا تُجْزَوْنَ إِلَّا مَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ۝

ظلم به نه نشي کولې په یو نفس د هیڅ څیز او بدله به نشي درکولې تاسو ته مګر د هغې عملونو چې تاسو کول

﴿وَنُفِخَ فِي الصُّورِ﴾ د ینه نفخه ثانیة مراد ده، د نفخة اولی او ثانیة په مینځ کښې به څلویښت کاله وي. کله چې دا شپیلۍ اووهلې شي نو ټول خلق به ژوندي شي او الله جل جلاله طرف ته منډې وهي ﴿فَإِذَا هُم مِّنَ الْأَجْدَاثِ﴾ الأجداث د جَدَث جمع ده قبرونو ته وائی. ﴿يَنسِلُونَ﴾ ای یسرعون. یعني الله جل جلاله طرف ته به تیزئ سره ځي کقوله تعالى: یوم یخرجون من الاجداث سراعًا (معارج ۴۳) د دې آیت او د سورة زمر آیة (۶۸) فاذاهم قیامٌ ینظرون، مینځ کښې منافاة نشته دې. ځکه ممکنه ده چې هلته د اول وهلة بیان وي. چې د محشر هیبت ناکو مناظر لیدلو پوجه به حیران پریشان ولاړ وي. او بیا په ډیر سرعت سره ئې فرشتي الله جل جلاله مخې ته اوشړي.

﴿قَالُوا يَـٰوَيْلَنَا مَنۢ بَعَثَنَا﴾ يعني دقبرونونه پورته كيدلونه ورستوچي دميدان حشرسختئ اووينې نووائى به چې هائ آفسوس مونږدقبرنونه چاراپاڅولو «يويلنا» ب حرف ندا ده او ويلنا منادى مندوب دې، يعني فرياد به كوي چې هائ .دا خو زمونږ د تباهئ وخت دې. «من مَّرْقَدِنَا» «مرقد» يا اسم مكان دې يعني ځائ د ارام. مراد ورنه قبردې.يامصدرميمي دې.يمعنى د«رقادنا»يعني چامونږدارام نه راپاڅولو

**سوال كيږي** چې په قبر كښ خوبه په دوئ عذاب وى نو بيائ ورته ځنګه ميقد اونيلو؟څني مفسرينوئې داجواب كړيدى چې قبرته ئ مرقدځكه اوونيل چې دنفخه اولئ نه ترنفخة ثانية پوري به په اهلِ قبوروعذاب نه وي اكثرمفسرين وائى چې مرقدئې ورته پدې وجه اوونيل چې كله دوئ دَميدان حشرهيبتونه اووينې نودې په نسبت به ورته قبرځائ دَارام ښكاره شي.ځكه چې لوئ مصيبت راتلوسره وړكى مصيبت هيرشي

﴿هَـٰذَا مَا وَعَدَ ٱلرَّحْمَـٰنُ﴾ «ما» ياموصوله ده.عائدئى محذوف دې ،اى هذاالذى وعده الرحمن والذي صدقه المرسلون(روح)يعني داهغه ورځ ده چې اللهﷻ ئى مونږسره وعده كوله. او رسولانورشتياويلي وؤ،(١)داقول يادكافرانودې بطوراعتراف جرم.يعني چې كله دوئ د قيامت منظراووينې نوبيابه اعتراف اوكړي ليكن نفع به نه وركوي. او ماوعدالله په ځائى وعد الرحمن اونيلواوصفت رحمت ئى ذكر كړو،پدې اميد چې كيديشى په دوئ هم څه رحمت اوكړيشى،(٢)يااقول دَاللهﷻ دې كافرانوته،(٣)ياد فرشتو دطرفه دې يادَ مؤمنانو . دې صورت كښ درحمن ذكر كفاروته زجراو توبيخ دپاره دې چې دَاللهﷻ دَصفت رحمن اصل اظهار ورځ خوقيامت ده خودوئ بدبخته دې چې ځان ئى ترينه محرومه كړې دې.

زجاجرحمه الله وائى چې﴿هَـٰذَا﴾صفت دې دَ﴿مَّرْقَدِنَا﴾او﴿مَا وَعَدَ ٱلرَّحْمَـٰنُ﴾مبتداء دې خبرئى محذوف دې چې «حقٌ»دې

﴿إِن كَانَتْ إِلَّا صَيْحَةً وَٰحِدَةً﴾يعني دانفخه ثانية به دَاسرافيلعليه السلام صرف يوه چغه وي.چې دَشپيلئ نه به راوخي،بعض وائى اسرافيلعليه السلام به اووائى(ايتها العظام النخرة،والاوصال المتقطعة، و الشعور المتمزقة،انّ الله يامركنّ ان تجتمعنَ لفصل القضاء)دې اوازاوريدلوسره به ټول خلق دَاللهﷻ

حضورته حاضرکړی شي. الله جل جلاله به هرکس سره حساب کوي نه څه به هم ظلم نه کيږي چې څنګه ئ عمل وي هغه شان به ئې بدله وي

إِنَّ أَصْحٰبَ الْجَنَّةِ الْيَوْمَ فِي شُغُلٍ فٰكِهُونَ ﴿٥٥﴾ هُمْ وَأَزْوَاجُهُمْ فِي ظِلٰلٍ

بيشکه خاوندان دجنت به نن ورځ به شغل کښې وي. خوشحاله به لګوی. دوی او ښځې ددوی به سورو کښې به وي

عَلَى الْأَرَآئِكِ مُتَّكِـُٔونَ ﴿٥٦﴾ لَهُمْ فِيهَا فٰكِهَةٌ وَلَهُمْ مَّا يَدَّعُونَ ﴿٥٧﴾

په تختونو باندي تکيه لګولې وي. ددوی دپاره به په جنت کښ ميوې وي او دوی ته به ددوی دپاره هغه څه چې ئې غواړي

سَلٰمٌ ۚ قَوْلًا مِّن رَّبٍّ رَّحِيمٍ ﴿٥٨﴾

دوی دپاره به سلام وي.چې اوبه ويلې شي ورته دطرفه درب مهربانه نه.

﴿إِنَّ أَصْحٰبَ الْجَنَّةِ الْيَوْمَ﴾ دابشارت أُخروي دې چې مؤمنان به دقيامت په ورځ دجنت په مزوکښ وي. خوشحاله به وي، دخپلو بيبيانوسره به ښه په راحت اوارام کښ تکيه لګولکي ناست وي، قسمه قسم ميوي به ورته ورکولې کيږي. دالله جل جلاله دطرفه به ورباندې السلام عليکم وئيلی کيږي ﴿فِي شُغُلٍ﴾ جار مجرور دَمحذوف متعلق خبر دې دان. او فکهون ئې خبر ثاني دې، او شغل نه مراد هغه خوندونه او لذتونه دي چې هغه د بل هر څه نه سړي مشغوله کړي. په جنت کښې به داسې ډير څيزونه وي چې هغه به بنده د بل هر څه نه مشغوله کوي ١ د الله جل جلاله ضيافت چې هغې کښې به الله جل جلاله په خپله هم تجلي کوي ٢. د حورو مشغولتيا. (٣) ملګرو ملاقات او زيارت وغيره. ((فکهون)) د فُکاهت نه دې. ګپ شپ ته وائي. او د دليل د هغوئ په خوشحالئ او نعمت يافته کيدلو باندې. دې وجهې نه ئې معني په فرحون او متمتعون سره هم شوې ده.

﴿هُمْ وَأَزْوَاجُهُمْ﴾ بيان دکيفيت دَشغل اودفرح دې. او دواړوتکميل دې. چه دې سره به ئې نورهم په خوشحالئ کښ زياتوالی اوشي، ظاهره داده چې مراددازواجونه ددنيا خپلې مؤمناني بيبياني دي. بعض وائی حوري ورنه مراددي، ليکن اصح داده چې دواړه ورنه مراددي اودغه شان هغه ښځې چې خاوندان ئې کافران وو، نوچې دچاسره دالله پاك خوښه وي هغه ته به ئې ورکړي. لکه امراة دفرعون چې دابه دحضور صلی الله علیه وسلم بي بي وي په جنت کښ

﴿فِي ظِلَٰلٍ﴾جمع دَ ظِلٌ ده سوري ته وائي، کنايه ده دراحت اوآرام نه. خکه سوري ته سړي په راحت کښ وي، ياجمع دَ ظُلَّةٌ ده، خيموته وائي. ﴿عَلَى ٱلْأَرَآئِكِ﴾جمع دَ اريكةٌ پالنګوته وائی. يا تکيه ګانو تهوائی، ((في ظلل))او((علی الارآئک))دواړه متعلق دی په ((متکئون)) پوری . او يا((في ظلل)) خبر دې دَ((هم))، او((علی الارآئک))متعلق دې په ((متکئون))پوری.

﴿وَلَهُم مَّا يَدَّعُونَ﴾دَ دعا نه مأخوذدې پمعنی دَطلب، په اصل کښ يدتعيون دې، طلب ياپخپله معنیٰ يعني غوښتلوسره دې، نوچونکه مطلوب منه او ورکونکې به الله ﷻ وي نودی سره به لذت نورهم زياتيږي، ياطلب پخپله معنی کښې ندې، بلکه پمعنیٰ دَتمنی اواشتهاسره دې، يعني دکوم څيزچې زړه اشتهاکوي هغه به ورته ورکولې کيږي، يادَدعانه معروفه معنیٰ مراده ده، يعني دوئ چې په دنياکښ کومې دعاګانې کولی هغه به ئی قبولې وي(روح)

﴿سَلَٰمٌ﴾(۱)يامبتدادې خبرمقدم ئی محذوف دې ای لهم سلامٌ. او ﴿قَوْلًا﴾مفعول مطلق دې دَفعلِ محذوف. ﴿مِّن رَّبٍّ رَّحِيمٍ﴾دَ﴿قَوْلًا﴾صفت دې ای سلام يقال لهم من جهة ربّ الرحيم(روح) يعني دَالله ﷻ دَطرفه به ورباندې بلاواسطه سلام کولې کيږي، په حديث کښ دي چې حضورﷺ فرمائی: بيناأهلَ الجنة في نعيمهم اذاسطع لهم نورٌفرفعوارؤسهم فاذاالرّب قداشرف عليهم من فوقهم فقال السلام عليکم ياأهلَ الجنةِ، وذالك قول الله تعالیٰ﴿سَلَٰمٌ قَوْلًا مِّن رَّبٍّ رَّحِيمٍ﴾(روح بحواله ابن ماجه) ترجمه: دې دوران چې اهل جنت به دجنت په نعمتونوکښی وی چه يونوربه رااوچت شي، چې دوئ خپل سرونه اوچت کړی، نوالله تعالی به دَدوئ دپاسه جلوه ګرشوی وی، اوبه وائی: السلام عليکم يااهل الجنة اوهم دامراددې دالله تعالی دَدې قول نه: سلام قولاًمن ربّ رحيم.

بعض وائی داسلام به په واسطه دَملائکوسره وي کمافي سورة النحل

| وَٱمْتَٰزُوا۟ ٱلْيَوْمَ أَيُّهَا ٱلْمُجْرِمُونَ ۝ أَلَمْ أَعْهَدْ إِلَيْكُمْ يَٰبَنِىٓ ءَادَمَ أَن لَّا تَعْبُدُوا۟ |
|---|
| وجداشئ نن ورځ اې مجرمانو. آياماحکم نه وؤکړې تاسوته اې بني آدمو چې مه کوئ عبادت |
| ٱلشَّيْطَٰنَ ۖ إِنَّهُۥ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِينٌ ۝ وَأَنِ ٱعْبُدُونِى ۚ هَٰذَا صِرَٰطٌ مُّسْتَقِيمٌ ۝ |
| دشيطان، بيشکه هغه ستاسودَشمن ښکاره دې، اوچې صرف زماعبادت کوئ، دالاره ده نيغه، |

وَلَقَدۡ اَضَلَّ مِنۡكُمۡ جِبِلًّا كَثِيۡرًا ؕ اَفَلَمۡ تَكُوۡنُوۡا تَعۡقِلُوۡنَ ۝ هٰذِهٖ جَهَنَّمُ الَّتِىۡ

اوپه تحقيق سره چې گمراه كړي وزده ستاسونه مخلوق ډير. آيا تاسو نه پوهيدئ د اجهنم دى هغه چې

كُنۡتُمۡ تُوۡعَدُوۡنَ ۝ اِصۡلَوۡهَا الۡيَوۡمَ بِمَا كُنۡتُمۡ تَكۡفُرُوۡنَ ۝ اَلۡيَوۡمَ نَخۡتِمُ

تاسو ترينه يرولي كيدلئ. داخل شئ دينه نن ورځ په سبب د دې چې تاسو كفر كوئ. نن ورځ به مهرونګوو

عَلٰٓى اَفۡوَاهِهِمۡ وَتُكَلِّمُنَاۤ اَيۡدِيۡهِمۡ وَتَشۡهَدُ اَرۡجُلُهُمۡ بِمَا كَانُوۡا يَكۡسِبُوۡنَ ۝

په خلوددوئ باندې اوخبرې به كوي مونږ سره لاسونه ددوئ اوګواهي به كوي خپې ددوئ په هغې عملونو چې دوئ به كول.

وَلَوۡ نَشَآءُ لَطَمَسۡنَا عَلٰٓى اَعۡيُنِهِمۡ فَاسۡتَبَقُوا الصِّرَاطَ فَاَنّٰى يُبۡصِرُوۡنَ ۝

اوكه چرې زمونږه خوخه شي نوخاږه به كړو سترګې ددوئ نومنډې به كړي دوئ لارې ته خو څنګه به اووينې دوئ لار

وَلَوۡ نَشَآءُ لَمَسَخۡنٰهُمۡ عَلٰى مَكَانَتِهِمۡ فَمَا اسۡتَطَاعُوۡا مُضِيًّا وَّلَا يَرۡجِعُوۡنَ ۝

اوكه خوخه شي زمونږ مسخ به كړودوئ په خپلوځايونوكښې نوطاقت به نه لري دوئ دمخكښې تللو اونه به را واپس كيدى شي

﴿وَامۡتَازُوا الۡيَوۡمَ﴾ دا تخويف اخروي دې مشركانو مجرمانو ته يُقال ورنه مخكښې مقدر دې. يعني قيامت كښې به دوئ ته حكم اوشي چې نن تاسو د نيكوخلقونه جدا شئ. دنيا كښې ما تاسو نه دا پيغام دررسولې وو چې شرك مه كوئ د شيطان اتباع مه كوئ ځكه هغه ستاسو ښكاره دشمن دې، صرف زما عبادت كوئ داسمه لاره. ليكن تاسو انكار اوكړو اوس چې دكوم جهنم چې تاسو سره وعده كولې شوه هغې ته داخل شئ.

﴿اَلَمۡ اَعۡهَدۡ اِلَيۡكُمۡ﴾ دا په دوئ اتمام حجت بيان دې، او د دوئ تبكيت دې. عهد پمعنی د وصيت اوحكم سره دې، دلته ورنه مراد دَ الله ﷻ پيغامونه احكامات دى چې دَوحي په ذريعه ئې راليږلې وو. لكه: يابني آدمَ لايفتننكم الشيطان كما اخرج... او دغه شان: و لاتتبعوا خطوات الشيطان... وغيره نوردا قسم آياتونه. ﴿اَنۡ لَّا تَعۡبُدُوا الشَّيۡطٰنَ ۚ﴾ دَشيطان دَعبادت نه مراد طاعت دې دَهغه په ګناهونوكښې، تعبيرترينه په عبادت سره دَشدَت نفرت اودَبيزارئ دَاظهاردپاره اوشو. ياورنه مراد دَغيرالله عبادت دې خوشيطان چونكه امركونكې دې نوځكه ئې ورنه

نسبت او شو . ﴿هَٰذَا صِرَٰطٌ مُّسْتَقِيمٌ﴾ اشاره عبادت د الله ﷻ ته ده. ب حكم مذكور نه.

﴿وَلَقَدْ أَضَلَّ مِنكُمْ جِبِلًّا﴾ يعني صرف احكامات را اليږل نه وو . بلكه سابقو امتونو انجام هم ستاسو مخكښې وو. چې شيطان د اطاعت په ګمراه شوي وواو بيا الله ﷻ هلاک کړي وو. "جبلا" جماعت عظيمه ته وائی. ﴿أَفَلَمْ تَكُونُوا تَعْقِلُونَ﴾ همزه استفهام په معطوف عليه مقدر باندی داخله ده ای كنتم تشاهدون آثار عقوباتهم فلم تكونو تعقلون يعني دهلاك شده قومونو آثارمو اوليدل چې دَشيطان دَطاعت پوجه هلاك شوي وؤنوتاسوورنه عبرت نه اغستو؟

﴿الْيَوْمَ نَخْتِمُ عَلَىٰ أَفْوَاهِهِمْ﴾ په خولودَدوئ باندې مهرلګيدل باكنايه ده دَخبرومنع كولونه. يعني دوئ نه به دَخبرو كولو قوت سلب كړې شي بلكه لاسونه به ئی خبرې كوي اوخپي به ئی تصديق كوي، دَجرمونو اقراربه كوي، يابه حقيقةً دَدوئ په خولومهراولګي. باقي تفصيل سورة نورآيت(۲۴)كښې تيرديې ﴿وَتُكَلِّمُنَا أَيْدِيهِمْ﴾ لاسونوته نسبت دتكلم اوشواوخپوته دګواهي وركولو ،وجه داده چې عملونه دَلاسونونه صادريږي، اوخپې صرف حاضري وي نوپدي وجه لاسونوته دَتكلم نسبت اوشو اوخپوته دګواهي(روح، قرطبي)

﴿وَلَوْ نَشَاءُ لَطَمَسْنَا عَلَىٰ أَعْيُنِهِمْ﴾ تخويف دنيوي دي كافرانوته اومطلب دادې چې نن دنياكښې هم دوئ دَعذاب مستحق دی، چې دَدوئ مخونه بالكل مسخ كړو. سترګي ورته محوكړو. نظربه ئی هم ختم شي اوسترګي به ئی هم ختم شي، ليكن الله ﷻ دخپل حكمت په بنا داسې نه كوي(طمس)خاړه كولوته وائی لكه په تختې باندې ليكلې شوې خط چې په وينځلوسره خاړه سي، نودغه شان دَدوئ مخونه به خاړه شي.

﴿فَاسْتَبَقُوا الصِّرَاطَ﴾ صراط منصوب بنزع الخافض دې، ای فارادواالاستباق الى الصراط (روح) والصِّرَاطَ نه مراد معروفه لار ده چې روزانه پرې ځي راځي. يعني كه بالفرض سترګي ئی خاړې شي اوبيا عذاب نه بچ كيدلو او كورته تختيدو دپاره لارې ته منډه كړی نو لاره به نه مومی. لكه څرنګه چې دخلقو عادت وي چې دَڅه پوجه ئی په سترګوتياره راشي نوپدغه وخت كښې لاره تلاش كولودپاره يو خوا بل خوا منډي وهي﴿فَأَنَّىٰ يُبْصِرُونَ﴾ يعني بيابه دوئ قدرت نه وي چې لاره اووينې،

﴿وَلَوْ نَشَآءُ لَمَسَخْنٰهُمْ ﴾دا هم تخویف دې،چې دوئ ددې هم مستحق دی چې ټول جسم ئې مسخ شي اوبل څه قبیح څیزونه جوړشي. مسخ: صورت انساني غیر انساني صورت ته بدلولو ته وائي یعني دوئ ددې لائق دې چې ځناور ،یاجمادات یا نباتات ترینه جوړ کړیشي.

﴿مَكَانَتِهِمْ﴾ مکان او مکانة دواړو یوه معنی ده،یعنی کوم ځائی کښې چې دوئ رسولان تکذیب کوی په هم دغه ځائی کښې مسخ کړی شي﴿مُضِيًّا﴾یعنی کوم کار دپاره راوتلی وی هغی له تللو اودهغی پوره کولو طاقت به نه لری.﴿وَلَا يَرْجِعُوْنَ ﴾اونه به واپس کورونه ته تلې شی.ځکه چې شعور اوعقل به پکښې نه وی،یاخوجمادات وی په ځائی به پراته وی او یا به ترینه ځناور جوړ وی. اواخو دیخوا به حیرانه سرګردانه ګرځی

وَمَنْ نُّعَمِّرْهُ نُنَكِّسْهُ فِي الْخَلْقِ اَفَلَا يَعْقِلُوْنَ ﴿۶۸﴾ وَمَا

اوهغه څوک چې زیات کړوعمردهغه نوکمزوري راولومونږدده په تخلیق(اعضاؤ)کښې.آیانه لري دوئ عقل،اونه دی

عَلَّمْنٰهُ الشِّعْرَ وَمَا يَنْۢبَغِيْ لَهٗ اِنْ هُوَ اِلَّا ذِكْرٌ وَّقُرْاٰنٌ مُّبِيْنٌ ﴿۶۹﴾ لِّيُنْذِرَ مَنْ كَانَ

خودلې مونږ دده نبي ته شعر اونه مناسب دې ده لره،نه دې داکتاب مګرنصیحت اوقرآن ښکاره دې،چې اویره وي هغه څوک چې وي

حَيًّا وَّيَحِقَّ الْقَوْلُ عَلَى الْكٰفِرِيْنَ ﴿۷۰﴾ اَوَلَمْ يَرَوْا اَنَّا خَلَقْنَا لَهُمْ مِّمَّا

ژوندي، اوچې ثابت شي قول(عذاب دجهنم)په کافرانو.آیادوئ نه دي لیدلي چې بیشکه مونږپیداکړي دی ددوئ دپاره دهغه نه

عَمِلَتْ اَيْدِيْنَآ اَنْعَامًا فَهُمْ لَهَا مٰلِكُوْنَ ﴿۷۱﴾ وَذَلَّلْنٰهَا لَهُمْ فَمِنْهَا

چې جوړکړیدي لاسونوزمونږ،خاروي نودوئ دهغې مالکان دي،اوتابع کړیدي مونږ داخاروي دوئ دپاره نوځنې خاروي

رَكُوْبُهُمْ وَمِنْهَا يَاْكُلُوْنَ ﴿۷۲﴾ وَلَهُمْ فِيْهَا مَنَافِعُ وَمَشَارِبُ اَفَلَا يَشْكُرُوْنَ ﴿۷۳﴾

سورلئ ددوئ دي اوځنې خاروي دوئ خوري،اوددوئ دپاره پدیکښې نورې فائدې دي اوګودرې دي.آیادوئ شکرنه کوي.

﴿وَمَنْ نُّعَمِّرْهُ نُنَكِّسْهُ فِي الْخَلْقِ ﴾دا دماقبل تخویف دپاره دلیل دې،چې خپل طمس اومسخ مستبعدمه ګڼرئ.آیاتاسونه ګورئ چې یوروغ اوقوي انسان دډیروالي دعمرپوجه ورله مونږقوت ختم کړو،لیدلو،آوریدلو،ګرځیدلونه معذوره شي،حالت ئې وړوماشومانوسره مشابه شي.نوهغه الله ﷻ چې پدې قادردې،نوستاسوپه طمس اومسخ هم قادردې

﴿نُنَكِّسْهُ﴾د تنكيس نه دې،تنكيس وئيلى كيږى الرد من حاله كاملة الى حالة ناقصة‌ته.يعنى كامل حالت نه ناقص حالت طرف ته ګرځول ﴿فِي ٱلْخَلْقِ﴾نه مراد قوى دى يعنى چې څومره عمر زياتيږى نو دومره په قواؤو كښې كمزورى راځى.

﴿وَمَا عَلَّمْنَٰهُ ٱلشِّعْرَ﴾دادَمشركانودَيوې شبهې جواب دې،اودحضورﷺ اودَقرآن دصداقت بيان دې،مشركانوبه وئيل چې دامحمدﷺ شاعردې،اودَده كلام شاعرانه دې اوشاعرانه كلام افتراء اودَځان نه جوړشوې محض خيالي كلام وي نومونږځكه پدې ايمان نه راوړو.نو الله تعالى دې آيت كښې دَشاعرئ نفي اوكړه چې نه حضورﷺ شاعردې اونه ئى كلام يعني قرآن دَشعركتاب دې،بلكه داخوصرف نصيحت دې،دَنبي اكرمﷺ نه دَشاعرئ نفي سره على سبيل الكنايه دَقرآن نه هم نفي دَشاعرئ اوشوه،﴿وَمَا يَنۢبَغِي لَهُۥٓ﴾يعني دَحضورﷺ دَشان سره شعروئيل مناسب ندي،پدې وجه حضورﷺ ته دَشعروئيلوقدرت نه وؤوركړې شوې.اودغه شان چې منكرينوباندې اتمام دَحجت اوشي اوشبهات ئى ختم شي،لكه څرنګه چې اُمّي كيدل هم دَحضورﷺ صفت كمال دې.

دَحضورﷺنه موزون اوپوره شعروئيل منقول ندي،ځكه چې شعروئيل دَمبالغي اودَ تكلّف نه خالي نه وي،اواكثرپكښې تحسين دَ ماليس بحسنٍ وي اوتقبيح دَماليس بقبيحٍ وي،او دا دَ شان دَنبوت سره مناسب نده،دَدې وجه نه دَبعضوپه نيزتماموانبياء كراموته دَاشعارو جوړولو قدرت نه وؤوركړې شوې،اوكچرته دَحضورﷺ دَبل شاعرشعرنقل كړې وي،نوهغه هم غير موزون نقل دې،لكه روايت دې چې حضورﷺ داشعراووئيلو:

سَتُبدي لكَ الأيامُ ماكنتَ جاهلاً ويأتيك من لم تزوّدبالأخبارِ

نوابوبكرﷺ عرض اوكړوداسې ندى بلكه،ويأتيك بالأخبارمن لّم تزوّدِ دې،نوحضورﷺ ورته اوفرمائيل:نه څه شاعريم اونه ماسره مناسب دى،اوهرچې دَغزوهٔ خندق ياغزوهٔ حنين په موقعه باندې چې حضورﷺ وئيلي وؤچې:

أنا النبيّ لا كذب أنا ابن عبد المطلب

نوداصرف اتفاقيه مقفّىٰ كلام دې،بغيردَقصدنه،اودېته شعرنه وئيلى كيږي نه ئى قائل ته شاعروئيلى كيږي(روح وغيره) ﴿عَلَّمْنَٰهُ﴾او په ﴿له﴾كښې ضمير غائب نبى كريم ﷺ ته راجع دى

او ﴿إِنْ هُوَ﴾ کښ ضمیر غائب قرآن ته راجع دې﴿وَقُرْءَانٌ مُّبِينٌ﴾ یعنی ددې الله کلام کیدل بالکل ظاهردی ځکه چې څوک دې په شان کلام راوړلې نشی

﴿لِّيُنذِرَ﴾ مقاصد دبعثت اونزول وقرآن ذکر کیږی اودا اول مقصد دې. ضمیرقرآن ته حضور ﷺ ته راجع دې. ﴿مَن كَانَ حَيًّا﴾ حیا نه مراد عاقل دې یا ورنه مؤمن مراد دې په قرینی دَعلی الکافرین. یعني چې زړه ئې ژوندې وي او خپل نفع نقصان پیژنی. ځکه کافرپه شان دمړي دې.

﴿وَيَحِقَّ الْقَوْلُ عَلَى الْكَافِرِينَ﴾ یعني چې فیصله دعذاب په کافرانو واجبه شي. ځکه چې پدې کښ شک پاتې نه شوچې داقرآن حق کلام دې. نوصرف عنادپوجه ورنه دوئ انکارکوي نوپدوئ فیصله دجهنم ثابته شوه

﴿أَوَلَمْ يَرَوْا أَنَّا خَلَقْنَا لَهُم﴾ دااووم دلیل عقلي دې په دعوی دسورة باندې. چې آیادوئ دافکر نه کوي چې ددوئ دفائدې دپاره مونږه مختلف قسمه څناورپیداکړیدي چې دوئ ته ورنه ډیرې فائدې رسیږي. داصرف مونږپخپل قدرت پیداکړیدی ددوئ خود ساخته معبودان مونږ سره شریك ندي نودوئ ته شفاعت قهري هم ندې حاصل. ﴿مِّمَّا عَمِلَتْ أَيْدِينَا﴾ مبالغه ده په اختصاص کښ. یعني صرف مونږپیداکړیدي، لکه یوسړی وائی چې داڅیزماپخپل لاس جوړ کړیدې، یعني داڅناورصرف مونږپیداکړیدی، اود "ید" اضافت الله ﷻ ته دمتشابهاتونه دې چې حقیقي معنیٰ ترینه نشي مرادکیدلې، یا مرادورنه قدرت دې. دمتشابهاتوباره کښ مکمل تفصیل ددې تفسیردسورة آلِ عمران ابتداء کښ تیردې

﴿وَذَلَّلْنَاهَا لَهُمْ﴾ دادڅناوریوڅوفائدې ذکرکیږي، اول داچې داڅناورمودددوئ تابع کړیدی یوعظیم الجثه حیوان دانسان په مقابله کښ ضعیف وي، داوښانوپه زرهاؤواوښانو قطارپه یوماشوم هلك وي، په یوپړې سره ئې چې چرته غواړي بوځي ﴿فَمِنْهَا رَكُوبُهُمْ﴾ دادویمه فائده ده. یعني دوئ پرې سورلي کوي. ﴿وَمِنْهَا يَأْكُلُونَ﴾ دادریمه فائده ده. چې بعض څناورحلاله وي اوغوښه ئې خوري.

﴿وَلَهُمْ فِيهَا مَنَافِعُ﴾ یعني درکوب اواکل نه علاوه نورې هم ډیرې فائدې دي پکښ. څرمنې ئې

استعماله وي. کرونده پرې کوي. وغيره ﴿وَمَشَارِبُ﴾ داني بله فائده ذکر کېږي چې انسان نه ترېنه دڅکلو ډېر څيزونه ميلاويږي لکه پئ، شوملې، غوړي وغيره. مشارب جمع د مشرب ده. او دا يا دَ ظرف صيغه ده يعني ځايونه دَڅکلو، يعني ګوياکه الله ﷻ داځناور دانسان دپاره يوګودر پيدا کړيدی چې څکل ورنه کوي، يا مصدردې پمعنی دَمشروب. جمع ئې ځکه ذکرکړه چې ددې اقسام ډېردي، لکه پئ. شوملې. لسي. وغيره ﴿أَفَلَا يَشْكُرُونَ﴾ يعني دوئ ددې نعمتونو مشاهده کوي نوشکرولې نه اوباسي چې صرف دَالله ﷻ عبادت اوکړي

وَاتَّخَذُوا مِنْ دُونِ اللَّهِ آلِهَةً لَعَلَّهُمْ يُنْصَرُونَ ﴿٧٤﴾ لَا يَسْتَطِيعُونَ نَصْرَهُمْ

اونيولي دي دوئ ماسوی دَالله نه نور خدايان. ددې دپاره چې ددوئ امداداوکړسي. نه شي طاقت هغوئ دمددکولوددوئ

وَهُمْ لَهُمْ جُنْدٌ مُحْضَرُونَ ﴿٧٥﴾ فَلَا يَحْزُنْكَ

لودامعبودين دپاره دمشرکينو يو داسي لښکردي چې حاضرولي به شي(قيامت په ورځ دوئ خلاف ګواهي دپاره. نو غمرن دې نه کړي خبره

قَوْلُهُمْ إِنَّا نَعْلَمُ مَا يُسِرُّونَ وَمَا يُعْلِنُونَ ﴿٧٦﴾ أَوَلَمْ يَرَ الْإِنْسَانُ

خبرې ددوئ. بېشکه مونږه پوهېږو په هغه څه چې دوئ ئې پټوي اوهغه چې دوئ ئې ښکاره کوي. آيانه ويني انسان

أَنَّا خَلَقْنَاهُ مِنْ نُطْفَةٍ فَإِذَا هُوَ خَصِيمٌ مُبِينٌ ﴿٧٧﴾ وَضَرَبَ لَنَا مَثَلًا

داچې بېشکه مونږپيداکړيدي دې دنطفې نه نوشو اوس دې جګړه کونکي ښکاره. اوکوي په مونږه يوعجيبه اعتراض

وَنَسِيَ خَلْقَهُ ۖ قَالَ مَنْ يُحْيِي الْعِظَامَ وَهِيَ رَمِيمٌ ﴿٧٨﴾

او هېر دې ترېنه خپل پيدائش. وائی څوک به ژوندي کړي هډوکي اوحال داچې دابه زاړه دوراسه وي

﴿وَاتَّخَذُوا مِنْ دُونِ اللَّهِ﴾ دازجردې مشرکانو نه. چې دَالله ﷻ ددومره انعاماتو باوجود دوئ دالله ﷻ نه ماسوی. نورڅوک معبودان نيولي دي. پدې ګمان چې په وخت دَضرورت کښې به زمونږمددکوي. حالانکه هيڅ مددورسره نشي کولې.

﴿وَهُمْ لَهُمْ جُنْدٌ مُحْضَرُونَ﴾ هم ضمير مرفوع او لهم ضمير مجرور کښې دوه احتماله دي

**اول احتمال** دادې چې ضميرمرفوع هم راجع دې مشرکانو ته. اودَلهم ضميرراجع دي

معبودانو ته،دي احتمال په بنیاد دآیت دوه توجیهات کیدی شی (۱) به داچی دامعبودان به دَدوئ په وخت دَضرورت کښ څنګه مدداوکړي چې دخپل ځان حفاظت نشي کولی بلکه دامشرکان ورته هروخت کښ دَحفاظت اوڅوکیدارئ دپاره ورته حاضرولاړوي.نودا څنګه معبودان شول چې دوئ ئې حفاظت کوي.(۲)یا دا چې دا معبودان به د مشرکانو څخه مخکښ اوکړی دوئ خو به اول جهنم ته غورزلې کیږی او بیا ورته دا عابدین لښکرو په صورت کښ وروستو حاضرولې کیږی

**دویم احتمال** دا دې چې ضمیرد"هم" معبودانوته راجع دې.اود"هم"مشرکانو ته.دې تقدیر باندې هم دآیت دوه مطلبه کیدیشی:(۱)دا مشرکین ګمان کوی چې زمونږ معبودین به زمونږ مدد اوکړی،مددخو پریګده،بلکه دوئ به دَ قیامت په ورځ خپلو عابدینو خلاف ګواهی ورکولو دَپاره حاضرولې کیږی لکه سورت الفرقان اوسورت سباکښ تیر شو .قالوا سبحانک ماکان ینبغی لنا... الایة(۲)دامعبودین به مشرکینو سره جهنم ته حاضرولې کیږی.لپاره ددې دَجهنم خس وخشاک اوګرځی، کما قال الله: انکم وما تعبدون من دون الله حصب جهنم... الآیة

﴿فَلَا يَحْزُنكَ قَوْلُهُمْ﴾داتسلي ده حضورﷺ ته.اوتخویف دې مشرکانوته.چې دوئ چې تاته ساحروغیره وائی پدې مه غمژن کیږه،مونږدَدوئ دَشرارتونوښه خبریو .سزابه ورکوؤ

﴿أَوَلَمْ يَرَ الْإِنسَانُ أَنَّا خَلَقْنَاهُ﴾دازجردې اوشکوه ده دکافرنه﴿الْإِنسَانُ﴾نه مرادجنس انسان دې، او﴿خَصِيمٌ مُّبِينٌ﴾نه مرادکافردې،چې دَبعث بعدالموت نه منکردې.یعني دا کافر دا فکر نه کوي چې مونږدې دَحقیرې نطفې نه پیداکړیدی، بلکه په ځائ دَفکر کولو مونږسره ښکاره مقابلې ته راووتلو ،اودَبعث بعدالموت نه دَانکارکولودَپاره یوه عجیبه مثال ورکوي.روایت کښ دي چې داآیاتونه دَعاص بن وائل باره کښ نازل دي،چې حضورﷺته راغې ، او یو زوړ روست هډوکې ورسره په لاس کښ وؤ،په لاس کښ ریزه ریزه کړو . اوحضورﷺته ئې اووئیل آیا ستا دا ګمان دې چې اللهﷻ به داهډوکې بیاراژوندی کړي حال داچې روست شویدی؟ حضورﷺورته اوفرمائیل:هاؤ،دابه هم اوتابه هم راژوندې کړي بیابه تاجهنم ته داخل کړي. بعضِ وائی ویونکې دَخبروابیٌ بن خلف وؤبعضِ وائی ابوجهل وؤ

قُلْ يُحْيِيهَا الَّذِيٓ اَنْشَاَهَآ اَوَّلَ مَرَّةٍ ؕ وَهُوَ بِكُلِّ خَلْقٍ عَلِيْمٌ ﴿٧٩﴾

ته اوایه چې ژوندي به کړي دې لره هغه ذات چې پیدا کړې ئې دي دا اول ځل. اوهغه په ټول مخلوق بندی ښه عالم دی.

الَّذِيْ جَعَلَ لَكُمْ مِّنَ الشَّجَرِ الْاَخْضَرِ نَارًا فَاِذَآ اَنْتُمْ مِّنْهُ تُوْقِدُوْنَ ﴿٨٠﴾ اَوَلَيْسَ الَّذِيْ

الله ﷻ هغه ذات دې چې پیدا کړې ئې دي ستاسو دپاره د شنې ونې نه اور، نوتاسو دهغې نه اوربلوئ. آیا ولې نه دې هغه ذات

خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِقٰدِرٍ عَلٰٓى اَنْ يَّخْلُقَ مِثْلَهُمْ ؕ بَلٰى ۚ وَهُوَ الْخَلّٰقُ

چې پیداکړې ئې دی اسمانونه اوزمکه قادرېدې چې پیداکړي پشان ددوئ. خامخاقادردې. اوصرف هغه خالق دې

الْعَلِيْمُ ﴿٨١﴾ اِنَّمَآ اَمْرُهٗٓ اِذَآ اَرَادَ شَيْئًا اَنْ يَّقُوْلَ لَهٗ كُنْ فَيَكُوْنُ ﴿٨٢﴾

علیم دې، بیشکه امردده چې کله اراده وکړي دیوشي صرف دومره وئیل دي هغې ته چې شه موجودنوهغه شي موجود

فَسُبْحٰنَ الَّذِيْ بِيَدِهٖ مَلَكُوْتُ كُلِّ شَيْءٍ وَّاِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ﴿٨٣﴾

نوپاکي ده هغه ذات لره چې دهغه په قدرت کښ ده بادشاهي دهرڅيزاوخاص هغه ته به ګرځولی شئ تاسو

﴿قُلْ يُحْيِيهَا الَّذِيٓ اَنْشَاَهَآ﴾ داجواب شکوی اودلیل عقلي دې په بعث بعدالموت باندې. چې دوباره ژوندي کول څکه ممکن دي چې الله ﷻ اول ځل ئې هم دوئ پخپل قدرت سره پیداکړيدي حالانکه نه ئې وجودوؤاونه ئې څه ماده وه، اوقیامت په ورځ دوباره ژوندي کولودپاره خوماده هم شته دې. ﴿وَهُوَ بِكُلِّ خَلْقٍ عَلِيْمٌ﴾ یعني داسوال نشي کیدلې چې انسان خاوري هیرې شي نوددہ ذرې راجمع کول به څنګه ممکن وي؟ څکه چې الله ﷻ دکائناتوپه ذروذروعلم دې، کومه ذره چې کوم ځائ هم وي تولې به راجمع کړي، ﴿الَّذِيْ جَعَلَ لَكُمْ﴾ بدل دې داول اسم موصول نه ﴿مِّنَ الشَّجَرِ الْاَخْضَرِ نَارًا﴾ په عربوکښ دوه اوني وي دیوي نوم مرخ اودبلي نوم عفار وؤچې کله به ددوار وشاخونه یوبل پوري اومګلې شوپشان دماچس نواوربه ورنه پیداشونواوربه ئې ورنه بلولو، نوکوم الله ﷻ چې دشنې اونې نه اورپیداکوي نوآیاهغه دزمکې نه انسان نشي پیداکولې.

﴿اَوَلَيْسَ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ﴾ دابل دلیل عقلي دې په بعث بعدالموت چې آیاهغه الله ﷻ

چې لوئ لوئ اسمانونه اوزمکي ئې پخپل قدرت سره پيدا کړيدی چې انسان دهغې په نسبت ډيرکمزوري دې نوپه دوباره پيدا کولوپطريق اولی قادردې.دې کښې الله تعالیٰ ته هيڅ مشکل نشته دې،ځکه چې الله تعالیٰ کله دَيو کارارادہ اوکړي نوهغې ته کن وئيلوسره بيا هغه شوې وی

﴿فَسُبْحَانَ الَّذِي بِيَدِهِ﴾ دادَسورة خلاصه اولب لباب دې.چې الله تعالیٰ دشريك نه پاك دې دَهغه په دربارکښې چاته شفاعت قهري ندې حاصل،لهذاصرف دهغه عبادت کوئ.دهغه په قبضه کښې دنيااواخرت بادشاهي ده،هغه ته به دَمرګ نه ورستوټول خلق ورځي.

﴿مَلَكُوت﴾ دمبالغي صيغه ده،دَ ملك مبالغه ده،بعض وائی ملك اوملكوت دواړويو معنی ده.

| ركوعاتها (۵) | سورة الصّفّت مكية | اياتها ۱۸۲ |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان او ډیر رحم کونکي دی شروع کوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۳۷) وحسب النزول (۵۶)**

**ربط اسمي:** سورة يٰسين كښې دصاحب يسين دعوت په ضمن كښې داخبره تيره شوه. چې ان يردن الرحمن بضر لاتغن عني شفاعتهم شيئا يعنى كه الله ﷻ چاته عذاب وركول غواړي نو بيا د مزعومه خدايان او شفعا ئى نشي بچ كولې، اوس په الصفّت كښې دې خبرې بيان دې چې بچ كول خولرې خبره ده، هغوئ خپله الله ﷻ عاجزه صف بسته اولاړ دى

**ربط معنوي** : ماقبل سورة يٰسين كښې نفي دشفاعت قهري وه. دې سورة كښې دامسئله على سبيل الترقي بيانيږي اوعجزدرسولانو، ملائكو، جناتو ثابتوي. چې شفاع قهري خودركناربلكه دوئ مونږته په وخت دتكليف كښې فرياد كونكي دي

**دعوه دسورت:** إِنَّ إِلَٰهَكُمْ لَوَٰحِدٌ

**خلاصه** ابتداء نه ترآيت (۵) پورې حال دملائكو دې چې ددوئ دغه صفات دې نو شفعاء نه دي بياترآيت (۱۰) پورې دجناتو حال دې، چې دوئ حين الاستماع په شهاب ثاقب سره ويشتلې كيږي نو دوئ شفعاء نشي كيدى، بياترآيت (۱۴) پورې زجردې. او آيت ۱۵ نه آيت ۲۱ پورې شكوى اوجواب شكوى ذكر ده چې ضمنا پكښې تخويف اخروي دې، بياترآيت (۴۰) پورې تخويفات دي، بياترآيت (۲۱) پورې بشارت اخروي دې، بياترآيت (۷۴) پورې تخويف دې وَلَقَدْ نَادَىٰنَا نُوحٌ فَلَنِعْمَ ٱلْمُجِيبُونَ آيت (۷۵) نه ترآيت (۱۴۸) پورې د اووه (۷) رسولانو واقعات دي، ددې دپاره چې دهرنبي واقعه پدې دلالت كوي چې دوئ ته شفاعت قهري نه دې حاصل. څكه چې هريو دتكليف په وخت كښې مونږ ته اوازاوفرياد كړي دي، دې نه بعدبيا دفرشتو اودجناتو، او درسولانو دحالاتو اعاده ده، او تخويفات دي، آخركښې سُبْحَٰنَ رَبِّكَ رَبِّ ٱلْعِزَّةِ عَمَّا يَصِفُونَ ﴿۱۸۰﴾ دټول سورة خلاصه ده چې الله ﷻ دشريك نه منزه دی. وَسَلَٰمٌ عَلَى ٱلْمُرْسَلِينَ ﴿۱۸۱﴾ يعني رسولان

نی دَشرك نه سالم ساتلي دي﴿وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ﴾ تصرفات ټول الله لره دي

| وَالصّٰٓفّٰتِ | صَفًّا ① | فَالزّٰجِرٰتِ | زَجْرًا ② |
|---|---|---|---|
| قسم دي په هغه ملائكوچې صف تړونكي دي په قطار كښې، قسم په هغه ملائكوچې شړونكي دي شيطانانولره په شړلو سره . | | | |

| فَالتّٰلِيٰتِ | ذِكْرًا ③ | اِنَّ | اِلٰهَكُمْ | لَوَاحِدٌ ④ |
|---|---|---|---|---|
| قسم په هغه ملائكوچې لوستونكې دي ذكر(دَالله ﷻ) چې بيشكه ستاسواله يودى | | | | |

| رَبُّ | السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضِ | وَمَا | بَيْنَهُمَا | وَرَبُّ | الْمَشَارِقِ ⑤ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| چې رب دَاسمانونودې اوزمكې دې اودهغه څه چې په مينځ ددوئ كښې دى اورب دمشرقونودې | | | | | | |

﴿وَالصّٰٓفّٰتِ صَفًّا﴾دې آيــاتونو كښې دالله ﷻ الوهيــت او توحيــد اثبــات دې او رد دې د ملائكو شفيع ګڼرى كيدلو باندې چې معبود صرف الله ﷻ دې ملائک آلهه اوشفعاء ګڼرې نه دي ځكه چې دوئ پخپله الله ﷻ تـه دعبادت دپاره پـه صف كښ ولاړې وي. دَالله ﷻ دَحكم تابعداري دې دَالله پاكي بيانونكي دى.

﴿وَالصّٰٓفّٰتِ .فَالزّٰجِرٰتِ.فَالتّٰلِيٰتِ﴾ دري واړه صفات دي دَموصوف محذوف چې اكثرو پـه نيز ملائك دي، ﴿وَالصّٰٓفّٰتِ﴾يعني قسم په هغه ملائكوچې دَالله ﷻ دَعبادت لپاره صفونه جوړه وي، لكه په حديث كښ دي:الا تصـفّون كما تصـفّ الملائكة، يعني تاسو دَملائكو پشان صفونه ولې نه جوړه وئ،صحابه وُعرض اوكړوملائكې څنګه صفونه جوړه وي،نونبي كريم ﷺ اوفرمائيل يتمّون الصّفوف الاولَ،يادامطلب دې چې غوږونكې دې خپلې وزرې پـه هوا كښ او دَ الله ﷻ حكم تعميل ته تيارې انتظار كښ وى (جلالين).

﴿فَالزّٰجِرٰتِ﴾يعني شړونكې دي. څنې شيطانان دآسمان نه شړى. څنې هوا ګانې يوخوا بل خواه شړى ،او څنى وريځې شړى.﴿فَالتّٰلِيٰتِ ذِكْرًا﴾ يعني تلاوت كونكى دي دَذكر .ذكر نـه مراد يا قرآن دې اويا مطلق تسبيح وتحميد ده ،

﴿اِنَّ اِلٰهَكُمْ لَوَاحِدٌ﴾جواب قسم دې،قسم براى استشهاد دې.يعني دَفرشتو حال اوصفات پدې ګواه دي چې ستاسو معبود صرف يودې،چې هغه رب دې دَاسمانونو اودَځمكې اوڅه چې

په مینځ دَدوئ کښې دي، او دَمشرقونو مغربونو رب دې. حلف على غير الله تفصيلي بحث جلد ۳ صفحه ۵۳۳ کښې تير شويدې.

بعضِ وائی دَدې صفاتو موصوف نفوس دي، نفوس دَانبياؤ يا علماؤ. نو دا الصفت مطلب دادې چې صف تړونکی په مونځ کښې، الزاجرات مطلب دا دې چې خلق منع کوی دا تباع دَ شيطان نه په وعدو وعيدونو او په مواعظو سره، او التليت ذکرا تلاوت کونکی دي دقرآن او درس کونکي دَشرائعو او احکامو، يا نفوس دَمجاهدينو مراددي. نو الصفت مطلب دا دې چې صف تړونکي دي په ميدان جهاد کښې، الزاجرات مطلب دا چې شړونکي دي دشمنانو لره او يا اسونو لره، او التليت مطلب دادې چې دَالله ﷻ ذکر کونکي دي يعني نعرهٔ تکبيرو هونکی دي په وخت دَقتال کښې.

﴿رَّبُّ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ﴾ خبر بعد خبر دې، دَ اِنّ، بدل دې دَ لواحد نه، نو مقصود بالنسبة دې ﴿وَرَبُّ ٱلْمَشَٰرِقِ﴾ دَمشرق جمع ده، د مشرق صيغه په قرآن کښې مفرد، تثنيه او جمع دري واړه قسمه استعمال شوې ده، سورت الشعرا (آيت ۲۸) او سورت المزمل کښې مفرد استعمال شوې ده، رب المشرق والمغرب سورت الرحمن کښې تثنيه استعمال شويده. رب المشرقين ورب المغربين او دلته جمع صيغه راوړلې شوې ده دې کښې نکته دا ده چې چونکه جهت يو دې نو ځکه صيغه دمفرد استعمال شوې ده، او که دې ته او کتلې شي چې نور هره ورځ جدا جدا مطلع نه راخيژی نو دې اعتبار سره بيا مشرق يو نه شو ډير شو نو ځکه جمع صيغه هم استعمال شوې ده، او جونکه روزانه اعتبار سره دمطلع فرق پوره واضح نه وی، ددې فرق پوره پته په ګرمئ او يخنئ کښې لګي نو دې دوه موسمو اعتبار سره صيغه د تثنيه استعماليږی، دَمشارق په ذکر کولو سره نی اکتفاء او کړه دَذکر کولو دَمغاربو نه، ځکه چې مشرق سره مغرب لازم دی (روح، قرطبي).

﴿إِنَّا زَيَّنَّا ٱلسَّمَآءَ ٱلدُّنْيَا بِزِينَةٍ ٱلْكَوَاكِبِ ۝ وَحِفْظًا مِّن كُلِّ شَيْطَٰنٍ مَّارِدٍ ۝﴾

بيشکه مونږه ښائسته کړيدې اسمان دَدنيا په يو زينت سره چې ستوری دی، او مونږ محفوظ ساتلې دې دَهر شيطان سرکش نه،

﴿لَّا يَسَّمَّعُونَ إِلَى ٱلْمَلَإِ ٱلْأَعْلَىٰ وَيُقْذَفُونَ مِن كُلِّ جَانِبٍ ۝ دُحُورًا ۖ وَلَهُمْ عَذَابٌ﴾

غوږنشي کيخودلي تولګي (مجلس) د عالم بالا ته او ويشتلې شي دَهرطرف نه، دپاره دَشړلو اودوئ دپاره عذاب دي

**وَّاصِبٌ ﴿٩﴾ اِلَّا مَنْ خَطِفَ الْخَطْفَةَ فَاَتْبَعَهٗ شِهَابٌ ثَاقِبٌ ﴿١٠﴾**

دائمي هميسه مګرهغه چې اوښختوي په غلاسره ناڅاپه نو پسې ئې شي لمبه چې سورى کوونکې وي

﴿اِنَّا زَيَّنَّا السَّمَآءَ الدُّنْيَا﴾ دې آياتونو کښې دجناتو احوال بيانيږي او دهغوئ آلهه او شفيع قهرى کيدلو باندې رددې چې هغوئ آلهه او شفيع قهرى څنګه کيدې شي .هغوئ باندې خو ملااعلى ته تلل بند دى، او ده هغې خبرې اوريدې نشي که ورشي نو دائمي عذاب کښې به ګرفتار شي، او کچرته يو نيمه خبره په غلاسره نا څاپه را او تختوى نو شهاب ثاقب وريسې شي او هلاک ئې کړي.

په آيت کريمه کښې دکواکبو دوه فائدې ذکردي، (١) يوه فائده تزيين دآسمان، (٢) او بله حفاظت دآسمان دَ شيطانانونه ﴿بِزِيْنَةِ الْكَوَاكِبِ﴾ بدل مبدل منه دي، ديکښې دَ اولې فائدې بيان دې ،يعني مونږ اسمان په کواکبو سره ښائسته کړيدې، ﴿وَحِفْظًا﴾ مفعول مطلق دي دَفعل محذوف اى وحفظناها حفظاً ديکښې دَ دويمې فائدې ذکردې، چې په ستورو سره مونږ دآسمان حفاظت کوو دسرکشو شيطانانونه ﴿مارد﴾ اي الخارج عن الطاعة يعنى نافرمان او سرکش، يا المعترى عن الخير يعنى خيرنه خالى او ميم، را، دال، ماده په معنى دتجرد اوخالى کيدو دلالت کوى

﴿لَا يَسَّمَّعُوْنَ﴾ ديکښې دهغه امرسماوى ذکر کيږى چې دهغې حفاظت مقصود دې په ستورو سره، او طريقه دَحفاظت هم ذکر کيږى چې شيطان عالم بالا ته رسائى او معزز فرشتود مجلس خبرې اوريدل غواړى نو الله ﷻ دَهغې مجلس حفاظت دستورو په ذريعه سره کوى چې کله دوئ رانيزدې شى نو هرطرف نه پرې دستورو باران شى، ياخو اوتختى او يا هلاک شى، لا يسمعون په اصل کښې لايتسمعون دي، تاء په سين بدله شوه اوادغام اوشو ﴿اِلَى الْمَلَاِ الْاَعْلٰى﴾ الملأ وئيلى کيږى معزز او بارعب جماعت ته او دلته ترينه مرادجماعت دَملائک دې، او الاعلى نه مراديا علو حسى يعنى جهت علو دې چې په آسمان کښې دې او يا ورنه مراد علومعنوى دې يعنى اوچتو مرتبو والا فرشتو جماعت.

﴿وَيُقْذَفُوْنَ مِنْ كُلِّ جَانِبٍ﴾ يعنې کله چې شياطين داراده اوکړي اوپاس اسمانونه ته دَورنيزدې کيدلو کوشش اوکړي نوفرشتې ئې ولې، ﴿مِنْ كُلِّ جَانِبٍ﴾ اي من آفاق السماء يعنى

هرطرف نه په ستورو ويشتلې کيږي. او ځني مفسرين فرمائي چې ددې مطلب دا دی من کل جانب يقصدون الصعود الى السماء يعني دآسمان کوم طرف ته هم ختل غواړي نو هغه طرف نه په ستورو ويشتلې کيږي. ﴿دُحُورًا﴾مفعول له دي علت دې دقذف. شړلو ته وشلې کيږي ﴿وَلَهُمْ عَذَابٌ وَاصِبٌ﴾يعني دنيادَدې عذاب نه علاوه ورته په آخرت کښې هم دائمي عذاب ورکولې کيږي، ﴿وَاصِبٌ﴾ اي دائم دَ وصب يصب نه دې پمعنی د دوام. او ځني مفسرينو ئې معنی شديد سره کړې ده. ابوحيان رحمه الله وائي دينه مراددنياوي عذاب دې. چې دائم به ويستلې کيږي او خپل مقصدته به نشي رسيدلې

﴿إِلَّا مَنْ خَطِفَ﴾دَضميردَ﴿لَا يَسَّمَّعُونَ﴾نه استثناء متصله ده. خطف اختلاس ته وائي يعني تختولو او په تيزګه لړولو سره يوڅيزاخستل، او دلته ترينه مراد په پټه راغستل دي. مطلب دادې چې دوئ دَفرشتو خبرې نشي اوريدلې مګرداچې دوئ په پټه يوتيزګه اولړه وي، دَفرشتو نه يوه خبره واوري. ﴿فَأَتْبَعَهُ شِهَابٌ ثَاقِبٌ﴾شهاب داور سپينې پړه قيدونکې شعلې ته وائي ﴿ثَاقِبٌ﴾اسم فاعل دې دثقب يثقب نه ،سورې کولوته وائي. اوديته ثاقب ځکه وائي چې دا فضا خپل چمک اونورسره سورئ کوي ياورته ددې وجهې نه وائي چې شيطان سورې کوي، حتَى که دَبل جانب نه ورنه اوځي بعض وائي دَ(ثاقب)معنی محرق ده نوددې سره شيطان سوزي

**فائده:** اختلاف دې چې داقذف يعني دَجناتو ويشتل په شهاب ثاقب سره، دَحضور ﷺ دبعثت نه قبل هم وو، اوکنه بعد دَبعثت نه شروع شو، نوبعض وائي چې قبل دَبعثت نه هم وو، بعض وائي نه وو، راجحه داده چې قبل دَبعثت نه هم وو ليکن ديراهتمام سره نه وو کله به وو کله به نه وو، دَحضور ﷺ دَبعثت نه ورستوپکښې اهتمام راغې. ددې بحث تفصيل اودارنګه دايت متعلق بعضِ نوراهم مباحث دَدې تفسيرپه دريم جلد سورة الحجرآيت(۱۸) کښې تيردي. هلته ئې اوګورئ.

**فَاسْتَفْتِهِمْ أَهُمْ أَشَدُّ خَلْقًا أَمْ مَّنْ خَلَقْنَا ۚ إِنَّا خَلَقْنَاهُمْ مِّنْ طِينٍ**

نوتپوس وکړه دوئ نه آيادوئ زيات ګران دي په پيدا کولو کښې ياهغه چې مونږپيدا کړي دي. ...که مونږ پيدا کړي دي دوئ د خټې

لَّازِبٍ ﴿١١﴾ بَلْ عَجِبْتَ وَيَسْخَرُونَ ﴿١٢﴾ وَإِذَا ذُكِّرُوا لَا يَذْكُرُونَ ﴿١٣﴾

سلیخناکې نه یاتینګیدونکي نه بلکه ته تعجب کوي او دوئ مسخرې کوي او کله چې نصیحت ورکړے شي دوئ نه نصیحت نه منوي

وَإِذَا رَأَوْا آيَةً يَسْتَسْخِرُونَ ﴿١٤﴾ وَقَالُوا إِنْ هَٰذَا إِلَّا سِحْرٌ مُّبِينٌ ﴿١٥﴾

او کله چې اووینې یوه معجزه نو خه مسخرې وریورې شروع کړي.او وائي دوئ نه دې دا قرآن مګر جادو ښکاره دی.

أَإِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا وَعِظَامًا أَإِنَّا لَمَبْعُوثُونَ ﴿١٦﴾ أَوَآبَاؤُنَا الْأَوَّلُونَ ﴿١٧﴾ قُلْ نَعَمْ

آیاکله چې مونږه مړه شواوشوخاورې اوهډوکي آیامونږ به بیاپیداکیږو اوآیاپلاران زمونږ رومبي به هم بیا پیداکیږي.ته اووایه هو

وَأَنتُمْ دَاخِرُونَ ﴿١٨﴾ فَإِنَّمَا هِيَ زَجْرَةٌ وَاحِدَةٌ فَإِذَا هُمْ يَنظُرُونَ ﴿١٩﴾ وَقَالُوا

اوتاسوبه ذلیله یئ، نو دا خو بس یوه زورداره چغه ده چې دوئ به بیا ګوري.اووائي به دوئ

يَا وَيْلَنَا هَٰذَا يَوْمُ الدِّينِ ﴿٢٠﴾ هَٰذَا يَوْمُ الْفَصْلِ الَّذِي كُنتُم بِهِ تُكَذِّبُونَ ﴿٢١﴾

هائ تباهي مونږلره دا د ورځ دقیامت ده، فرشتي به ورته اووائي دا ورځ دفیصلې ده هغه ورځ چې تاسو پیدې تکذیب کولو

﴿فَاسْتَفْتِهِمْ أَهُمْ أَشَدُّ خَلْقًا﴾ زجر دې اهل مکو ته خصوصاً او هر منکر دبعث ته عموماً یعني دبعث دمنکرینو نه پوښتنه اوکړه چې آیا دا آسمان، زمکې، ستورو، فرشتو وغیره مخلوقاتو پیدا کول، زیات مشکل کار دې یا دوئ پیدا کول، نو چې الله ﷻ زمکه، اسمان وغیره مخلوقات پخپل قدرت پیدا کړیدي نو ددوئ دوباره پیدا ء کول خو څه مشکل ندي، کقوله تعالیٰ: لخلق السمٰوات والارض اکبر من خلق النّاس، "من" اسم موصول عهد خارجي دې او دینه مراد فرشتې جنات زمکه آسمانونه وغیره دی، چې مخکښې آیاتونو کښ تیر شو ﴿مِّن طِينٍ لَّازِبٍ﴾ لازب پمعنیٰ د لازم سره دې"با"او"میم" قریب المخرج کیدلو دوجې نه د یوبل په ځائ استعمالیږي سلیخ ناکه یعني یوبل پورې انختونکې ختې ته وئیلې کیږي، بعضو د ﴿لَّازِبٍ﴾ معنی جیْد کړې ده، بعضې وائی ټینګیدونکې خاورې ته وائی، بهرحال مقصود ورنه دې خبرې باندې پوهه کول دي چې کومې خاورې نه الله ﷻ انسان په ضمن د آدم ﷺ کښ پیدا کړیدې نو هغه ته دهغې خاورې نه دوباره پیدا کول څه مشکل دي؟

﴿بَلْ عَجِبْتَ﴾ بل دپاره داضراب دي، او تعجب په درې قسمه دې

(۱) **تعجب استفهام**: دا هغه تعجب دې چې په غير متوقع الحصول شي په وجود باندې كيږي، قالوا اتعجبين من امر الله كښې دَدغې تعجب ذكر دي،

(۲) **تعجب استحسان**: دا هغه تعجب دې چې يو شئ دخوخيدلو اوښه لګيدلو په وجه باندې كيږي، لكه حديث كي راځي: يعجب ربک من الشاب ليس له صبوة يعنى ستارب تعجب كوى په هغه ځوان چې ځوانئ ميلانات ئى نه وى (مسند احمد)

(۳) **تعجب انكار**: هغه تعجب چې ديوشي انكار باندې مبنى وى لكه وعجبوا ان جاءهم منذر منهم كښې او ان هذا لشئ عجاب كښې دغه تعجب ذكردې.

اودلته مراد دَتعجب نه يا تعجب استحسان دي، نو بيا دااضراب دې دَ﴿فَٱسْتَفْتِهِمْ﴾نه. يعني دوئ نه تپوس مه كوه په دوئ دا خبرې خې نه لګي داخو په تاخې لګي. دوئ خو وربورې مسخرې كوي، بل عجبت من صنائع قدرة الله وهم يسخرون، اويا تعجب نه مراد تعجب انكارى دې اومعنى داده چې ته تعجب كوې دَدوئ په انكاردَبعث بعدالموت اودوئ وربورې مسخرې كوي چې داخو عجيبه خبره ده چې مونږبه بياژوندې كيږو أي: بل عجبت من انكار هم البعث وهم يسخرون من امر البعث (روح المعاني).

﴿وَإِذَا ذُكِّرُوا۟﴾ دمشركينو ضد او عناد بيان دې چې كله دوئ ته نصيحت اوكړې شى نو صيحت نه قبلوى نصيحت نه مراد دلته دليل نقلي دې چې دَدليل نقلي نه هم انكاركوي

﴿وَإِذَا رَأَوْا۟ ءَايَةً﴾ دليل عقلي اومعجزه وغيره هم نه مني ﴿يَسْتَسْخِرُونَ﴾ باب استفعال دې خاصيت پكښې يا مبالغه ده يعنى خه مسخرې وريسې شروع كړى اوضد وعنادئى نورهم ياتشى، او يا خاصيت طلب ماخذ دې پكښې يعنى يوبل نه طلب دَمسخرې كوى، يعنى يوبل ته دتوقو او مسخرو كولو دعوت وركوى،

﴿وَقَالُوٓا۟ إِنْ هَٰذَآ إِلَّا سِحْرٌ مُّبِينٌ﴾ دا شكوه ده يعنى كله چې معجزه اووينى نو ايمان راوړلو په ځائى دا وائى چې داخو صفاجادو دې ﴿أَءِذَا مِتْنَا﴾ يعنى چې مونږ خاورې او هډوكى شونو

بیابه څنګه پورته کیږو ﴿أَوَءَابَآؤُنَا ٱلۡأَوَّلُونَ﴾ زمونږ تیرشوي مخکنی آباواجداد په څنګه پورته کولې کیږي، ءَابَآؤُنَا مبتدا دې ٱلۡأَوَّلُونَ ئې صفت دې او خبرئې محذوف دې چې مبعوثون دې.

﴿قُلۡ نَعَمۡ وَأَنتُمۡ﴾ داجواب شکوه ده، چې هاؤضرور به بیاتول ژوندي کیږي ﴿دَٰخِرُونَ﴾ دخورنه دې ذلت اورسوائی ته وائی یعنی او بیابه په ډیرذلت اورسوایئ سره دَدَغې تکذیب او انکار سزامومئ

﴿فَإِنَّمَا هِيَ زَجۡرَةٞ﴾ هی ضمیر بعثت ته راجع دې یعنی زبردست او زوردار آوزبه وی. ﴿فَإِذَا هُمۡ يَنظُرُونَ﴾ یعني چې کله دغه چغه او وهلې شي نو فوراًبه دَقبرونو نه راپاسیدلي وي، ګوري به. کنایه ده دَژوندي کیدلو نه، یادَانتظارنه دې، یعني انتظاربه کوي دالله پاك حکم ته چې اوس به مونږسره څه معامله کیږي او افسوس به کوي چې مونږدکومي ورځي نه انکارکولو هغه ورځ خوراباندې راغله،

﴿هَٰذَا يَوۡمُ ٱلۡفَصۡلِ ٱلَّذِي﴾ دایاکلام دَملائکو دې، توبیخاًبه ورته داوائی، یاداهم کلام دَمنکرینو دې یو بل ته.

| |
|---|
| ٱحۡشُرُواْ ٱلَّذِينَ ظَلَمُواْ وَأَزۡوَٰجَهُمۡ وَمَا كَانُواْ يَعۡبُدُونَ ۝٢٢ |
| دالله ﷻ به حکم وکړي راجمع کړئ هغه کسان چې شرك ئې کړیدې اوجوړئ دَدوئ او هغه چې دوئ ئې عبادت کولو. |
| مِن دُونِ ٱللَّهِ فَٱهۡدُوهُمۡ إِلَىٰ صِرَٰطِ ٱلۡجَحِيمِ ۝٢٣ وَقِفُوهُمۡ إِنَّهُم مَّسۡـُٔولُونَ ۝٢٤ |
| ماسوا دَ الله ﷻ نه، پس اوښایئ دوئ ته لاردَجهنم الله ﷻ به اووائی اواودروئ دوئ بیشکه دوئ نه تپوس کولې شي، |
| مَا لَكُمۡ لَا تَنَاصَرُونَ ۝٢٥ بَلۡ هُمُ ٱلۡيَوۡمَ مُسۡتَسۡلِمُونَ ۝٢٦ وَأَقۡبَلَ بَعۡضُهُمۡ عَلَىٰ بَعۡضٖ |
| څه چل دې تاسوله چې نه کوئ مدددَیوبل ،بلکه دوئ نن ورځ تسلیم دي، اومخ به کړي بعض دَدوئ نه بعض ته |
| يَتَسَآءَلُونَ ۝٢٧ قَالُوٓاْ إِنَّكُمۡ كُنتُمۡ تَأۡتُونَنَا عَنِ ٱلۡيَمِينِ ۝٢٨ |
| تپوس به کوي دَیوبل نه، اوبه وائی کشران چې بیشکه تاسوبه راتلئ مونږ ته، منع کولوخوبه د ایمان نه، |

| قَالُوْا بَلْ لَّمْ تَكُوْنُوْا مُؤْمِنِيْنَ ۞ وَمَا كَانَ لَنَا عَلَيْكُمْ مِّنْ سُلْطٰنٍ ۚ |
|---|
| اوبه وائي مشران بلکه نه وئ تاسو پخپله ایمان راوړنکي. اونه وزموږ ره به تاسو باندي څه زور، غلبه |
| بَلْ كُنْتُمْ قَوْمًا طٰغِيْنَ ۞ فَحَقَّ عَلَيْنَا قَوْلُ رَبِّنَآ ۖ اِنَّا لَذَآئِقُوْنَ ۞ |
| بلکه وئ تاسو یو قوم سرکشه ، پس ثابت شو په موږ باندي حکم د رب زموږ ، بیشکه موږ ه څکونکي د عذاب یو. |
| فَاَغْوَيْنٰكُمْ اِنَّا كُنَّا غٰوِيْنَ ۞ |
| پس گمراه کړي وئ تاسو موږ ه . په دیکښې هیڅ شک نشته چې موږ هم گمراهان وو. |

﴿اُحْشُرُوا الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا﴾ دا تخویف اخروي دي او اول حکم دي د طرف د الله ﷻ نه ملائکو ته، چې مشرکان او د هغوئ باطل معبودان ټول راجمع کړئ. د ظلم نه مراد شرک دي، بدليل قوله تعالیٰ: ان الشرك لظلم عظيم، ﴿وَاَزْوَاجَهُمْ﴾ ازواج نه مراد (۱) یا کافراني ښځې دي (۲) یا ورنه مراد اشباه او امثال دي په عمل کښې، لکه سودوالؤ به د سودخورو سره حشر کیږي، زناکارانو به زناکارانو سره، شراب څکونکي به د شراب والؤ سره (۳) یا ورنه مراد د مشرکانو ملگري او شیطانان دي چې د هر کافر به د خپل شیطان سره حشر کیږي بیا به دواړه په یو زنځیر کښې تړلي کیږي.

﴿وَمَا كَانُوْا يَعْبُدُوْنَ﴾ مراد ورنه هغه کاڼي بوتي دي چې دوئ ورنه خدایان جوړ کړي وو، دوئ به ورسره جهنم ته د تخجیل او تحسیر د پاره غورځولي کیږي، دغه شان شیطانان او سرکشه جنات ورنه مراد دي چې دوئ به ورته د شرک تعلیم ورکولو او هرچې دي انبیاء او صلحا او ملائك چې دوئ ورنه معبودان جوړ کړي وو نو هغوئ ورنه مستثنیٰ دي په آیت: انّ الّذين سبقت لهم منّا الحسنٰى اولئك عنها مُبعدون (انبياء: ۱۰۱).

﴿فَاهْدُوْهُمْ اِلٰى صِرَاطِ الْجَحِيْمِ﴾ دا دويم حکم دي فرشتو ته چه بيا به ورته اوائي چې اوس ئې جهنم ته روان کړئ.

﴿وَقِفُوْهُمْ اِنَّهُمْ مَّسْئُوْلُوْنَ﴾ دا دريم حکم دي يعني چې د حکم موافق فرشتي کله د امشرکان جهنم ته روان کړي نو دا حکم به ورته اوشي چې لږ غونته ئې اودره وئ يو بل تپوس ورنه

کوڅې دوئ نن ورځ دَیوبل نصرت ولې نشي کولې چې دَ الله ﷻ دعذاب نه بچ شي. ظاهر دَ آیت نه دا معلومیږي فرښتې په دوئ روان کړی نو بیا به ورته دَ او درو ولو حکم او شي بعض وائي چې قبل دَبو تلو نه به وي، ای قفوهم للحساب ثم سوّقوهم الی النار (قرطبي)

﴿مَا لَكُمْ لَا تَنَاصَرُونَ﴾ په اصل کښ تتناصرون دي، تخفیفاً یوه تا حذف شویده. او دا خطاب یا مشرکانو او دَهغوئ معبودانو دواړو ته دي، یا صرف مشرکانو ته دي. یعني تاسو نن ورځ دَیوبل نصرت ولې نشئ کولې، روایت دي چې ابوجهل دَبدر په ورځ وئیلي وؤ. نحنُ جمیعٌ منتصرٌ. نو دَ قیامت په ورځ به ورنه دغه تپوس اوکړي شي.

﴿بَلْ هُمُ الْيَوْمَ مُسْتَسْلِمُونَ﴾ اضراب دي د تناصرون نه، یعنی یوبل مدد به څه اوکړی بلکه نن خو به الله ﷻ ته به منقاد او تسلیم شوی وی رپ ترینه نشی وهلې، بقول والد محترم رحمه الله چې حضرت شیخ القرآن به دا سي ترجمه کوله (آج سونپ رہے ہیں) بعضو دَ ﴿مُسْتَسْلِمُونَ﴾ معنی دا کړیده چې ذلیله او رسوا به وي ﴿وَأَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ﴾ مرادورنه اتباع او متبوعین دي او ﴿يَتَسَاءَلُونَ﴾ نه مراد یخاصمون وي یعني یوبل نه به په طریقې دَخصومت او جدال سره سوالونه شروع کړی.

﴿قَالُوا﴾ دا دَ اتباعو اعتراض دي په رؤساؤو باندې چې زمونږ دَ ایمان نه رواړو لو سبب تاسوئ څکه چې قوت او طاقت درسره وو، مونږ خو په زور منع کولو

﴿تَأْتُونَنَا عَنِ الْيَمِينِ﴾ د دې جملې ډیر توجیهات شوی دی: (١) تَأْتُونَنَا متضمن دې معنی تصدوننا ته، څکه چې په صله کښ عن راغلیدې، او اتیان فعل په صله کښ من راځی، عن نه راځی. او اَلْيَمِين نه مراد اسلام او یمان دي، أي کنتم تصدوننا عن الایمان یعنی تاسو به مونږ دایمان نه منع کولو. (٢) بعضو اتیان په معنی د قطع سره اغستې دې، او اَلْيَمِين نه مراد هر نیک کار دي، أي تقطعوننا عن الیمین یعنی هر نیک کار نه خو مونږه لرې کولو. (٣) او څنو مفسرینو اتیان خپله معنی کښ اغستې دې، او اَلْيَمِين نه معنی څنو په قسم سر کړیده، چې قسمونه خوبه خوړل چې مونږ په حق یو. او څنوئی معنی قوت او طاقت کړې ده، یعنی په زور او طاقت سره خو مونږ گمراه کولو. او څنو ترینه مراد جهت دخیر وسعادت اغستې دې أي تأتوننا من جهة الخیر والسعادة، یعنی مونږ ته خودا گمراهی ډیره برکتې او سعادت لار باور کوله، اوس هغه برکت او سعادت چرته دي؟

﴿قَالُوا﴾دا دروساوو جواب دې، چې مشتمل دې په څلورو مقدمو باندې. چې حاصل ئې دادې چې مونږ تاسو ته صرف دعوت درکړيدې باقي تاسو خپل اختيار سره کفر کړيدې

﴿بَل لَّمْ تَكُونُوا مُؤْمِنِينَ ﴾دا اوله مقدمه ده، چې په مونږ دزور او جبر الزام غلط دې ايمان تاسو پخپله نه راوړلو﴿سُلْطَٰنٍ ﴾ نه مراد زور او غلبه ده،

﴿بَلْ كُنتُمْ قَوْمًا طَٰغِينَ ﴾دويمه مقدمه ده چې څنګه چه مونږ سرکشه وو .کفر مو اختيار کړې وو ،داسې تاسو هم سرکشه وئ او کفر مو اختيار کړې وو .نو دېکښې زمونږ د زور او جبر څه دخل شو

﴿فَحَقَّ عَلَيْنَا قَوْلُ رَبِّنَآ ﴾دا دريمه مقدمه ده ،الله ﷻ چې خپل ازلي علم مطابق کوم کسان د جهنم دپاره خاص کړې دي او دَهغوئ په باره کښې ئې دَ لأملئن جهنم من الجنة والناس اجمعين فيصله ئې ترېده دړحقيقت هغه فيصله په مونږ ثابته شوې ده ،﴿إِنَّا لَذَآئِقُونَ بيان دې دَ﴿قَوْلُ رَبِّنَآ ﴾. مراد ورنه داقول دَالله ﷻ دې لأملئن جهنم

﴿فَأَغْوَيْنَٰكُمْ﴾څلورمه مقدمه ده چې زمونږ قصور صرف دادې چې مونږ پخپله ګمراه وو او تاسو ته هم دګمراهي دعوت درکړو ،نورتاسو په خپل اختيار سره کفر قبول کړو .مجبوره کړې مونه يئ چې اوس تاسو دَ کفر ګناه به يې شئ ﴿إِنَّا كُنَّا غَٰوِينَ﴾ماقبل دپاره علت دې مونږ ګمراه وو نو څکه مو تاسو ته هم ددې دعوت درکړو.

| فَإِنَّهُمْ | يَوْمَئِذٍ | فِي | الْعَذَابِ | مُشْتَرِكُونَ ﴿٣٣﴾ |
|---|---|---|---|---|

پس بيشکه دوئ کشران،مشران دوارهبه دغه ورځ به عذاب کښې شريك وي.

إِنَّا كَذَٰلِكَ نَفْعَلُ بِالْمُجْرِمِينَ ﴿٣٤﴾ إِنَّهُمْ كَانُوٓا إِذَا قِيلَ لَهُمْ لَآ إِلَٰهَ

بيشکه مونږه دغسې کار کوؤدَمجرمانو سره،بيشکه دوئ وؤچې کله به ونيلې شودوئ ته چې نيشته دې لائق دَعبادت

إِلَّا اللَّهُ يَسْتَكْبِرُونَ ﴿٣٥﴾ وَيَقُولُونَ أَئِنَّا لَتَارِكُوٓا ءَالِهَتِنَا لِشَاعِرٍ مَّجْنُونٍ ﴿٣٦﴾

سوادَالله ﷻ نه.نودوئ به تکبرکولو .اودوئ به وېل آيامونږپريږدوخپل خدايان د پاره د يو شاعر مجنون .

بَلْ جَآءَ بِالْحَقِّ وَصَدَّقَ الْمُرْسَلِيْنَ ۝ اِنَّكُمْ لَذَآئِقُوا الْعَذَابِ الْاَلِيْمِ ۝

بلکه راوړې ئې دې حق اوتصديق ئې کړې دې دَ رسولانو. بيشکه تاسو څکونکي يئ دَ عذاب دردناک

وَمَا تُجْزَوْنَ اِلَّا مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ۝

اوتاسونه به سزانشي درکولې مګردهغه عملونو چې تاسو به کول

﴿فَاِنَّهُمْ يَوْمَئِذٍ﴾ دا دَالله ﷻ قول دې، چې کله دَ دواړو فريقينو اتباع او متبوعين اشتراک ثابت شو په کفر اختيارې کښې، نو نن دَقيامت په ورځ به عذاب کښې هم شريک وي. نو دېنه معلومه شوه چې دَبل چاپوجه ګناه کول دَقيامت په ورځ دَعذاب نه دبچ کيدلو عذرنشي کيدلې

﴿اِنَّا كَذٰلِكَ﴾ کاف لپاره دبيان کمال دې، يعنې داسې سخته سزا مونږ مجرمانو ته ورکو، ياکاف لپاره دَتشبيه دې. اومراد ترينه تابع اومتبوع دواړوله سزا ورکول دي. يعنې مجرمان خواه که تابع وي يا متبوع، مونږ به ئې جهنم ته غورځوو

﴿اِنَّهُمْ كَانُوْٓا اِذَا قِيْلَ لَهُمْ﴾ دازجردې په انکاردَتوحيد اوشکوه ده دمشرکانو نه. په انکار د توحيد باندې چې کله دوئ ته دَ لا اله الا الله يعنې دَتوحيد دعوت ورکولې شونودوئ به ورنه انکار اوتکبرکولو،

﴿وَيَقُوْلُوْنَ اَئِنَّا لَتَارِكُوْٓا﴾ داورته زجردې، په انکاردَرسالت باندې. استفهام په کښې انکارې دې، يعنې مونږدَخپلو معبودانو عبادات دَحضورﷺ دَدعوت په وجه نه پريږدو. ﴿لِشَاعِرٍ مَّجْنُوْنٍ﴾ مرادئې ورنه نعوذبالله حضورﷺ دې،

﴿بَلْ جَآءَ بِالْحَقِّ﴾ چې ليونيان خو ګډې وډې وائي او شاعران هم هسې فضول بکواس اودروغ وائي، دهغې برعکس دابالکل حق اوربښتيا کلام دې. اوتولورسولانو دغه بيان کړيدې، نو څنګه تاسو نبي کريم ﷺ ته مجنون اوشاعروايئ؟

﴿اِنَّكُمْ لَذَآئِقُوا الْعَذَابِ الْاَلِيْمِ﴾ تخويف اخروي دې مشرکانوته چې دَشرك اوتکذيب په وجه به دوئ ته دردناک عذاب ورکولې کيږي، ﴿لَذَآئِقُوا﴾ په اصل کښې لذائقون دې. داضافت په وجه تخفيفاًنون ساقط شويدې.

إِلَّا عِبَادَ اللّٰهِ الْمُخْلَصِيْنَ ﴿٤٠﴾ اُولٰٓئِكَ لَهُمْ رِزْقٌ مَّعْلُوْمٌ ﴿٤١﴾ فَوَاكِهُ ۚ وَهُمْ مُّكْرَمُوْنَ ﴿٤٢﴾

مګربندګان دالله ﷻ چې مخلصین دی، داهغه خلق دي چې دوئ دپاره رزق یقیني دي چې معلوم به وي. اودوئ به عزت کولی شي.

فِيْ جَنّٰتِ النَّعِيْمِ ﴿٤٣﴾ عَلٰى سُرُرٍ مُّتَقٰبِلِيْنَ ﴿٤٤﴾ يُطَافُ عَلَيْهِمْ بِكَاْسٍ مِّنْ مَّعِيْنٍ ﴿٤٥﴾

په جنتو دنعمتونو کښې، په تختونو به ناست وي یوبل ته مخامخ ګرځولې به شي په دوئ پیالې د جارې بهیدونکي شرابو.

بَيْضَآءَ لَذَّةٍ لِّلشّٰرِبِيْنَ ﴿٤٦﴾ لَا فِيْهَا غَوْلٌ وَّلَا هُمْ عَنْهَا يُنْزَفُوْنَ ﴿٤٧﴾

تك سپین به وي خوندبه ورکوي څکونکوته.نه به وي پدیکښې سردردي اونه به دوئ دهغې نه بې هوښه کیږي

وَعِنْدَهُمْ قٰصِرٰتُ الطَّرْفِ عِيْنٌ ﴿٤٨﴾ كَاَنَّهُنَّ بَيْضٌ مَّكْنُوْنٌ ﴿٤٩﴾

اووي به دوئ په څنګ کښې ناز کتونکې، غټو سترګو والا حورې .لکه دوئ اګئ وي پټې ساتلې شوې

﴿إِلَّا عِبَادَ ٱللَّهِ ٱلْمُخْلَصِينَ﴾ دې آیاتونو کښې بشارت دې مؤمنانو ته. استثناء منقطع ده دَضمیر دَ ذائقوا نه پمعنیٰ دلکنّ عبادالله المخلصین ﴿أُوْلَٰٓئِكَ لَهُمْ رِزْقٌ مَّعْلُومٌ﴾ دې کښې دَ جنتیانو خوراک حالت بیانیږی چې ډیر عمده خوراک به ئی وی، **سوال**: دې آیت کښې دی چې په جنت کښې دَ صالحینو دپاره کوم رزق او اجر دې هغه معلوم دې او بل آیت فلا تعلم نفس ما اخفي لهم من قرة اعين[السجده] نه او دهغه شان دې حدیث اعددت لعبادي الصالحين ما لا عين رأت و لا اذن سمعت و لا خطر على قلب بشر نه معلومیږی چې صالحینو رزق او اجر معلوم نه دې؟ **جواب**: دلته مراد دمعلوم والی نه معلوم بالاسماء والمعنی دې، یعنی دهغې رزق نوم او معنی معلومه ده او چرته چې دَمعلوم والې نفي راغلې ده نو هلته مراد معلوم بالکنه والحقیقت دې، یعنی دَهغې نعمت کنه او حقیقت معلوم نه دې، لکه سورت البقره کښې دی كلما رزقوا منها من ثمرة رزقا قالوا هذا الذي رزقنا من قبل واوتوا به متشابها او حضرت عبد الله بن عباس رضي الله عنهما فرمائي چه: ليس في الجنة شئ مما في الدنيا الا الاسماء (الطبري) او ورته معلوم دَ څو وجوهو اعتبار سره اوئیلې شو:(۱) دا به دائمی اویقینی وی، نوکوم شې چې یقینی او دائمی وي نوهغې وجود هم معلوم وی(۲) دوئم داچې صفتونه به ئې معلوم وي، چې غیرمقطوع به وي، ممنوع به نه وي کما في سورة الواقعه،

حسن المنظر، لذيذالطعم،خوشبوداره به وي(۳)دريم دا چې وختونه به ني معلوم متعين وي. كقوله تعالى: وهم فيهابكرةًوعشيًا(مريم:۶۲).

﴿فَوَٰكِهُ﴾ بدل دې﴿رِزْقٌ﴾نه، دا پدې دلالت كوي چې دَجنت خوراك به صرف دلذت اوتفكه دپاره وي،ځكه چې جنت كښې به انسان خوراك محتاج نه وي(روح)﴿وَهُم مُّكْرَمُونَ﴾ يعني عندالله به عزت مندوي، اودا په ټولونعمتونوكښې لوئ نعمت دې. بعض وائي معنى دادہ چې په حصول دَرزق كښې به مكرمين وي چې بغيردكسب اوځان سترې كولونه به ورته ميلاويږي، دَدنيادَرزق په شان حال به ئې نه وي. ﴿فِى جَنَّٰتِ ٱلنَّعِيمِ﴾ جار مجرور دَمكرمون سره متعلق دې

﴿مُّتَقَٰبِلِينَ﴾ ديكښې دَجنتيانو دَ ناستې ځائې او داحبابو مجلس وصف بيانيږي .چې دوئ به تختونوباندې يوبل ته مخامخ ناست وي ،يو بل سره به ئې مينه محبت وي اوګپ شپ به لګوي او دَشرابو دور به چليږي ﴿علـى سرر﴾ متعلق دې دكائنين سره اوحال دې دَمكرمون ضميرنه، او متقابلين حال دې دَكائنين ضمير مستترنه﴿يُطَافُ عَلَيْهِم﴾ طواف كونكي به واړه اولاد دَمشركانووي، چې خادمان دَجنت به وي(روح)﴿بِكَأْسٍ﴾ دَشرابو نه ډكې پيالې ته وائي ،او په اطلاق المحل على الحال دې او مراد ترينه شراب دى ﴿مِّن مَّعِينٍ﴾ دَجنت دَشرابو وصف بيانيږي، دائي اول صفت دې، أي كائنة من شراب معين . معين يا دمعن نه دې په معنى دَ جوروالي سره ،يعني ژورو شرابو نه به ورله جامونه وركولې كيږي ديكښې دَجنت شرابو كثرت اوعمدګي طرف ته اشاره ده،ځكه چې اوبه خومره ژورې وي نو هومره ډيرې او عمده وي،اويا معين دَ 'عين' نه ماخوذ دې په معنى د چينې سره دې او مقصود ترينه معنى دبهيدلو ده،يعني جارى شرابو جامونه به وركولې كيږي،ديكښې اشاره ده دهغې شرابو پاكوالى تازه والى او شفاف والى ته، ﴿بَيْضَآءَ﴾ بل صفت دې دَشرابو ،چې تك سپين به وي،حتّى چې دَپيونه به هم سپين وي، صفت مؤنث راوړې شو ،ځكه چې موصوف كاس مؤنث سماعى دې﴿لَذَّةٍ لِّلشَّٰرِبِينَ﴾دائي بل صفت دې،مصدرصفت راوړل دپاره دمبالغې دي

﴿لَا فِيهَا غَوْلٌ﴾ دا ئى بل صفت دې. ﴿غَوْل﴾ دغال يغول نه دې پمعنى دفساد سره. اوراغب وائى "الغول اهلاك الشئ من حيث لا يحسّ به" يعين پټ او خفيه ضرر رسولو ته وائى. دلته ورنه مراد نفي دضرر ده اصلاً، يعني هيڅ ضرر به پدې شرابو كښې نه وي. نه ورنه سر خوږيږى اونه به ورسره خيټې تكليف پيدا كيږى او نه څه بل نقصان. (روح المعاني) ﴿وَلَا هُمْ عَنْهَا يُنزَفُونَ﴾ اى يسكرون (نزف) نزع الشئ واذهابه بالتدريج، يعني تدريجاً يو څيز ختميدل. دلته ورنه مراد عقل ختميدل دي، اوبې هوشه كيدل دي، يعني دشرابو په وجه به ئې عقل نه ختميږي اونه به بې هوشه كيږي.

﴿وَعِندَهُمْ قَٰصِرَٰتُ ٱلطَّرْفِ﴾ ديكښې هم دجنتيانو مجلس حالاتو بيان دې چې دوئ سره په څنګ كښې خائسته حياناكې حورې ناستې وى "قصرات" صفت دې موصوف مقدر اى ازواجٌ قاصرات الطرف، او دقصرات الطرف معنى: (۱) يا داده چې قصرن ابصارهنّ علىٰ ازواجهنّ. يعني بندونكې به وي نظرونه خپل لره په خاوندانو خپلو پورې، بل چاته به نه ګورې. دا دښځې كمال اوعفت دې چې صرف خپل خاوندته ګورې. نووصف يا مبني دې په ظاهر يا كنايه ده دفرط محبت نه دخپلو خاوندانو سره. (۲) يا معنىٰ داده چې دكمالِ حياء پوجه به سترګې خكته ساتي (۳) يا معنىٰ داده چې دوئ به دخاوندانو نظرونه خكته كونكې وي خپل ځان پورې، دډېر حسن په وجه به خاوندان ئې بل چا ته نه ګورې (۴) او بعض مفسرينو ئې معنى ذابلات الطرف تدللا كړې ده، يعنى ډير ناز نه سترګې به پټوى را پټوى. ﴿عِين﴾ جمع د "عيناء" ده غټو سترګوته وائى

﴿كَأَنَّهُنَّ بَيْضٌ مَّكْنُونٌ﴾ بيض جمع دبيضةٌ ده، اګئ ته وايې، دلته ورنه مراد دشترمرغ اګئ ده، څكه چې عرب په حسن كښې تشبيه دشترمرغ اګئ سره وركوي. دشترمرغ داګو سره تشبيه وركول يا په صفائى اوحفاظت كښې ده، شترمرغ خپلې اګئ دوزرولاندې پټې كړې وي نودګردوغبار اودلاس لګولونه محفوظې وي نودغه شان دجنت حورې به هم محفوظې وي، كقوله تعالىٰ: (لم يطمثهنّ انسٌ ولاجانٌّ) اويا په خكلي والي اوپه برابروالي داعضاؤ كښې ده، بعض وائى تشبيه دهغه ايشولې اګئ سره ده چې پټ ورنه لرې كړې شي، نودلته تشبيه په نرم والي اونازك والي كښې ده.

فَأَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ يَتَسَاءَلُونَ ۝ قَالَ قَائِلٌ مِّنْهُمْ

پس مخ به کړي بعض ذوئ نه بعض نوروته چي يوبل نه به تپوسونه کوئ اوبه وائی يوويونکي ددوئ

إِنِّي كَانَ لِي قَرِينٌ ۝ يَقُولُ أَئِنَّكَ لَمِنَ الْمُصَدِّقِينَ ۝ أَإِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا وَعِظَامًا

بيشکه وو‌ ماله په دنياکښ‌ زمايوملګرې، ويل به ئي چي آياته منونکي ئي د قيامت، آياچي کله مونږمړه شواوشوخاورې اوهډوکي

أَإِنَّا لَمَدِينُونَ ۝ قَالَ هَلْ أَنتُم مُّطَّلِعُونَ ۝ فَاطَّلَعَ فَرَآهُ

آيامونږته به بدله ميلاويږي، اوبه وائی دي آياتاسوخان نه خبروئ دهغه نه پس‌دجنت نه به‌سربنکاره کړي نواوبه ويني هغه

فِي سَوَاءِ الْجَحِيمِ ۝ قَالَ تَاللَّهِ إِن كِدتَّ لَتُرْدِينِ ۝

په مينځ دجهنم کښ. اوبه وائی ورته چي قسم دې په الله ﷻ چي نږدې وې نه چي هلاك کړي دي وي ځه

وَلَوْلَا نِعْمَةُ رَبِّي لَكُنتُ مِنَ الْمُحْضَرِينَ ۝ أَفَمَا نَحْنُ بِمَيِّتِينَ ۝ إِلَّا

اوکه نه وې فضل درب خما نو وې به ځه په جهنم کښ دحاضرکړې شوونه، آيانه يومونږ (جنتيان) بيا مړه کيدونکي سوا

مَوْتَتَنَا الْأُولَىٰ وَمَا نَحْنُ بِمُعَذَّبِينَ ۝

د مرګ زمونږه رومبني (په دنيا کښې) اومونږ له به عذاب نه راکولي کيږي

إِنَّ هَٰذَا لَهُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ ۝ لِمِثْلِ هَٰذَا فَلْيَعْمَلِ الْعَامِلُونَ ۝

بيشکه هم داکاميابي ده لويه، ددغه شان کاميابئ دپاره دي عمل وکړي عمل کونکي

﴿فَأَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ يَتَسَاءَلُونَ﴾ يعني جنتيان به دې مجلس کښې ددنياحالاتو کارګزارې يوبل ته آوروي، يوجنتي به اووائی چې خمايوملګرې ووډنياکښ څه به ئې ملامته کولم په تصديق دبعث الموت اوپه قيامت، اوويل به ئې چې آيامونږمړوشو خاورې شونو آيابيابه دوباره مونږژوندې کيږو اودخپلوعملونوبدله اوجزابه راکولې کيږي ﴿قَرِينٌ﴾ مرادورنه مطلق مصاحب دې چې بعث بعدالمنکر وی جني وی اوکه انسی،

﴿قَالَ هَلۡ أَنتُم﴾ ضمير پکښې (۱) یا مذکور جنتي ته راجع دي چې خپلو ملګرو ته به او وائي چې راځئ چې دغه منکر د حال نه ځان خبرکړو. چې په کوم حال کښې دي. دې بې او ويني چې د جهنم په منېځ کښې به پروت وي، ورته به او وائي چې عنقريبه وه چې خه دي هم دخان سره هلاك کړې وې، اوکچرته په ما د الله ﷻ فضل نه وې نو نن به خه هم تاسره جهنم کښې موجود وومه، (۲) یا قائل د دې قول فرشتې دي، (۳) بعض وائي قائل الله ﷻ دې چې جنتیانو ته به او وائي چې آیا تاسو غواړئ چې د هغه منکربد حال اوګورئ، د اهل النار د حال نه اهلِ جنت مطلع کیدل سره د دینه چې دواړو مابين کښې تباعد دې، د الله ﷻ د قدرت نه بعيد نه دي چې اهلِ جنت ته به الله ﷻ د دې طاقت ورکړي (روح).

﴿أَفَمَا نَحۡنُ بِمَيِّتِينَ﴾ دا هم د جنتیانو یوبل سره محاوره ده چې اوس به دینه ورستو مونږه نه مره کیږو، نه به راته عذاب راکولې کیږي، استفهام پخپله معنی کښې نه دې بلکه په طریقې د تحدیث بالنعمة دې، بعض وائي دا قول د مومن دې، قرین کافرته دپاره د توبيخ اوزجر

﴿إِنَّ هَٰذَا لَهُوَ ٱلۡفَوۡزُ ٱلۡعَظِيمُ﴾ دا د الله ﷻ طرفه ترغيب دې اعمال صالحؤته. چې حقيقي کاميابي اولويه کاميابي هم داده، دې لپاره دې محنت اوکړي. یا دا قول هم د مذکور جنتي دې.

| |
|---|
| أَذَٰلِكَ خَيۡرٞ نُّزُلًا أَمۡ شَجَرَةُ ٱلزَّقُّومِ ﴿٦٢﴾ إِنَّا جَعَلۡنَٰهَا فِتۡنَةٗ لِّلظَّٰلِمِينَ ﴿٦٣﴾ إِنَّهَا |
| آیا دا نعمتونه غوره دي په میلمستیاکښې او که ونه د زقوم بیشکه مونږ دا ګرځولې ده ازمائش د ظالمانو دپاره، بیشکه دا |
| شَجَرَةٞ تَخۡرُجُ فِيٓ أَصۡلِ ٱلۡجَحِيمِ ﴿٦٤﴾ طَلۡعُهَا كَأَنَّهُۥ رُءُوسُ ٱلشَّيَٰطِينِ ﴿٦٥﴾ فَإِنَّهُمۡ لَأٓكِلُونَ |
| ونه ده چې پیداکیږي په بیخ د جهنم کښې، میوې ئې داسې وي لکه سرونه د شیطانانو، پس بیشکه دوئ به خوري |
| مِنۡهَا فَمَالِـُٔونَ مِنۡهَا ٱلۡبُطُونَ ﴿٦٦﴾ ثُمَّ إِنَّ لَهُمۡ عَلَيۡهَا لَشَوۡبٗا مِّنۡ حَمِيمٖ ﴿٦٧﴾ ثُمَّ |
| د هغې نه نو ډکه وي به د هغې نه خیټې، بیابه بیشکه دوئ لپاره د هغې دپاسه ګډ وي ګرمې اوبه ، بیا |
| إِنَّ مَرۡجِعَهُمۡ لَإِلَى ٱلۡجَحِيمِ ﴿٦٨﴾ إِنَّهُمۡ أَلۡفَوۡاْ ءَابَآءَهُمۡ ضَآلِّينَ ﴿٦٩﴾ فَهُمۡ عَلَىٰٓ ءَاثَٰرِهِمۡ |
| بیشکه راواپس کیدل به وي د دوئ خامخا جهنم ته بیشکه دوئ موندلي وو پلاران خپل ګمراهان نو دوئ په نقش قدم د هغوئ |

يُهْرَعُوْنَ ۝ وَلَقَدْ ضَلَّ قَبْلَهُمْ اَكْثَرُ الْاَوَّلِيْنَ ۝ وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا فِيْهِمْ مُّنْذِرِيْنَ ۝

تیزروان وو، اوپه تحقیق گمراه شوي وو مخکښې ددوی نه ډیرداولونه، اوپه تحقیق سره چې لیږلي وو موږ په دوی کښې یره ورکوونکي

فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُنْذَرِيْنَ ۝ اِلَّا عِبَادَ اللّٰهِ الْمُخْلَصِيْنَ ۝

اوګوره چې څرنګه وو انجام ډیرولوشومګریندګان دالله حی مخلص وو

﴿أَذَٰلِكَ خَيْرٌ نُّزُلًا﴾ دا تخویف اخروي دي، ﴿أَذَٰلِكَ﴾ کښې اشاره رزق معلوم مذکور لاهل الجنة ته ده، چې آیا دَجنت دا مزې غوره دي او که اونه دَزقوم خوړل غوره دي. چې جهنمیان به نې خوري. ﴿الزَّقُّوم﴾ مشهور ازغي دار بوټي دي، چې بدصورته او ډیر تریخ وي. خو دجهنم زقوم او دَدنیا زقوم کښې صرف د نوم کښې اشتراک دي، باقي دَهغې پوره کیفیت نه الله ﷻ عالم دي، لکه څنګه چې دنیا نعمتونو او جنت نعمتونو کښې صرف دنوم اشتراک دي باقي دجنت نعمتونه هغه دَدنیا نعمتونو نه بدرجها افضل دی دهغه شان عذاب ورکولو ذرائعو کښې هم صرف دَنومونو اشتراک دي. کنې دَ جهنم عذاب ذرائع به ددَنیا ذرائعو نه ډیر سخت وی [اعاذنا الله بفضله]

﴿إِنَّا جَعَلْنَاهَا فِتْنَةً﴾ فتنة یا په معنی دَعذاب دي، یعنې دا زقوم مونږ دکافرانو دپاره عذاب ګرځولې دې، چې ئې اوخوری نو ګرمې تانبې او ابو په شان به ئې خیټه کښې خوټیږی لکه په سورة الدخان کښې دي، ان شجرة الزقوم طعام الاثیم کالمهل یغلي فی البطون....الخ. یا په معنی دَامتحان او ازمائش دي، څکه چې کافرانو کله دا اؤریدل چې دا زقوم په جهنم کښې یوه اونه ده، نو ابوجهل وغیره کافرانو اووئیل چې دا څنګه ممکنه ده چې په اور کښې اونه پیدا شي حالانکه اور خو اوني سوزه وي.

﴿إِنَّهَا شَجَرَةٌ تَخْرُجُ﴾ یعني جرړي ئې دَجهنم په ویخ کښې دي، ﴿طَلْعُهَا كَأَنَّهُ رُءُوسُ الشَّيَاطِينِ﴾ یعني غونچې او میوې به ئې دَشیطانانو دَسرونو په شان وي، دَشیاطینو سره تشبیه ورکول په بدصورتئ او قباحت کښې ده، عرب تشبیه دَقبیح صورة دَشیطان سره ورکوي. لکه دَښه صورت تشبیه دَفرشتې سره ورکوي، اګرچه شیطان چا لیدلې نه دې لیکن اعتقاد دَخلقو دا دې چې هغه

شر محض دي نو په تصور او خيال کښې ئې اقبح صورت راسخ دي نو دا تشبيه بالمتخيل ده (روح، ابن کثير) يا ﴿ٱلشَّيَـٰطِينِ﴾ نه مراد ماران دي يعني د ماران نو د سرونو په شان غونچې به ئې وي.

﴿فَإِنَّهُمْ لَـَٔاكِلُونَ مِنْهَا﴾ د شدت جوع په وجه به ئې پخپله خوری بابه ورله فرښتې په زوره ورکوي. ﴿ثُمَّ إِنَّ لَهُمْ عَلَيْهَا لَشَوْبًا مِّنْ حَمِيمٍ﴾ يعني چې د زقوم نه خېټې ډکې کړي نو ګکي به شي او به به او غواړي نو د وينو زوؤ سره مخلوطې ايشيدلې اوبه به ورباندې ځکولې شي چې د هغې په وجه به ئې کولمې او شليږي، کقوله تعالى: فقطّع امعاءهم (محمد: ۱۵)

﴿ثُمَّ إِنَّ مَرْجِعَهُمْ﴾ يعني د زقوم خوړلو او حميم ځکلو نه ورستو به جهنم ته واپس کولې کيږي، د دينه معلومه شوه چې د حميم ځکلو په وخت کښې به دوئ په جحيم کښې نه وي. او حميم د ابو ځکلو او خوراک ورکولو جدا طبقه ده، نو دوئ به د اوبو ځکلو د پاره هلته راوستلې کيږي لکه ښاورچې ورشو او ګودرته راوستلې کيږي (کبير) کقوله تعالى: يطوفون بينها وبين حميم آن (رحمن)

﴿إِنَّهُمْ أَلْفَوْا۟ ءَابَآءَهُمْ ضَآلِّينَ﴾ دا تعليل دې د ماقبل عذاب، يعني دې اهل مکې و د خپلو ګمراهانو آباؤ د نقش قدم پيروي اوکړه، سره د دينه چې دوئ ته د هغوئ د ګمراهئ علم وؤ، نو اوس ئې انجام ته اوګورئ.

| وَلَقَدْ نَادَىٰنَا نُوحٌ فَلَنِعْمَ ٱلْمُجِيبُونَ ﴿٧٥﴾ وَنَجَّيْنَـٰهُ وَأَهْلَهُۥ مِنَ ٱلْكَرْبِ ٱلْعَظِيمِ ﴿٧٦﴾ |
|---|
| او په تحقيق سره او از کړي و مونږ ته نوح ﷺ نو ښه جواب ورکونکي وؤ مونږ، او نجات ورکړو مونږ ده ته او اهل د ده ته د غم لوئ نه. |
| وَجَعَلْنَا ذُرِّيَّتَهُۥ هُمُ ٱلْبَاقِينَ ﴿٧٧﴾ وَتَرَكْنَا عَلَيْهِ فِى ٱلْـَٔاخِرِينَ ﴿٧٨﴾ |
| او او ګرځول مونږ اولاد د ده هم دوئ باقي پاتې کيدونکي. او پريښودلې وه مونږ په ده باندې ثناء حسن په روستنو خلقو کښې |
| سَلَـٰمٌ عَلَىٰ نُوحٍ فِى ٱلْعَـٰلَمِينَ ﴿٧٩﴾ إِنَّا كَذَٰلِكَ نَجْزِى ٱلْمُحْسِنِينَ ﴿٨٠﴾ إِنَّهُۥ |
| هغه دا چې سلام دې په نوح ﷺ په عالمونو کښې. بيشکه مونږ دغه شان بدله ورکوو نيکي کونکو ته. بيشکه دې وؤ |
| مِنْ عِبَادِنَا ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴿٨١﴾ ثُمَّ أَغْرَقْنَا ٱلْـَٔاخَرِينَ ﴿٨٢﴾ |
| د بندګانو زمونږ مؤمنانو نه، بيا غرق کړل مونږ نور خلق. |

﴿وَلَقَدْ نَادٰىنَا نُوحٌ﴾ دا په اووه (۷) قصوكښې اوله قصه د نوح ﷺ ده چې هغه په وخت د تكليف كښې مونږ ته فرياد كړيدې، نو دا په دې دلالت كوي چې انبياء ﷺ هم د الله ﷻ په دربار كښې شفيع غالب نشي كيدلې، مراد (نداء) نه امداد طلب كول او عاجزي ده. كقوله تعالى رب اني مغلوب فانتصر. يا ورته مراد هغه بد دعاګاني دي چې په سورة نوح كښې مذكورې دي

﴿وَنَجَّيْنٰهُ وَأَهْلَهُ﴾ د اهل نه مراد اهلِ دين دي، يعني كوم كسانو چې ورباندې ايمان راوړى ووچې په هغې كښې شپږياتيه (۸) كسان دَده د اهل نه وؤ او (۷۲) كسان دده د قوم نه وؤ نو جمعًا مونږ ټول كسان دوه كم اتيا او يا (۸۰) وؤ. ﴿مِنَ الْكَرْبِ الْعَظِيمِ﴾ مراد ورنه غرقيدل دي. يعني د غرقيدلو نه موبچ كړل يا ورنه دقوم تكليفونه مراد دي،

﴿وَجَعَلْنَا ذُرِّيَّتَهُ هُمُ الْبَاقِينَ﴾ ابن عباس ﷺ وغيره فرمائى چې كله سيلاب ختم شو او نوح ﷺ د بيړئ نه راووتلو نو دَده د اولادنه ماسوى ټول خلق وفات شول نو په دې وجه مفسرين وائى چې د ټولې دنيا نسل د نوح ﷺ د درې ځامنو، حام، سام، يافث نه خور شويدې، د حام په اولادكښې حبش وغيره دي او د سام په اولاد كښې اهل عرب، فارس وغيره دي. د يافث په اولادكښې ترك، ياجوج ماجوج وغيره دي، او دَدې وجې نه نوح ﷺ ته ادم ثاني وئيلې كيږي.

﴿وَتَرَكْنَا عَلَيْهِ﴾ تركنا پمعنىٰ د (ابقينا) دې ﴿فِي الْآخِرِينَ﴾ نه مراد ترقيامته پورې امتونه دي، مفعول د ﴿وَتَرَكْنَا﴾ يا ثناءً حسناً دې، چې محذوف دې، نو دا مستقل جمله ده. او ﴿سَلٰمٌ عَلٰى نُوحٍ﴾ مستقل جمله دعائيه ده يا ﴿سَلٰمٌ عَلٰى نُوحٍ﴾ مفعول دې د ﴿وَتَرَكْنَا﴾ دپاره په اعتبار د مضمون، نو مطلب دادې چې ترقيامته به نوح ﷺ باندې خلق سلام وائى.

﴿إِنَّا كَذٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ﴾ ذلك كښ اشاره مذكورو انعاماتو ته ده، يعني لكه څنګه مونږ د نوح ﷺ دعا قبوله كړه، ذريت مونږله باقي او ګرځوؤ، ذكرِ خير مونږ ورله باقي او ساتلو نو دغه شان مونږه هر محسن سره معامله كوؤ.

وَإِنَّ مِنْ شِيعَتِهِ لَإِبْرٰهِيمَ ۞ إِذْ جَاءَ رَبَّهُ بِقَلْبٍ سَلِيمٍ ۞ إِذْ قَالَ

او بيشكه د اتباع دَده نه خامخا ابراهيم دې، كله چې راغې دې رب خپل ته په زړه روغ سره (د شرك نه)، كله چې اوويل ده

| لِأَبِيهِ وَقَوْمِهِ مَاذَا تَعْبُدُونَ ﴿٨٥﴾ أَئِفْكًا آلِهَةً دُونَ اللَّهِ تُرِيدُونَ ﴿٨٦﴾ |
|---|
| خپل پلار ته او قوم خپل ته دَځه عبادت کوئ تاسو، آيا په دروغه د داسې آلهؤو چه ماسوا د الله نه دي تاسو اراده کوئ. |
| فَمَا ظَنُّكُم بِرَبِّ الْعَالَمِينَ ﴿٨٧﴾ فَنَظَرَ نَظْرَةً فِي النُّجُومِ ﴿٨٨﴾ فَقَالَ إِنِّي سَقِيمٌ ﴿٨٩﴾ |
| نو څه دي ګمان ستاسو په رب العالمين باندې، نو اوئې کړو يو نظر په ستورو کښې، نو اوئې ويل چې بيشکه څه ناجوړه يم. |
| فَتَوَلَّوْا عَنْهُ مُدْبِرِينَ ﴿٩٠﴾ فَرَاغَ إِلَىٰ آلِهَتِهِمْ فَقَالَ أَلَا تَأْكُلُونَ ﴿٩١﴾ |
| نو واپس شول هغوئ دده نه شاکونکي، نو په پټه راغې معبودانو دَدوئ ته نو اوئې ويل ورته تاسو ولې نه خورئ . |
| مَا لَكُمْ لَا تَنطِقُونَ ﴿٩٢﴾ فَرَاغَ عَلَيْهِمْ ضَرْبًا بِالْيَمِينِ ﴿٩٣﴾ |
| څه چل دې تاسو له چې خبرې نه کوئ نو رااوګرځيدو هغه بتانو ته او اوئې وهل څه کلک کلک. |

﴿وَإِنَّ مِن شِيعَتِهِ لَإِبْرَاهِيمَ﴾ دا دويمه قصه ده چې ابراهيم عليه السلام باندې سخت تکليف راغې نو دَتکليف په وخت ئې زمونږ نه دَنجات سوال اوکړو، نو دينه هم معلوميږي چې انبياء کرام شفيع قهري ندي، په "شيعته" کښې ضميرنوح عليه السلام ته راجع دې دَ﴿شِيعَتِهِ﴾ نه مراد نسله واتباع دي يعني دده نسل نه وو اودَ ده په شان پيغمبروو او په اصولُ دَدين کښې ئې اتباع کونکې وو،

﴿إِذْ جَاءَ رَبَّهُ﴾ راتلو نه مراد الله تعالى ته رجوع کول اوزړه الله تعالى ته خالص کول دي، معناه: انه اخلص لله قلبه (کشاف) ﴿بِقَلْبٍ سَلِيمٍ﴾ يعني روغ او محفوظ وو دَهر فساد نه، دَعقيدې فساد نه، دَاتباع هوى نه، او دَحسد اوعناد نه.

﴿إِذْ قَالَ لِأَبِيهِ﴾ بدل دي دَ﴿إِذْ جَاءَ﴾ نه. ﴿مَاذَا تَعْبُدُونَ﴾ استفهام توبيخي دي، يعني په عبادت دَغير الله ورته توبيخ کوي، ﴿أَئِفْكًا﴾ افک سخت دروغو ته وائې دا يا مفعول له دې، مقدم دَ﴿تُرِيدُونَ﴾ يائې مفعول به دې، او ﴿آلِهَةً﴾ ورنه بدل دي يعني آيا دَباطل يعني معبودان من دون الله لره غوښتونکې يئ.

﴿فما ظَنُّكُم بِرَبِّ ٱلۡعَٰلَمِينَ﴾ ستاسو درب العالمين په باره کښې څه ګمان دې؟ يعني باوجود د دينه چه چې هغه ستاسو ټولو عالمونو پروردګار دې، آياتاسو ته دهغه په ربوبيت کښې شک دې؟ آياتاسو دهغه عذاب او انتقام نه مطمئن او په امن کښې يئ؟ ياهغه به ستاسو نه په شرک راضي شي، آخر څه وجه ده چې صرف دهغه عبادت نه کوئ.

﴿فَنَظَرَ نَظۡرَةٗ فِي ٱلنُّجُومِ﴾ ديکښې دهغې واقعې ذکر دې چې دقوم ميلې ورځ وه، ټول روان وو نو ابراهيم ﷺ ته ئې دَ شرکت دعوت ورکړو چې مونږ سره لاړ شه خو ابراهيم ﷺ ورته د بيمارئ بهانه اوکړه او ورسره نه لاړو. او ﴿فَنَظَرَ نَظۡرَةٗ﴾ (١) محاوره ده په معنی دفکر کولو او سوچ سره، څکه چې انسان په وخت دَفکر کښې بې اختياره اواتفاقا اسمان طرف ته ګوري. نو مشرکانو چې کله ابراهيم ﷺ دعوت ورکړو چې زمونږ سره ميلې ته لاړ شه نو ده سوچ اوکړو او اتفاقاً ئې نجوموته نظر اوکړو چې دَدوئ نه څنګه پاتې شم، نو جواب ئې ورکړو چې څه بيمار يم، نشم تلې (٢) تهانوي رحمه الله اونورو مفسرينو ليکلي دي چې دَابراهيم ﷺ ستوروباندې په نظر کولو کښې يو خاص مصلحت او حکمت وؤ، هغه دا چې علم نجوم به دَ حضرت ابراهيم ﷺ په زمانه کښې استعماليدلو خلقو به دَخپلو کارونو تعين په نجوموسره کولو نو حضرت ابراهيم ﷺ هم بطور توريه اوايهام په ستوروباندې نظر اوکړو، چې خلق دا ګمان اوکړي چې ده دَستوروپه حساب سره مونږ ته جواب راکړيدې، نو يقين به ئې راشي، اګرچه حضرت ابراهيم ﷺ بذات خود دَ علم نجوم قائل نه وؤ، صرف دَهغوئ نه دَخلاصيدلو دپاره ئې دا طريقه اختيار کړه، نو دا "توريه بالفعل" ده چې عمل نه دې خلق ظاهری مطلب اخلی او مقصود ترينه ستا بل څه وی.

﴿فَقَالَ إِنِّي سَقِيمٞ﴾ او دا "توريه بالقول" ده چې خبرې نه دې خلق يو مطلب واخلی اوستا ترينه غير ظاهری مطلب مراد وی، دَ﴿سَقِيمٞ﴾ دوه معنې دي: (١) سقيم النفس، يعني بې زاره کيدل اوطبعيت باندې بوج راتلل، يعني ستاسو دکفراوشرک پوجه څماپه طبعيت باندې بوج دې (٢) مريض اوبيمار، نو دَابراهيم ﷺ مراداوله معنی وه، اومشرکانو ورنه دويمه معنی مراد واغسته. او ديته توريه وئيلې کيږي، په حديث کښې چې "ثلاث کذبات" راغلي دي نو هلته هم ورنه دري توريې مراد دي، بعض وائی ﴿إِنِّي سَقِيمٞ﴾ نه مراد دَابراهيم ﷺ سقم مآلاً وو او قوم ترينه مراد سقم حالاً واخستو. يعني په مستقبل کښې بيمار کيدونکې يم، اوداحقيقت دې څکه چې هر انسان

د مخـا بيمـاريږي، کم ازکـم مـرض المـوت خـو يقيني دي.نو قـوم کمـان اوکړو چـې دې اوس بيمار دې مونږ سره نشي تللې. ﴿فَتَوَلَّوْا عَنْهُ﴾ يعنى قوم ئې عذر قبول کړو او دې ئې پريخودو او لاړلو ترينه

﴿فَرَاغَ﴾راغ،يروغ پټ والی معنی ورکوی ،اوکله چې صله کښې "الی" راشي نو بيا د "ذهاب" د تللو معنی ته متضمن شی ،يعنی پټه تللو معنی ورکوی.اوکله چې صله کښې "علی" راشی او يا "ضرب" ماده راشی نو بيا دمتوجه کيدلو معنی ورکوی نو فراغ الی الهتهم معنی دا شوه چې کله قوم ترينه لاړو ،نو دې پټه پټه بتانو ته راغې

﴿فَقَالَ اَلَا تَأْكُلُوْنَ﴾ مشرکانو به دبتانو مخې ته دتبرك لپاره خوراکونه ايخي وو ،نودائی ورته په طور استهزاء اووئيل

﴿فَرَاغَ عَلَيْهِمْ ضَرْبًا﴾دلتـه راغ پـه معنـی د اقبـل او متوجـه کيـدلو سره دې.يعنـی بيـا ورتـه راوګرځيدو اوخه مضبوط وارونه ئی پرې اوکړو،او مات ئی کړل."ضربا"مفعول مطلق دې د"يضرب"فعل مقدر دپاره،او پوره جمله بياحال واقع کيږی د"راغ"فعل دپاره. ﴿بِالْيَمِيْنِ﴾ياورنه ښي لاس مراددې نوکنايه ده دقوة نه څکه چې په ښي لاس سره وهل سخت وي،ياورنه مراد هغه قسم پوره کول دي چې وئيلي وو ،تالله لاکيدنّ اصنامکم(الانبياء:۵۷).او باسببيه ده أي بسبب الحلف

| فَاَقْبَلُوْٓا اِلَيْهِ يَزِفُّوْنَ ۝ قَالَ اَ تَعْبُدُوْنَ مَا تَنْحِتُوْنَ ۝ وَاللّٰهُ |
|---|
| نو راغلل مشرکان ابراهيم ته په منډه منډه .اوويل ده آياعبادت کوئ تاسود هغه چې تاسوئی توګئ،حال دا چه الله |
| خَلَقَكُمْ وَمَا تَعْمَلُوْنَ ۝ قَالُوا ابْنُوْا لَهٗ بُنْيَانًا فَاَلْقُوْهُ فِي الْجَحِيْمِ ۝ |
| پيداکړي يئ تاسواوهغه چې تاسوئی کوئ،اووئيل هغوئ چې جوړکړئ ددپاره يوعمارت بيااوغورځوئ دې په ګرم اورکښې |
| فَاَرَادُوْا بِهٖ كَيْدًا فَجَعَلْنٰهُمُ الْاَسْفَلِيْنَ ۝ وَقَالَ اِنِّيْ ذَاهِبٌ اِلٰى رَبِّيْ |
| نواراده وکړه دوئ دهغه سره دمکرنوګرځول مونږدوئ ذليله اوويل ابراهيم بيشکه زه تلونکې يم،رب خپل ته |

سَيَهْدِينِ ۝ رَبِّ هَبْ لِي مِنَ الصّٰلِحِينَ ۝ فَبَشَّرْنٰهُ بِغُلٰمٍ حَلِيمٍ ۝

ضرور به هغه لار اوښائي ماته، او دعا ئي اوكړه اې ربه خمارا كړه ماته اولاد د نيكانو نه. نو زيري وركړو مونږ هغه ته د هلك صبرناك

﴿فَأَقْبَلُوٓا۟ إِلَيْهِ يَزِفُّونَ﴾ای يسرعون، دَزفيف نه مشتق دي. تيزتللو ته وائي. يعني چې كله مشركين دَخپلي ميلي نه راواپس شول او اوئي ليدل چې معبودان ئې كنډي كپړ راته دي نو پوهه شول چې دا كار ابراهيم عليه السلام كړيدي، نو فوراً په ابراهيم عليه السلام پسي په منډه راغلل. اوئې نيولو ژاني وستلو، او خپل بتانو باره كښې ترينه تپوس اوكړو. ابراهيم عليه السلام او قوم تفصيلي خبري تري اوشوي چې سورت الانبياء كښې دهغې تفصيل تيردي. هغې نه بعد ابراهيم عليه السلام ورته به طور توبيخ اووئيل چې آيا تاسو هغه څيزونه خپل معبودان ګرځولي دي چې پخپلو لاسونوني جوړه وئ حالانكه خالق الله جل جلاله دي،

﴿وَٱللَّهُ خَلَقَكُمْ وَمَا تَعْمَلُونَ﴾ جمله حاليه ده دَضمير دَتعبدون نه ما يا مصدريه ده. اى والله خلقكم وعملكم، يعني ستاسو او ستاسو دَعملونو خالق الله پاك دي. اهل السنة والجماعة ددې آيت نه استدلال كوي چې خالق دَعبادو او دَاعمالو دَعبادو الله جل جلاله دي. يا ما موصوله دي پمعنى دَ(الذي) اى خلقكم وخلق الذين تعملونه، يعني الله جل جلاله ستاسو هم خالق دي او دَهغې هم خالق دي چې تاسوئې جوړه وئ چې بتان دي.

﴿قَالُوا۟ ٱبْنُوا۟ لَهُۥ بُنْيَٰنًا﴾ يعني يو عمارت جوړ كړئ او اور پكښې بل كړئ. او بيا اور ته ئې اوغورځوئ، چنانچه اورئې بل كړو ابراهيم عليه السلام ئې پكښې اوغورځولو ليكن الله جل جلاله دوئ ذليله كړل او ابراهيم عليه السلام ته ئې سلامتي وركړه، روايات كښې دي چې كله ئې غورځولو نو ابراهيم عليه السلام دا كلمات وئيل، حسبنا الله ونعم الوكيل.

﴿وَقَالَ إِنِّى ذَاهِبٌ﴾ دا په ابراهيم عليه السلام باندې دويم تكليف او ازمائش وو چې خپلې علاقې نه اوويستلي شو او الله جل جلاله ورته بيت المقدس او شام طرف ته دَهجرت حكم اوكړو، دَ(ذهاب) نه مراد دَاكثرو په نيز هجرت كول دي، ﴿إِلَىٰ رَبِّى﴾ الى يا پمعنى دَلام دي، يعني د پاره دَرضا دَرب هجرت كوم يا پخپله معنى كښې دي خو مطلب دادې چې هغه ځائ ته هجرت كوم چې امر كوي څمارب ماته، چنانچه دَحكم الهي موافق ابراهيم عليه السلام دَمصر په لاري شام ته روان شو، ورسره خپله بي بي سارة رضي الله عنها وه او وراره حضرت لوط عليه السلام هم وؤ، په لاره كښې شرق اردن په علاقي كښې

بحرميت اوسدوم علاقي ته چې اورسيدل نولوط عليه السلام ته نبوت ملاؤ شو [illegible]
كښې پاتې شو ، ابراهيم عليه السلام اوساره رضي الله عنها مخكښې روان شول [illegible]
مصرواقعه اوشوه. دَمصر بادشاه حضرت ساره رضي الله عنها ته بوه وينځه وركړه چې دهغې نوم هاجره
وؤ ، هغې داوينځه ابراهيم عليه السلام ته وركړه . ابراهيم عليه السلام ورسره نكاح وكړه . دابراهيم عليه السلام اولادنه
وؤنو دعائې اوكړه ﴿رَبِّ هَبۡ لِي مِنَ ٱلصَّٰلِحِينَ﴾ اى ولداصالحامن الصالحين . الله جل جلاله ئې دعا قبوله كړه
دَحضرت هاجرې رضي الله عنها دَبطن نه ئې ورته بچې وركړو

﴿فَبَشَّرۡنَٰهُ بِغُلَٰمٍ حَلِيمٍ﴾ يعني حليم الطبع اودصبرخاوند . نوم ئې اسماعيل كيخودلې شو . د
اسماعيل عليه السلام معنىٰ ده ، واؤريدل الله جل جلاله . ددوؤلفظونو نه جوړدې ﴿سمع﴾ او﴿ايل﴾ يعني الله جل جلاله
دابراهيم عليه السلام دعاواؤريدله

فَلَمَّا بَلَغَ مَعَهُ السَّعۡيَ قَالَ يَٰبُنَيَّ إِنِّيٓ أَرَىٰ فِي الۡمَنَامِ أَنِّيٓ

پس هركله چې اورسيدلو داهلک دَ ابراهيم عليه السلام سره عمردكاركولوته ، نواويل ده اې خما بچوړه ښكاره وينم په خوب كښې داچې

أَذۡبَحُكَ فَانظُرۡ مَاذَا تَرَىٰۚ قَالَ يَٰٓأَبَتِ افۡعَلۡ مَا تُؤۡمَرُۖ

ځه ذبح كومه تا ، نوته سوچ وكړه چې ستاڅه رائې ده ، اويل ﴿اسماعيل﴾ اې پلاره خما اوكړه هغه چې حكم ئې كيږي تاته .

سَتَجِدُنِيٓ إِن شَآءَ اللَّهُ مِنَ الصَّٰبِرِينَ ۝

زرده چې اوبه مومي ته ما لره كه دالله خوښه وي د صبر كوونكو نه

﴿فَلَمَّا بَلَغَ مَعَهُ ٱلسَّعۡيَ﴾ داپه ابراهيم عليه السلام دريم امتحان دې چې دَخپل خوې اسماعيل عليه السلام
دَالله جل جلاله په لاره كښې قرباني كول دي ، دَ﴿ٱلسَّعۡيَ﴾ نه مراد هغه عمرته رسيدل دي چې دَخپل
پلارسره په حوائجوكښې مددكوليشي ، بعض وائي چې پدغه وخت كښې دَاسماعيل عليه السلام
عمرديارلس كاله وؤچې دې عمركښې بچې پلارته ډيرمحبوب وي . بعض وائي چې سعى نه
مراد منډې وهلو عمر دې ، ﴿قَالَ يَٰبُنَيَّ إِنِّيٓ أَرَىٰ فِي ٱلۡمَنَامِ﴾ دلته دو احتماله دي : ﴿۱﴾ يوداچې خوب
كښې ئې بعينه دخوې ذبح كول نه وې ليدلې بلكه بل څه ئې ليدلې وې خو دهغې تعبير داوو
چې بچې ذبح كړه ، ﴿۲﴾ او دويم احتمال دادې چې خوب كښې بعينه دَبچې ذبح كول ليدلې وې
لكه بعض رواياتوكښې دي چې ابراهيم عليه السلام په ليلة الترويه يعني ﴿۸﴾ ذي الحجه شپې خوب

اوليدلو چې يو سرې ورته وائي (انّ الله يـامرك بـذبح ابنـك) يعني الله ﷻ تاتـه دخپـل بچي دذبح كولو امر كـوي، چې سهار شـو نو دَده پـه زړه كښې شـك وو چـې آيـا دالله ﷻ طرفـه دې اوكـه دَشيطان، پدې وجه (٨) ذي الحجه ته يوم الترويه يعني دَشك والاورځ وائي. پـه دويمـه شپه ئي بيا دغه شان خوب اوليدلو نو دده يقين راغې چې داخوب دَالله ﷻ دطرفه دې. پدې وجه (٩) ذي الحجه تـه يوم العرفه وائي، پـه دريمـه شپه ئې بيا دغـه شـان خـوب اوليـدلو نو دنحر يعني ذبح كولو اراده ئې اوكړه نو پدې وجه ورته يوم النحر وائي.

﴿فَانظُرْ مَاذَا تَرَىٰ﴾ دَرائ نـه مـاخوذ دې، يعني دې خـوب بـاره كښې سـتاخه رائ او مشـوره ده، مقصود دَابراهيم ﷺ دَاسماعيل ﷺ جذبات اودَهغه صبر معلومول وو. دَالله ﷻ پـه حكـم كښې ئې شك اوتردد دلپاره ورنه مشوره نه اغستله.

﴿قَالَ يَا أَبَتِ افْعَلْ مَا تُؤْمَرُ﴾ پـه اصل كښې مَاتؤمربه دې جارمجرور معاحذف شـويدې. يعني څه دَذبح كولو امر چې درته شوې دې نو هغه پوره كړه او اِفعَل صيغه راوړلو كښې ترغيـب دې حكـم پوراكولو ته، يعنې خه رضا يمه اوتـه دالله ﷻ حكم زرزر تعميـل اوكـړه ﴿سَتَجِدُنِي إِن شَاءَ اللَّهُ مِنَ الصَّابِرِينَ﴾ يعني په حكم دَذبح اونوروا حكاماتو باندې به صبركونكې يم. ﴿مِنَ الصَّابِرِينَ﴾ پـه ځـائ ئې (صابراً) اونه وئيل، دپاره دَاظهار دَتواضع اوعاجزئ.

| فَلَمَّا أَسْلَمَا وَتَلَّهُ لِلْجَبِينِ ۝ وَنَادَيْنَاهُ أَن يَا إِبْرَاهِيمُ ۝ |
|---|
| پس كله چې دواړه تابع شواوراځملونې اسماعيل په ځنګ دده، نودَحكم تعميل اوشو، اواوازوكړومونږه ده ته چې اې ابراهيم، |
| قَدْ صَدَّقْتَ الرُّؤْيَا ۚ إِنَّا كَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ ۝ إِنَّ هَٰذَا |
| په تحقيق چې رشتياكړوتاخوب، بيشكه مونږه دغه شان بدله وركوونيكي كونكوته بيشكه دا (امتحان |
| لَهُوَ الْبَلَاءُ الْمُبِينُ ۝ وَفَدَيْنَاهُ بِذِبْحٍ عَظِيمٍ ۝ وَتَرَكْنَا عَلَيْهِ |
| هم دا امتحان وو ښكاره، او مونږ په بدله كښې وركړه د اسماعيل عليه السلام لويه ذبيحه، اوپرېښودلې وه مونږه په ده باندې ثناء حسن |
| فِي الْآخِرِينَ ۝ سَلَامٌ عَلَىٰ إِبْرَاهِيمَ ۝ كَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ ۝ |
| په ورستنوخلقوكښې. هغه داچې سلام دې په ابراهيم باندې، دغه شان بدله وركوومونږه نيكي كونكوته |

| إِنَّهُۥ | مِنْ | عِبَادِنَا | ٱلْمُؤْمِنِينَ | ⑪ |
|---|---|---|---|---|
| بې شکه | وؤدي | دبندګانو | زموږ | مؤمنانو نه |

﴿فَلَمَّآ أَسْلَمَا﴾ اى استسلما، يعني دواړه دَالله ﷻ دَحکم منقاد شول.دېکښې داستسلام بالقلب ذکر دې. ﴿وَتَلَّهُۥ لِلْجَبِينِ﴾ دېکښې دَ استسلام بالجوارح ذکر دې يعنی عملا ئې هم دحکم تعميل تيارياني شروع کړې، "التل" په زمکې باندې راويشتلو اوغورځولو ته وائی ﴿للجبين﴾ دتندي طرف ته وائی، تندي مينځنئ حصې ته جبهة وائی دَدې وجه نه حکيم الامت رحمه الله ددې ترجمه په "کروٹ پر لٹانا" سره کړيده يعنی لکه څرنګه چې دَذبح کولو دپاره خلق څاورې سملوي نو دغه شان ئې اسماعيل عليه السلام سملولو ، فَلَمَّا دپاره شرط دې او ﴿وَنَٰدَيْنَٰهُ أَن يَٰٓإِبْرَٰهِيمُ﴾ ئې جواب دې. البته په جواب شرط باندې "واؤ" حرف عطف داخليدل قابل اشکال دې، دې وجهې نه بعضو مفسرينو وئيلي دې چې "وَنَٰدَيْنَٰهُ" جواب شرط نه دې بلکه جدا جمله ده، اوجواب شرط محذوف دی چې هغه "قبلنا منه" دې او څنې مفسرينو لکلی دی چې "وَنَٰدَيْنَٰهُ" جواب شرط دې خو واؤ دلته زائد دې، راجحه خبره داده چې "وَنَٰدَيْنَٰهُ" جواب شرط دې بلحاظ معطوف عليه محذوف او "واؤ" زائد نه دې، تقدير دَعبارت به داسی شی، فلما اسلما...تحقق تنفيذ امر الله وناديناه يعنی کله چې دوئ زړه سره هم الله ﷻ حکم اومنلو او عملا ئې هم پوره کولو تيارئ شروع کړې نو بس دَالله ﷻ حکم تعميل اوشو اوندا ورته اوکړه "ان" مفسره دې پمعنی دَ(اي)

﴿قَدْ صَدَّقْتَ ٱلرُّءْيَآ﴾ يعني تاخپل خوب ريشتنې کړو، دَريشتني کولو نه مراد سم عزم کول اوتياري کول دي،

**فائده:** آيا ابراهيم عليه السلام دَاسماعيل عليه السلام په مرئ چاړه تيره کړې وه اوکنه؟ نو دې کښې دوه قوله دي اکثر وائی چې نه ئې وه تيره کړې، لکه ابن عباس رضي الله عنهما مجاهد رحمه الله وغيره نه منقول دي چې کله ابراهيم عليه السلام دَذبح اراده اوکړه چاړه ئې راواخسته نوآواز ورته اوشو چې ﴿قَدْ صَدَّقْتَ﴾ نولاس ئې ورستو کړو سرئې اوچت کړو نو ګډئې اوليدلو چې ده طرف ته راکوزيدلو نو ذبح ئې کړو ، بعض وائی چې چاړه ئې وربانديې تيره کړې وه ليکن کارئ اونکړو (روح المعاني).

﴿إِنَّ هَٰذَا﴾ يعني دا حكم دَذبح دَولد دَالله ﷻ دَطرفه يو لوئ امتحان وو. ﴿وَفَدَيْنَٰهُ بِذِبْحٍ﴾
يعني حيوان چې دَده په بدل كښې ذبح شو ﴿عَظِيمٍ﴾ مراد ورنه عظيم القدر دي. يعني لوئ
قدر والاوؤ، ځكه چې دَالله ﷻ دَطرفه دَجنت نه راليږلې شوې وؤ. او په قبوليت كښې ئې شك نه
وؤ، بعضِ وائي چې دَ﴿عَظِيمٍ﴾ نه مراد عظيم الجثه دي، يعني غټ جسم والاوؤ. ابن عباس رضي الله عنهما
وائي چې دا هغه ګډوؤ چې دَآدم عليه السلام ځوي هابيل ورنه قرباني كړې وه او دې دهغه وخت نه
تراوسه پورې په جنت كښې څريدلو حتّىٰ چې ابراهيم عليه السلام ته دَاسماعيل عليه السلام په بدله كښې
وركړې شو.

| وَبَشَّرْنَٰهُ بِإِسْحَٰقَ نَبِيًّا مِّنَ ٱلصَّٰلِحِينَ ۝ وَبَٰرَكْنَا عَلَيْهِ |
|---|
| اوزيرې وركړومونږ ابراهيم ته د اسحٰق چې نبي به وي، دَنيكانو نه به وي. اوبركت اچولې ووْمونږ پدده باندې |
| وَعَلَىٰٓ إِسْحَٰقَ ۚ وَمِن ذُرِّيَّتِهِمَا مُحْسِنٌ وَظَالِمٌ لِّنَفْسِهِۦ مُبِينٌ ۝ |
| اوپه اسحٰق عليه السلام باندې، اوپه اولاددَوكښې بعضِ نيكوكاروؤاوبعضِ ظلم كونكي ووپه خپل ځان باندې ښكاره |

﴿وَبَشَّرْنَٰهُ بِإِسْحَٰقَ نَبِيًّا﴾ ديكښې په ابراهيم عليه السلام باندې دَانعاماتو ذكر دې اودا آيت درې
خوشخبريانوته متضمن دې، يو داسحاق عليه السلام خوشخبرى، بل دهغه نيک كيدلو خوشخبرى
اوبل دهغه نبى كيدلو خوشخبرى چې الله ﷻ به ورله نبوت وركوى. ﴿نَبِيًّا﴾ او ﴿مِّنَ ٱلصَّٰلِحِينَ﴾
دواړه حال مقدره دى، د﴿اسحق﴾ نه، نبوت مقدم كړې شو په صلاح باندې، حالانكه اول صلاح
وى بيا نبوت وى، يوخو دَدې وجهې نه چې دَ فواصلو رعايت راشى او بل انتهاء د آيت كښې
راوړلو كښې په دې تنبيه ده چې دې تولو فضيلتونو منتهى او غايت صلاح او نيک جوړيدل
دي.

﴿وَبَٰرَكْنَا عَلَيْهِ وَعَلَىٰٓ إِسْحَٰقَ﴾ بركت نه مراد دنيوى اخروى دواړه بركات دى يعني دَدنيوي اخروي
بركات موورباندې نازل كړل، چې اولادموورته زيات كړواودَدوئ په اولادكښې موډيررسولان
اوانبياء جوړكړل، دَحضوررصلى الله عليه وسلم پورې تمام انبياء دَبني اسرائيلويعني دَاسحاق عليه السلام او
يعقوب عليه السلام دَنسل نه ووْاوحضورصلى الله عليه وسلم دَ اسماعيل عليه السلام دَ نسب نه وؤ. ﴿وَمِن ذُرِّيَّتِهِمَا مُحْسِنٌ﴾ يعني
په عمل كښې ياپخپل ځان احسان كونكى ووپه ايمان اوطاعة سره، ﴿وَظَالِمٌ لِّنَفْسِهِۦ﴾ يعني په

كفر او معاصيؤ سره، پخپل ځان ښكاره ظلم كونكي وؤ. صاحب د روح المعاني وائي وفي ذلك تنبيهٌ على ان النسب لااثرله في الهدىٰ والضلال.

**فائده**: د مفسرينو اختلاف دي چې ذبيح څوك وؤ. اسحاق عليه السلام وؤ كه اسماعيل عليه السلام. نو بعض مفسرينو لكه ابن جريرو غيره ديته ترجيح وركړيده چې اسحاق عليه السلام وؤ. ليكن ابن كثير رحمه الله وغيره ترجيح ديته وركړيده چې اسماعيل عليه السلام وؤ. او هم دا قول اصح دي. او د جمهور مفسرينو او محدثينو مذهب دي، ابن كثير رحمه الله وائي چې اسحاق عليه السلام ته ذبيح وئيل د يهودو افتراء او تحريف دي ځكه چې يهود د اسحاق عليه السلام د نسل نه دي. د دې آياتونو او نورو آياتونو نه هم دا معلوميږي چې ذبيح اسماعيل عليه السلام دي ځكه چې:

(۱) د ذبح قصي ختميدلو نه وروستو د حضرت اسحاق عليه السلام بشارت جدا وركړې شوې دي، چې ﴿وَبَشَّرۡنَـٰهُ بِإِسۡحَـٰقَ نَبِيًّا﴾ معلومه شوه چې ﴿فَبَشَّرۡنَـٰهُ بِغُلَـٰمٍ حَلِيمٍ﴾ كښې د اسحاق عليه السلام نه علاوه د بل غلام (هلك) زيرې وركړې شويدي.

(۲) د اسحاق عليه السلام او د يعقوب عليه السلام دواړو بشارت الله تعالىٰ په يو ځائې وركړې وؤ لكه سورت هود كښې دي فبشرناه باسحاق ومن وراء اسحاق يعقوب[هود: ۷۱] يعني د ځوي بشارت موهم وركړو او د نوسي هم، نو ددې مطلب دا شو چې دې اسحاق عليه السلام به ژوندې پاتې كيږي او دومره عمرته به رسي چې واده به كوي او كم از كم يو بچې به ئې پيدا كيږي نو اوس كه دذبحې حكم هم د اسحاق عليه السلام په باره كښې شوې وې نو صريح تضاد به راشي. ځكه چې يو طرف ته ورته د طول عمر بشارت وركولې كيږي او بل طرف ته عين ما شوم والي كښې د ذبح كولو حكم كيږي، نو يا خو امتحان امتحان پاتې نه شو، او يا بشارت بشارت نه شو.

(۳) قرآن مجيد كښې الله تعالىٰ د اسماعيل عليه السلام صفت په صبرناك سره ذكر كړيدې سورة الانبياء (۸۵) كښې دي، واسماعيل وادريس وذا الكفل كلٌّ من الصابرين، په سورة مريم (۵۴) كښې ورته صادق الوعد وئيلي شويدي، نو د خپل قول چې ﴿سَتَجِدُنِيٓ إِن شَآءَ ٱللَّهُ مِنَ ٱلصَّـٰبِرِينَ﴾ تصديق ئې پخپل فعل سره اوكړو

(۴) بله دا چې واقعه د ذبح د مكې په علاقې منىٰ كښې شويده، د غه شان ښكرې د ګډ په خانه كعبه پورې زوړندې وې او هلته صرف اسماعيل عليه السلام وؤ

(۵)دغه شان په یوروایت کښ دي چې یو اعرابي حضور ﷺ ته یاابن الذبیحین او وئیل حضور ﷺ تبسم اوکړو، مرادئې ورنه عبدالله بن عبدالمطلب وؤ او اسماعیل علیه السلام (روح المعاني، تفسیر کبیر وغیره).

| |
|---|
| وَلَقَدْ مَنَنَّا عَلٰى مُوْسٰى وَهٰرُوْنَ ﴿۱۱۴﴾ وَنَجَّيْنٰهُمَا وَقَوْمَهُمَا مِنَ الْكَرْبِ الْعَظِيْمِ ﴿۱۱۵﴾ |
| او خامخا په تحقیق سره مونږه احسان کړې وؤ په موسی علیه السلام او په هارون علیه السلام باندې او نجات ورکړو مونږ دوئ ته او قوم د دوئ ته |
| وَنَصَرْنٰهُمْ فَكَانُوْا هُمُ الْغٰلِبِيْنَ ﴿۱۱۶﴾ وَاٰتَيْنٰهُمَا الْكِتٰبَ الْمُسْتَبِيْنَ ﴿۱۱۷﴾ |
| دَغم لوئ نه، او مدد اوکړو مونږ دَدوئ نو شول هم دوئ غالبه او ورکړې وؤ مونږ دوئ دواړو ته کتاب ښکاره |
| وَهَدَيْنٰهُمَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيْمَ ﴿۱۱۸﴾ وَتَرَكْنَا عَلَيْهِمَا فِي الْاٰخِرِيْنَ ﴿۱۱۹﴾ |
| او هدایت کړې وؤ مونږ دوئ ته دَلارې سمې، او پریښې وه مونږه پدوئ دواړو باندې ثناء حسن په ورستو خلقو کښ |
| سَلٰمٌ عَلٰى مُوْسٰى وَهٰرُوْنَ ﴿۱۲۰﴾ اِنَّا كَذٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۱۲۱﴾ |
| هغه داچې سلام وی په موسی علیه السلام او په هارون علیه السلام باندې بیشکه مونږه دغه شان بدله ورکوؤ نیکي کونکوته. |
| اِنَّهُمَا مِنْ عِبَادِنَا الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۱۲۲﴾ |
| بیشکه دوئ وؤ دَبندګانو زمونږه مومنانو نه |

﴿وَلَقَدْ مَنَنَّا عَلٰى مُوسٰى وَهٰرُونَ﴾ دا دریمه قصه ذکر کیږي دَدې لپاره چې انبیاء کرام چې مقربین دي هغوئ په وخت دَمصیبت کښ دَالله ﷻ محتاج دي، او څوک چې محتاج وي هغه اله نشي کیدلې، او انبیاء کرام چې الهه نه دي نو نور مخلوق خو په طریقې اولی سره الهه نه دي، نو ثابته شوه چې (انّ الٰهکم لواحدٌ).

﴿وَلَقَدْ مَنَنَّا﴾ دَاحسان کولو نه مراد نبوت او نور دیني دنیوي منافع ورکول دي، چې داورته زمونږ دَطرفه په طور احسان ملاوؤ، ﴿وَنَجَّيْنٰهُمَا وَقَوْمَهُمَا﴾ دا احسان اجمالا ذکر نه بعد اوس د یو څو انعاماتو صراحتا ذکر کیږي. ﴿مِنَ الْكَرْبِ الْعَظِيْمِ﴾ دَغټ تکلیف نه مراد دَفرعون غلامي

او عبادت دي. یا او رنه غرق کیدل مراد دي. ﴿وَنَصَرْنٰهُمْ﴾ دا بل احسان دي. چې زمونږ د نصرت په سبب ورته په فرعونیانو غلبه میلاؤ شوه.

﴿وَاٰتَيْنٰهُمَا الْكِتٰبَ﴾ دا بل احسان دي. چې نبوت او کتاب یعني تورات مو ورته ورکړو. چې تورات دَهر څیز او دَهر حکم ښکاره کونکي وؤ. **سوال** کیږي چې تورات ورکړو نسبت موسی او هارون ﷺ دواړو ته اوشو حالانکه دا خو صرف موسی ﷺ له ورکړې شوې وؤ. **جواب** ئې دادې چې موسی ﷺ ته دَورکولو نسبت حقیقي دي، ځکه چې تورات په هغه نازل شوې دي. او هارون ﷺ چونکه دَموسی ﷺ سره معاون نبي وؤ. نو ځکه ده ته هم دَتورات ورکولو نسبت مجازا اوشو. ﴿الْمُسْتَبِيْنَ﴾ بیان نه دې، سین او تاء پکښې دپاره دَ مبالغې دی یعنی دَ الله ﷻ احکامات پکښې خه وضاحت سره موجود وو ﴿وَهَدَيْنٰهُمَا﴾ دا بل احسان ذکر دې چې په صراط مستقیم باندې مې قائم او ساتل.

| |
|---|
| وَاِنَّ اِلْيَاسَ لَمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ ۝ اِذْ قَالَ لِقَوْمِهٖٓ اَلَا تَتَّقُوْنَ ۝ اَتَدْعُوْنَ |
| او بیشکه الیاس ﷺ خامخا دَرسولانو نه وؤ. کله چې اویل ده خپل قوم ته آیا نه یریږئ تاسو (دَالله تعالی نه)، آیا عبادت کوئ تاسو |
| بَعْلًا وَّتَذَرُوْنَ اَحْسَنَ الْخٰلِقِيْنَ ۝ اللّٰهَ رَبَّكُمْ وَرَبَّ اٰبَآئِكُمُ الْاَوَّلِيْنَ ۝ |
| دبعل بُت، او پرېږدئ تاسو (عبادت) دَښائسته پیدا کونکي ذات، چې الله ﷻ دې رب ستاسو او رب دَپلارانو ستاسو پخوانو ، |
| فَكَذَّبُوْهُ فَاِنَّهُمْ لَمُحْضَرُوْنَ ۝ اِلَّا عِبَادَ اللّٰهِ الْمُخْلَصِيْنَ ۝ |
| نو دوئ د هغه تکذیب او کړو ، نو ځکه دوئ به خامخا حاضره ولې شي (جهنم ته)، مګر بندګان دَالله ﷻ چې مخلصین وؤ ، |
| وَتَرَكْنَا عَلَيْهِ فِي الْاٰخِرِيْنَ ۝ سَلٰمٌ عَلٰٓى اِلْ يَاسِيْنَ ۝ اِنَّا كَذٰلِكَ |
| او پرېښي وه- مونږ په ده باندې (ثناء حسن) په ورستنو کښې (هغه داچې) سلام دې په الیاس باندې، بیشکه مونږ دغه شان |
| نَجْزِي الْمُحْسِنِيْنَ ۝ اِنَّهٗ مِنْ عِبَادِنَا الْمُؤْمِنِيْنَ ۝ |
| بدله ورکوؤ نیکي کونکوته، بیشکه وؤ دې دَ بندګانو زمونږه مؤمنانو نه ، |

﴿وَإِنَّ إِلْيَاسَ لَمِنَ ٱلْمُرْسَلِينَ﴾ دا څلورمه قصه ده داهم په نفي د الوهية د غير الله باندې دلالت کوي، چې الياس ﷺ خپل قوم دَبت پرستئ نه منع کړل.صرف د الله ﷻ د عبادت دعوت ئې ورته ورکړو.

حضرت الياس ﷺ په باره کښې مستند معلومات صرف دومره دی چې دې هم د بني اسرائيلو يو مستقل نبي وو، دَنسل دَهارون ﷺ نه، بعلبک علاقې ته مبعوث شوې وو. چې هغوئ دَبعل بت عبادت کولو، نو ده هغوئ ته دَدې بت عبادت نه کولو او دَ توحيد منولو دعوت ورکړو، دينه علاوه چې نورې کومې خبرې د حضرت الياس ﷺ باره کښې راغلی دی نو هغه روايات يا موضوعی دی يا اسرائيلی دی چې اعتماد پرې نشی کيدلې.

﴿بَعْلًا﴾ بعل دَدوئ دَيو بُت نوم وو.

﴿وَتَذَرُونَ أَحْسَنَ ٱلْخَٰلِقِينَ﴾ ای: وتـذرون عبـادة احسـن الخـالقين. او ﴿أَحْسَنَ ٱلْخَٰلِقِينَ﴾ پمعنی دَ "احسن الصانعين" دې، ځکه چې په صفت دَخالقيت کښې دَ الله ﷻ سره ، څوک شريک نشته دې چې هغه معاذالله حسن شي باقی تفصيل ئې په څلورم جلد ص ۷۰۶ کښې تير دې،

**فائده** يَدَعُ او يَذَرُ دواړه فعله دَ پريخودلو په معنی کښې استعماليږی فرق پکښې دادې چې "يدع" قبل العلم پريخودلو ته وائی او "يذر" بعد العلم پريخودلو ته وائی، دې متعلق يو واقعه ده چې امام رازی ﷫ نه چاتپوس اوکړو چې داسې ولې اونه وئيلې شو چې اَتَدْعُوْنَ بَعْلاً وَتَدَعُوْنَ اَحْسَنَ الْخَالِقِيْنَ، دې سره خوبه کلام کښې زيات حسن راغلې وې او معنی مقصود به حاصل شوې وه، نو امام رازی ﷫ اوفرمائيل چې دوئ توحيدنه انکار ورستو دَ علم نه وو، نو ځکه تَذَرُوْنَ راوړې شو، او تَدَعُوْنَ هغه وخت روا وړې شی چې کله انکار اوترک مخکښې دَ علم نه وی. [اعراب القرآن وبيانه]

**نکته:** دلته نوم دَالله ذکر کولو په ځائې اَحْسَنَ الْخَالِقِيْنَ صفت راوړولو کښې لطيف اشاره د ده دهغوئ بې وقوف تيا اوکم عقلی ته، چې يو طرف ته بعل بت دې چې دوئ جوړ کړې دې خپله هغه هيڅ نشی کولې، اوبل طرف الله ﷻ دې چې دَ ټول جهان خالق دې، ټول جهان ورته محتاج او هغه مستغنی دې نو دوئ بې وقوف تياته اوګورئ چې جماد او محتاج "اله" ګرځوی اوخالق اومستغنی ذات ئې پريخيدې.

﴿اَللّٰهَ﴾ بدل دي د ﴿أَحْسَنَ الْخٰلِقِيْنَ﴾ نه ﴿ربكُمْ﴾ صفت دي يا بدل دي د ﴿اَللّٰه﴾ نه

﴿إِلَّا عِبَادَ اللّٰهِ الْمُخْلَصِيْنَ﴾ استثناء متصل ده د ضمير فاعل د فكذّبوه نه نو دلالت كوي پدې

چې په قوم دَده كښې مخلصين وو چې ايمان ئې پرې راوړلي وو. ﴿سَلٰمٌ عَلٰى إِلْ يَاسِيْنَ﴾ الياسين

يالغت دې په الياس كښې، لكه طورسنين لغت دې په طور سينا كښې يا جمع ده الياس ده

او مراد ورنه الياس ﷺ او دَهغه مخلصين اتباع دي.

| وَاِنَّ لُوْطًا لَّمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ ﴿١٣٣﴾ اِذْ نَجَّيْنٰهُ وَاَهْلَهٗۤ اَجْمَعِيْنَ ﴿١٣٤﴾ اِلَّا عَجُوْزًا |
|---|
| اوبيشكه لوط ﷺ وؤ خامخا د رسولانو نه، كله چې نجات وركړو مونږ ده ته او اهل دده ټولو ته، مگر يوه بوډۍ وه |
| فِى الْغٰبِرِيْنَ ﴿١٣٥﴾ ثُمَّ دَمَّرْنَا الْاٰخَرِيْنَ ﴿١٣٦﴾ وَاِنَّكُمْ لَتَمُرُّوْنَ عَلَيْهِمْ مُّصْبِحِيْنَ ﴿١٣٧﴾ |
| په پاتې كيدونكو كښې، بيا هلاك كړل مونږه نور خلق، او بيشكه تاسو اې اهل مكه تيريږئ په دوئ باندې د صباپه وخت كښې |
| وَبِالَّيْلِ ؕ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ﴿١٣٨﴾ |
| او دَ شپې آيا نو تاسو «دومره» عقل نه لرئ |

﴿وَاِنَّ لُوْطًا لَّمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ﴾ دا پنځمه واقعه ده لپاره دَنفي دَ اُلوهيت دَغير الله ذكر كيږي، ﴿اِذْ

نَجَّيْنٰهُ﴾ اذ متعلق دې فعل محذوف پورې چې هغه اذكر دې او دَ "المرسلين" سره نه دې متعلق چې

اشكال او كړې شي چې دينه خو معلوميږي چې لوط ﷺ خاص په وخت دنجات كښې ده

رسولانو نه وؤ. ﴿اِلَّا عَجُوْزًا﴾ مراد ورنه بي بي دَ لوط ﷺ ده، باقي تفصيل ئې تير شويدې،

﴿وَاِنَّكُمْ﴾ خطاب اهلِ مكې ته دې، چې تاسو دَ قوم لوط په كلي يعني سدوم باندې دَشام په

تجارتي سفر كښې هر وخت تيريږئ را تيريږئ نو دَهغوئ دَهلاكت نه عبرت واخلئ.

﴿مُّصْبِحِيْنَ، وَبِالَّيْلِ﴾ يا ورنه مراد دَسهر وخت او دَشپې وخت دې، او تخصيص ددې دواړو

وختونو ځكه او شو چې اهلِ مكې به دَگرمئ په وجه يا دَشپې سفر كولو يا سهر وختي، او بعضې

وائي چې شام طرف ته به تلل، نو سهر ته نيزدې وخت كښې به پدې علاقې تيريدل او چې واپس

به راتلل نو دَشپې به پرې تيريدل.

﴿أَفَلَا تَعْقِلُونَ﴾ يعني مشاهده ئې کوئ نو ولې نه پوهيږئ چې هسې نه ستاسو باندې هم دغه شان عذاب راشي، ځکه چې منشاء دعذاب قدرمشترک دی چې هغه مخالفت دی د رسول

| |
|---|
| وَإِنَّ يُونُسَ لَمِنَ الْمُرْسَلِينَ ۝ إِذْ أَبَقَ إِلَى الْفُلْكِ الْمَشْحُونِ ۝ فَسَاهَمَ |
| اوبيشکه يونس ﷺ وؤ خامخا د رسولانو نه،کله چې دې ونښتيدلو بيړئ ډکې ته.پس خسنړې ئې ووکړو. |
| فَكَانَ مِنَ الْمُدْحَضِينَ ۝ فَالْتَقَمَهُ الْحُوتُ وَهُوَ مُلِيمٌ ۝ فَلَوْلَا أَنَّهُ كَانَ |
| نو شو دې د خسنړې بيلونکو نه ، نوتيرکړو ده لره مهي اودې ملامته کونکې وو خپل ځان لره.پس که چرې نه وې دې |
| مِنَ الْمُسَبِّحِينَ ۝ لَلَبِثَ فِي بَطْنِهِ إِلَى يَوْمِ يُبْعَثُونَ ۝ فَنَبَذْنَاهُ |
| د تسبيح ويونکو نه . نو پروت به وو په خيټه دهغه مهي کښې ترورځې دقيامت پورې.پس اوغورځولونړه دی. |
| بِالْعَرَاءِ وَهُوَ سَقِيمٌ ۝ وَأَنْبَتْنَا عَلَيْهِ شَجَرَةً مِنْ يَقْطِينٍ ۝ وَأَرْسَلْنَاهُ إِلَى مِائَةِ أَلْفٍ |
| په ډاګه باندې اودې بيمار وؤ. اومونږه پيداکړه پده باندې يوه ونه دکدو.اواوليږلومونږدې يولاک خلقو ته. |
| أَوْ يَزِيدُونَ ۝ فَآمَنُوا فَمَتَّعْنَاهُمْ إِلَى حِينٍ ۝ |
| بلکه دې نه هم زياتوته،پس ايمان راوړو هغوئ نونفعه مووركړه هغوئ ته تريووخته پورې |

﴿وَإِنَّ يُونُسَ لَمِنَ الْمُرْسَلِينَ﴾ دا آخري شپږمه قصه ده،چې يونس ﷺ هم په وخت د تکليف کښې زمونږنه مدد اوغوښتلو ،مونږورته نجات ورکړو.

د يونس ﷺ او د ده د قوم واقعه په سورة يونس کښې تيره ده. ﴿إِذْ أَبَقَ﴾ اباق په اصل کښې د آقانه تختيدلو ته وائی،چونکه د حضرت يونس ﷺ اول ځل هجرت اګرچه باذن الله وؤ ، ليکن دويم ځل هجرت ئې پخپل اجتهاد سره وؤ (لکه په سورة يونس کښې تفصيل ذکر شويدې) او د الله ﷻ د طرفه صريحي اذن نه وؤ نوځکه ورنه تعبيرپه اباق سره شويدې، ﴿فَسَاهَمَ﴾ تختيدو نه بعد بحيره روم کنارې ته راغې اوهلته کشتئ کښې سور شو ،کله چې کشتئ درياب مينځ ته شوه نو په غرقيدو شوه،ملاح اوئيل چې تاسو کښې يوکس د خپل آقا اجازت نه بغير راغلې دې ، هغه دې خپل ځان ظاهرکړي؟چې مونږ ئې درياب ته اوغورزو نو ټول خلق به بچ شي،يونس ﷺ و . . . ئيل چې هغه څه يم کشتئ والؤ يونس ﷺ پيژندلو ،نوهغوئ ديته تيار نه

شو . بالآخر فیصله په دې اوشوه چې خسنړې به اچوو . نو دوی خسنړې واچولو . په دې سره استدلال شوی دی په مشروعیت دقرعې. ﴿فَكَانَ مِنَ ٱلۡمُدۡحَضِينَ﴾ اي المغلوبين "ادحاض" خوېدلو ته وائي اوناکامې او بیللو باندې هم اطلاق کیږي . او دلته ترینه دغه معنی مراد ده. یعنې دقرعې په ذریعه سره دَمغلوبینو نه اودبیلونکواو ګرځېدلو. دریې ځلې قرعه اوشوه او دریې ځله په یونس ﷺ رااوتله، نوده خپل ځان دریاب ته اوغورځولو . مقصود غرقول نه وو بلکه دلامبو په ذریعه ځان کنارې ته رسول وو . اوکیفیت دقرعې داوو چې دوی دهربو کس په نوم باندې قرعه جوړه کړه اودریاب ته ئې ټول خسنړې واچول او اونی ونیل چې دچا خسنړې په دریاب کښې ډوب نه شو نوهغه به دریاب ته غورځوو . اودچا چې ډوب شو نوهغه به بچ وي. ﴿فَٱلۡتَقَمَهُ ٱلۡحُوتُ﴾ دَلقمه نه دې یعنې مهي یولقمه کړواوتیرئې کړو. روایت دې چې کله یونس ﷺ دریاب ته دټوپ کولو اراده اوکړه نویولوئ مهي ئی اولیدلو سرئې اوچت کړې وؤاوده ته ئی خوله وازه کړې وه، نودې بل طرف ته لاړونو مهي وریسي هم بل طرف ته راغي حتّی چې دَبیړئ څلوروارو طرفونو ته دغه حال وؤنودې پوهه شو چې دا دالله ﷻ دطرفه امردې، نوچې ټوپ ئی کړونو اوبوته رسیدلو نه مخکښې هغه لقمه کړو (روح المعاني).

﴿وَهُوَ مُلِيمٞ﴾ یعنې خپل ځان ملامته کونکې وؤ، په دې لغزش باندې ملیم معنی ده (آت بمایُلام علیه) یعنی په خپل فعل باندې مستحق دَملامت وؤ .

﴿فَلَوۡلَآ أَنَّهُۥ كَانَ مِنَ ٱلۡمُسَبِّحِينَ﴾ بعض وائی دَمهي په ګیډه کښې تسبیح مراده اوکوم ذکرچې یونس ﷺ کولونو هغه "لااله الاّانتَ سبحانك انّي کنتُ من الظالمین" دې. چې دې دعاته دعاءالمطلوبين اودعاءالمضطرين وائی چې دَهرمشکل لرې کولودپاره مجربه دعاده. بعضِ وائی دَتکلیف نازلیدلو ته مخکښې تسبیح مراد ده لیکن عموم پکښې اولی دې.

﴿لَلَبِثَ فِي بَطۡنِهِۦٓ إِلَىٰ يَوۡمِ يُبۡعَثُونَ﴾ مطلب دادې چې دَمهي ګیډه به دَده لپاره قبرجوړشوې وؤ تر قیامته، بعض وائی چې مطلب دادې چې دَمهي په ګیډه کښې بهٔ ترقیامته ژوندې وؤ، نو مراد ئی مبالغه ده په طول کښې.

**فائده** اختلاف دي چې یونس ﷺ دَمهي په ګېډه کښ څومره وخت تېر کړې وو. دې باره کښ مختلف اقوال دي، بعض وائي یوه ورځ، بعض وائي درې ورځې. بعض وائي یوه جمعه بعض وائي لس (۱۰) ورځې، بعض وائي څلوېښت ورځې. صحیح مده نبي الله ﷺ نه معلومه ده

﴿فَنَبَذْنَٰهُ﴾ یعني څه موده ئې د مهي خېټه کښې ووبیا مونږ مهي ته حکم اوکړو نو هغه په خالي میدان کښ په غاړې دَدجلي اوغورځولو ﴿بِٱلْعَرَآءِ﴾ خالي میدان ته وائې چې ونې بوټي پکښ نه وي. ﴿سَقِيمٌ﴾ یعني بیمار وو او بیمارئ دلاسه ئې بدن دَ نسي نرم شوې وو لکه د هغه ماشوم په شان چې اوس پیدا شوې وي. ﴿وَأَنۢبَتْنَا عَلَيْهِ شَجَرَةً مِّن يَقْطِينٍ﴾ یقطین هغه ځیلې دارې اونې ته وائي چې تنه ئې نه وي، صرف ځیلې اوسورې ئې وي. دلته ورنه مراد داکثروپه نیزدکدو بوټې دې، په یونس ﷺ خورشوې وو. ځکه چې دیکښ ډیرې فائدې دې. سورې ئې یخ وي، پاڼې ئې غټې وي، اووائي چې مچان وغیره حشرات الارض وربانددې نه کیني، اویونس ﷺ دې تولو څیزونو ته ضرورت وو. دَ ﴿شَجَرَةً﴾ نه معلومیږي چې الله ﷻ خرق عادت به طور معجزه دکدوبوټي تنه دارجوړکړې ووورنه دکدو تنه نه وي، بعض وائي عرب هرهغه بوټي ته چې دَهغې جړې وي شجرة وائي، چې جړې ئې نه وي نو هغې ته نجم وائي، بعض وائي اونه دَبل څه وه او دکدو ځیلي وربانديې خورې شوې وې، اصح قول اولني دې، په روایاتو کښ داهم دي چې یوه ځنګلي بیزه به راتله اویونس ﷺ ته به ئې پئ ورکول تردې چې قوي شو (جلالین).

﴿وَأَرْسَلْنَٰهُ﴾ بعض مفسرینو دلته دارسال نه مراد ارسال اول اغستې دې او دا جمله عطف ده په وان یونس لمن المرسلین ځکه چې دلته دارسال نه بعد ایمان راوړلو ذکر دې چه فامنوا دا اول ارسال صورت کښ وو، دویم ارسال کښ قوم دده دَ راتلو نه مخکښ ایمان راوړې وو، لیکن اصح قول دادې چې دلته ارسال نه مراد اعاده ارسال ده یعنی مونږ دوباره خپل قوم ته اولیږو، او ایمان راوړلو نه مراد تجدید ایمان اونبي په لاس عهد او بیعت کول دي. ﴿أَوْ يَزِيدُونَ﴾ اَوْ په معنیٰ دَ بَلْ کښ دې یعني دَلاکهو نه څه پورته خلق وو، اودَتحقیق دَپاره دې چې دیکښ دَماقبل عدد تاکید مقصود دې، لکه څوک ستا نه تپوس اوکړي چې څومره روپئ دي درسره، نه ورته اووائي مائة الف او اکثرلاک یا دینه زیاتې، مقصد داوي چې کم ازکم لاک

روپئ دي كه زياتي نه وي نو كمې هم نه دي.نو دلته هم دا مطلب دی. حي هغه لاک خووږ، کچرته لاک نه زيات نه وو نو کم ترینه هم نه وو ﴿إِلَىٰ حِينٍ﴾ مرګ ترینه مراد دي

فَاسْتَفْتِهِمْ أَلِرَبِّكَ الْبَنَاتُ وَلَهُمُ الْبَنُونَ ۝ أَمْ خَلَقْنَا الْمَلَائِكَةَ إِنَاثًا وَهُمْ

بس تپوس وكړه دَدوئ نه.آيارب ستالره لونړه دي اودوئ لره خامن دي. آيا پيدا كړيدي موږ ملائكي ښځي اودوئ

شَاهِدُونَ ۝ أَلَا إِنَّهُم مِّنْ إِفْكِهِمْ لَيَقُولُونَ ۝ وَلَدَ اللَّهُ وَإِنَّهُمْ

حاضروؤ په هغه موقع، خبردار! بيشكه دوئ له دروغوخپلونه داسي وائي چي اولاد دي دالله ﷻ اوسنكه دوئ

لَكَاذِبُونَ ۝ أَصْطَفَى الْبَنَاتِ عَلَى الْبَنِينَ ۝ مَا لَكُمْ كَيْفَ تَحْكُمُونَ ۝

يقينا دروغ ژن دي، آيا غوره كړيدي الله ﷻ لونړه په خامنو باندې. څه شويدي تاسولره،څنګه فيصلي كوئ تاسو.

أَفَلَا تَذَكَّرُونَ ۝ أَمْ لَكُمْ سُلْطَانٌ مُّبِينٌ ۝ فَأْتُوا بِكِتَابِكُمْ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ ۝

آيانونصيحت نه اخلئ تاسو.يا شته دي تاسودپاره دليل ښكاره.نوراورئ كتاب خپل كچري يئ تاسو رښتني.

وَجَعَلُوا بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْجِنَّةِ نَسَبًا ۚ وَلَقَدْ عَلِمَتِ الْجِنَّةُ إِنَّهُمْ

اودوئ ګرځولي دي په مينځ دالله ﷻ كښ اوپه مينځ دپيريانوكښ نسب،اويقيناپوهه دي پيريان چي بيشكه دوئ به

لَمُحْضَرُونَ ۝ سُبْحَانَ اللَّهِ عَمَّا يَصِفُونَ ۝ إِلَّا عِبَادَ اللَّهِ الْمُخْلَصِينَ ۝

خامخاحاضرولي شي.پاكي ده الله ﷻ لره دهغې نه چي دوئ ئې بيانوي، مګربندګان دالله ﷻ چي مخلصين دي.

فَإِنَّكُمْ وَمَا تَعْبُدُونَ ۝ مَا أَنتُمْ عَلَيْهِ بِفَاتِنِينَ ۝ إِلَّا

پس بيشكه تاسواوهغه چي تاسوئې عبادت كوئ،نه شئ تاسوپدې باندې ګمراه كونكي چاڵره،مګر

مَنْ هُوَ صَالِ الْجَحِيمِ ۝

هغه څوک چي داخليدونكي وي جهنم ته،

﴿فَاسْتَفْتِهِمْ أَلِرَبِّكَ الْبَنَاتُ﴾ د ملائكو او جناتو احوال ابتدا دَسورت كښ بيان شوي وؤ اوس بيا دَ دوئ احوالو اعاده ده اودَدوئ متعلق دمشركانودَ دوو غلطو عقيدو رد دي.

(۱)**اوله عقیده** دا چې ملائک دَ الله ﷻ لونړه دی دوئ دې عقیدې کښې درې خبرې دکفر کوئ

۱- تجسیم یعنی الله ﷻ له جسم ثابتول ځکه چې توالد تناسل داجسامو خواص او احوال دی.

۲- دَ اخس نسبت الله ﷻ ته کول او افضل نسبت ځان کول

۳- ملائکو توهین چې هغوئي په انوثت سره متصف کوی او خپله دیو مونث پلار، جوړيدو باندې هم عار محسوس وی.

(۲)**دویمه عقیده** دا چې الله ﷻ جناتو سردارانو لونړو سره نکاح کړې دې او هغې نه ملائک پیدا شوې دي، نو دې عقیدې مطابق دوئ دَ الله ﷻ ملائکو سره نسبي او جناتو سره صهري یعني دَسخرګنئ تعلق قائم کړو

﴿فَٱسۡتَفۡتِهِمۡ﴾دا دهغوئ اولې عقیدې رد دې او زجر دې مشرکانو ته.او استفهام دلته تعجبی اوانکاری دې، یعنی عجیبه خبره ده چې ځان له لونړه نه خوخوئ او الله ﷻ له ددې اثبات کوئ؟نو الله ﷻ دې فاسدې عقیدې باندې ددوئ نه درې قسمه دلائل طلب کوی:(۱)مشاهده (۲)عقلی دلیل(۳)نقلی دلیل

﴿أَمۡ خَلَقۡنَا ٱلۡمَلَٰٓئِكَةَ إِنَٰثٗا﴾دیکښې د مشاهدې مطالبه ده ،چې دداسې خبروپته خو په مشاهدې سره لګی نو آیا کله چې مونږ ملائک پیداکول نو دوئ هغه موقع باندې حاضر وؤ.

﴿أَلَآ إِنَّهُم مِّنۡ إِفۡكِهِمۡ﴾دیکښې نفی دَ مشاهدې ده،یعنی مشاهده هیڅ نشته بلکه څنګه ددوئ نورې خبرې دورغ دی دهغه شان داخبره ئې هم په دروغو باندې مبنی ده

﴿أَصۡطَفَى ٱلۡبَنَاتِ﴾عقلی دلیل مطالبه ده یعنی څه عقلی توجیه خوددې عقیدې پیش کړئ عقلی اعتبار سره هم ډیر کمزورې خبره ده. چې دومره لوئ عظمت اوقدرت والاذات دې دَخپل ځان دپاره لونړه غوره کړي، چې دَمشرکانو دَخیال مطابق هغه دَشرم څیزدې، ﴿مالکم کیف تحکمون﴾یعنی څومره بې بنیاده فیصله خوده.﴿ افلا تذکرون﴾نو دومره هم سوچ نه کوئ اوعقل نه لرې خبرې کوئ﴿أَمۡ لَكُمۡ سُلۡطَٰنٞ مُّبِينٞ ﴾داد دلیل نقلي مطالبه ده.

﴿وَجَعَلُواْ بَيۡنَهُۥ وَبَيۡنَ ٱلۡجِنَّةِ نَسَبٗا﴾دیکښې د مشرکینو دویمې فاسدې عقیدې ذکر دې،روایاتو کښې راځی چې کله کفار مکه دا اوئیل چې ملائک دَ الله ﷻ لونړه دی نو حضرت ابوبکر

صديق ﷺ ترینه تپوس اوکړو چې ملائک د الله ﷻ لونړه دی نو بیا د دوئ میندئ څوک شوې؟ نو دوئ ورته اوئیل د جناتو سرداراني ښځې

**سوال:** دلته دا اشکال کیږی چې مشرکین خو د جناتو الله ﷻ سره صهری تعلق قائل وؤ نسبی تعلق ئی نه وؤ قائم کړې، هغه خوئی صرف فرشتو سره قائم کړې وؤ نو بیا ولې نَسَبًا اووئیلې شو؟

**جواب:** مفسرینو ترینه مختلف جوابونه کړی دی:

(۱) یو دا چې الجن نه مراد دلته جنات نه دی بلکه ملائک دی .اوجن اطلاق په ملائکو صحیح دې.ځکه چې دا خفا اوپټ والې معنی ورکوی او ملائک هم زمونږ د سترګو نه پټ دی (جلالین)

(۲) ځنې مفسرین فرمائی چې الجن نه مراد جنات دی او "نَسَبًا" ځکه اوئیلی شو چې بعض زنادقوو دا عقیده وه نعوذ بالله چې الله ﷻ او ابلیس رونړه دی نو دې اعتبار سره ئی دا الله ﷻ جناتو سره تعلق پیدا کولو.

(۳) صحیح جواب دادې چې "الجن" نه مراد جنات دی او "نَسَبًا" نه مراد مطلق تعلق دې خواه که هغه صهری وی یانسبی

﴿وَلَقَدْ عَلِمَتِ الْجِنَّةُ﴾ دې کښې د دوئ مذکورې فاسدې عقیدې رد دې، یعنی جنات د دې قائل او هغوئ ته پته ده چې الله ﷻ به دوئ (بحیثیت جنس) جهنم ته بوځی، کچرته د دوئ الله ﷻ سره څه خپلولی وې او یا دوئ آلهه او شفیع قهری وې نو هیڅ څوک به ترینه جهنم ته نه تللې،

﴿إِلَّا عِبَادَ اللَّهِ الْمُخْلَصِينَ﴾ استثناء منقطع ده، د ﴿لَمُحْضَرُونَ﴾ نه، ای ولکن المخلصين ناجون، یعنی ځمانیکان بندګان هغه به جهنم نه په امن کښې وی ، یا د ضمیر د ﴿يَصِفُونَ﴾ نه، ای فهم بريئون من ان يصفوه تعالى بذلك یعني مخلصان مؤمنان د دغه نسبت کولو نه منزه دي

﴿فَإِنَّكُمْ وَمَا تَعْبُدُونَ﴾ دا زجر دې مشرکینو ته ،دیکښې التفات دې غائب نه خطاب ته ،او د مشرکانو آلهوؤ عجز ذکر دې، یعنی که تاسو شئ او ستاسو سره ستا سو آلهه هم شی نو بیا هم تاسو څوک د الله ﷻ دعبادت نه نشئ اړولې، سوی دهغه کس نه چې هغه مخکښې نه په علم د الله ﷻ کښې ګمراه وی نو هغه خپل ملګرې کړئ.

﴿وَمَآ أَنتُمْ عَلَيْهِ﴾ عليه: (١) ضميريار اجع دې الله ﷻ ته. جار مجرور متعلق دې ﴿بفتنين﴾ پورې. باء پکښې زائده ده. يعني تاسو او ستاسو معبودان باطله دالله باره کښې څوک گمراه کولې نه شئ. بغير د جهنم ته داخليدونکو نه (٢) بعض وائي ضمير راجع دې ﴿وما تعبدون﴾ ته او على پمعنى د باء سببيه دې، يعني اگر که تاسو پخپلې بت پرستئ سره خلق گمراه کوئ ليکن گمراه کيږي به درسره صرف هغه چې جهنم ته داخليدونکي دي ﴿صَالِ﴾ صيغه واحد د اسم فاعل ده اصل کښې صالِ وو. تنوين د اضافت دوجهې نه غورځيدلې دي

| وَمَا مِنَّآ إِلَّا لَهُ مَقَامٌ مَّعْلُومٌ ﴿١٦٤﴾ وَإِنَّا لَنَحْنُ |
|---|
| اونيشته په مونږه کښې هيڅ څوک مگر دهغه دپاره ځائ معلوم دې اوبيشکه مونږه خامخا |
| الصَّآفُّونَ ﴿١٦٥﴾ وَإِنَّا لَنَحْنُ الْمُسَبِّحُونَ ﴿١٦٦﴾ وَإِن كَانُوا لَيَقُولُونَ ﴿١٦٧﴾ |
| صفونه تړونکي يو(الله ﷻ ته) اوبيشکه مونږه خامخاتسبيح وئيونکي يو. اوپه تحقيق سره دي کافرانو به وئيل |
| لَوْ أَنَّ عِندَنَا ذِكْرًا مِّنَ الْأَوَّلِينَ ﴿١٦٨﴾ لَكُنَّا عِبَادَ اللَّهِ الْمُخْلَصِينَ ﴿١٦٩﴾ |
| کچرې وې زمونږسره نصيحت(کتاب)په شان مخکنوخلقو.نوخامخابه وؤمونږه بندگان د الله ﷻ مخلصين. |
| فَكَفَرُوا بِهِ فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ ﴿١٧٠﴾ وَلَقَدْ سَبَقَتْ كَلِمَتُنَا |
| نوکفر(انکار)وکړودوئ په کتاب(قرآن)نوزرده چې دوئ به پوهه شي اوخامخاپه تحقيق سره شويدې حکم زمونږه |
| لِعِبَادِنَا الْمُرْسَلِينَ ﴿١٧١﴾ إِنَّهُمْ لَهُمُ الْمَنصُورُونَ ﴿١٧٢﴾ وَإِنَّ جُندَنَا |
| په حق د بندگانوزمونږکښې چې رسولان دي، چې بيشکه د دوئ به خامخا مددکوليشي اوبيشکه لښکرې زمونږه |
| لَهُمُ الْغَالِبُونَ ﴿١٧٣﴾ |
| خامخادوئ به غالبې وي، |

﴿وَمَا مِنَّآ إِلَّا لَهُ﴾ دا دريم خل دفرشتو د حال اعاده ده او دينه مخکښې يقولون مقدر دې، چې فرشتې پخپله د خپل عبديت، اعتراف کوي چې مونږکښې دهري يوې فرشتو لپاره عندالله په اسمان کښې مکانِ مخصوص دې چې عبادت د الله ﷻ پکښې کوؤ، مونږکښې هيڅ څوک هم

دا طاقت نه لري چې دالله ﷻ دا حکامونه دېوې زرې برابرېه اندازه هم تېر وزاو کړي او هر یو د الله ﷻ تسبیح بیانوي چې الله ﷻ دولد او شریک نه پاک دی مقامٌ مَّعْلُومٌ ﴾ نه مراد دعبادت دپاره معلوم مقام دې. حضرت عائشه ﷺ فرمائی چې حضور ﷺ فرمائی چې په آسمان کښې دېو قدم اندازې برابر ځائ نشته دې مګر چې هلته فرشتې وي سجده کوي یا قیام کوي. او دا مطلب دې دقول دملائکو چې ﴿وَمَا مِنَّآ إِلَّا لَهُۥ مَقَامٌ مَّعْلُومٌ﴾ روح بعض وائی د ﴿مَقَامٌ مَّعْلُومٌ﴾ نه مراد په قرب او مشاهده کښې دې، یعني هرې فرشتې دپاره په قربت او مشاهده کښې خاص ځائ مقرر دې چې دَدغه حدنه وړاندې کېدلې نه شي.

﴿وَإِنَّا لَنَحْنُ ٱلصَّآفُّونَ﴾ یعنې دالله ﷻ دعبادت او داداء طاعت لپاره په صفونو کښې ولاړ یو. یا حول العرش صف تړونکي یو دامر الهي دانتظار لپاره. یا په هوا کښې وزرې خورونکي یو، چې کوم امرراته کیږي دهغې پوره کولو لپاره. ﴿وَإِنَّا لَنَحْنُ ٱلْمُسَبِّحُونَ﴾ یعني دالله ﷻ پاکي بیانونکي یو دهغه عیبونو نه چې کافران ئی ورته نسبت کوي.

﴿وَإِن كَانُوا۟ لَيَقُولُونَ﴾ دا شکوه مع تخویف دنیوي دې. چې مشرکانو به قبل دبعثت دحضور ﷺ نه داوئیل چې کچرته مونږ سره هم دیهودونصارئ وپه شان کتاب وې نو مونږ به دهغې په احکاماتو عمل کولو او دالله ﷻ مخلصان بندګان به وو. لیکن کله قرآن نازل شونو دوئ ورنه انکار او کړو. نو دوئ ته به دځپل انکار بد انجام معلوم شي. ﴿ذِكْرًا﴾ نه مراد کتاب دې. ﴿مِّنَ ٱلْأَوَّلِينَ﴾ ای مثل کتب الاولین او من جنس کتبهم یعنی بعینه سابقو کتابوتو تمنا به ئی نه کوله بلکه دهغې په شان او دهغې کتابونو هم جنس کتاب چې منزل من الله وی هغې تمنا به ئی کوله او "اولین" نه مراد یهود نصارئ دي،

﴿وَلَقَدْ سَبَقَتْ كَلِمَتُنَا﴾ دا بشارت دنیوي دې او دانبیاؤ دحال اعاده ده چې دانبیاؤ باره کښې زمونږ دا فیصله او وعده صادره شویده چې دمنکرینو په مقابل کښې به ددوئ مدد او معاونت کیږي او لښکر زمونږ به غالب وي ﴿إِنَّهُمْ لَهُمُ ٱلْمَنصُورُونَ﴾ دا تفسیر دې د ﴿كَلِمَتُنَا﴾.

﴿وَإِنَّ جُندَنَا﴾ مراد ورنه اتباع درسولانو دي، یا ورنه مراد انبیاء دي نو تعمیم بعد التخصیص دي لپاره دتاکید ﴿لَهُمُ ٱلْغَٰلِبُونَ﴾ غلبې نه مراد غلبه ده په حجت او دلیل کښې، یا ورنه په جنګ کښې نصرت او غلبه مراد ده، یا ورنه اخروی غلبه مراد ده چه هغه لویه کامیابی ده.

**سوال**: ليکن که څوك اشکال اوکړي چې بعض انبياؤته خو غلبه نه وه حاصله لکه نوح عليه السلام فرمائي: ربّ اني مغلوب فانتصر. دغه رنګه بعض انبياء قتل شوي وو.

**جواب**: ددې مختلف جوابونه شوي دي: (۱) دا دې چې دبعض انبياؤسره اګرکه په دنيا کښې نصرت نه وؤشوې غلبه ورته نه وه ميلاوه شوې ليکن دوئ به غالب وي په آخرت کښې نودنصرت وعده حقه ده دنيوي غلبه وي که اخروي (۲) بعض انبياء اګرکه پخپله نه وؤغالبه شوي ليکن ددوئ اتباع غالبه شوي وؤنوداتباعوغلبه ددوئ غلبه ده (۳) بعض وائي دواړه وعدې په اعتبارداغلب دي (۴) حضرت حسن بصري رحمه الله نه مروی دی چې رسل نه مراد اصحاب الشرائع دی، يعنی دا آيت شو، دهغه شان انا لننصر رسلنا شو او كتب الله لاغلبن انا و رسلي شو، ديکښې مراد هغه رسولان دی چې هغوئ ته مستقل شريعت ورکړې شوې وؤ غلبې نه مراد انجام او مآل اعتبار سره غلبه ده، نو اصحاب الشرائع رسولانو کښې څوک هم نه دي قتل شوي.

| |
|---|
| فَتَوَلَّ عَنْهُمْ حَتّٰى حِيْنٍ ﴿١٧٤﴾ وَّاَبْصِرْهُمْ فَسَوْفَ يُبْصِرُوْنَ ﴿١٧٥﴾ اَفَبِعَذَابِنَا |
| پس مخ واړه وه ته ددوئ نه تريووخت پورې اوګوره دوئ ته نو زردې چې اوبه ويني دوئ انجام خپل، آياپه عذاب زمونږبيلندې |
| يَسْتَعْجِلُوْنَ ﴿١٧٦﴾ فَاِذَا نَزَلَ بِسَاحَتِهِمْ فَسَآءَ صَبَاحُ الْمُنْذَرِيْنَ ﴿١٧٧﴾ وَتَوَلَّ عَنْهُمْ |
| تادې جلدې کوي، نوکله چې نازل شي عذاب په غولي ددوئ کښې نوډيربدبه وي سحر ديره ولوشوؤ، اومخ واړه وه ته ددوئ نه |
| حَتّٰى حِيْنٍ ﴿١٧٨﴾ وَّاَبْصِرْ فَسَوْفَ يُبْصِرُوْنَ ﴿١٧٩﴾ سُبْحٰنَ رَبِّكَ رَبِّ الْعِزَّةِ عَمَّا |
| تريووخته پورې، اواوګوره زردې چې اوبه ويني دوئ انجام خپل، پاکي ده رب ستالره چې رب دعزت دې دهغې نه |
| يَصِفُوْنَ ﴿١٨٠﴾ وَسَلٰمٌ عَلَى الْمُرْسَلِيْنَ ﴿١٨١﴾ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿١٨٢﴾ |
| چې دوئ ئې بيانوي اوسلام دې په رسولانواوټول صفتونه د الوهيت الله تعالى لره دي چې رب دعالمينودې |

﴿فَتَوَلَّ عَنْهُمْ حَتّٰى حِيْنٍ﴾ يعنی ستا مدد به ضرور کيږي خوته لګ وخت پورې صبر کوه، حين نه مراد دقتال حکم راتلو وخت دې، يا غزوه بدر مراد ده، او ياترينه مرګ ورځ يا قيامت ورځ مراد ده.

﴿وَأَبْصِرْهُمْ﴾یعني تماشه ئې کوه چې کله وربانديې عذاب راشي چې څومره بدحال به ئې وي، ﴿فَسَوْفَ يُبْصِرُونَ﴾یعني دوئ به هم ستانصرت اوتائید الهي اووینې

﴿أَفَبِعَذَابِنَا يَسْتَعْجِلُونَ﴾کله به چې دَ مسلمانانو دَ نصرت او غلبې او په کفارو دَعذاب آیاتونه نازل شو نو مشرکانو به مسلمانانو ته وئیل چې تاسو نصرت او فتح به کله راځي زرکوئ، (کما في قوله تعالی ویقولون متی هذا الفتح ،ویقولون متی هـذا الوعد) دلته هم چې کله مخکښې آیاتونو کښې دَمؤمنانو دَغلبې اوپه کفارو دعذاب ذکر راغې نو مشرکانو دامطالبه اوکړه نو الله ﷻ ورته فرمائي چې عجیبه خبره ده پکار خوداده چې دوئ ترینه یریدلې تیارۍ ئې ورله کولې او پناه ئې ترینه غوختلې لیکن دوئ دې برعکس هغه ضد وعناد باندې قائم دی او هغه عذاب په تادئ سره غواړي.

﴿فَإِذَا نَزَلَ بِسَاحَتِهِمْ﴾ دا تمثیل دې د دوئ حالت دهغه قوم سره چې هغوئ باندې دشمن حملې اراده اوکړي او یو یرونکې راشي او دوئ ته ددې خطرې خبرورکړي چې باصباحاه یاصباحاه خو دوئ دَهغه خبرې له هیڅ اهمیت ورنکړي بلکه توقې ورپورې شروع کړي، پدیکښې اچانک دشمن لښکر راشي او دوئ دکلي او غولي ته رادننده شي،هغه وخت ددوئ سترګې کلاؤ شي خو بیا هیڅ نشي کولې نه ئې مقابله کولې شي او نه ترینه تختیدې شي نو هغوئ دوئ روانیسي اوقتل ئې کړي ،او کلې ورله کنډې کپر واچوي.دهغه شان دوئ هم دی نبی کریم ﷺ دَ الله ﷻ عذاب نه یروی دوئ ورپورې استهزا کوی،خو چې کله دَ الله ﷻ عذاب راشي نو بیابه ئې ډیر بدحال وی.﴿فَسَاءَ صَبَاحُ الْمُنذَرِينَ﴾مراد ورنه مطلق وخت دَنزول دَعذاب دې،چې کوم وخت هم وي،نودَ﴿فَسَاءَ صَبَاحُ﴾معنی ده فساء وقتهم،تخصیص دَصباح ځکه اوشوچې اعم اغلب عذاب په وخت دَصباکښې وي(روح)

﴿وَتَوَلَّ عَنْهُمْ﴾تکراریادپاره دَتاکیددې،یااول نه مراددنیوي عذاب دې اودینه مراداخروي عذاب دې

﴿سُبْحَانَ رَبِّكَ رَبِّ الْعِزَّةِ﴾دا په آخرکښې دَتول سورة دَمضامینوخلاصه ده،سبحان کښې صفات تنزیهه وؤ طرف ته اشاره ده، چې الله ﷻ هغه ذات دې چې دَهرقسمه عیب اونقص نه پاك دې، ﴿رَبِّ الْعِزَّةِ﴾ بدل دې دَ﴿رَبِّكَ﴾نه، اي صاحب العزة او دې صفت راوړلو کښې اشاره ده دې

طرف ته چې خصوصیت سره دې عیب نه پاک دې چې کافرانو په مقابله کښې خپل ملګري بې یار ومدد ګار پریګدي بلکه صاحب عزت دې ضرور به غلبه ورکوي

﴿وَسَلَٰمٌ عَلَى ٱلْمُرْسَلِينَ﴾ دا دانبیاؤ دحال اعاده ده، چې الله ﷻ خپل رسولان د شرك نه سالمه ساتلي دي، پدوئ سلامتیاده دهر تکلیف نه

﴿وَٱلْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ﴾ دیکښې صفات کمالیه طرف ته اشاره ده دعوه دتوحید ده چې څرنګه الله ﷻ په صفاتو سلبیؤ سره متصف دي نودغه شان په صفاتو ثبوتیؤ سره هم متصف دي

په احادیثو کښې ددې آخري درې آیاتونو ډیر فضائل راغلي دي. یوروایت کښې دي چې حضور ﷺ به دمونځ نه ورستو دغه آیاتونه لوستل، یوروایت کښې دي چې څوك دا غواړي اوپدې خوشحالیږي چې دقیامت په ورځ هغه ته پوره پیمانه باندې اجراوثواب میلاؤشي نوهغه دې دخپل هرمجلس په اختتام کښې دغه درې آیاتونه اووائي

ددې اجرپه امید به مونږهم ددې سورة تفسیراختتام په دې آیاتونو سره اوکړو سبحٰن ربك ربّ العزة عمّا یصفون وسلام على المرسلین والحمدلله ربّ العالمین

| رکوعاتها (۵) | سورة ص مكية | آياتها (۸۸) |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بېحده مهربان او ډېر رحم کونکي دی شروع کوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۳۸) وحسب النزول (۳۸)**

نزلت بعدالقمروقبل الاعراف.

**ربط:** ماقبل سورة کښ نفي دَشفاعت قهري اوشوه ،دې سورة کښ دغه مسئله على سبيل الترقي بيانيږي چې دَ کائنات تولونه عظيمې هستئ انبياء کرام دی.هغوئ باندې تکليفونه اوازمائشونه راغلی دی دَدينه معلوميږی چې هغوئ معبودان اوشفيع قهری نشی کيدې نو چې هغوئ نشی کيدې نو نور څوک په طريقه اولی نشی کيدې.

**دعوه دَ سورت:** قُلْ إِنَّمَآ أَنَا۠ مُنذِرٌ ۖ وَمَا مِنْ إِلَـٰهٍ إِلَّا ٱللَّهُ ٱلْوَٰحِدُ ٱلْقَهَّارُ ﴿٦٥﴾

**اجمالي خلاصه:** اول کښ تمهيد دې،دوه تخويف دنيويه دې.دوه اخرويه،دوه شکوي دې دمشرکانونه،دوه زجرونه،تسلي ده حضورﷺته،(۵)پنځه دلائل نقليه دې په توحيد .يودليل عقلي دې،يودليل وحي دې، درميان کښ دَدلائلونه ورستودعوه دَسورة ده به طورثمره،اوپه آخرکښ دَملائکو اوجناتوحال.

**تفصيلي خلاصه:** اول دوه ايتونو کښ تمهيد دې .

پنځه دلائل نقليه ذکر کيږی په دعوی باندې:

﴿وَٱذْكُرْ عَبْدَنَا دَاوُۥدَ﴾ اول دليل نقلی دې، ﴿وَوَهَبْنَا لِدَاوُۥدَ سُلَيْمَـٰنَ﴾دويم دليل نقلی دې

﴿وَٱذْكُرْ عَبْدَنَآ أَيُّوبَ﴾دريم دليل نقلی دې، ﴿وَٱذْكُرْ عِبَـٰدَنَآ إِبْرَٰهِيمَ﴾ څلورم دليل نقلی

﴿وَٱذْكُرْ إِسْمَـٰعِيلَ﴾ پنځم دليل نقلی دې،

﴿مَا خَلَقْنَا ٱلسَّمَآءَ وَٱلْأَرْضَ﴾دليل عقلي دې، او ﴿كِتَـٰبٌ أَنزَلْنَـٰهُ إِلَيْكَ﴾ دليل وحی دې

څلور تخويفات ذکر کيږی:

﴿كَمْ أَهْلَكْنَا مِن قَبْلِهِم مِّن قَرْنٍ﴾ (آيت نمبر۳) اول تخويف دې

﴿كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوحٍ﴾(آيت نمبر ۱۲)دويم تخويف دې

﴿فَوَيْلٌ لِّلَّذِينَ كَفَرُوا مِنَ النَّارِ﴾ ،آیت نمبر ۲۷ دریم تخویف

﴿وَإِنَّ لِلطَّاغِينَ لَشَرَّ مَآبٍ﴾ ،آیت نمبر ۵۵،څلورم تخویف دي

دوه شکوې ذکر کیږي:

(۱) ﴿وَعَجِبُوا أَن جَاءَهُم مُّنذِرٌ مِّنْهُمْ﴾ (آیت نمبر ۴) (۲) ﴿وَقَالُوا رَبَّنَا عَجِّل لَّنَا﴾ آیت نمبر ۱۶

یو بشارت ذکر کیږي ﴿وَإِنَّ لِلْمُتَّقِينَ لَحُسْنَ مَآبٍ﴾ ،آیت نمبر ۴۹

درې آداب د تبلیغ ذکر کیږي:

(۱) صبر نه کار اخله او دلائلو سره خبره کوه اَصْبِرْ عَلَىٰ مَا يَقُولُونَ

(۲) اجرت مه غواړه قُلْ مَآ أَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ

(۳) تصنع او تکلف پریګدئ وَمَآ أَنَا۠ مِنَ ٱلْمُتَكَلِّفِينَ

آخر کښې ملائکو او جناتو احوال بیانیږي (آیت ۷۱) او آخري درې آیاتونه دَ سورت خاتمه ده چې دیکښې دَ سورت ابتدا والا مضمون ذکر دي

| صٓ وَالْقُرْاٰنِ ذِی الذِّكْرِ ۝ بَلِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا فِيْ عِزَّةٍ وَّشِقَاقٍ ۝ |
|---|
| الله ﷻ پوهیږي په مراد خپل دَدینه، قسم دې په قرآن چه خاوند دَ نصیحت دې. بلکه کافران په تکبر او په ضد کښې دي |
| كَمْ اَهْلَكْنَا مِنْ قَبْلِهِمْ مِّنْ قَرْنٍ فَنَادَوْا وَّلَاتَ حِيْنَ مَنَاصٍ ۝ |
| ډیر هلاک کړیدي مونږ مخکښې دَدوئ نه ډلې دکافرانو، نوچغې ئې وهلې اونه وو دغه وخت دَ خلاصیدو |

﴿صٓ﴾ ، دا دَ مقطعاتو قرآنیؤونه دي، چې تفصیل ئې دَ سورة بقره وغیره په ابتداء کښې تیر دي، راجح قول دا دې چې دا دَ پاره دَ تحدي دې چې دا قرآن هم دې رائجو او معروفو حروفو نه جوړ دې خو بیا هم تاسو داسې کتاب نشئ پیش کولې، بعضِ وائی چې دَدې معنی ده صدق الله یا صدق محمد بعضِ وائي چې اسم دَ الله ﷻ صمد طرف ته اشاره ده، بعضِ وائی پدې کښې حضور ﷺ ته دَ صبر تلقین دې، دینه علاوه نورې هم معنې ئې بیان شویدي.

﴿وَالْقُرْءَانِ﴾ واؤ قسمیه دې، قسم برائ استشهاد دې، غوره قول دا دې چې جواب قسم ئې محذوف دې چې هغې باندې ابتدا دَ سورت یعني صٓ دلالت کوي، څکه دا دَ پاره د تحدي

وَعَجِبُوٓا أَن جَآءَهُم مُّنذِرٌ مِّنْهُمْ وَقَالَ ٱلْكَٰفِرُونَ هَٰذَا سَٰحِرٌ

اوتعجب اوکړو دوئ دَدې نه چې راغې دوئ ته يره ونکې پيغمبر د دوئ د جنس نه. او وائی کافران چې دا پيغمبر ساحر دې

كَذَّابٌ ۝ أَجَعَلَ ٱلْـَٔالِهَةَ إِلَٰهًا وَٰحِدًا ۖ إِنَّ هَٰذَا لَشَىْءٌ عُجَابٌ ۝ وَٱنطَلَقَ ٱلْمَلَأُ

ډير دروغژن دې آيا وګرځول ده دا ټول خدايان .خداي يو .بيشکه دا خامخا يو قصه عجيبه ده. او روانه سوه ډله دمشرانو

مِنْهُمْ أَنِ ٱمْشُوا۟ وَٱصْبِرُوا۟ عَلَىٰٓ ءَالِهَتِكُمْ ۖ إِنَّ هَٰذَا

ددوئ نه ويل ئې يوبل ته چې ځئ ددې پيغمبرنه او کلك شئ په عبادت دمعبودانو خپلو .بيشکه دا توحيد

لَشَىْءٌ يُرَادُ ۝

خامخا يو څيزدې چې اراده کړې شويدې.

﴿وَعَجِبُوٓا أَن جَآءَهُم﴾ دا دَ کافرانو ضد او عناد باندې مبني څو اعتراضات په طور شکوې ذکر کيږي او دائې اول اعتراض دې چې کچرته دا پيغمبر فرشته وې .او دَ عالم بالا خبرې ئې کولې نو بيا خودَده خبره منلواو په ده ايمان راوړلو څه وجه وه .دې خو زمونږ جنس نه دې او راپاسدلې دې مونږ ته دَ آسمانونو خبرې کوي او دَالله عذاب نه مونږ يروي. خلاصه ددې اعتراض دا ده چې نبي بشر نشي کيدې ﴿وَعَجِبُوٓا﴾تعجب انکاري دې﴿وَقَالَ ٱلْكَٰفِرُونَ﴾ قالوا ويل پکار وو ،څکه چې محل د اسم ضمير دې خو اسم ظاهر الکافرون راوړلو کښې دَ دوئ دې وينا علت او باعث طرف ته اشاره ده ﴿هَٰذَا سَٰحِرٌ﴾ يعني ساحر دې دخپل الفاظو په جادو خلق څان سره کوي ﴿كَذَّابٌ﴾ دې په هغه څه کښې چې الله ﷻ ته ئې نسبت کوي

﴿أَجَعَلَ ٱلْـَٔالِهَةَ﴾ آلهة مفعول اول دې او﴿إِلَٰهًا وَٰحِدًا﴾مفعول ثاني دې،دائې دويم اشکال دې يعني بله ئې واورئ چې اله هم يو دې،دا څنګه کيدې شي چې دومره لوئ عالم وي ، دهغې مختلفې شعبې وي، شپه او ورځ راوستو شعبه ده ، صحت او مرض شعبه ده ،اولاد اودَمرګ شعبه ده،بارانونو او هواګانو چلولو شعبه ده وغيره وغيره،او ددې انتظامات دې يو ذات په لاس کښې وي او هغه په يواځې څان دا ټولې شعبې چلوي،داخو ډيره عجيبه غونډې خبره ده .هذا. کښې اشاره ده مسئله توحيد ته .عجاب. بروزن فعال صيغه دَمبالغې ده يعني ډيره

عجيبه خبره

دَدي آياتونوشان نزول دادي چې ترمذي،نسائي وغيره د ابن عباس رضي الله عنه نقل كړيدي چې دَحضور ﷺ مشفق تره ابوطالب بيمارشونودقريشوسردارانومشوره اوكړه چې ابوطالب بيمارشويدې كچري وفات شي اوبيامونږمحمد ﷺ دخپل دين نه منع كوونكي به موږ نه پيغورراكوي،لهذادابوطالب دَوفات كيدلونه مخكښې دې منع كول پكاردي.چنانچه دوئ ابوطالب ته راغلل ورته ئې اووئيل چې ستاوراره زمونږمعبودانو ته مني بدردورته وائي.نوته ئې منع كړه،ابوطالب حضور ﷺ رااوغوښتلواوورته ئې اووئيل ستاقوم ستاته ګله كوئ چې دې زمونږمعبودانوته بدردوائي،خلق ئې دعبادت نه منع كوي.حضور ﷺ ورته اوفرمائيل چې اې تره څه غواړم چې دوئ داسې كلمه اووائي چې په هغې سره به ټول عرب ددوئ غلامان شي اوټول عمرعجم به ورته جزيه وركوي نودوئ ورته اوونيل چې اوښايه مونږته هغه كومه كلمه ده؟ يوځل نه بلكه مونږبه ئې لس ځله اووايو،نوحضور ﷺ ورته اوفرمائيل لا اله الا الله.نوحې داواؤريدل نوغصه شول اوروان شول اواوئي وئيل چې﴿أَجَعَلَ ٱلْآلِهَةَ إِلَٰهًا وَٰحِدًا﴾

﴿وَٱنطَلَقَ ٱلْمَلَأُ مِنْهُمْ﴾ انطلاق نه مراد ياحسي انطلاق يعني روانيدل دې.اي: انطلق الملأ منهم متحاورين يعني دائې اوئيل او روان شو يا انطلاق دلته د افعال شروع په طور استعمال شوې دې، اي : انطلقوا يقولون، يعني دا وئيل ئې شروع كړو﴿ٱلْمَلَأُ﴾ نه مراد دَ قريش سرداران دي

﴿أَنِ ٱمْشُوا۟﴾ "ان"تفسيريه دې،ځكه چې "انطلق" په هردوه تقديره د قول معنې ته متضمن دې،او ظاهره داده چې "مشي" نه مرادتلل دي دَمجلس نه،بعض وائي مراددادې چې پخپل دين يعني شرك باندې تلل يعني عمل كوئ.﴿وَٱصْبِرُوا۟ عَلَىٰٓ ءَالِهَتِكُمْ﴾اى اثبتوا على عبادتها(روح)يعني دَخپلومعبودانوپه عبادت كلك شئ،﴿إِنَّ هَٰذَا﴾اشاره ده دعوت الي التوحيدته.﴿لَشَىْءٌ يُرَادُ﴾دَ دې جملې څو مطلبه بيان كړې شوي دي:(١)يو دا چې دې دعوې كښې دَ ده څه مقاصد دي چې سرداري او شرف غواړي(٢)يا دا چې دا خبره اوس د تړقو نه وتې ده . دې خوسنجيده او پُر عزم دې خپل دعوت كښې(٣)يا دا چې تكويني طور باندې ددې دين تنفيذ اراده شوې ده لهذا تاسو خپلې طمعې قطع كړئ(۴)يا ئې دا به طور تحقير وئيلي دي. چې دا خو دَ دوئ ارادې او تمناګانې دي،څه ضروري نه ده چه تكميل ته به هم اورسي.(روح)

مَا سَمِعْنَا بِهٰذَا فِي الْمِلَّةِ الْاٰخِرَةِ ۖ إِنْ هٰذَا إِلَّا اخْتِلَاقٌ ۝ ءَأُنْزِلَ عَلَيْهِ الذِّكْرُ

نه ده اوریدلي مونږ داخبره په ملت(دین)وروستني کښې،نه دي دامګردروغ .آیا نازل کړې شوېدې په ده باندې قرآن

مِنْ بَيْنِنَا ۚ بَلْ هُمْ فِي شَكٍّ مِنْ ذِكْرِي ۚ بَلْ لَمَّا يَذُوقُوا عَذَابِ ۝ أَمْ عِنْدَهُمْ

په مینځ زمونږکښې،بلکه دوئ په شك کښې دي،دځماذکر نه،بلکه تراوسه پورې نه دي څکلي دوئ عذاب ځما .آیادوئ سره دي

خَزَائِنُ رَحْمَةِ رَبِّكَ الْعَزِيزِ الْوَهَّابِ ۝ أَمْ لَهُمْ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا ۖ

خزانې درحمت درب ستاچې غالب دې،بخښونکې دې.آیادوئ لره ده بادشاهي دآسمانونواودزمکې اوڅه چې په مینځ ددوئ کښې دي

فَلْيَرْتَقُوا فِي الْأَسْبَابِ ۝ جُنْدٌ مَا هُنَالِكَ مَهْزُومٌ مِنَ الْأَحْزَابِ ۝

نو او دې خيژي دوئ په پوړو کښې اسمانونوته.لښکرګوټې غوندې دې. هلته کښې.شکست خورده،دډلونه

﴿مَا سَمِعْنَا بِهٰذَا﴾دا ئې دريم اعتراض دې يعني عقلي استبعاد خو ئې پريګدئ نقلاً هم دا مسئله ثابته نه ده ځکه چې مونږ دَ دينه مخکښې دا خبره دا چا نه نه ده اوريدلې،دادې دَ ځان نه دروغ وائي﴿بِهٰذَا﴾کښې اشاره ده مسئله توحيد ته﴿الْمِلَّةِ الْاٰخِرَةِ﴾ ددې نه مراد نصرانيت دې، او ﴿الْاٰخِرَةِ﴾ صفت ئې ورله ځکه راوړو چې داقبل از اسلام ملتونو کښې آخري ملت دې او يا دَ دوئ اعتقاد په اعتبار سره ورته﴿الْاٰخِرَةِ﴾اونيلې شوسره،ځکه چې دوئ په نبوت دَ حضورﷺ باندې ايمان نه راوړې،او ګمراه عيسائيانو چونکه د توحيد قائل نه وونو ځکه دوئ دا خبره اوکړه او يا د ﴿الْمِلَّةِ الْاٰخِرَةِ﴾ نه مراد آباؤ واجداد دي لکه په دې قول د الله تعالى کښې: ما سمعنا بهذا في آبائنا الاولين( المؤمنون)﴿إِلَّا اخْتِلَاقٌ﴾اختلاق هغه دروغوته وئيلې کيږي چې مثل ئې نوې.

﴿ءَأُنْزِلَ عَلَيْهِ الذِّكْرُ﴾ دا ئې ځلورم اعتراض دې چې په مونږکښې مالداره اوسرداران موجود دي نوآيادَهغوئ په موجودګئ کښې په ده قرآن نازليږي،په هغوئ ولې نه نازليږي، كقوله تعالى: لولا نزّل هذاالقرآن على رجلٍ من القريتين عظيم. ﴿الذِّكْرُ﴾ نه مرادقرآن دې، كقوله تعالى:وهذا ذكرٌمباركٌ،وانه لذكرٌ لك،﴿بَلْ هُمْ فِي شَكٍّ مِنْ ذِكْرِي﴾اضراب دې دَماقبل نه او اضراب ياابطالي دې چې هغه د

ماقبل کلام ابطال تقاضه کوي.يعني د دوئ دا اعتراض د سر نه غلط دې ځکه چې دوئ خو قرآن په نزول کښې شک مند دي کله وائي چې سحر دې او کله ورته دروغ وائي نو بيا ني ولې دَ ځان دَ پاره اثبات غواړي اوياءضراب انتقالي دې چې هغه ماقبل کلام حکم په خپل حال پرېږدي او بل کلام طرف ته ترينه منتقل شي.يعني دوئ سره ستا په تکذيب باندې څه واضحه دليل او يقيني خبره نشته بلکه هځې شک او تذبذب کښې دي کله درته شاعر وائي .کله ساحر او کله څه او کله څه.﴿بَل لَّمَّا يَذُوقُوا عَذَابِ﴾دااضراب انتقالي دې د ماقبل دواړو خبرو نه حسد نه ،چې هغې ذکر په "اانزل عليه الذکر" کښې اوشو،اوشک نه چې هغې ذکر په " هم في شک" کښې اوشو،يعني دوئ دا حسد او شک ځکه کوي چې دوئ لاتر اوسه ځما عذاب څکلې نه دې، چې اوڅکي نو بيا به نه شک پاتې وي او نه حسد ."عذابِ" اصل کښې عذابي وو ، "ياء" تخفيفاً حذف شوې ده.

﴿أَمْ عِندَهُمْ خَزَآئِنُ﴾داهم رددې دَهغوئ دَ ځلورم اعتراض. چې نبوت ورکول او رسالت منصب نه سرفرازکول دا دالله ﷻ رحمت دې چې چا ته ئې خوښه شي ورکړي .څوک ئې ترينه په زور اغستې نه شي،نو آيا دوئ دالله ﷻ خزانو مالکان دي او هغې کښې دخپلې مرضئ موافق تصرف کونکي دي چې چا ته خوښه شي ورکړي او چاته ئې خوښه شي ترينه ئې محرومه کړي چې اوس دَ نبوت په باره کښې هم دا خبره کوي!!؟ ﴿ٱلْعَزِيزِ﴾غالب ذات دې ،دَ هغه په کارونو کښې څوک تصرف او دخل اندازي نشي کولې ﴿ٱلْوَهَّابِ﴾ ورکونکې ذات دې درحمت چې چاته ئې خوښه شي،لهذا تا له ئې نبوت په خپل فضل سره درکړې دې، دې کښې دَ بل چا څه کار نشته

﴿أَمْ لَهُم مُّلْكُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ﴾دا هم رد دې دَ ځلورم اعتراض،چې دوئ دا خبره کوي چې دا کتاب په نبي کريم صلي الله عليه وسلم ولې نازل شوې دې او دې ولې رسول ګرځولې شوې دې؟ نو دَ دې جواب دادې چې دا هر څه الله کړي دي او هغه قادر مطلق ذات دې،ځمکې، آسمانونو اوڅه چې دې په مينځ کښې دي دهغې بادشاه دې،چې څه کول غواړي هغه کوي ،نو که دَ دوئ څه وس وي او علوياتو ، سفلياتو اوفضا بادشاهي ورسره وي نواو دې خيژي آسمانونو ته او خپل مرضئ مطابق احکامات دې هلته نه جاري کړي، دا جواب په تهکم باندې مبني دې،

﴿فَلۡيَرۡتَقُواْ فِي ٱلۡأَسۡبَٰبِ﴾جواب دي دشرط محذوف جي هغه ان كان لهم ملك في السموات والارض وما بينهما دي. ﴿ٱلۡأَسۡبَٰبِ﴾ جمع دسبب ده . هر هغه سي ته وئيلى كيږي چي مقصود ته پري رسائي كيږي او دلته ترينه مراد پوړئ او رسئ ده.چي به هغى سره اسمانونو ته ختل كيږي اودَ باء په ځائ َفيَ راوړلو كښې اشاره ده كثرت داسبابو ته او په هغې مكمل اقتدار ته ،يعني دا اسباب دومره ډير وي چي دوئ نه گير چاپيره وي او دوئ د پاره په منزله د ظرف اوگرځي بعض وائ مراد ورنه پخپله آسمانونه دى

﴿جُندٞ مَّا هُنَالِكَ﴾داتسلي ده نبي كريمﷺ ته چي څنگه ستا نه مخكښې انبياؤو خلاف ډلي را اوچتي شوي وي او دهغوئ دعوت په لار كښې ئې خنډونه اچولي وو.خو بالآخر د انبياؤو په مقابله كښې مغلوب شول،نو دغه شان دا هم يوه ډله ده .دوئ به هم شكست خوري، ﴿جُند﴾خبردَمبتدامحذوف دي اى هم جندٌاو َماَصفتيه ده . تحقير د پاره هم راځي او تعظيم دپاره هم ، خو دلته د پاره دَ تحقير ده، اي:جند حقير، ﴿هُنَالِكَ﴾ اسم اشاره ده دَپاره د مكان . صفت ثاني دي د پاره د جند او راجع قول دادي چي دا اشاره ده مكان حسي ته .چي هغه بدر، خندق ، مكه دي ،چي هلته دوئ شكست خوړلي وو، او يا﴿هُنَالِكَ﴾ كښې اشاره ده مكان معنوي ته ، يعني وړكې غوندي لښكر گوتي چي ځان ډير لوئ حسابوي.﴿مَهۡزُومٞ﴾ صفت ثالث دي،او﴿مِّنَ ٱلۡأَحۡزَابِ﴾صفت رابع دي يعني دوئ دَ هغو ډلو نه دي چي انبياؤو مخالفت ئې كړي وو.

كَذَّبَتۡ قَبۡلَهُمۡ قَوۡمُ نُوحٖ وَعَادٞ وَفِرۡعَوۡنُ ذُو ٱلۡأَوۡتَادِ ۝ وَثَمُودُ وَقَوۡمُ لُوطٖ

تكذيب كړي وؤمخكښې دَدوئ نه قوم دَنوحؑ اوعاديانو،اوفرعون دَ ميخونو والا.اوثموديانواوقوم دلوطؑ

وَأَصۡحَٰبُ لۡـَٔيۡكَةِۚ أُوْلَٰٓئِكَ ٱلۡأَحۡزَابُ ۝ إِن كُلٌّ إِلَّا كَذَّبَ ٱلرُّسُلَ فَحَقَّ عِقَابِ ۝

اوخاوندانو دَځنگل ښېرداهغه ډلي دي،نه وؤېدوئ كښې هريومگرتكذيب ئې كړي وؤدرسولانو،نوثابت شوپدوئ عذاب زما

وَمَا يَنظُرُ هَٰٓؤُلَآءِ إِلَّا صَيۡحَةٗ وَٰحِدَةٗ مَّا لَهَا مِن فَوَاقٖ ۝ وَقَالُواْ رَبَّنَا عَجِّل لَّنَا

اونه كوي انتظارداخلق مگردَچيغې يوې چي نه به وي هغې لره هيڅ انتظار،اووائي دوئ اې ربه زمونږه،زرراكړه مونږته

| قِطَّنَا | | قَبْلَ | يَوْمِ | | الْحِسَابِ ⑯ | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| برخه | دعذاب | زمونږه. | مخکښې | دورځې | دحساب | نه. |

﴿كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ﴾ دادتخويف دنيوي نمونه ده.اودمن الاحزاب بيان دې﴿ذو الْأَوْتَادِ﴾جمع دَوتد ده ميخ ته وائی. او دا صفت دې دفرعون.اوفرعون ته ذوالاوتادځکه وائی(۱) چې ده به کله چاته سزاورکوله نوپرمخ به ئې سملاؤاوپه لاسونوخپوبه ئې ورته ميخونه ټک وهل پدې حالت کښې به مړشو.بعض وائی څلورميخونه به ئې پرې ټک وهل اوماران لړمانان به ئې پرې پريخودل.(۲)بعض وائی چې اوتادنه مرادعمارتونه دي.يعني دې دبنګلو والاوؤ(۳)بعض وائی چې﴿الْأَوْتَادِ﴾ نه مرادلښکرې دي.يعني خاونددډيرولښکروؤ.(۴)بعض وائی چې پدې سره دهغه دبادشاهئ قوت اومضبوط والي ته اشاره ده﴿وَأَصْحَابُ لْئَيْكَةِ﴾قوم شعيب ورته مراددي،چې تفصيل ئی شعراء وغيره کښې تيردي.﴿أُولَٰئِكَ الْأَحْزَابُ﴾ داهغهٔ لښکرې دی چې رسولانو تکذيب ئی کړې وؤ،نو مونږ هلاک کړل. أُولَٰئِكَ کښې اشاره ده مکذبينو ته چې آيت کښې ئی تذکره اوشوه.او دوئ چونکه کفراو بغض کښې انتها ته رسيدلی وؤ نوځکه ورته اشاره دبعيد اوشوه.﴿الْأَحْزَابُ﴾ نه مراد شکست خورده ډلې دی چې مهزوم من الاحزاب کښې ورته اشاره شوې ده.

﴿وَمَا يَنظُرُ هَٰؤُلَاءِ﴾اشاره اهلِ مکه ؤته ده،زجردې ورته چې دوئ وائی چې قيامت دې راشي،دقيامت انتظارکوي.قيامت چې کله راشي نوبيابه په هغې کښې هيڅ قسمه تاخيرنه کيږي.﴿صَيْحَةً وَاحِدَةً﴾نه مرادنفخهٔ ثانيه ده، ځکه چې داصيحة واحدة ده دې نه بعد بله صيح نشته.﴿مَّا لَهَا مِن فَوَاقٍ﴾﴾فواقدوه معنې شوې دی:(۱) يو مهلت (۲)او بل رجوع ،که مهلت معنی ئی اوکړی شی نو بيا به داماخوذ وی فواق الناقة نه اوداماين الحلبتين من الوقت ته وائی يعني اوښه يابل څاروې يوځل الوشي اوبيائی لګه پريدي چې نورپئ راپريدي نوبيائی الوشي نودې وقفي ته فَوَاق وائی يعني چې داصيحه چې راشي نوبيابه په مقداردفواق ناقه هم نه ورستوکيږي.اوکه دَ رجوع معنی ئی واغستلې شی نوبيادامأخوذ دې دفاق، يفيق نه ، او دا

ونيلي كيږي هوش كښ راتلواوعقل واپس كيدو ته. دامعنى دحضرت ابن عباس ﷺاو قتاده ﷫ نه هم منقوله ده يعني اوس خودوئ قيامت غواړي خو چې كله قيامت راشي بيا به دنيا ته واپس كيدل نه وي.

﴿وَقَالُوا رَبَّنَا عَجِّل لَّنَا﴾دا هم شكوه ده او ديكښ دهغوئ پنځم اعتراض ذكر دې چې كچرته مونږ واقعي په نا حقه يو ،اوته په حق ئې اومونږ دعاد وثمود پشان دمكذبينو ډلې نه يو ،نو بيا ځنګه چې په هغوئ باندې په دنيا كښ عذاب راغلې وو ،نو په مونږ دې هم راشي. [الكنز الثمين] لكه بل ځائې كښ ددوئ وينا داسې نقل ده: اللهم ان كان هذا هوالحق من عندك فامطر علينا حجارة من السماء او ائتنا بعذاب اليم [الانفال:۳۲]﴿قِطَّنَا﴾ اى نصيبنا ،،قط،،ونيلې كيږي ټكړې او حصې ته،يعنى عذاب نه چې زمونږ كومه حصه رسى هغه مونږ ته دقيامت نه مخكښ دينا كښ راكړه. (روح).

| اِصۡبِرۡ عَلٰى مَا يَقُوۡلُوۡنَ وَاذۡكُرۡ عَبۡدَنَا دَاوٗدَ ذَا الۡاَيۡدِ ۚ اِنَّهٗۤ |
|---|
| صبركوه ته اى پيغمبره! په هغه چې دوئ ئې وائى اويادكړه بنده زمونږداؤد ﷤خاونددقوت،بيشكه دې |
| اَوَّابٌ ۝ اِنَّا سَخَّرۡنَا الۡجِبَالَ مَعَهٗ يُسَبِّحۡنَ بِالۡعَشِىِّ وَالۡاِشۡرَاقِۙ ۝ |
| ډيررجوع كونكې/وؤ، بيشكه مونږه تابع كړي وؤغرونه دده سره تسبيح به ئې كوله بيګائى اوپه سهاركښ، |
| وَالطَّيۡرَ مَحۡشُوۡرَةً ؕ كُلٌّ لَّهٗۤ اَوَّابٌ ۝ وَشَدَدۡنَا مُلۡكَهٗ |
| اومارغان چې راجمع كړې شوي به وؤ،ټول دده اطاعت ګزاروؤ،اوقوي كړې وؤمونږه حكومت دده، |
| وَاٰتَيۡنٰهُ الۡحِكۡمَةَ وَفَصۡلَ الۡخِطَابِ ۝ |
| اووركړې ووموږده ته حكمت اوفيصله كول دجګړو. |

﴿اَصۡبِرۡ عَلٰى مَا يَقُوۡلُوۡنَ﴾ دكفارو دشبهاتو نه بعد اوس باقاعده دتوحيد په اثبات اوپه نفى د شفاعت قهري دلائلو سلسله شروع كيږي، ﴿اَصۡبِرۡ﴾ديكښ تسلى ده نبى ﷺ ته او طريقه دتبليغ ده چې دوئ كه هر څومره بې هوده او ضدوعناد باندې مبنى خبرې كوي خوته پرې دصبر نه كار اخله جاهلانو سره دجهالت طريقه مه اختياره وه،بلكه دلائلو سره ورسره خبره كوه

﴿وَٱذۡكُرۡ عَبۡدَنَا دَاوُۥدَ﴾ دا اول دليل نقلي دې په نفي دشفيع قهري باندې. چې دداؤد ﷺ په شان جليل القدر پيغمبر باندې ابتلاء راغليده اودخپل رب نه ئې بخنه غوښتې ده. نوچې نبي شفيع قهري نشي جوړيدې نوبل به څوك وي. "ذكر" نه مراد يا ذكر لساني دې يعنى دوئ ته د داؤد ﷺ قصه بيان كړه، اوياذكر قلبى دې. يعنى داؤد ﷺ يادكړه يعني دوئ ته ئې قصه ذكركړه. ﴿ذَا ٱلۡأَيۡدِ﴾ صفت دې دداؤد ﷺ. د "ايد" معنى قوت دې آد يئيد نه ماخوذ دې. اومراد دقوت نه قوت دې په طاعاتو كښې او په امورسلطنت كښې. ﴿إِنَّهُۥٓ أَوَّابٌ﴾ ديكښې دطاعاتو قوت تفصيل دې، "اواب" صيغه دمبالغه ده "آب يئوب" نه پمعنى د رجوع سره اي رجاع. يعنى ډير زيات الله ﷻ ته رجوع كونكې وؤ، په حديث كښې دداؤد ﷺ دعبادت داصفت ذكرشويدې چې "احبّ الصيام الى الله تعالى صيام داؤد ﷺ واحبّ الصّلاة الى الله تعالى صلاة داؤد ﷺ كانَ يصومُ يوماً ويفطريوماً وكان ينامُ نصف الليل ويقوم ثلثهُ، و ينام سدسه" يعني ډيره خوښه طريقه الله ﷻ ته په روژه كښې روژې دداؤد ﷺ دې، اوډيره خوښه طريقه په (نفل) مونځ كښې دداؤد ﷺ ده، چې ده به يوه ورځ روژه نيوله اويوه ورځ به ئې افطاركولو، اوده به ترنيمې شپې پورې خوب كولو او بيا به ئې دريمه حصّه دشپې مونځ كولو اوبيابه ئې دشپې آخرې شپږمې حصه كښې خوب كولو.

﴿إِنَّا سَخَّرۡنَا ٱلۡجِبَالَ مَعَهُۥ﴾ دې آياتونو كښې په داؤد ﷺ دَيو څونعمتونو چې به طورِ معجزه ورته وركړې شوي وؤ، دهغې تذكره ده، چې دې سره صفت اوابيت ښه واضحه كيږي، چې داؤد ﷺ به كله په تسبيح كښې مشغوله وؤنوغرونوبه ورسره هم تسبيح كوله، داكثروپه نيز دَ غرونو تسبيح به په زبانِ قال سره وه، لكه تسبيح دكانړوپه كف دحضور ﷺ كښې، بعضِ وائى تسبيح حقيقي نه وه بلكه انګازې وې دَ اواز دَ داؤد ﷺ، ليكن اول قول راجح دې ﴿بِٱلۡعَشِيِّ وَٱلۡإِشۡرَاقِ﴾ داپه دې دليل دې چې تسبيح دغرونوپه زبانِ قال سره وه ځكه چې په زبانِ حال سره تسبيح پدې دوا ړووختونوپورې خاص نده.

﴿وَٱلطَّيۡرَ مَحۡشُورَةٗ﴾ عطف دې په ﴿ٱلۡجِبَالَ﴾ باندې ﴿مَحۡشُورَةٗ﴾ ورنه حال دې، يعني مونږورته مارغان مسخركړي وؤچې داؤد ﷺ به كله تسبيح كوله نوټول به ورته راجمع شوي وؤ، تسبيح به ئې ورسره كوله، ابن كثير رحمه الله وائى چې مارغان به په هواكښې روان وؤ، داؤد ﷺ به دزبورتلاوت كولونودوئ به اودريدل تسبيح به ئې ورسره كوله، ﴿كُلّٞ لَّهُۥٓ﴾ ضميرداؤد ﷺ ته راجع دې، لام

تعليليه دي. يعني غرونو اومارغانوبه دَوجي دَداؤد ﷺ نه تسبيح كوله او "اواب" معنى تسبيح ويونكى ده، او په دَانئ دَتسبيح "اواب" لفظ ذكر كولو كښ كثرت ذكر طرف ته اشاره ده، چې بار بار به دوئ ذكر كولو. اويا اواب معنى رجاع ده اولام تعليليه نه دي. يعني داټول د داؤد ﷺ اطاعت گزار وؤ چې كله به ئې هم تسبيح له راغوختلو نو راتلوبه او ياضميرد لَّهُۥ راجع دي الله ﷻ ته، يعني دوئ ټول الله ﷻ ته رجوع كونكي وؤ.

﴿وَشَدَدْنَا مُلْكَهُۥ﴾ اي قوينا ديكښ دامور سلطنت كښ دهغه قوت بيان دې، چې الله ﷻ ورله رعب او دبدبه وركړې وه ورسره غټې لښكرې اوجنگى ساز وسامان وؤ چې دشمن به ترينه يريدلو او بل طرف ته ورسره علم وفهم وؤ چې امور سلطنت انتظام ئې ډيرې محكمې طريقې او حكمت سره سنبهال كړې وؤ. اومضبوطئ اسباب دوه وؤ. يو باطنى رعب وهيبت، چې چابه ئې نوم اوريدلو نو مرعوب كيدلوبه، اوبل ظاهرى اسباب رعب ،لكه غټې لښكرې او نور جنگى سازوسامان ورسره وؤ. ﴿وَءَاتَيْنَٰهُ ٱلْحِكْمَةَ﴾ حكمت نه مراد نبوت دې چې لازم دې كمال علم ته هم اوكمال عقل ته هم. ﴿وَفَصْلَ ٱلْخِطَابِ﴾ ددې لفظ ډير **توجيهات** شوى دى:

(۱)يوداچې "فَصْلَ" خپلې مصدري معنى كښ دې، او "ٱلْخِطَابِ" نه مراد الخصومات دى اوخصومات باندې دَخطاب اطلاق ځكه اوشو چې دا مشتمل وى په خطاب باندې نومعنى به داشى چې مونږ ورله جګړو فيصله كولو صلاحيت وركړې وؤ

(۲)دويم داچې "فَصْلَ" مصدر پمعنى داسم فاعل سره دې او"ٱلْخِطَابِ" نه مراد كلام دې او دا دَاضافة الصفة الى الموصوف دَقبيلى نه دې: أي الكلام الفاصل يعنى داسى كلام خووركړى وؤ چې هغه حق وباطل كښ فاصل او هغوئ فرق راوستونكې وؤ.

(۳)دريم دا چې "فَصْلَ" پمعنى داسم مفعول سره واغستې شى اي الكلام المفصول اومراد ترينه فصيح وبليغ كلام دې چې هغې كښ مقصود دَغير مقصود نه جدا كړې شوى وى.

| وَهَلْ أَتَىٰكَ نَبَؤُا۟ ٱلْخَصْمِ إِذْ تَسَوَّرُوا۟ ٱلْمِحْرَابَ ﴿٢١﴾ إِذْ دَخَلُوا۟ عَلَىٰ دَاوُۥدَ |
| --- |
| اوآيا راغلې دې تاته خبر دَجګړه كونكو، كله چې په ديوال راوختل دوئ محراب ته، كله چې دوئ داخل شول په داؤد ﷺ باندې |

فَفَزِعَ مِنْهُمْ قَالُوْا لَا تَخَفْ خَصْمٰنِ بَغٰى بَعْضُنَا عَلٰى بَعْضٍ

نو ویریدلو داؤد نه اوویل دوئ مه یریږه،مونږه دوه فریقه یوچې ظلم کړیدې یو زمونږ نه په بل باندې،

فَاحْكُمْ بَيْنَنَا بِالْحَقِّ وَلَا تُشْطِطْ وَاهْدِنَآ اِلٰى سَوَآءِ الصِّرَاطِ ﴿٢٢﴾ اِنَّ هٰذَآ اَخِيْ

نوفیصله اوکړه زمونږپه مینځ کښې په حق سره اوزیاتي مه کوه اواوښایه مونږته سمه لاره،بیشکه داځماوروردې،

لَهٗ تِسْعٌ وَّتِسْعُوْنَ نَعْجَةً وَّلِيَ نَعْجَةٌ وَّاحِدَةٌ فَقَالَ اَكْفِلْنِيْهَا وَعَزَّنِيْ

ده لره دی نهه اونوي‌یوکم سل‌ګډې اوځمایوه ګډه ده ،نووائی دې چې راکړه ماته داګډه اوغالب راغلې دې په ما باندې

فِي الْخِطَابِ ﴿٢٣﴾ قَالَ لَقَدْ ظَلَمَكَ بِسُؤَالِ نَعْجَتِكَ اِلٰى نِعَاجِهٖ

په خبروکښې، اووئیل‌داؤد(ﷺ)چې خامخاپه تحقیق سره ظلم کړیدې ده په تا باندې په غوښتلو د ګډې ستا، سره د خپلو ګډو نه،

وَاِنَّ كَثِيْرًا مِّنَ الْخُلَطَآءِ لَيَبْغِيْ بَعْضُهُمْ عَلٰى بَعْضٍ اِلَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

اوبیشکه ډیرملګرونه داسې وي چې خامخا ظلم کوي بعضِ دَدوئ په بعضُ باندې،مګرهغه خلق چې ایمان ئې راوړې وي

وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ وَقَلِيْلٌ مَّا هُمْ وَظَنَّ دَاوٗدُ اَنَّمَا فَتَنّٰهُ فَاسْتَغْفَرَ

او کوي نیك عملونه (لیکن)ډیرلږ دی دوئ،اوګمان وکړوداؤد(ﷺ) چې بیشکه مونږامتحان وکړوپده،نوبخنه ئې اوغوختله

رَبَّهٗ وَخَرَّ رَاكِعًا وَّاَنَابَ ﴿٢٤﴾ فَغَفَرْنَا لَهٗ ذٰلِكَ وَاِنَّ لَهٗ

درب خپل نه اوراپریوتلو په رکوع کښې،اورجوع ئې وکړه الله ته پس بخنه اوکړه مونږده ته دَدغه کار،اوبیشکه ده لره

عِنْدَنَا لَزُلْفٰى وَحُسْنَ مَاٰبٍ ﴿٢٥﴾

زمونږ سره خامخا نزدیکت دې اوخائسته ځائ دراتلودې

﴿وَهَلْ اَتٰىكَ نَبَؤُا الْخَصْمِ﴾ داذکردَابتلاء دَداؤد(ﷺ) دې چې په ازمائش کښې واقع شویدې، چې خلاصه ئې دا ده چې داؤد ﷺ خپلې عبادت خانې کښې عبادت کولو.دروازې بندې وې اچانک دېکښې دوه کسان په دیوال راواوختل،داؤد ﷺ اویریدو چې داځنګه اوپدې وخت کښې راغلو؟هغوئ ورته اوئیل پریشانه کیږه مه،زمونږ یوه مسئله ده هغه په تاحل کول غوارو،

هغه داچې مونږ شريکان يو ، څمادې ملګرې يو کم سل ګډې دي و څما صرف يوه ګډه ده. دې غوارې چې دا هم څمانه واخلي نو که زه ورسره خبروته کينم نو دې خبرو کښې ډير تيز دې ما پرې کړې. لهذا ته زمونږ په مينځ کښې فيصله اوکه. داؤد عليه السلام ورته اوئيل چې دې ظلم کوي چې ستانه داغوارې او خبره داده چې په شريکانو کښې ډير کم سم خلک راځي اکثر يکښې يو بل باندې ظلم کوي.دومره خبره کول وو چې داؤد عليه السلام پوهه شو چې دا خو څما امتحان وو او خه تير وتم،نوفورا ئې توبه استغفار اوکړو او الله تعالى ته په رکوع پريوتو.الله تعالى ورله خطا معاف کړه.

ددې واقعې صرف دومره ذکر قرآن کښې دې اصل واقعه څه ده .او داؤد عليه السلام نه څه خطا شوې وه؟دې باره کښې ځنې مفسرينو يوه مشهوره قصه ذکر کړيده چې دهغې څه سند نشته او دَانبياؤ دَعصمت هم منافي ده نودلته دوه خبرو پيژندل ضروري دي (۱)دآيت قابل قبول تفسير او حل،(۲) غلطې قصې ذکر او دَهغې رد.

**امراول**: مفسرينو ددې آيت متعدد قابل قبول تفسيرونه ذکرکړي دي:

(۱)يو داچې دَ داؤد عليه السلام په شريعت کښې دبل چانه دښځې پريخيدو مطالبه کول او دهغه په وينا خپله ښځه پريخودل،جائز وه(لکه صدر اسلام کښې چې دمؤاخات صورت کښې جائزوو) داؤد عليه السلام خپلې يوکم سل ۹۹ ښځې وې او بيا هم دَ خپل امتی نه ددې مطالبه اوکړه نو دا مطالبه اګر چې شرعا جائز وه خو دَانبياؤو شان موافق نه وه نوځکه ورته الله تعالى دپاره دَتنبيه دا دوه فرشتې راوليږلې او بطور تمثيل ئې ورته دا قصه بيان کړه.داؤد عليه السلام خپلې خطا باندې متنبه شو اوفورا ئې استغفاراوکړو(التحرير والتنوير)

(۲)دويمه دحضرت تهانوی رحمه الله توجيه ده ،هغه فرمائي چې حضرت داؤد عليه السلام ته الله تعالى سلطنت او نبوت دواړه ورکړي وو.او دې واقعې سره الله تعالى د هغه امتحان اغستل مقصود وو،چې ده باندې دنبوت مزاج غالب دې اوکه دَبادشاهئ.ځکه چې نبوت مزاج کښې صبر و تحمل وي اوبادشاهئ مزاج کښې انتظام او جبروي.نودا دوه کسان ئې راوليږل چې دوئ ډيره بې ترتيبي اوبې اصولې اوکړه،**اول**:داچې دروازه ئې پريخوده اوپه ديوال رواوختل،**دويم** داچې لب ولهجه ئې سخته وه.**دريم** دا چې خبرې ئې هم بې ادبئ سره شروع کړې،چې حقه فيصله اوکړه،زياتې مه کوه وغيره،نوداؤد عليه السلام دَ نبوت مزاج مطابق داهرڅه برداشت کړو او ډير په تسلئ سره اودَقضا آدابو او اصولو سره ئې دهغوئ خبره واوريدله،دهغې مطابق مدعی

علیه پر وؤ نو دهغه خلاف ئی فیصله اوکړه.دا هر څه بالکل صحیح وؤ .هرکله چې ده دافیصله واوروله نو هغې کښې ترینه لګ غوندې خطااوشوه.فیصله داسې اورول پکارو چې مدعی علیه ئی مخاطب کړې وې او هغه ته ئی وئیلی وې چه "لَقَدْ ظَلَمْتَ" تاظلم کړې دې لیکن داؤد ﷺ مدعی علیه په ځائی مدعی مخاطب کړو چې "لَقَدْ ظَلَمَكَ" تاسره ظلم شوې دې.نو دیکښې یو قسم تسلی وه مدعی ته.دَقضا تّوله کاروائی پوره.کیدلونه بعد مدعی له داسې تسلی ورکول اګر چه شرعاجائز ده خو په مجلس دقضا کښې داسې کول خلاف اولی ده دَ انبیاؤو شان موافق نه ده،نو ځکه داؤد ﷺ استغفار اوکړو.

(۳)دریمه توجیه دحضرت شبیر احمد عثمانی ﷫ ده ،هغه فرمائی چې ځماپه نیزاصلي خبره هغه ده چې دَابن عباس﷠ نه منقوله ده چې داامتحان په داؤد ﷺ دَیوشان اعجاب په بناء راغلې وؤ ،هغه داچې داؤد ﷺ دَخپل کورنظام داسې جوړکړې وؤچې شپه ورځ به خامخا دَده دَاهلِ بیت نه یوجماعت دَالله ﷻ په ذکرکښې مشغول وؤ.یوه ورځ ئی الله ﷻ ته عرض اوکړوچې په شپه ورځ کښې داسې یووخت نشته چې په هغې کښې ځماکورستادذکرنه خالي وي،الله ﷻ ته دغه خبره خوښه نه وه نوورته ئی اوفرمائیل چې داهرڅه ځماپه توفیق سره کیږي که ځمامدددرسره نه وي نوداستادَوس خبره نده اوځه به یوه ورځ خامخاستانه داتوفیق سلب کوم،نوکله چې داواقعه اوشوه نوپدغه وخت کښې داؤد ﷺ په عبادت کښې مصروف وؤ ،عبادت ئی پریخودلواوپه فیصلې کښې مشغوله شو ،نوچې کله فارغ شونوپوهه شوچې داراته عتاب وؤ ،نوپخپل اِعجاب ئی استغفاراوکړو:اخرج هذا الاثر الحاكم في المستدرك وقال صحيح الاسناد،واقرهُ الذهبي في التلخيص.

(۴)څلورمه توجیه چې اکثر مفسرینو اختیار کړې ده اوحضرت شیخ غلام الله خان ﷫ ورله هم ترجیح ورکړې ده دا ده: چې دادوه کسان فرشتې وې اوکومه مقدمه یی چې راوړې وه هغه نفس الامري نه وه بلکه یوه مفروضه وه،نوحضرت داؤد ﷺ چې کله دَمدّعي دعوه واؤریدله،نوجلدي ئی وکړه چې مدّعي علیه ته ئی دَصفائی اوجواب موقع ورنکړه اوفیصله ئی اوکړه داؤد ﷺ ګمان داوؤچې داخوانسانان دي،لیکن چې کله دده په مخکښې لاړل اسمان ته اوختل، نودې پوهه شوچې داپه ماامتحان وؤچې مانه پکښې خطااوشوه نوبخنه ئی اوغوښته.

**امردوم**: هغه منکرته واقعه چې په اسرائیلی او ضعیف اوبې سنده روایتونو کښې ذکر ده ،د

هغې خلاصه دا ده چې يوورځ داؤد ﷺ دَخپل يو امتي ښځه اوليدله نوهغه ئې ډېر خوښه شوه،دهغې قابوكولو دپاره ئې دا تدبير جوړ كړو چې دهغې ښځې خاوندې ئې جهاد ته اوليږو او دَصف اول كسانو كښې ئې ورله نوم اوليكلو چې هغوئ به د لښكر نه مخكښې وئ او تابوت به ئې اوچت كړې وؤ.(دې تابوت ذكر په دويمې سپارې آخر كښې تير شوې دې)نو هغه كس په جهاد كښې شهيد شواو داؤد ﷺ دهغه ښځې سره نكاح اوكړو

داواقعه بې سنده اوضعيف كيدلو سره سره دانبياؤ شان او عصمت سره هم منافي ده.حافظ ابن كثير ﷫ دې متعلق ليكلي دې: وقد ذكر المفسّرون هٰهناقصة اكثرهاماخوذٌ من الاسرائيليات و لم يثبت فيها عن المعصوم حديثٌ يجبُ اتباعُه.

دغه شان ابوحيان﷫ هم ورنه اعراض كړيدې،امام رازي﷫ وربانديې په تفسيركبيركښې په لسو (١٠) وجوهوسره ردكړيدې،دَحضرت علي﷜منقول دي چې كوم سړي دداؤد ﷺ باره كښې دغه واقعه بيانوي څه به ئې(١۴٠)دُرې وهم،چې دادَپه انبياؤباندې دَبهتان سزاده.

﴿إِذْ تَسَوَّرُوا﴾ تسور په ديوال راختلو ته وائي،﴿المحراب﴾نه مراد داؤد ﷺ عبادت كمره ده.﴿إِذْ دَخَلُوا﴾ بدل دې "اذ تسوروا"نه ﴿فَفَزِعَ مِنْهُمْ﴾اويريدو ځكه چې دپهريدارانو او چوكيدارانو موجودګئ كښې دا كسان څنګه راغلو،اوبيائې سمه لار پريخودله او په ديوال راواړيدو، داسې نه چې په غلطه اراده راغلي وي ﴿خَصْمَانِ﴾خبر دې دمبتدا محذوف اي نحن خصمان "خصمان" په معنى د طائفتان متخاصمتان سره دې،يعنى دوه ډلې دي مراد چې يوبل سره ئې تنازع راغلې وه،دوه سړي نه دي مراد،ددې توجيه تائيد په قصه كښې مذكور ضمائر دجمعو سره كيږي،لكه :تسوروا، دخلوا، بغى بعضنا على بعض،او ياترينه مراد دوه كسان دي،او دې تائيد په ان هذا اخي سره كيږي،﴿وَلَا تُشْطِطْ﴾شطط نه ماخوذ دې حدنه تجاوز ته وئيلى كيږي،يعنى ظلم مه كوه.﴿سَوَآءِ ٱلصِّرَٰطِ﴾مراد ترينه عدل اوانصاف دې.

﴿إِنَّ هَٰذَآ أَخِي﴾دَمسئلې او قضيې بيان دې،"اخي" نه مراد يا ديني ورور دې،او ياترينه ملګرې اوكاروباركښې شريک مراد دې﴿نَعْجَةٌ﴾ګډې ته وائي او مراد ترينه هم ګډه ده﴿أَكْفِلْنِيهَا﴾اجعلهالي كفالتي يعنى داهم ماته حواله كړه.﴿وَعَزَّنِي فِي ٱلْخِطَابِ﴾يعنى كله چې څه دَوركولو نه انكاراوكړم

نو دې بيا ماته سختې خبرې کوی او دهمکئ راکوی اي:اظهر في الکلام عزة وتطاولا.(التحرير والتنوير)يا عَزَّ پمعنی دغلبې سره دې،يعنی که څه ورسره خبروترونه کينم.نودې څمانه فصيح دې خپله خبره مضبوط اندازکښ پيش کړی نو خلک دده په حق کښ فيصله اوکړی

﴿قَالَ لَقَدْ ظَلَمَكَ﴾دا دداؤد ﷺ فيصله ده.دحضرت تهانوی او عثمانی ﷫ رائ مطابق دا فيصله ئی دا قضاء اصولو مطابق کړې وه ددې کښې څه خطا نه وه بلکه خطا بله وه چې تفصيل ئې مخکښې تير شو اوحضرت شيخ ﷫ رائ مطابق دا فيصله دقضا اوصولو مطابق نه وه.څکه چې کله ورته مدعی خپله قصه بيان کړه اوخپلې بې وسئ اظهار اوکړو نو دې ډير خفه شو او دمدعی نه ئی په خبره گواه طلب کولو يا مدعی عليه باندې يمين (قسم) پيش کولو طرف ته ئې ذهن نه لاړو او فورا ئی دافيصله اوکړه.

﴿بِسُؤَالِ نَعْجَتِكَ إِلَىٰ نِعَاجِهِۦ﴾(سؤال) مصدردې او ضم معنې لره متضمن دې.څکه چه ئی په صله کښې الی راغلې دې. اي بسؤال نعجتک ضاما الی نعجاجه يعنی خپلو گډو سره ستا گډه هم ځان ته کولو په وجه.﴿إِلَّا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟﴾يعنی اکثر شرکاء اگر چې ظلم کوی خو دصالحينو داشعار نه دې دې کښې هغوئ ته ترغيب دې نيکئ طرف ته.﴿وَقَلِيلٌ مَّا هُمْ﴾قليل خبر مقدم دې او هم مبتدا دې ما زائده ده دپاره دتاکيد.﴿وَظَنَّ دَاوُۥدُ﴾ظن پمعنی ديقين سره دې.يعنی کله چې داؤد ﷺ دا فيصله اوکره نوفورا پوهه شو چې داخو په ده يو امتحان وو او دې پکښې تيروتو.﴿وَخَرَّ رَاكِعًا﴾ اي ساجدا رکوع نه مراد سجده ده،امام ابوحنيفه ﷫ دې آيت نه استدلال کوی چې رکوع دسجده تلاوت قائم گرځی.څکه چې دلته دسجدې نه تعبيرپه رکوع سره شوې دې،

﴿وَإِنَّ لَهُۥ عِندَنَا لَزُلْفَىٰ﴾دنيوی اجر ذکر دې،يعنې استغفار نه ورستو ورله الله ﷻ مزيد مقام ومرتبه او قربت نصيب کړو﴿وَحُسْنَ مَـَٔابٍ﴾اخروي اجر ذکر دې ، ديکښې اشاره ده ديته چې داؤد ﷺ باوجود ددينه چې يولوئ بادشاه اوعبادت گزار وو،خو ددې په وجه تکبر کښې نه وو مبتلا شوې معمولی غوندې کوتاهی باندې ئی الله ﷻ ته رجوع اوکړه،نو الله ﷻ ورله ددې دنيوی واخروی دواړه بدلې ورکړې،په خلاف ددې کافرانو چې لوئ لوئ جرمونه کوی خو الله ﷻ ته رجوع نه کوی بلکه تکبر کوی،نو الله ﷻ ورله دنيا اوآخرت دواړو برباد کړل.

| |
|---|
| يٰدَاوٗدُ اِنَّا جَعَلْنٰكَ خَلِيْفَةً فِي الْاَرْضِ فَاحْكُمْ بَيْنَ النَّاسِ بِالْحَقِّ |
| اي داؤده بيشكه گرځولي موني ته خليفه په زمكه كښ نوفيصله كوه ـه مينځ دخلقوكښ په حق سره |
| وَلَا تَتَّبِعِ الْهَوٰى فَيُضِلَّكَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ؕ اِنَّ الَّذِيْنَ يَضِلُّوْنَ |
| اومه كوه اتباع دخواهشاتو كښې گمراه به كړي تا دَ لارې دالله ﷻ نه. بيشكه هغه خلق چې گمراه دي |
| عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيْدٌۢ بِمَا نَسُوْا يَوْمَ الْحِسَابِ ۞ |
| دلارې دالله ﷻ نه،دوئ لره عذاب سخت دې پدې وجه چې هيره كړيده دوئ ورځ دحساب |

﴿يٰدَاوٗدُ اِنَّا جَعَلْنٰكَ خَلِيْفَةً﴾دا بيان دې دَ﴿وَاِنَّ لَهٗ عِنْدَنَا لَزُلْفٰى﴾او﴿خَلِيْفَة﴾معنى ياقائم مقام ده يعني دَانبياؤوسابقوچې قائم وؤپه حق، دَهغوئ قائمقام مو اوگرځولې،او يا﴿خَلِيْفَة﴾ پمعني دَ حاكم او بادشاه سره دې يعني دَزمكې حاكم موگرځولې ئې چې دَخلقومينځ كښ به فيصلې كوې﴿فَاحْكُمْ بَيْنَ النَّاسِ بِالْحَقِّ﴾ دا دوه حكمونه دى چې په خلافت باندې متفرع دى يعني خلافت مو دركړونو اوس ددې حق دا دې چې: (١)حق مطابق فيصله كوه.(٢)اوپه فيصله كولو كښ دنفس خواهشاتو اتباع مه كوه،اومرادپه امر اونهى سره دوام دې ځكه چې انبياء د گناهونو نه معصوم وى ﴿فَيُضِلَّكَ﴾جواب نهي دې.يعنى كچرته دې يوحكم كښ هم دخواهش نفس اتباع اوكړه، نو بيا به درته ټول شريعت قائم پاتې كيدل گران شى.﴿اِنَّ الَّذِيْنَ يَضِلُّوْنَ﴾دې كښ اتباع نفس سبب بيانيږى چې هغه قيامت روځ اوحساب كتاب هيرول دى.

**فائده**: دې آيت نه دوه خبرې ثابتيږى:

(١)يوداچې خواهش نفس اتباع سبب دگمراهئ دې،انسان اگرچې صرف يوحكم كښ دنفس اومنى اودشريعت اونه منى خوداداسې بلا ده چې دې اثرات اوجراثيم نوروا حكاماتو ته منتقل شى اودنورو احكاماتو بې وقعتى هم په زړه كښ اوغورزيږى،چې هغې د وجهى نه پرې بيا عمل كول مشكل شى

(٢)دويم دا چې اتباع نفس بنيادى سبب دآخرت ورځ هيرول دى،كچرته يوسړي دآخرت ورځ مستحضر ساتى اوحساب كتاب مراقبه كوى نو چرته به هم دنفس په دام ومكر كښ راگيرنشى.

| وَمَا خَلَقْنَا السَّمَآءَ وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا بَاطِلًا ۚ ذٰلِكَ ظَنُّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا |
|---|
| اوندي پيداكړيدي مونږه اسمان اوزمكه اوهغه چې په مينځ ددې دواړوكښ دي عبث. داگمان دكافرانودي. |
| فَوَيْلٌ لِّلَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنَ النَّارِ ﴿۲۷﴾ اَمْ نَجْعَلُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا |
| نوهلاكت دې هغه خلقو لره چې كفرئى كړې دې،چې اوردې، آيامونږگرځوؤهغه كسان چې ايمان ئى راوړې وي |
| وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ كَالْمُفْسِدِيْنَ فِي الْاَرْضِ ۖ اَمْ نَجْعَلُ الْمُتَّقِيْنَ كَالْفُجَّارِ ﴿۲۸﴾ |
| او كړي ئې دى نيك عملونه، پشان دَفساد(شرك)كونكوپه زمكه كښ. آيا مونږ گرځوؤ پرهيزگاران پشان دَ فاجرانو |
| كِتٰبٌ اَنْزَلْنٰهُ اِلَيْكَ مُبٰرَكٌ لِّيَدَّبَّرُوْا اٰيٰتِهٖ |
| «داقرآن»يو كتاب دې،چې نازل كړيدې مونږتاته بركتونو والادې، دَپاره ددې چې دوئ سوچ وكړي په آياتونودد<br>دې كښ. |
| وَ لِيَتَذَكَّرَ اُولُوا الْاَلْبَابِ ﴿۲۹﴾ |
| او دَپاره ددې چې نصيحت قبول كړي خاوندان دَعقل. |

﴿وَمَا خَلَقْنَا السَّمَآءَ وَالْأَرْضَ﴾ دااول دليل عقلي دې په توحيداوپه نفي دَشفيع قهري،چې زمكه اوآسمان اوداټول كائنات بيكاره اوبې مقصده ندى پيداشوي بلكه دكائناتوذره ذره دَ الله ﷻ په وحدانيت اوقدرتِ كامله باندې دليل دې،﴿بَاطِلًا﴾معنى اومرادعبث اولوبى دي يعني عبث اوبې حكمته ئى ندي پيداكړي، كقوله تعالى: وماخلقنا السّموات و الارض و ما بينهما لاعبين. ﴿ذٰلِكَ ظَنُّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا﴾يعني كائناتوته بې مقصده وئيل گمان دكافرانو دې،ځكه چې پدې سره انكاردې دَمعاداوجزاء نه اونفي دَقدرة دَالله ﷻ ده،﴿فَوَيْلٌ لِّلَّذِيْنَ كَفَرُوْا﴾تخويف دې كافرانو ته،چې داسې نظريه ساتلوباندې دوئ لره تباهي ده چې اوردجهنم ته به داخليږي.﴿مِنَ النَّارِ﴾ مِن بيانيه دې يعنى هغه هلاكت چې اوردې او يا مِن ابتدائيه دې يعنى هلاكت دې دَدوئ دَپاره دَاورنه

﴿اَمْ نَجْعَلُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا﴾ دازجردې اودليل دې په وقوع دَقيامت يعنى قيامت به خامخا راځى ځكه كچرته قيامت نوى نودې مطلب به داشي چې مؤمن اوكافر،مفسداومتقى يوشان

دي، اوداخو کيدئ نشي بلکه دوئ کښې خولوئ فرق دې، نو ددې فرق ورځ هغه قيامت ده. چې مؤمن ته خپله بدله جنت ميلاؤشي اوکافرته خپله بدله جهنم ميلاؤشي. ﴿ام﴾ منقطعه دې په معنی دَ بل اواستفهام انکاري دې، ﴿كَٱلْمُفْسِدِينَ﴾ دَفسادنه مرادکفراوشرك دې. چې دَقانون دَشريعت نه دَبغاوت ارتکاب کوي چې دَدي پوجه فسادفی الارض خوريږي ﴿أَمْ نَجْعَلُ ٱلْمُتَّقِينَ كَٱلْفُجَّارِ﴾ تاکيددې دَماقبل، يعنی داسی خو هر گز نشی کيدې ځکه چې بياخوبه متقی اوفاجر دواړه برابر شی، او دا دواړه چرته هم نشی برابر کيدې

﴿كِتَٰبٌ أَنزَلْنَٰهُ﴾ دا دليل وحی دې، يعنی مونږ دينی ودنيوی برکاتو حامل کتاب په تانازل کړې دې، او دَدې مقصد دادې چې دوئ دَدې په آياتونو باندې غوراوکړی چې پکښې خه واضح اومدلل انداز کښې دَتوحيد مسئلی بيان دې اونصيحت حاصل کړی چې الله ﷻ نه ماسوا، نه ځوک معبود شته، اونه شفيع قهری ﴿كتب﴾ خبردَمبتدامحذوف دې ای هذاكتابٌ، تنوين دَتعظيم لپاره دې، او ﴿أَنزَلْنَٰهُ﴾ صفت دې دَ ﴿كِتَٰبٌ﴾. ﴿مُبَٰرَكٌ﴾ خبرثاني دې ياصفت ثاني دې، معنی ئې كثير المنافع الدينية و الدنيوية ده، به قولِ والدمحترم رحمه الله چې حضرت شاه منصورباباجي رحمه الله به فرمائيل: مباركٌ قارئه ، مباركٌ عامله ، مباركٌ سامعُه، ﴿لِّيَدَّبَّرُوٓاْ﴾ متعلق دې دَ ﴿أَنزَلْنَٰهُ﴾ سره، مقصد دَ نزول قراني ذکرکيږي چې دَدې په آياتونو کښې غوراوکړې شي چې ځنګه دَتوحيدبيان کوي، نو ايمان پرې راوړې شي اونصحيت ورنه واغستلې شي، حسن بصري رحمه الله وائی: والله ماتدبُّرُه بحفظِ حروفه واضاعةِ حدودِه، حتّى اِنّ احدهم ليقول والله لقدقراتُ القرآن كلّه، وقد اسقطه والله كله، مايُرى للقرآن عليه اثرٌ فی خلقٍ ولاعملٍ. يعنی قسم دې په الله ﷻ چه په قرآن کښې داتدبرنه دې چه حروف ئې صحيح اووئيلې شی اواحکامات ئې ضائع کړې شی حتّی چه يو کس وائی چه ماټول قرآن اولوستلوليکن والله هغه ټول اوغورځولوځکه چه پده دَقرآن هيڅ اثرنه ښکاری نه په صورت کښې اونه په سيرت کښې.

| وَوَهَبْنَا لِدَاوُۥدَ سُلَيْمَٰنَ ۚ نِعْمَ ٱلْعَبْدُ ۖ إِنَّهُۥٓ أَوَّابٌ ۞ إِذْ عُرِضَ عَلَيْهِ |
| --- |
| اوورکړې وژمونږ داؤد ته سليمان ،ښه بنده وؤدې، بيشکه دې ديرجوع کونکې وژالله ﷻ ته، کله چې پيش کړې شوده ته |

| |
|---|
| بِالْعَشِيِّ الصّٰفِنٰتُ الْجِيَادُ ۝ فَقَالَ اِنِّيْٓ اَحْبَبْتُ حُبَّ الْخَيْرِ |
| په وخت دَبيگاه كښې اسونه كره عمده تيزرفتار،نواويل ده بيشكه زه محبت كوم محبت دآسونوسره، |
| عَنْ ذِكْرِ رَبِّيْ ۚ حَتّٰى تَوَارَتْ بِالْحِجَابِ ۝ رُدُّوْهَا عَلَيَّ ۭ فَطَفِقَ |
| دَپاره دَ ذكر دَخپل رب،تردې چې پټ شواسونه په پرده كښې،واپس ئې كړئ داماته،نوشروع ئې كړو |
| مَسْحًۢا بِالسُّوْقِ وَ الْاَعْنَاقِ ۝ |
| لاس راكاږل په پندواوپه ستونو«دَ اسونو»، |

﴿وَوَهَبْنَا لِدَاوُدَ سُلَيْمٰنَ﴾ دادويم دليلِ نقلي دې په موضوع دَسورة،چې سليمان ﷺ دَجليل القدرپيغمبرخوې وؤ پخپله جليل القدروؤ خوپه ابتلاء كښې واقع شوې وؤ،دَالله ﷻ نه ئې بښنه غوښتلي وه،په چاچه ابتلاراشي نوهغه نه معبودوي نه شفيع قهري،مراددَهبه كولونه په حيثت دَنبي هبه كول دي﴿نِعْمَ الْعَبْدُ﴾مخصوص بالمدح محذوف دې،چې هو دې،يعني دې ډيرښه بنده وؤ الله ﷻ ته ډيررجوع كونكې وؤ.

﴿إِذْ عُرِضَ عَلَيْهِ﴾متعلق دې دَ اذكر سره صيغه دَمجهول دپاره دَ تفخيم ده يعنى دومره ډير آسونه وؤ چې پيش كونكو تعداد ئى هم پوره نه وو معلوم﴿بالعشي﴾ماسپخين يا ماذديگر نه ترمابنام پورې وخت ته وائى.﴿الصّٰفِنٰتُ﴾نائب فاعل دې دَ عُرِضَ فعل اوجمع ده دَ الصافن،هغه اس ته وائى چې ولاړوي نودرې واړه خپې ئى مضبوطي اودره ولي وي اودَڅلورمې خپې حافر«سوه» ئى سسته لږه ولي وي،دادَعمده اس علامت وي«جلالين»او﴿الْجِيَادُ﴾جمع دَجواد ده، عمده اوتيز رفتار اس ته وائي، نومراددادې چې كله به دغه اسونه ولاړوؤنواطمينان سره به ولاړوؤاوچې رفتاربه ئي كولونوتيزبه تلل،

﴿فَقَالَ إِنِّيٓ أَحْبَبْتُ حُبَّ الْخَيْرِ﴾ الخير نه مراداسونه دي،په حديث كښې دي،الخيل معقودفى نواصيهاالخير،**اشكال:** دلته مشهور اشكال دې چې احببت حب الخيرمعنى ده چې څه دآسونو محبت سره محبت كوم،نو دمحبت سره محبت څنگه كيږي،

**جواب:** مفسرينو متعدد جوابونه كړي دي:

(۱) چا وئيلي دی چې احببت په معنی د اردت سره دې.

(۲) چاوئيلی دی چې په معنی د آثرت سره دې

(۳) او چا وئيلی دی چې حب الخير مفعول مطلق تشبيهی دې

(۴) خوراجح قول دادې چې احببت خپله معنی کښ دې او حب الخير مفعول به دې او ذکر د حبّ دپاره دتاکيد دې يعنی دخير محبت سره محبت کوم.نو خير سره خو به خود کوم (الکنز الثمين)

ددې آيت کريمه دوه تفسيرونه شويدي:يوتفسيردادې چې حضرت سليمان ﷺ دجهاد دپاره ډير شې آسونه ساتلی وو، او وقتا فوقتا به ئی دهغوئ معائنه کوله.يوه ورځ ماذيګر د اسونه معائنې دپاره پيش کړې شول نوسليمان ﷺ ورله منډې ورکړی هغې آسونو ډير تيزه منډه اوهله،او دوړې ئی اوچتې کړې حتی چې هغه دوړو کښ پټ شول حضرت سليمان ﷺ چې دااوليدل نو ډير خوشحاله شواو اوئی فرمائيل چې دې اسونه سره زما مينه محبت دنيا دپاره نه دې بلکه دَ الله ﷻ رضادپاره دې اوجهاد او اعلاء کلمة الله دپاره مې ساتلی دې، بيائې هغه آسونه واپس را اوغوختلو او دمينې نه ئی دهغوئ په پنډواو ستونو لاس وهل شروع کړو.دې تفسير مطابق "عن" په "عن ذکر ربي" کښ پمعنی دلام اجليه سره دې ای لاجلِ اعلاءِ ذکرربي،يعني څه ددې اسونوسره محبت دپاره داعلاء کلمة الله کوم يعني جهادلپاره مې ساتلي دي.نودې تفسيرېناء باندی د﴿حَتّٰى تَوَارَتْ﴾ضميراسونوته راجع دې،حجاب نه مرادګردې اودوړې دي،﴿مَسْحًا﴾ مفعول مطلق دې ای يمسح مسحًا،﴿بِالسُّوْقِ وَالْاَعْنَاقِ﴾يعني سليمان ﷺ دهغوئ ستونو اوپنډو دوړی اوګردونه لری کول شروع کړه.

دويم تفسيردادې چې يوه ورځ ماذيګرسليمان ﷺ دآسونو معائنه کوله او په ديکښ دومره مشغوله شو چې نور ترينه ډوب شو او دده نه ماذيګر مونځ اونور ذکر اذکار پاتې شو،نوسليمان ﷺ ډير افسوس اوکړو،چې دآسونومحبت دوجهې نه څما ماذيګر مونځ اواذکارپاتې شول،نوهغه ټول آسونه را اوغوختل اوقربانی ئی کړل او دې توجيه مطابق "عن" په "عن ذکرربي" کښ خپله معنی کښ دې،او "احببت" فعل په صله کښ اګر چې "عن" نه راځي خو دلته دا معنی د"عوض"او "بدل" ته متضمن دې نو ځکه "عن" راغلې دې اې عوضا عن ذکر ربي او

ذکر نه مراد مونځ اونور اذکار وظائف دي او ضمير په ځنې تواريت کښې راجع دي. نور ته.
يعني ترديږ چه نور ډوب شو. دنور ذکر اګرچه صراحتاً شوی نه دی لیکن ضمناً د معنی نه
معلوميږي، ﴿رُدُّوهَا﴾ ضميراسونوته راجع دي. يعني دااسونه ما ته راولئ. اسونه چې ورته
راوستل شول نوذبح کول ئې شروع کړو ﴿فَطَفِقَ مَسْحًا بِالسُّوقِ﴾ مسح کښې ده دذبح نه. يعني بول ئې
ذبح کړو او قرباني ئې ورنه اوکړه، اوداسونوقرباني ددوی په شریعت کښې جائزوه. نو ددې
قربانئ بدله کښې ورته الله ﷻ هوامسخره کړه. چې ورستو آياتونو کښې ذکردي

﴿وَلَقَدْ فَتَنَّا سُلَيْمَٰنَ وَأَلْقَيْنَا عَلَىٰ كُرْسِيِّهِۦ جَسَدًا ثُمَّ
او خامخا په تحقيق سره امتحان وکړو مونږ په سليمان ﷺ باندې او او غورزولو مونږ په کرسۍ دده باندې جسه بيا ئې
أَنَابَ ۝ قَالَ رَبِّ ٱغْفِرْ لِى وَهَبْ لِى مُلْكًا لَّا يَنۢبَغِى لِأَحَدٍ
رجوع وکړه الله ﷻ ته، اوويل هغه اې ربه زما بخنه وکړه ماته اوراکړه ماته داسې بادشاهي چې نه وي مناسب هيڅ چالره
مِّنۢ بَعْدِىٓ ۖ إِنَّكَ أَنتَ ٱلْوَهَّابُ ۝ فَسَخَّرْنَا لَهُ ٱلرِّيحَ تَجْرِى بِأَمْرِهِۦ رُخَآءً
دورستو زمانه، بيشکه هم ته ورکونکي ئې، نوتابع کړه مونږ ده لره هواچې چليده به په حکم دده سره نرمه.
حَيْثُ أَصَابَ ۝ وَٱلشَّيَٰطِينَ كُلَّ بَنَّآءٍ وَغَوَّاصٍ ۝
کوم خوا ته به چې ده اراده وه، او (تابع کړل مونږده) شيطانان پيريان هر يو جوړه ونکي مستري او غوپې وهونکي وؤ.
وَءَاخَرِينَ مُقَرَّنِينَ فِى ٱلْأَصْفَادِ ۝ هَٰذَا عَطَآؤُنَا فَٱمْنُنْ أَوْ أَمْسِكْ
اونور پيريان ترلي شوي په زنځيرونو کښې دامورته اوونيل دازمونږ ورکړه ده نواحسان کوه ورکوه ئې يائې ساته مه ورکوه،
بِغَيْرِ حِسَابٍ ۝ وَإِنَّ لَهُۥ عِندَنَا لَزُلْفَىٰ وَحُسْنَ مَـَٔابٍ ۝﴾
بغير د حساب نه، او بيشکه ده لره زمونږ سره خامخا نزديکت دي او خائسته ځائ د راتلو دي

﴿وَلَقَدْ فَتَنَّا سُلَيْمَٰنَ﴾ داپه سليمان ﷺ باندې دابتلاء ذکردې. چې سليمان ﷺ څومره لوئ
پيغمبر وؤ او څومره لويه بادشاهي وه ورسره، دهغې نه باوجود په هغه ابتلا او ازمائش
راغلې، نوهغه الله ﷻ ته رجوع اوکړه، نوکله چې دومره عظيم انسان پيغمبر او بادشاه الله

ﷺ ته محتاج دي او شفيع قهرى نشى كيدي نو نور څوک په طريق اولى نشى كيدي

**دا ابتلاء د څه وه؟** مستند رواياتو كښ ددې هيڅ وضاحت نشته.دمفسر وظيفه هم داده چې قرآن كوم واقعات مبهم ذكر كړى دى هغه مبهم پريګدى اودكومو واقعاتو تفصيل بيان كړې دې هغې وضاحت اوكړى،لهذاتپولونه غوره خبره داده چې دا واقعه خپل ابهام باندې پريخودلې شى ،البته څنې مفسرينو ددې تعيين كوشش كړې دې چې هغې كښ دوه اقوال قابل ذكر دى:

(۱)څنو مفسرينو ددې مصداق هغه واقعه ګرځولى ده چې بخارى ومسلم كښ راغلې ده چې سليمان يوځل قسم اوكړوچې"لاطوفنّ الليلةَ على سبعين امراءةً كلهنّ تاتي بفارس يُجاهدُ فى سبيل الله(بخاري كتاب الانبياء)يعني څه به نن شپه دَخپلوټولوبيبيانوسره صحبت كوم او دَهغوئ نه چې اولاد پيداشي هغوئ به ټول مجاهدين وي،دائى اووئيل ليكن انشاء الله ئى او نه وئيل.نوپه هغه ټولوبيبيانوكښ دَيوي نه ماسوئ يوه هم نشوه حامله.اودَهغې يوي نه چې بچې اوشونوهغه هم ناقص الخلقت وو،وينزې ئى راوړواوده ته ئى په تخت واچولو.دَ﴿جَسَدًا﴾ نه دغه جسد مراددې،او ﴿وَأَلْقَيْنَا﴾معنىٰ دَوينزې كيخودل دي په تخت باندې،په حديث كښ دي كه چرته ئى انشاء الله ويلې وې نوبچي به ئى پيداشوي وؤټول به مجاهدين وؤ.

(۲)امام رازي رحمه الله فرمائى چې په آيت كښ ابتلاء نه مراددَهغه بدن په ابتلاكښ اچول دي چې دومره بيمارشوچې دَبدن نه ئى صرف يوجُسه جوړه شوه،په تخت به چې ناست وؤنويوبې روحه جُسه به معلوميده،دَ﴿ثُمَّ أَنَابَ﴾معنىٰ داده چې صحت ورته ميلاؤشو.

بعض مفسرينو دې ابتلا په تعيين كښ دَسليمان عليه السلام دګوتې او يوجنى واقعه ذكر كړيده چې سليمان عليه السلام بادشاهى دهغه په ګوتئ كښ منحصر وه، يوه روځ دَ جني په لاس ورغله نو هغه په سلطنت باندې قبضه اوكړه اوبيا دې واقعې په ضمن كښ هغه خبرې ليكلى دي چې قلم دهغې ذكركولو نه عاجز دې،دَدې واقعې هيڅ حقيقت نشته،بلكه دا دَيهودوافترا او وضع ده، دوئ دحضرت سليمان عليه السلام اوداؤد عليه السلام دنبوت قائله نه وؤ،نو دهغوئ دَبدنامئ دپاره ئې دَځان نه داسې واقعات جوړول چې دې سره دهغوئ نبوت مشكوک شى قاتلهم الله.

﴿قَالَ رَبِّ اغْفِرْ لِي﴾استغفارنه مقصوددَخپلې عاجزئ اودَخشوع اظهاردې،دادليل ندې پدې چې دَسليمان عليه السلام نه څه ګناه شوي وه،ځكه چې دَاستغفارلپاره تقدم دَذنب ضروري

ندي، ﴿وَهَبْ لِي مُلْكًا﴾ بادشاهت غوښتلو مقصدئې دَدين حفاظت او اعلاء کلمة الله وو صرف طلب دَاقتدارنه وو، ﴿لَا يَنْبَغِي لِأَحَدٍ مِنْ بَعْدِي﴾ بَعْدِي په معنی دَغيري دي. کقوله تعالى فمن يهديه من بعدالله، اى غيرالله، مراد دَسليمان ﷺ پدې خصوصيت سره طلب دحکومت دي بطورمعجزه په نبوت باندې نه بخل په حکومت باندې (خطيب شربيني). ﴿إِنَّكَ أَنْتَ الْوَهَّابُ﴾ علت دي دَماقبل.

﴿فَسَخَّرْنَا لَهُ الرِّيحَ﴾ دَهوا مسخرکيدلو بيان په سورة سبا کښې تيرشويدې. ﴿رُخَاءً﴾ دَرخاوة نه دي نرمئ ته وائی يعنی دا هوا به په نرمئ سره چليده. په دې دا اشکال کيږی چې سورت الانبياء کښې ددې هوا وصف "عاصفة" راغلې دې او عاصفة تيزې هوا ته وائی نوجواب دادې (۱) چې د رخاوة او عصف کښې هيڅ تضاد نشته (رُخَاءً) نرم چليدوته وائی چې طوفانی کيفيت او دهچکې پکښې نه وی برابره خبره ده هواکه تيزه وی اويارو وی او عاصفة صرف تيز تلونکی ته وائی، نو ددې هوا دوه وصفه بيان شو، يوداچې دا عاصفة وه تيزه به تله چې غدوها شهر ورواحها شهر چې سحر به روانه شوه نو يو مياشتې مسافت به ئې دزوال نه مخکښې مخکښې پورهکړو. اوچې ماښام به راوانه شونوغروب نه مخکښې به ئې دَيومياشت مسافت طې کړو. دويم صفت ئې داوؤ چې رخاوة وؤ پکښې دتيز رفتارئ باوجود سفرئې آرام ده وؤ عرش او تخت به ورسره دهچکې نه خوړلې، (۲) يا عاصفة معني سخته هوا ده، خو عاصفة ورته د ذات په اعتبار سره وئيلې شوی دی، او رخاء يعنی نرمه ورته په اعتبار دَسليمان ﷺ سره وئيلې شوی دی، يعنی دا ډيره سخته او سرکشه هوا وه، خو مؤثر دَ سليمان ﷺ منقاد کړې وه. ﴿حَيْثُ أَصَابَ﴾ اى حيث اراد.

﴿وَالشَّيَاطِينَ﴾ عطف دي په ﴿الرِّيحَ﴾ باندې، مرادورنه جنات دي چې دَده حکم تابع وؤ ﴿كُلَّ بَنَّاءٍ﴾ بدل دي دَ ﴿وَالشَّيَاطِينَ﴾ نه يعني هريوپکښې معماراومستري وؤچې ابادئ به ئې ورله کولې لکه تفصيل ئې سورة سبأ کښې تيردې، ﴿وَغَوَّاصٍ﴾ يعني درياب کښې غوپې وهونکې وؤ دَسليمان ﷺ لپاره به ئې دَدرياب نه ملغلرې رااوباسلې، سليمان ﷺ اول هغه کس دې چې دَدرياب نه ورله ملغلرې رااوباسلې شوې وې (قرطبي).

﴿وَآخَرِينَ مُقَرَّنِينَ فِي الْأَصْفَادِ﴾ اصفاد جمع دَصفد ده، زنځيرته وائی، يعني بعضې سرکشه او

کافران جنات به ئی په زنځیرونو کښې تړلي وو چې د کفر او سرکشئ یوجه ورانی اونکړي. ﴿هٰذا عَطَآؤُنَا﴾ قلنا ورنه مخکښ مقدر دې او اشاره ماقبل انعاماتونه ده. یعني لویه بادشاهي او مالداري مونږ درکړیده نو چې چاته دي خوښه وي ورکوه او چاته دې نه وي خوښه مه ورکوه. څه حساب اوتپوس درسره نشته دې، نه آخرة کښ نه دنیا کښ. بعض والي اشاره تسخیر د جناتو ده او د ﴿فَامْنُنْ اَوْ اَمْسِكْ﴾ نه مراد دادې چې ازاد ول د هغوئ د قید نه او یا قید کښ ساتل ستا خوښه ده، ستا نه څوك د تپوس کولو والا نشته (روح).

﴿وَاِنَّ لَهٗ عِنْدَنَا لَزُلْفٰی﴾ یعني سره د بادشاهئ اومالدارئ نه ئی زمونږ سره دنیا اخرت کښ مقام دې، اشاره ده دیته چې ده بادشاهي اومالداري د ده لپاره مضر نه وه او نه ئی ورله په مقام مرتبه کښ څه کمي راوسته. اونه ئی په غرور تکبر کښې اچولې وو. په خلاف د دې کافرانو. چې معمولي غوندې سردارئ دوئ تکبر او عناد کښ مبتلا کړل. او دنیا اوآخرت دواړه ئی خپل تباه کړل.

| |
|---|
| وَاذْكُرْ عَبْدَنَآ اَيُّوْبَ ۘ اِذْ نَادٰى رَبَّهٗٓ اَنِّيْ مَسَّنِيَ الشَّيْطٰنُ بِنُصْبٍ |
| اویادکړه بنده زمونږ ایوب ﷺ، کله چې ده اواز وکړو رب خپل ته چې بیشکه رارسولې دې ماته شیطان تکلیف |
| وَّعَذَابٍ ﴿٤١﴾ اُرْكُضْ بِرِجْلِكَ ۚ هٰذَا مُغْتَسَلٌۢ بَارِدٌ وَّشَرَابٌ ﴿٤٢﴾ |
| اودرد، (نومونږورته اوئیل) چې اووهه په خپلې خپې (زمکه) دا اوبه دي دلامبلو یخې او د څکلو . |
| وَوَهَبْنَا لَهٗٓ اَهْلَهٗ وَمِثْلَهُمْ مَّعَهُمْ رَحْمَةً مِّنَّا وَذِكْرٰى لِاُولِي الْاَلْبَابِ ﴿٤٣﴾ |
| اوورکړو مونږه ده ته اهل ده، او پشان د هغوئ هم ورسره نور، په مهربانئ خپلې سره. او لپاره د نصیحت د خاوندانو د عقل |
| وَخُذْ بِيَدِكَ ضِغْثًا فَاضْرِبْ بِّهٖ وَلَا تَحْنَثْ ۗ اِنَّا وَجَدْنٰهُ |
| او اونیسه په لاس خپل کښ قوده د وخونو اووهه په هغې (بي بي خپله) اوقسم مه ماتوه، بیشکه مونږه موندلې وو دې |
| صَابِرًا ۗ نِعْمَ الْعَبْدُ ۗ اِنَّهٗٓ اَوَّابٌ ﴿٤٤﴾ |
| صبرکونکې ، څه ښه بنده وو دې، بیشکه دې ډیر رجوع کونکې وو الله ﷻ ته، |

﴿وَاذْكُرْ عَبْدَنَآ أَيُّوبَ﴾ دا دريم نقلي ليل دي په توحيد او په نفي د شفيع قهري چې ايوب ﷺ پيغمبر وؤ چې کله تکليف کښې واقع شونو الله ﷻ ته ئې سوال اوکړو. اوځوک چې بل چا ته سوال کوي هغه شفيع قهري نشي جوړيدلې. ﴿أَنِّي مَسَّنِيَ الشَّيْطَانُ﴾ شيطان ته په نسبت کولو کښې د مفسرينو مختلف اقوال دي:

(۱) بعضِ فرمائی چې د ايوب ﷺ د بيمارئ په دوران کښې شيطان يو ځل دده بي بي ته په شکل د يو حکيم کښې متشکل شو، بي بي ورنه د علاج درخواست اوکړو. نو شيطان ورته اووئيل چې زه ئې علاج کوم خو په دې شرط چې کله ورته شفاء ميلاؤشي نو ته به د غير الله په نوم باندې قرباني کوي، نو چونکه دا د خپل خاوند په بيمارئ باندې ډير غمژنه وه نو په زړه کښې ئې دې خبرې ته ميلان پيداشو، راغله او حضرت ايوب ﷺ ته ئې د دې ذکر اوکړو نو هغه نوراُ پوهه شو چې دا شيطان وؤ په دې خبره ورته ډير تکليف اورسيدلو ډيرپه عاجزئ سره ئې الله ﷻ ته سوال اوکړو چې ياربه ځما د طويل مرض پوجه اوس شيطان هم مونږ ته د شرك دعوت راکوي، ياربه شيطان ماته په دې خبره تکليف رسولې دې، او ته ارحم الرّاحمين ذات ئې په ما رحم اوکړه.

(۲) بعضِ حضرات وائی چې د بيمارئ په حالت کښې به ورته شيطان قسمه قسم وسوسي اچولي په هغې سره ده ته ډير تکليف رسيدلو نو د دغه تکليف نسبت ئې شيطان ته اوکړو

(۳) راجح قول دادې چې دي نسبت کښې ئې د الله ﷻ د ادب رعايت ئې ساتلې دې ځکه ادب دادې چې د تکليف او شر نسبت الله ﷻ ته اونه شي، کقوله تعالی: وماانسٰنيهُ الاّالشيطان (کهف) په حديث کښې دي "والخيرفی يديك والشرّ ليس اليك".

﴿بِنُصْبٍ﴾ مشقت او تکليف ته وئيلې کيږي اواکثر هغه تکليف د پاره استعماليږي چې سترتيا د وجهې نه انسان ته لاحق شوې وی ﴿وَعَذَابٍ﴾ عذاب نه مراد درد او الم دې يعنی اې ربه! څه نې ستړې واچولم او اوئی دردولم، يو قول دادې چې د "نصب" نه بدني مرضونه او تکليفونه مراددي، او ﴿عَذَابٍ﴾ نه مالي تکليفونه اود اولاد تکليفونه.

﴿ارْكُضْ بِرِجْلِكَ﴾ فقلناله ورنه مخکښې مقدردې، "رکض" پونده وهلو ته وائی، يعني دعائی قبوله شوه د علاج د پاره موورته حکم اوکړوچې خپله خپه ځمکې ته راپريکده، نو ايوب ﷺ په پونده باندې ځمکه اووهله نو د يخوا وبو چينه پيداشوه الله ﷻ ورته حکم اوکړو چې

پدېکښې اولامبه او اوبه ترينه هم اوڅکه، نو لامبلو سره ئې دبدن ظاهرى بيماريانې ختم شوې او اوبه څکلو سره ئې دَبدن اندرونى بيمارئ ختم شوې ﴿هَٰذَا مُغْتَسَلٌ﴾ دينه مخکښې هم "قلنا" مقدردې، او دادااسم مفعول صيغه ده، اي مايغتسل به يعنى دغسل اوبه دى ﴿شَرَابٌ﴾ داهم اسم مفعول په معنى کښې دې اي مشروب يعنى دادَغسل ځائ دې اودڅکلواوبه. دَظاهر دَقرآن نه دامعلوميږي چې داچينه يوه وه چې ايوب ﷺ ورنه غسل هم اوکړواواوبه ئې ترينه هم اوڅکلې، بعضِ وائى چې دادوه چينې وې يوې نه ئې غسل اوکړوبلې نه ئې اوبه اوڅکلې.

﴿وَوَهَبْنَا لَهُۥٓ أَهْلَهُۥ﴾ دابل انعام دې، چې کوم اولادئ مړه شوي وُنوالله ﷻ ورته دوباره هغه راژوندي کړل اوهغوهومره ئې ورته نورهم ورکړل نودادَهغه معجزه وه. اوځنى مفسرين وائى چې اولاد ئې وفات شوې نه وُ. بلکه دده نه لرې تختيدلى وُخواره شوى وُو نو الله ﷻ ورله هغه دوباره راوستل. ﴿وَمِثْلَهُم مَّعَهُمْ﴾ يعنې دې نه علاوه نوردغه اومره اولادئى هُم ورته ورکړل دوه چنده شول، ﴿رَحْمَةً مِّنَّا﴾ مفعول له دې دَ "وهبنا" فعل، يعنى دا صحت ورکول. اولاد ورله واپس راوستل اونسل کښې ورله برکت اچول دزمونږ خصوصى اولويه مهربانى وه، په ايوب ﷺ، يعنې دَده دَ صبراواخلاص په وجه اوزمونږطرف نه وربانديې مهربانئ پوجه دغه ورکړې شول، ﴿وَذِكْرَىٰ لِأُولِى ٱلْأَلْبَٰبِ﴾ دا عطف دې په "رحمة منا" بانديې، يعنى دَپاره دَ نصيحت دعقلمندو، اونصيحت دادې چې حالات اوتکليفات څنګه په انبياؤ راتلې شى نو دهغه شان په عامو خلقو هم راتلې شى نو په دې بې صبرې نه ده پکار، بلکه هرحالت کښې دَ الله ﷻ شکر کول پکاردى، دويم داچې مصيبت او تکليف څومره لوئ او اوګد وئ خوهغې نه بعد بيا فراخى اوخوشحالى راځى دايوب ﷺ دَمرض قصه پوره تفصيل سره په سورت الانبياء کښې تيره شوې ده.

﴿وَخُذْ بِيَدِكَ ضِغْثًا﴾ دې کښې حيله ده دَقسم پوره کولوچې ايوب عليه السلام قسم خوړلې وُچې څه به خپله بي بي (۱۰۰) دُرې وهم چې کله دَمرض نه ښه شم، سبب دَقسم کولوئى يادا وُچې دَده بي بي يوځل په راتلوکښې ناوخته کړونوده دغه قسم اوکړو، ياشيطان چې ورته په کوم شرط علاج کولوهغې منلوته ميلان باندې ئى داقسم اوکړولکه مخکښې تيرشو، نوچونکه دابې ګناه وه عقيده ئى دَشرك نه وه خوصرف داخبره ئى ايوب ﷺ ته رارسولې وه، او (بناء په اول توجيه)

ډیرښه خادمه وه په خدمت کښې ئې څه کوتاهي نه وه کړي نو الله جل‌جلاله دایوب علیه السلام تحلیل لپاره دغه حیله ورته بیانکړه، نوایوب علیه السلام سل (۱۰۰) ډکي د سرکړې نه دبل څه رااوخستل او یو ګزارئ اووهله، نودې حانث نه شو، بي بي نی هم بچ شوه.

﴿ضِغْثًا﴾ضغث هغه ځانګه یادوخوقوده چې سل (۱۰۰) ډکي پکښې وي په شان د جارو.

وهوالحزمةُ الصغيرة من حشيشٍ اوريحانٍ اوقضبانٍ(روح)﴿فَاضْرِب بِّهِۦ﴾ به ضمير ضغث ته راجع دې

**فائده**: دفقهاؤپه مابین کښې دامسئله مختلف فیه ده چې آیا داحیله په ایوب علیه السلام پورې خاص وه اوکه بل چاد پاره هم داکیدیشي؟ امام مالک رحمه الله فرمائي چې داحیله صرف په ایوب علیه السلام پورې خاص وه بل چادپاره نشي کیدلې اودا دې قول نسبت حضرت ابن عباس رضي الله عنه او مجاهد رحمه الله ته هم شویدې، امام ابوحنیفه رحمه الله اوامام زفر رحمه الله اوامام شافعي رحمه الله مذهب دادې چې داحیله عامه ده هرچاته ئې حکم شامل دې، باقي د حیلې تعریف او اقسام او د هرې یوې حکم تفصیلاً حضرت والدمحترم نور الله مرقده وبرّد مضجعه په تفسیرد سورة اعراف آیت (۱۲۳) جلدنمبر (۲) کښې کړیدې هلته دې اوکتلې شي.

﴿إِنَّا وَجَدْنَٰهُ صَابِرًا﴾ یعني امتحانات مووربانديې راوستل نوصبرکونکې مواوموندلو، هرچې ده داخبره چې د حضرت ایوب علیه السلام د مرض څه نوعیت وؤاوکوم مرض ورته لاحق شوې وؤنوقرآن پاک اوپه احادیثوکښې د دې تفصیل نشته دې، صرف دومره قدري خبره کافي ده چې دایومرض وؤچې په هغې سره ئې ابتلاشوې وه، لیکن دامرض دومره حدته نه وؤرسیدلې چې هغه باعث د نفرت اوګرځي د خلقولپاره ځکه چې انبیاء علیهم السلام د داسې قسمه مرضونونه محفوظ دي (کبیروغیره).

| وَاذْكُرْ | عِبَٰدَنَآ | إِبْرَٰهِيمَ | وَإِسْحَٰقَ | وَيَعْقُوبَ | أُو۟لِى | ٱلْأَيْدِى |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| اویادکړه | بندګان زمونږه | ابراهیم علیه السلام | اواسحاق علیه السلام | اویعقوب علیه السلام | چې خاوندان | د قوة وؤ په طاعت کښې |

| وَٱلْأَبْصَٰرِ | إِنَّآ | أَخْلَصْنَٰهُم | بِخَالِصَةٍ | ذِكْرَى | ٱلدَّارِ | وَإِنَّهُمْ |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| او دبصیرت وؤ | بیشکه مونږه | خالص کړي وؤ دوئ | په یوخصلت سره | چې یادول | د آخرت وؤ | او بیشکه دوئ |

| |
|---|
| عِندَنَا لَمِنَ الْمُصْطَفَيْنَ الْأَخْيَارِ ﴿٤٧﴾ وَاذْكُرْ إِسْمَاعِيلَ وَالْيَسَعَ وَذَا الْكِفْلِ |
| په نيز زمونږه خامخا دغوره كړي شوؤبهتروخلقونه وؤ . اويادكړه اسماعيل اواليسع اوذوالكفل |
| وَكُلٌّ مِّنَ الْأَخْيَارِ ﴿٤٨﴾ |
| اوداټول دغوره خلقونه وؤ. |

﴿وَاذْكُرْ عِبَادَنَا إِبْرَاهِيمَ ﴾داڅلورم دليلِ نقلي دې په توحيد.اوپدې كښې اثبات دعبديت دې دانبياؤ.اودهغوئ صفات بيان دي چې دهريوصفت نه دامعلوميږى چې دوئ شفيع قهري نه وؤ.﴿أُولِي الْأَيْدِي ﴾دائې اول صفت دې،"ايدي"جمع ديدده پمعنى دقوة،اى اولى القوة فى الطاعة والبصيرة فى الدين(روح) ﴿وَالْأَبْصَارِ﴾دائې دويم صفت دې،"ابصار"جمع د"بصر"ده پمعنى د بصيرة، نومعنىٰ داده چې دوئ خاوندان دقوة وؤ په طاعت دالله ﷻ كښې اودين كښې ورته بصيرة حاصل وؤ،بعضِ وائى(ايدي) نه مراد نيك عملونه دي ذكردسبب دې مرادورنه مسبّب دې،يعني دوئ نيك عملونوالاوؤ(روح،قرطبي).

﴿إِنَّا أَخْلَصْنَاهُم ﴾دائى دريم صفت ې چې ددوئ ژوند مقصد صرف اوصرف آخرت جوړول اودهغې تيارى وه،(اخلصناهم) اي جعلنا هم خالصين لنايعنى مونږ ځان دپاره خاص كړى وؤ،اونور خلقو باندې خوورله امتياز وركړې وؤ.﴿بِخَالِصَةٍ﴾صفت دې دموصوف محذوف دپاره.اي: بخصلة خالصة باء سببيه ده اوتنوين دپاره دتفخيم دې يعنى امتياز موورله وركړې وؤ ديو ډير لوئ صفت دوجهې نه،چې هغه په دوئ كښې خصوصيت سره موجود وؤ په نسبت د عامو خلقو. ﴿ذِكْرَى الدَّارِ ﴾ بدل يا عطف بيان دې د"خالصة" نه يعنى هغه صفت دآخرت يادول او دهغې تذكري دى "الدار" بغير دصفت "الاخرة" نه راوړلو كښې اشاره ديته چې حقيقى دار آخرت دې دنيا فانى او مجازى دار دې

﴿وَإِنَّهُمْ عِندَنَا ﴾دا بل وصف دانبياؤو بيانيږى چې دوئ د الله ﷻ چنيده او برگزيده بندگان وؤ﴿الْمُصْطَفَيْنَ ﴾جمع مذكر سالم صيغه ده،حالت جرى كښې ده،اصل كښې "المصطفِيِنَ" وؤ اوله "ياء" متحركه وه ماقبل ئى مفتوح وؤ نو يا په الف سره بدل شوه.اوبيا جمع د ساكنينو راغله

نو الف مو اوغورځو نو ﴿ٱلْمُصْطَفَيْنَ﴾ شو ﴿ٱلْأَخْيَارِ﴾جمع د خَيِّرٌ[بتشديد الباء] بروزن فَيْعِل ده. غوره او برګزيده ته وئيلې كيږي او يا جمع د خير اسم تفضيل ده داسم تفضيل جمع مكسر اګر چې افعال په وزن نه راځي خودلته تخفيفا راوړلې شوې ده لكه څنګه چې ئې مفرد تخفيفا خير راوړلې شوې دې په ځائې دَ اخير.

﴿وَٱذْكُرْ إِسْمَـٰعِيلَ﴾ داپنځم دليلِ نقلي دې په توحيدباندې،چې داانبياء هم الله په نيز خواص وؤدَعبادت په وجه،﴿وَٱلْيَسَعَ﴾يسع دَبني اسرائيلودَانبياؤنه يونبي وؤ،الياس نه ورستوورته نبوت ميلاؤشوې وؤ،يسع لفظ عجمي دې،لام پكښې زائددې، عجمي لفظ كښې هم لام راتللې شي لكه الاسكندروغيره، بعضِ وائي عربي لفظ دې دَ وسع يسعُ نه منقول دې(روح المعاني).﴿وَذَا ٱلْكِفْلِ﴾حالات اووجه تسميه دَدې پيغمبرپه سورة انبياء آيت(۸۲)كښې تيره شويده.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| هَـٰذَا | ذِكْرٌ ۚ | وَإِنَّ | لِلْمُتَّقِينَ | لَحُسْنَ | مَـَٔابٍ ﴿٤٩﴾ | جَنَّـٰتِ عَدْنٍ |

دا(امتحانات)يونصيحت دې،اوبيشكه دپاره دَپرهيزګارانوخامخا ښه ځائ دَورتلودې چې جنتونه دي دَ هميشه اوسائ

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مُّفَتَّحَةً | لَّهُمُ | ٱلْأَبْوَٰبُ ﴿٥٠﴾ | مُتَّكِـِٔينَ فِيهَا | يَدْعُونَ فِيهَا | بِفَـٰكِهَةٍ | كَثِيرَةٍ |

پرانستلي شوي به وي دوئ ته دروازې دَهغې،تكيه وهونكې به وي په هغې كښې غواړي به دوئ پدې كښې ميوې ډيرې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَشَرَابٍ ﴿٥١﴾ | وَعِندَهُمْ | قَـٰصِرَٰتُ | ٱلطَّرْفِ | أَتْرَابٌ ﴿٥٢﴾ |

اومشربات، اووي به دوئ سره حوري په ناز كتونكې همزولې،

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| هَـٰذَا مَا تُوعَدُونَ | لِيَوْمِ ٱلْحِسَابِ ﴿٥٣﴾ | إِنَّ هَـٰذَا | لَرِزْقُنَا | مَا لَهُۥ | مِن نَّفَادٍ ﴿٥٤﴾ |

داهغه بدله ده چې وعده ئې كيږي تاسوسره د دركولو په ورځ دَحساب،بيشكه داخامخارزق زمونږه دې،نيشته دې لره خلاصيدل

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| هَـٰذَا ۚ | وَإِنَّ | لِلطَّـٰغِينَ | لَشَرَّ مَـَٔابٍ ﴿٥٥﴾ | جَهَنَّمَ | يَصْلَوْنَهَا ۖ |

داهذكوردمتقيانودپاره وؤ)اوبيشكه دَسركشودپاره يقيناًچې بدځائ دَورتلودې، چې دوزخ دې،ورننوځي به دوئ هغې ته،

فَبِئْسَ الْمِهَادُ ﴿٥٦﴾ هٰذَا فَلْيَذُوقُوهُ حَمِيمٌ وَغَسَّاقٌ ﴿٥٧﴾ وَآخَرُ مِنْ شَكْلِهِ

ديريده تهكانه ده دادوزخ ، دا دي - نواو دي څكي دوئ دا - گرمي اوبه او زوې [illegible]

أَزْوَاجٌ ﴿٥٨﴾ هٰذَا فَوْجٌ مُقْتَحِمٌ مَعَكُمْ لَا مَرْحَبًا بِهِمْ

قسمونه دعذاب، دااتباع بيوه ډله ده چې ننوتونكې ده تاسو سره. [illegible]

إِنَّهُمْ صَالُوا النَّارِ ﴿٥٩﴾ قَالُوا بَلْ أَنْتُمْ لَا مَرْحَبًا بِكُمْ أَنْتُمْ قَدَّمْتُمُوهُ لَنَا

بيشكه داټول ننوتونكي دي اورته. اوبه وائي كشران بلكه تاسو .نه دي وي مرحبا په تاسو [illegible]

فَبِئْسَ الْقَرَارُ ﴿٦٠﴾ قَالُوا رَبَّنَا مَنْ قَدَّمَ لَنَا هٰذَا

نوډيربدځائ دقرارئ دي (دااور) اوبه وائي دوئ اى ربه زموږ [illegible]

فَزِدْهُ عَذَابًا ضِعْفًا فِي النَّارِ ﴿٦١﴾ وَقَالُوا مَا لَنَا لَا نَرَىٰ

نوزيات كړه هغه لره عذاب دوه چنده په اوركښې اوبه وائي جهنميان [illegible]

رِجَالًا كُنَّا نَعُدُّهُمْ مِنَ الْأَشْرَارِ ﴿٦٢﴾ أَتَّخَذْنَاهُمْ سِخْرِيًّا أَمْ زَاغَتْ

هغه خلق چې وو موږ شمارل به موهغوئ دشريرانو نه. آيا نيولي وو موږ هغوئ [illegible]

عَنْهُمُ الْأَبْصَارُ ﴿٦٣﴾ إِنَّ ذٰلِكَ لَحَقٌّ تَخَاصُمُ أَهْلِ النَّارِ ﴿٦٤﴾

دهغوي نه سترګې زموږ. بيشكه داجګړه خامخا حقه ده جګړه ددوزخيانو

﴿هٰذَا ذِكْرٌ﴾ اشاره تيرشوي واقعاتو او ابتلاګانو د انبياؤ ته ده او ذكر نه مراد يانصيحت دي. يعني داواقعات لپاره دنصيحت بيان شول چې خلق ورسره نصيحت قبول كړي. ياورنه مراد شرف اوذكرجميل دي، يعني داددوئ ښائسته تذكره ده په دنياكښې او شرف دي چې هميشه به په ښو اوصافو سره ذكركيږي.

﴿وَإِنَّ لِلْمُتَّقِينَ لَحُسْنَ مَآبٍ﴾ دابشارت دي متقيانو ته، چې الله جل جلاله دوئ لپاره دمرګ نه ورستو ښائسته ټكانه تيار كړيده ﴿جَنّٰتِ عَدْنٍ﴾ بدل دي د ﴿لَحُسْنَ مَآبٍ﴾ نه. ﴿مُفَتَّحَةً لَهُمُ الْأَبْوَابُ﴾

صفت دي د﴿جَنّٰتِ عَدْنٍ﴾يعني داسې جنتونه چې دروازې به ئې دجنتيانودراتلو نه مخکښې کولاوې وي،دَدوئ دَراتلوانتظاربه کوي.ياحال دي دمحذوف نه. اي: يدخلونها مفتحة لهم الابواب.
﴿مُتَّكِـِٔينَ فِيهَا﴾او ﴿يَدْعُونَ فِيهَا﴾دواړه حالين دي دضميرد"لهم" نه ياد (متقين) نه

﴿وَعِندَهُمْ قَٰصِرَٰتُ ٱلطَّرْفِ﴾ يعني داسې حورې به ورته ورکولې شي چې دَخاوندانونه ماسوی به بل چاته نه ګورې،يادامطلب چې دَډيربنائست پوجه به خاوندان دوئ نه بغيربل چاته نه ګورې، اويا داچې ډير ده نازنه به سترګې پټه وي اوکولاوِوی لکه سورة الصّٰفّٰت کښې تفصيلاً تيردي. ﴿أَتْرَابٌ﴾جمع دَ"ترب"ده،همزولې ته وائی. يعنی داحورې به ديوبل همزولې هم وی اودخاوندانو همزولې به هم وی.اوديکښې اشاره ده باهم مينه محبت ته.چې نه به ددوئ خپله کښې څه بغض وحسدوی او نه به ئې خاوند نه څه نفرت وی

﴿هَٰذَا مَا تُوعَدُونَ﴾اشاره ماقبل نعمتونه ته ده.﴿لِيَوْمِ ٱلْحِسَابِ﴾ لام په ليوم الحساب کښې دپاره د توقيت دې اي في يوم الحساب يعنی داهغه نعمتونه دي چې قيامت په ورځ ئې درکولو وعده تاسو سره کيږی.اويالام اجليه دې،ای لاجل يوم الحساب.يعني دې نعمتونو وعده تاسو سره کيږې د قيامت په وجه،نسبت يوم الحساب ته مجازاً شويدې،ځکه چې وعده دَطاعت اونيك اعمالوپه وجه کيږې خوچونکه اظهارئې پدغه ورځ کيږي نوځکه داورځ علت اوګرځولې شوه(روح)

﴿إِنَّ هَٰذَا لَرِزْقُنَا﴾ هذا کښې اشاره ده نعمتونو دَجنت ده،يعنی دا داسې رزق دې چې دَدې څه انتها او ختميدل نشته كقوله تعالى:عَطَاءً غير مجذوذ(هود:١٠٨)،

﴿هَٰذَا ۚ وَإِنَّ لِلطَّٰغِينَ﴾ "هذا"دلته پمنزله دَفصل دې،چې مابعد دَ ماقبل نه جداکوی او دَ ما بعداهميت احساس هم ورکوی،يعنی داخبره خوتيره شوه اوس دابله خبره راروانه ده،دې ته غوږ شه."هذا" يا خبر دې دَمبتدا محذوف دَپاره،اي الامر هذا اويامبتدا دې او خبرئی محذوف دې.اي هذا للمؤمنين او يافاعل دې فعل محذوف اي مضى هذا او يا مفعول دې دَفعل محذوف اي خذ هذا.﴿وَإِنَّ لِلطَّٰغِينَ﴾ دوئ لپاره ډيربدځائ دَورتلودې چې جهنم ته به داخليږي،﴿جهنم﴾بدل دي د لشرمآب نه

﴿هَٰذَا فَلْيَذُوقُوهُ﴾ هذا مبتدا ده اوحميم ورله خبر دې،اوغساق عطف دي په خبر باندې

فليذوقوه‌جمله معترضه ده. قدمت على الخبر لاجل المبادرة باهانتهم.یا هذا خبر دی مبتدا محذوف دی
اي العذاب هذا﴿حَمِيمٌ﴾ دَجهنم گرمي اوبه چې جهنميان ئی اوڅکي نوکولمي به ئی
بهرراووځي(اعاذنا الله ). ﴿وَغَسَّاقٌ﴾ دَ دوزخيانوويني زوي (پيپ)چې دَ زخمونو نه به ئی بهيږي

﴿وَءَاخَرُ مِن شَكْلِهِۦٓ ﴾صرف دا عذاب ئی نه دې ،بلكه دي په شان به نورهم قسمه قسمه
عذابونه دی ﴿آخر﴾ اي:وعذاب آخرلفظ (آخر)اگرچې مفرددي خو معنا جمع دې معنی به ئی د
جمع صيغې كوؤ.يعنی نورعذابونه ﴿مِن شَكْلِهِۦٓ ﴾ضمير مجرور حيم او غساق ته راجع دې په
تاويل دَ "ماذكر"سره او "شكل" په معنی دَ "مثل" سره دي او مراد ورنه مماثلت دې په شدت كښې
﴿ازواج﴾ اي اصناف،قسمه قسم يعنی دغه شان به ورته نورهم قسمه قسم سخت عذابونه
ميلاويږی، "اخر"خبر دې دَ "هذا" مبتدا محذوف دپاره اويا مبتدا دې اوخبر ئی محذوف دې چې
"منه" دې، "من شكله"ورله صفت اول او"ازواج"ورله صفت ثانی دې.يا "اخر" مبتدا دې او "ازواج"
ورله خبر دې "من شكله" صفت دې دمبتدا.

﴿هَٰذَا فَوْجٌ مُّقْتَحِمٌ مَّعَكُمْ ﴾داخطاب دې دَدارغو دَجهنم دگمراهانومتبوعينوسره،يعنې
فرشتې به دَدوئ اتباع راولي اوورته به اُوائي چې داهم ستاسوډله ده چې اوس ئی مونږ تاسو
سره جهنم ته درغورځوؤ،يا دا متبوعينو قول دي چې كله دوئ اوينی چې دَدوئ اتباع فرشتو
نيولی جهنم ته ئی روان كړی وی نو يوبل ته به اوائی چې دوئ هم مونږ سره جهنم ته راځی
"مقتحم"ده "اقتحام" نه دې،په زور داخلولو ته وائی﴿لَا مَرْحَبًۢا بِهِمْ﴾بددعاء ده يعنی كله چې اتباع
ئی جهنم ته راشی نودوئ به ورته هر كلې نه وائی او نه به ورسره پخير راغلې كوی لكه څنگه
چې دنيا كښې يوبل سره معامله وه،بلكه بدعاء به ورته شروع كړی، "مرحبا"مفعول مطلق دې دَ
فعل محذوف او يامفعول به دې اي لا اتيتم مرحبا ﴿إِنَّهُمْ صَالُوا۟ ٱلنَّارِ ﴾ جمله ياخبر ثانی دې "هذا"
اسم اشاره دَپاره،نو معنی به داشی چې دوئ دې خدائ روك كړی دوئ هم جهنم ته راځی،او يا
داځان له مستقله جمله ده اوتعليل دې دَ﴿لَا مَرْحَبًۢا بِهِمْ ﴾يعني مرحبانه وئيلوعلت دادې چې
مونږاو دَ دوئ مينځ كښې امتيازنشته دې،دوئ هم مونږسره جهنم ته داخل شويدي،څنگه چې
مونږ مستحق دَعذاب يودغه شان دوئ هم دي، مونږته ورنه څه فائده نشته.

﴿قَالُوا بَلْ أَنتُمْ﴾دا جواب دې دَ اتباعو ،يعني اتباع به متبوعينوته اووائي چي تاسو مونږته کوم بدردوايئ دَدې لائق تاسويئ،﴿أَنتُمْ قَدَّمْتُمُوهُ لَنَا﴾تعليل دې د ﴿لَا مَرْحَبًا بِكُمْ﴾يعني ستاسو د اطاعت پوجه نن مونږته هم عذاب راکولې کيږي نوپه تاسودې مرحبا نه وي. ضمير په ﴿قَدَّمْتُمُوهُ﴾کښې عذاب ته راجع دې،اونسبت دَعذاب ئې ورته ځکه اوکړوچې دوئ ذريعه او سبب وؤدَعذاب.

﴿قَالُوا رَبَّنَا﴾ضميراتباعوته راجع دې،يعني اتباع به اووائي چي اې ربه څوك چې زمونږ دَ عذاب ذريعه گرځيدلې ده نوهغه ته دوه چنده عذاب ورکړه،داپه شان دَدې آيت دې ﴿ربنا هؤلاءِ اضلّونا فاتهم عذاباً ضعفاً من النّار﴾ (اعراف).

﴿وَقَالُوا مَا لَنَا﴾يعني کفران به اوائی به طورِتعجب اوآفسوس،چې مونږه دنياکښې کومو خلقو ته شريان وئيل اوسپک اوذليل موگڼل هغه څه شو،ځکه کچرته واقعی هغه شريان وؤ اوسپک خلک وؤنو هغوئ خو ددې زيات مستحق وؤ دينه مراد دوئ فقرا صحابه کرام دی.

﴿أَتَّخَذْنَاهُمْ سِخْرِيًّا﴾همزه دَاستفهام ده چې دَدې په وجه همزه وصلي حذف شويده،په اصل کښې ﴿أَاتخذناهم﴾ دې او دا کنايه ده دغلط موقف اختيارولونه ،يعنی آيا چې دوئ پورې مو ټوقې مسخرې کولې او دوئ موحقير گڼړل نو دا موقف زمونږ غلط وؤ ﴿أَمْ زَاغَتْ عَنْهُمُ الْأَبْصَارُ﴾(ام) يا متصله دې،نومطلب دادې چې مونږ غلط شوی وؤ چې دوئ موسپک او حقير گڼړل اويا که واقعی دوئ حقير وؤ او په جهنم کښې دی خو مونږ ته نه ښکاری يعنی دې کښې صحيح خبره کومه ده؟،يا ﴿ام﴾منقطعه دې.اضراب دې دَماقبل کلام نه چې نا،نا، زمونږ موقف اوخبره بالکل صحيح وه،دوئ دلته په جهنم کښې چرته دی خو مونږ ئې نه وينو[التحرير والتنوير]

﴿إِنَّ ذَٰلِكَ﴾يعني دامذکوره جگړه دَجهنميانوخامخاواقع کيدونکې ده،﴿تَخَاصُمُ أَهْلِ النَّارِ﴾ خبردې دَمبتدامحذوف ای هوتخاصم،يابدل دې ورنه.

| قُلْ إِنَّمَا أَنَا مُنذِرٌ ۖ وَمَا مِنْ إِلَٰهٍ إِلَّا اللَّهُ الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ ۝ |
|---|
| ته اووايه(اې پيغمبره)بيشکه څه يره ونکې يم اونشته هيڅ معبود مگر الله ﷻ چې يو دې، غالب دې . |

رَّبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا الْعَزِيْزُ الْغَفَّارُ ﴿٦٦﴾ قُلْ هُوَ نَبَؤٌا عَظِيْمٌ ﴿٦٧﴾

رب د اسمانونو او د زمکې دې او د هغې چې په مینځ ددې دواړو کښې دې. غالب دې، بخونکی دی. نه او وايه دا لوځ خبره لوېه ده.

اَنْتُمْ عَنْهُ مُعْرِضُوْنَ ﴿٦٨﴾ مَا كَانَ لِيَ مِنْ عِلْمٍۭ بِالْمَلَاِ الْاَعْلٰٓى اِذْ

تاسود دې نه مخ ګرځونکې يئ. نشته ما لره هيڅ علم د هغې ډلې چې عالم کښې ده کله

يَخْتَصِمُوْنَ ﴿٦٩﴾ اِنْ يُّوْحٰٓى اِلَيَّ اِلَّآ اَنَّمَآ اَنَا نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ ﴿٧٠﴾

چې جګړه کوله دوئ په پيدائش د ادم کښې، نه کيږي وحي ماته مګر (ددې وجهې) چې بيشکه يم زه يره ونکي ښکاره بېه

﴿قُلْ إِنَّمَآ أَنَاْ مُنذِرٌ﴾ د دلائلو عقليو، نقليو نه ورستو صراحتاً د سورة د دعوې ذکر دې. چې د سابقو دلائلو نه ثابته شوه چې د الله ﷻ نه ماسوىٰ بل څوك معبود نشته. تن تنها دې. په هر څه غالب دې

﴿هُوَ نَبَؤٌاْ عَظِيمٌ﴾ هو ضمير مضمون د توحيد او رسالت ته راجع دې، تکرار دې د ماقبل امر لپاره د تاکيد، يعني څه چې تاسو ته د توحيد او د خپل رسالت خبر درکوم نو دا يو لوئ خبر دې اعراض او بې توجهي ورنه نده پکار، يا ضمير د هو قرآن ته راجع دې.

﴿مَا كَانَ لِيَ مِنْ عِلْمٍ﴾ دا په آخر کښې د آدم ﷺ تخليق واقعه ذکر کيږي چې پدې کښې يو طرف ته حسن اختتام دې او بل طرف ته دليل دې په رسالت د نبي ﷺ حسن اختتام داسې دې چې په ابتدا کښې د کفارو ايمان نه راوړلو سبب الله ﷻ حسد او تکبر ذکر کړو (في عزة وشقاق) اوس په آخر کښې د آدم ﷺ واقعې په ضمن کښې د ابليس تکبر او حسد ذکر دې، چې هغې په وجه الله ﷻ مردود ګرځولې دې، او دليل په حقانيت درسالت نبي پاک ﷺ داسې دې چې د کوم عالم بالا خبرې تاسو ته کوی نو نبي کريم ﷺ خو څه هلته موجود نه وو چې ورته پته وی، بلکه الله ﷻ ورته وحی کوی. ﴿بِالْمَلَإِ الْأَعْلَىٰٓ﴾ نه د فرشتو مجلس مراد دې ﴿إِذْ يَخْتَصِمُونَ﴾ د اختصام نه مراد بحث او سوال جواب دې د ملائکو د الله ﷻ سره په وخت د تخليق د آدم ﷺ، چې ورستو آيات و نو کښې ذکر دې، او دغه شان دا واقعه په سورة البقره، الاعراف وغيره کښې تيره شويده.

﴿إِن يُوحَىٰٓ إِلَيَّ﴾ يعني د دې واقعې او دغه شان د نورو خبرو وحې ماته ځکه کيږي چې څه د الله ﷻ د طرف ښکاره رسول يم.

اِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلٰٓئِكَةِ اِنِّیْ خَالِقٌۢ بَشَرًا مِّنْ طِیْنٍ ﴿۷۱﴾ فَاِذَا سَوَّیْتُهٗ

کله چې اوویل رب ستا ملائکو ته چې بیشکه زه پیدا کوونکې یم یو بشر (ادم) د خټې نه. نو کله چې برابر کړم زه دغه

وَنَفَخْتُ فِیْهِ مِنْ رُّوْحِیْ فَقَعُوْا لَهٗ سٰجِدِیْنَ ﴿۷۲﴾ فَسَجَدَ الْمَلٰٓئِكَةُ كُلُّهُمْ اَجْمَعُوْنَ ﴿۷۳﴾

و پو کړم زه په دغې کښې د روح خپل نه نو پریوځئ ټول دغه ته سجده کوونکي. نو سجده وکړه ملائکو ټولو ټولو په یو ځای

اِلَّآ اِبْلِیْسَ ؕ اِسْتَكْبَرَ وَكَانَ مِنَ الْكٰفِرِیْنَ ﴿۷۴﴾ قَالَ یٰٓاِبْلِیْسُ مَا مَنَعَكَ اَنْ تَسْجُدَ

مګر ابلیس اونه کړه، تکبر ئې اوکړو او شو دې د کافرانو نه، او ویل الله ﷻ ای ابلیس څه شي منع کړې ته د دې نه چې سجده دې کړې وې

لِمَا خَلَقْتُ بِیَدَیَّ ؕ اَسْتَكْبَرْتَ اَمْ كُنْتَ مِنَ الْعَالِیْنَ ﴿۷۵﴾ قَالَ اَنَا خَیْرٌ

هغه چاته چې پیدا کړي دي ما په خپلو دواړو لاسونو سره، آیا ځان دې لوی اوګڼلو او که واقعي ... نو یې ... او ویل شیطان چې زه غوره یم

مِّنْهُ ؕ خَلَقْتَنِیْ مِنْ نَّارٍ وَّخَلَقْتَهٗ مِنْ طِیْنٍ ﴿۷۶﴾ قَالَ فَاخْرُجْ مِنْهَا فَاِنَّكَ

دده نه. پیدا کړي دې یم زه د اور نه او پیدا کړي دې دې آدم د خټې نه. او ویل الله تعالی بیا ووځه د دې جنت نه. پس بیشکه ته

رَجِیْمٌ ﴿۷۷﴾ وَّاِنَّ عَلَیْكَ لَعْنَتِیْۤ اِلٰی یَوْمِ الدِّیْنِ ﴿۷۸﴾ قَالَ رَبِّ فَاَنْظِرْنِیْۤ اِلٰی یَوْمِ

شړلې شوې ئې او بیشکه په تا باندې زما لعنت دې تر ورځې د قیامت پورې. او ویل شیطان ای ربه زما نو بیا مهلت راکړه ماته تر ورځې

یُبْعَثُوْنَ ﴿۷۹﴾ قَالَ فَاِنَّكَ مِنَ الْمُنْظَرِیْنَ ﴿۸۰﴾ اِلٰی یَوْمِ الْوَقْتِ الْمَعْلُوْمِ ﴿۸۱﴾

د قیامت پورې. الله ﷻ ورته اوویل پس بیشکه ته ئې د مهلت ورکړې شوو نه. تر ورځې د وخت معلوم مقرر پورې.

قَالَ فَبِعِزَّتِكَ لَاُغْوِیَنَّهُمْ اَجْمَعِیْنَ ﴿۸۲﴾ اِلَّا عِبَادَكَ مِنْهُمُ الْمُخْلَصِیْنَ ﴿۸۳﴾

اوویل شیطان پس ستا په عزت دې مې قسم وي خامخا به زه ګمراه کوم دا ټول. مګر بندګان ستا په دوی کښې چې مخلص دي

﴿اِذْ قَالَ رَبُّكَ﴾ دا تفصیل دې د اختصام، او د ملائکو حال دې چې دوئ ته د سجدې امر شوې وؤ او چاته چې د سجدې امر کیږي هغه معبود نه وي نه ورته شفاعت قهري حاصل وي. ﴿اِنِّیْ خَالِقٌۢ بَشَرًا﴾ انسان ته بشر ځکه وائي چې دې بادي البشرة دې، مراد ورنه آدم ﷺ دې. ﴿مِّنْ طِیْنٍ﴾ د دې آیت او د سورة آل عمران آیت «خلقه من تراب» او د سورة الحجر آیت «ولقد خلقنا الانسان من صلصال

من حما)په مينځ کښې منافات نشته دې ځکه چې تخليق دادم عليه السلام تدريجاً شويدې نو په بعضوځايونو کښې ماده قريبه ذکرشويده اوبعضِ ځايونو کښې ماده بعيده

﴿وَنَفَخْتُ فِيهِ مِن رُّوحِي﴾ دَروح اضافت الله تعالى ته يادَوجه دَشرافت دَادم عليه السلام نه شويدې. ياچونکه روح صرف دَالله تعالى ملکيت دې نودَدې خصوصيت دَوجې نه ئې الله تعالى ته اضافت شويدې﴿فَقَعُوا لَهُۥ سَٰجِدِينَ﴾اى فاسقطوا (روح)يعني سجده کښې ورته پريوځئ﴿إِلَّآ إِبْلِيسَ﴾دا دَ جناتوحال دې،چې دوئ مطرودااوشړلي شويدې اوځوک چې مطرود وي نوهغه معبوداوشفيع قهري نشي جوړيدلې.﴿وَكَانَ مِنَ ٱلْكَٰفِرِينَ﴾كان يا پمعنىٰ دَصاردې ياپخپله معنىٰ دې اومطلب دادې چې په علم الهي کښې کافروؤ،لکه سورة بقره کښې تيرددي

﴿أَن تَسْجُدَ﴾دا قرينه ده پدې چې په سورة اعراف کښې"لا"زائده دې.﴿لِمَا خَلَقْتُ بِيَدَيَّ﴾ دلته هم اضافت دَوجي دَشرافت دَادم عليه السلام نه شويدې،ورنه دَهرڅه خالق بذات خودالله تعالى دې او﴿بِيَدَيَّ﴾دمتشابهاتونه دې چې معنىٰ حقيقي ئې نشي مرادکيدلې دَمتشابهاتوبيان دَسورة آل عمران په شروع کښې شويدې﴿أَسْتَكْبَرْتَ﴾ په اصل کښې"أَاِستكبرتَ"دې،همزه دَاستفهام په وجه همزه وصلي حذف شويده،استفهام دَ توبيخ اوعارورکولوليپاره دې،يعني دَلويئ استحقاق نه لرتوباوجود ځان لوئ ګڼړې.﴿أَمْ كُنتَ مِنَ ٱلْعَالِينَ﴾ ياکه په واقع کښې لوئ مقام او مرتبه درته حاصله ده چې ځکه آدم عليه السلام ته سجده نه کوی

﴿قَالَ أَنَا۠ خَيْرٌ مِّنْهُ﴾يعني حقيقت کښې څه لوئ يم،﴿خَلَقْتَنِي﴾دا ئې دليل دې چې بهتر يم ځکه چې څه دَاورنه پيدا ايم فاضل يم،مفضول ته ولې سجده اوکړم

﴿قَالَ فَٱخْرُجْ مِنْهَا﴾ضميرياجنت ته راجع دې اګرچې مخکښې ندې ذکرليکن مضمون دکلام نه معلوميږي،ياجماعت دَملائکوته راجع دې،اى من زمرة الملائكة المعززين(روح)يعني دَمعززو ملائکودَجماعت نه خارج شه ته لعين مطرودئې،ياضمير اسمانونوته راجع دې.

﴿وَإِنَّ عَلَيْكَ لَعْنَتِيٓ﴾په سورة حجر کښې(اللعنة)ذکردې په الف لام سره ځکه هغه عام دې اودلته خاص دې ځکه چې دَلعنت اضافت الله تعالى ته شويدې،اګرچې معنى اعتبارسره عموم راتللې شي،چې په چاباندې دَالله تعالى لعنت وي نوپه هغه دَهرچالعنت وي(البحرالمحيط).

﴿قَالَ فَبِعِزَّتِكَ﴾ دا قرينه ده پدې چې په سورة الحجر كښې(ربّ بما اغويتني. كښې باء قسميه ده

**تنبيه:** دآياتونو سره متعلق تفسير په سورة البقره، سورة الاعراف. سورة الحجر كښې تفصيلا شوي دي ،نو هلته دې اوكتلې شي.

قَالَ فَالْحَقُّ وَالْحَقَّ أَقُولُ ۝ لَأَمْلَأَنَّ جَهَنَّمَ مِنْكَ وَمِمَّنْ تَبِعَكَ

اوئيل الله تعالى، پس حق دې زما قسم وي، اوحق وايم زه، خامخا به ډك كړم دوزخ ستانه او دهغه چانه چې اتباع ئې كړې وي د ستا

مِنْهُمْ أَجْمَعِينَ ۝ قُلْ مَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ وَمَا أَنَا

په دوئ كښې ،دَ ټولو نه، ته اووايه اې پيغمبره نه غوارم څه ستاسونه پدې قرآن باندې څهٔ اجرت مزدوري او نه يم څه

مِنَ الْمُتَكَلِّفِينَ ۝ إِنْ هُوَ إِلَّا ذِكْرٌ لِلْعَالَمِينَ ۝ وَلَتَعْلَمُنَّ نَبَأَهُ بَعْدَ حِينٍ ۝

دخان نه جوړونكونه نه دې داقرآن مگر نصيحت دې دَټولو خلقو دپاره، او خامخا خبر به شئ تاسو په خبر دَقرآن ورستو دلگ وخت نه

﴿قَالَ فَالْحَقُّ﴾ دا قسم دې دَ الله ﷻ دَطرفه شيطان ته ﴿فالحقُّ﴾ مبتدا دې، متضمن دې معني قسم لره .خبرئې محذوف دې چې قسمي دې اى فالحقّ قسمي ﴿لَأَمْلَأَنَّ جَهَنَّمَ﴾ ئې جواب قسم دې، يعني خما قسم حق دې اورشتيا دې چې څه به ستانه اوستا دَمتبعينو نه جهنم ډك كوم. ﴿وَالْحَقَّ أَقُولُ﴾ دا په مينځ دَقسم اوجواب قسم كښې جمله معترضه ده لپاره دَتاكيد ﴿وَالْحَقَّ﴾ منصوب دې په مابعد فعل سره چې ﴿أقول﴾ دې، ﴿منك﴾ اى مِن جنسك، يعني دَجنس دَستانه چې ذريت ئې دې. ﴿منهم﴾ مراد ذريت دَآدم عليه السلام دې

﴿قُلْ﴾ دا خاتمه ده سورت ده چې ابتد سره متعلق ده لكه څنگه چې ابتدا كښې دقرآن وصف بيان وو ﴿وَالْقُرْآنِ ذِي الذِّكْرِ﴾ نو اوس خاتمه كښې هم ددې خبرې بيان دې، چې دا دَ الله ﷻ طرفه نصيحت دې، نه مادَځان نه، جوړ كړيدې او نه پرې ستاسونه څه مفادا تو طلب گاريم چې اجرت درنه غوارم.

﴿ مَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ ﴾ دا طريقه دَتبليغ بيانيږى اول دا چې څه ستاسو نه څه اجرت او معاوضه نه طلب كوم، نو داعى له هم پكار ده چې هغه په تبليغ باندې اجرت نه طلب كوى ﴿عَلَيْهِ﴾ ضمير يا

قرآن ته راجع دي او د دعوت الى التوحيد ته ﴿وَمَآ أَنَا۠ مِنَ ٱلْمُتَكَلِّفِينَ﴾ دا دويمه طريقه دتبليغ چې خه متكلفينو نه يم دتكليف نه ماخوذ دي. دداسې څيز دعوه كول چې هغه په كښ نه وي يعنې څه داسې خبره نه ده چې دا قرآن ما ځان نه جوړ كړې دې او الله ﷻ ته ئې منسوب كوم بلكه دا كتاب د الله ﷻ دطرفه دې او نصيحت دې جهان والو دپاره

نوداعى له هم پكار ده چې هغه دعوت كښ دتصنع اوتكلف نه كار نه اخلى بلكه سيده ساده انداز كښ دې خبره كوي

تكلّف اوتصنع شرعًا مذموم دي. په صحيحينو كښ دحضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه نه ارشادمنقول دې چې اې خلقو! څوك چې په تاسوكښ په يوه مسئله عالم وي نو هغه خودې خلقوته بيانوي ليكن څوك چې دَيوې مسئلې علم نه لري نو هغه دې والله اعلم اووائى ځكه چې داهم علم دي. الله ﷻ خپل پيغمبر ﷺ ته حكم كړيدى چې دااوفرمايه ﴿وَمَآ أَنَا۠ مِنَ ٱلْمُتَكَلِّفِينَ﴾

﴿وَلَتَعْلَمُنَّ نَبَأَهُۥ بَعْدَ حِينٍۭ﴾ دازجراوتهديددې منكرانو دَقرآن ته. هٔ ضمير قرآن ته راجع دي. ﴿نَبَأَهُۥ﴾ نه مرادوعدې وعيدونه دي، ﴿بَعْدَ حِينٍۭ﴾ نه مرادوخت دَمرګ دې ياقيامت. يعني اوس خوئ نه منئ خوچې كله درته مرګ راشي نوبيابه يقين اوكړئ چې قرآن مونږته رشتيا ونيلي وو، خوبيابه دغه وخت دَدې يقين هيڅ فائده نه وي.

| ركوعاتها (٨) | سورة الزُمر مكية | آياتها (٧٥) |
| --- | --- | --- |
| | بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بيحده مهربان او ډير رحم کونکې دې شروع کوم | |

## ترتيبها حسب التسلسل (٣٩) وحسب النزول (٥٩)

**وجه تسميه:** ئي داده چې دالفظ ددې سورة په آيت نمبر (٧١) او (٧٣) کښې ذکر شويدې.

**ربط اسمي:** ماقبل سورة سره ئې ربط اسمي دادې چې په ماقبل سورة کښې ددې بيان وشوچې څوك تاسوشفعاء ګڼړئ نوهغه په ابتلاء اوازمائش کښې واقع شوي وؤاوڅوك چې په ابتلاء کښې واقع شي نوهغه شفيع قهري نشي کيدې، اوس په دې سورة کښې ددې بيان دې چې څوك غيرالله شفيع ګڼړي نوهغه به ډلې ډلې جهنم ته ځي اوچې څوك غيرالله شفيع قهري نه مني نوهغه به ډلې ډلې جنت ته ځي.

**ربط معنوي:** دادې چې په ماقبل سورتونوکښې نفي دَشفيع قهري اوشوه نودې سورة کښې ددې بيان دې چې الله ﷻ نه ماسوابل څوك معبوداوشفيع قهري نشته دې نو (فَٱعۡبُدِ ٱللَّهَ مُخۡلِصٗا لَّهُ ٱلدِّينَ).

**دسورة دَمضامينو اجمالي خلاصه:** په اول کښې تمهيدمع الترغيب دې، درې ځله دعوى دَسورة ذکردې، بياتفريع ده په دعوىٰ باندې، اوه (٧) دلائل عقليه على سبيل الترقي ذکر کيږي، څلور (۴) ځله ثمره دَدلائلو، شپږ (٢) دلائل وحي، يودُليل نقلي ضمناً. څلورزجرونه تقابل دَمؤمنانو اوکافرانو درې ځله، ترغيب الى الهجرت.

**تفصيلي خلاصه:** داسورة ذاتِ سلاسل دې، په شپږو سلسو باندې تقسيم دې.

**اوله سلسله:** دَسورة دَدعوې ذکر: دعوه دَسورة درې ځله ذکرشويده، **اول:** فَٱعۡبُدِ ٱللَّهَ مُخۡلِصٗا لَّهُ ٱلدِّينَ آية (٢). أَلَا لِلَّهِ ٱلدِّينُ ٱلۡخَالِصُ آية (٣) **دويم:** قُلِ ٱللَّهَ أَعۡبُدُ مُخۡلِصٗا لَّهُۥ دِينِي آية (١۴). **دريم:** قُلۡ أَفَغَيۡرَ ٱللَّهِ تَأۡمُرُوٓنِّيٓ أَعۡبُدُ أَيُّهَا ٱلۡجَٰهِلُونَ آية (٢۴).

**دويمه سلسله:** اوه (٧) دلائل عقليه على سبيل الترقي: **اول دليل عقلي:** خَلَقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضَ

بِالْحَقِّ آیة(۵)، **دویم دلیل عقلي** خَلَقَكُم مِّن نَّفْسٍ وَاحِدَةٍ آیة(۶)، **دریم دلیل عقلي** أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ أَنزَلَ آیة(۲۱)، **خلورم دلیل عقلي** وَلَئِن سَأَلْتَهُم آیة(۳۸)**پنځم دلیل عقلي** اللَّهُ يَتَوَفَّى الْأَنفُسَ آیة(۴۲)**شپږم دلیل عقلي** أَوَلَمْ يَعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ آیة(۵۲)، **اووم دلیل عقلي** اللَّهُ خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ آیة(۶۲).

**دریمه سلسله**:شپږ دلائل وحي:**اول دلیل**: إِنَّا أَنزَلْنَا إِلَيْكَ آیة.**دویم دلیل**: قُلْ إِنِّي أُمِرْتُ أَنْ أَعْبُدَ اللَّهَ آیة(۱۲)**دریم دلیل**: اللَّهُ نَزَّلَ أَحْسَنَ الْحَدِيثِ آیة(۲۳)، **خلورم دلیل**: إِنَّا أَنزَلْنَا عَلَيْكَ الْكِتَابَ لِلنَّاسِ بِالْحَقِّ آیة(۴۱)، **پنځم دلیل**: وَاتَّبِعُوا أَحْسَنَ مَا أُنزِلَ إِلَيْكُم مِّن رَّبِّكُم آیة (۵۵)، **شپږم دلیل**: وَلَقَدْ أُوحِيَ إِلَيْكَ وَإِلَى الَّذِينَ مِن قَبْلِكَ آیة(۶۵، ۶۶).

**خلورمه سلسله**:دَدلائلو خلور ثمرات:**اوله ثمره**:ذَٰلِكُمُ اللَّهُ رَبُّكُمْ لَهُ الْمُلْكُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ آیة(۶)دا ثمره دَاول دوؤ دلائل عقلیه ؤنه بعد ذکرده،**دویمه ثمره**:الْحَمْدُ لِلَّهِ بَلْ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُونَ آیة(۲۹).دریم دلیل عقلي نه ورستوذکرده،**دریمه ثمره**:قُلْ أَفَرَأَيْتُم مَّا تَدْعُونَ مِن دُونِ اللَّهِ آیة(۳۸). **خلورمه ثمره**:قُلِ اللَّهُمَّ فَاطِرَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ .**پنځمه ثمره**: سُبْحَانَهُ وَتَعَالَىٰ عَمَّا يُشْرِكُونَ ﴿٦٧﴾

**پنځمه سلسله دَزجراتو بیان**:

وَالَّذِينَ اتَّخَذُوا مِن دُونِهِ أَوْلِيَاءَ آیة(۳)اول زجردي

وَإِذَا مَسَّ الْإِنسَانَ ضُرٌّ آیة(۸).دویم زجردي

أَمِ اتَّخَذُوا مِن دُونِ اللَّهِ شُفَعَاءَ نه تر إِذَا هُمْ يَسْتَبْشِرُونَ آیة(۴۲، ۴۴، ۴۵).دریم زجردي

فَإِذَا مَسَّ الْإِنسَانَ ضُرٌّ آیة(۴۹)خلورم زجردي.

**شپږمه سلسله دَمؤمنانو اوکافرانو په مینځ کښې تقابل**:

(۱) أَمَّنْ هُوَ قَانِتٌ آنَاءَ اللَّيْلِ آیة(۹) (۲)أَفَمَنْ حَقَّ عَلَيْهِ كَلِمَةُ الْعَذَابِ آیت:۱۹

(۳) أَفَمَن شَرَحَ ٱللَّهُ صَدْرَهُۥ آيه (۲۲) (۴) أَفَمَن يَتَّقِي بِوَجْهِهِۦ سُوٓءَ ٱلْعَذَابِ

(۵) ضَرَبَ ٱللَّهُ مَثَلًا رَّجُلًا آيت ۲۹

وَأَرْضُ ٱللَّهِ وَٰسِعَةٌ په درميان كښې ترغيب دې هجرت ته.

**تمت خلاصة السورة اجمالاً وتفصيلاً**

| |
|---|
| تَنْزِيْلُ الْكِتٰبِ مِنَ اللّٰهِ الْعَزِيْزِ الْحَكِيْمِ ① اِنَّآ اَنْزَلْنَآ اِلَيْكَ |
| نازليدل د دې كتاب دي دَ الله ﷻ د طرفه چې غالب دې حكمتونو والا دې. بيشكه مونږه نازل كړيدې تاته |
| الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ فَاعْبُدِ اللّٰهَ مُخْلِصًا لَّهُ |
| دا كتاب په حقه سره نو ته عبادت كوه دَالله ﷻ په داسې حال كښې چې خالص كونكې ئې الله ﷻ لره |
| الدِّيْنَ ② اَلَا لِلّٰهِ الدِّيْنُ الْخَالِصُ ؕ وَ الَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِهٖٓ |
| خپل عبادت، واوره! الله ﷻ لره دې صرف خالص عبادت. او هغه خلق چې نيولې ئې دي ماسوا دَ الله نه |
| اَوْلِيَآءَ مَا نَعْبُدُهُمْ اِلَّا لِيُقَرِّبُوْنَآ اِلَى اللّٰهِ |
| نور خدايان «وائي» نه كوؤ مونږ عبادت دَ دوئ مگر دې پاره چې نزدې كړي دوئ مونږ الله ته |
| زُلْفٰى ؕ اِنَّ اللّٰهَ يَحْكُمُ بَيْنَهُمْ فِيْ مَا هُمْ فِيْهِ |
| په نزدې كولو سره، بيشكه الله تعالى به فيصله كوي په مينځ دَدوئ كښې په هغې كښې چې دوئ په هغې كښې |
| يَخْتَلِفُوْنَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِيْ مَنْ هُوَ كٰذِبٌ كَفَّارٌ ③ |
| اختلاف كوي. بيشكه الله ﷻ نه كوي هدايت هغه چاته چې هغه دروغژن وى ډيرناشكره وي. |

﴿تَنزِيلُ ٱلْكِتَٰبِ﴾ دا تمهيد دې او ترغيب دې اِتباع دَقرآن نه، ځكه چې اتباع دَپاره دو صفته ضروري وى (۱) يو قوت عمليه. چې دې سره دَ انسان جسم تابع شى او دا عبارت دې دَاقتدار او غلبې نه، (۲) دويم قوت علميه چې دې سره انسان زړه او روح هم تابع اوگرځى او دې مطلب

دادې چې متکلم ته دَحالاتو پوره پوره اندازه وی. مخاطبينو استعداد اومزاج نه واقف وی. اودې نه بعد بيا خبره داسې انداز سره اوکړی چې هغې کښې ددې امورورعايت ئې ساتلې وی. او داسې مضبوطه اومدلل اوکړی چې په شکوک وشبهات سره پکښې هيڅ تزلزل اوضعف نه راځی، نو﴿ٱلۡعَزِيزِ﴾کښې اقتدار او غلبې ته اشاره ده او﴿ٱلۡحَكِيمِ﴾کښې قوت علميه ته اشاره ده . دلته ورته اشاره په وصف حکمت سره اوشوه.اوځنې ځايونو کښې ترينه تعبير په" العليم"سره شوې دې لکه سورت الغافر کښې تنزيل الكتب من الله العزيز العليم اوځنې ځاينو کښې ورته الرحمن الرحيم سره اشاره شوې ده،لکه سورت حم السجده کښې تنزيل من الرحمن الرحيم. نوحکمت ،علم . رحمت دا ټول دَ الله ﷻ قوت علميه مظاهر دی، خلاصه دا ده چې داقرآن دَهغه بادشاه طرفه نازل دې چې غالب اوحکيم ذات دې،نودَدې غالب اوحکيم ذات دَطرفه نازل کتاب اومنئ او ايمان پرې راوړئ.

﴿تَنزِيلُ ٱلۡكِتَٰبِ﴾يامبتدادې، اوخبرئی﴿مِنَ ٱللَّهِ ٱلۡعَزِيزِ ٱلۡحَكِيمِ﴾دې اودَ ﴿ٱلۡكِتَٰبِ﴾ نه ټول قرآن مراددې،ياخبردَمبتدامحذوف دې چې(هذا)دې،"ای هذا المذكور تنزيل" اودَ﴿ٱلۡكِتَٰبِ﴾ نه داسورة مراددې،او﴿مِنَ ٱللَّهِ﴾متعلق دې په﴿تَنزِيلُ﴾ پورې.والوجه الاول اوجه كما فى الكشاف(روح).

﴿إِنَّآ أَنزَلۡنَآ إِلَيۡكَ ٱلۡكِتَٰبَ﴾دااول دليل وحي دې په توحيدباندې چې دامسئله دَ توحيد ستاطرف نه خودساخته نده بلکه دادَالله ﷻ دَطرفه ده،﴿بِٱلۡحَقِّ﴾باء دَملابست دپاره ده ای ملتبسًابالحق يعنې داقرآن په حق اوصدق باندې مشتمل دې دکذب اوبطلان شائبه پکښې نشته دې.

﴿فَٱعۡبُدِ ٱللَّهَ﴾دادعوه دَسورة ده چې په ماقبل سورتونوباندې متفرع ده،چې ماقبل نه معلومه شوه چې دَالله ﷻ نه ماسوىٰ بل څوك اِله نشته اونه شفيع قهري،نوخالصةً صرف دَهغه عبادت کوه،خلق هم دې طرف ته راغواړه.﴿مُخۡلِصٗا﴾منصوب بنابرحاليت دې،اودَاخلاص نه مرادخالص کول دَعمل دې الله ﷻ ته دَشرك اودَشوائبُ دَشرك نه،اودَريانه.﴿ ٱلدِّينَ ﴾دين

دلته پمعنیٰ دطاعت یاعبادة سره دي

﴿أَلَا لِلَّهِ الدِّينُ الْخَالِصُ﴾ د ماقبل تاکید دي. چې خه په غور سره واورئ. الله ﷻ صرف هغه عبادت قبلوی چې هغه بالکل خالص وی کچرته په عبادت کښې شرک وی یا دشرک معمولی اثرات او آمیزش وی یاریاکاری وی نو داعبادت بیاد الله ﷻ په نیز عبادت نه دي، اونه ئی الله ﷻ قبلوی. دحضرت ابوهریره ؓ نه روایت دي، چې یوکس دحضور ﷺ په خدمت کښې حاضرشو، اوعرض ئی وکړوچې یارسول الله ﷺ خه یوځیزصدقه کومه یادچاسره احسان کومه چې په هغې کښې ځما نیت دالله ﷻ رضاهم وي. اوداهم وي چې خلق ځما تعریف وکړي نو حضور ﷺ ورته اوفرمایل: والذي نفسُ محمّدٍ بیده لایقبل شیئاًشورِكَ فیه (قرطبي) چې په هغه ذات مې دقسم وي چې دهغه په قبضه کښې دمحمد ﷺ روح دې چې الله ﷻ داسې عمل نه قبلوي چې په هغې کښې بل څوك شریك کړې شوې وي.

﴿وَالَّذِينَ اتَّخَذُوا﴾ دا اول زجردې مشرکانوته په شرک باندې. یعنی دوئ شرک کوی خو چې کله ورته اوئیلې شی چې تاسو دغیر الله عبادت ولې کوئ حالانکه الله ﷻ دستاسو خالق. رزق مالک دې ، نو دوئ سره څه جواب نه وی، بس داوائی چې مونږ خو دالله ﷻ قرب حاصلولو دَ پاره دَدوئ عبادت کوؤ، الله ﷻ فرمائی چې دروغ ژن دی. داسې قرب نه حاصلیږی، اوناشکره دی دومره انعاماتو باوجود دالله ﷻ خبره نه منی، ددوئ بل علاج نشته سوا د دینه چې قیامت په ورځ نی الله ﷻ عملی فیصله اوکړی او جهنم ته ئی اوغورځوی.

﴿مَا نَعْبُدُهُمْ إِلَّا﴾ دې نه مخکښې، یقولون، مقدردې، پدیکښې ددوئ دشرك کیفیت بیان شویدې، حضرت قتاده رحمه الله فرمائی چې کله به دوئ ته اوونیلې شوچې ستاسورب اوستاسوخالق څوك دې؟ اوڅوك دې هغه ذات چې اسمانونه اوزمکې ئی پیداکړیدې اودآسمان نه باران راورئ؟ نو دوئ به وې، الله ﷻ، نوچې به ورته اوویلې شوچې تاسوبیاولې دبتانوعبادت کوئ؟ نودوئ به وئیل ﴿لِيُقَرِّبُونَا إِلَى اللَّهِ زُلْفَىٰ﴾ یعنې ددې پاره ئی عبادت کوؤچې ددوئ په ذریعه مونږته دَ الله ﷻ قرب حاصل شي یابه دوئ زمونږ شفعاء وي، لکه یونس (۱۸) کښې دي: هؤلاء شفعاءناعندالله.

اوابن کثیر رحمه الله لیکلي دي چې دتقرب دا مطلب نه دې چې مونږته په آخرت کښې عند الله

لویه درجه حاصله شي ځکه چې دوئ دآخرت نه منکروؤ .بلکه مقصد یې دا دې چې دنیوي امورو کښې زمونږ سفارش الله ﷻ ته اوکي ﴿زُلْفَى﴾ مفعول مطلق من غیرلفظه دې دلیقربونا. د زُلفیٰ معنی قربة ده ای لیقربونااليه تقریبا.

﴿إِنَّ ٱللَّهَ يَحۡكُمُ﴾ داتخویف اخروي دې ﴿بَيۡنَهُمۡ﴾ ضمیر مؤمنانو اومشرکانو ته راجع دې .دهغه شان په ﴿فِي مَا هُمۡ﴾ کښې هم مشرکانو او مؤمنانو ته راجع دې او د ما نه مراد توحید او شرک دې،او دفیصلې نه مراد عملی فیصله ده نو مطلب دا دې چې مومنان به جنت ته داخل کړي او مشرکان به جهنم ته ،نو په مینځ کښې فیصله دغه ده چې توحید حق او شرک باطل دې. بعضو ویلي دي چې ضمیرد هم په دا واړو ځایونوکښې معبودانواوعابدانوته راجع دې.نومطلب دادې چې الله ﷻ به ددوئ په مینځ کښې فیصله اوکړي چې معبودان او مزعومه شفعاء به ورنه دبرآت اوعلان اوکړي او دخپل عجز اظهار به الله ﷻ ته اوکړي ﴿إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَهۡدِي﴾ توفیق دهدایت ورته نه ورکوي، ﴿مَنۡ هُوَ كَٰذِبٞ﴾ چې دوجې دضداوعنادنه دروغ وائی اوالله ﷻ نه ماسواشفیع قهري ثابتوي اودعوه دتقرّب الی الله ئی کوي، ﴿كَفَّارٞ﴾ ډیر ناشکره چې د الله ﷻ دومره احساناتو باوجود هغه سره شریک ګرځوی اویاورنه مراد کافر دې چې کفرئی عناداً اختیارکړې وي،

| |
|---|
| لَّوۡ أَرَادَ ٱللَّهُ أَن يَتَّخِذَ وَلَدٗا لَّٱصۡطَفَىٰ مِمَّا يَخۡلُقُ مَا |
| کچرې غوختلې الله ﷻ چې ونیسي اولادنو په خپله خوښه به ئې نیولې وې دخپل مخلوق نه،هغه چې ئې |
| يَشَآءُۚ سُبۡحَٰنَهُۥۖ هُوَ ٱللَّهُ ٱلۡوَٰحِدُ ٱلۡقَهَّارُ ۝٤ خَلَقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضَ |
| خوښ وي،پاکي ده الله ﷻ لره دولدنه،هم دې الله ﷻ دې ، یو دې، غالب دې، پیداکړي ئې دي اسمانونه اوزمکه |
| بِٱلۡحَقِّۖ يُكَوِّرُ ٱلَّيۡلَ عَلَى ٱلنَّهَارِ وَيُكَوِّرُ ٱلنَّهَارَ عَلَى ٱلَّيۡلِۖ وَسَخَّرَ |
| په حقه سره، چاپیره وي شپه په ورځې باندې، اوچاپیره وي ورځ په شپې باندې،اوپه خدمت ئې لګولې دي |

الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ كُلٌّ يَجْرِي لِأَجَلٍ مُسَمًّى أَلَا هُوَ الْعَزِيزُ الْغَفَّارُ ⑤

نور او سپوږمۍ چې هريو د دوئ نه چليږي ترپوې نيټې مقررې پورې خبردارشه الله ﷻ غالب بخونکی دی.

﴿لَّوْ أَرَادَ اللَّهُ أَن يَتَّخِذَ وَلَدًا﴾ په دېکښې د شرک يو بل صورت بيان او د هغې رد دی . چې هغه الله ﷻ لره اولاد ثابتول دي ، مشرکان وائي چې فرشتې د الله ﷻ لونړې دي . عيسايان وائي چې عيسى عليه السلام د الله ﷻ خوې دی ، او يهود عزير عليه السلام ته ابن الله وئيلو . نو الله ﷻ د دوئ د دې قول رد کوي، حاصل دا دی چه الله ﷻ لره اتخاذ د ولد محال دی مطلقا ځکه چې دا د الوهيت سره منافی دی ،او بالفرض که ولدنې نيولې نو پخپله خوښه به نی نيولې وو ،غير د هغی نه چه دوئ وائی چه ملائکی بنات الله دی يا عزير ابن الله يا عيسى ابن الله دی، کماقال تعالى لو اردنا ان نتخذ لهوا لاتخذناه من لدنا(الانبياء :١٧)

بعض وائی معنی دا ده چه کچرې اراده وې د الله ﷻ د ولد د نيولو (مقدم). نو مخلوق به نی ولدنيولې وې (تالي)، ځکه د د ذات نه ماسوا نور کل اشياء مخلوقات دي،ليکن تالي باطل دی. وجه د بطلان ئی داده چې د خالق او مخلوق په مينځ کښې خومباننت تامه دی او د والد او ولد په مينځ کښې مجانست لازم وي، نومقدم مثلهٔ.

﴿لَّاصْطَفَىٰ﴾ په معنی د لاتخذ ابناً سره دی على سبيل الكناية (روح) ﴿سُبْحَانَهُ﴾ تاکيد دی د ما قبل، ﴿هُوَ اللَّهُ الْوَاحِدُ﴾ وجه د بطلان د تالي ده چې اتخاذ د ولد تقاضاکوي د تبعض او د انفصال، او د غه شان د مماثلة او مجانست د والد خپل سره او الله ﷻ خو واحد دی چې وحدت ئی ثابت دی په براهينو قاطعه وسره، او د وحدت سره خو تبعض او انفصال منافي دی نو معلومه شوه چې الله ﷻ هيڅ چالره ولدنې نيولې، ﴿الْقَهَّارُ﴾ دويمه وجه د بطلان ده،چې اتخاذ د ولد خو هغه څوك کوي چې نائب ته ئی ضرورت وي د وجه د کمزورئ نه ليکن الله ﷻ خو زور آور او قهارذات دی چې دلائل ئی پدې ورستو آياتونو کښې بيانيږي.

﴿خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ﴾ دا اول دليل عقلي دی چې مستحق د الوهيت صرف الله ﷻ دی او د هغه په دربار کښې څوك شفيع قهري نشته دی،حاصل د دليل دا دی چې الله ﷻ تن تنها د اسمانونو او د زمکې پيدا کونکې دی، او تن تنها تصرف کونکې دی په شپه او ورځ کښې او

په اسبابو دَشپې او ورځې کښې چې نور او سپوږمۍ دي، ټول دده دَحکم تابع دي نو څوک چې د داسې صفاتو مالك وي نو هم هغه مُستحق دَالوهيت وي. ﴿بِالْحَقِّ﴾ متعلق دې دَ "خلق" سره. او "باء" دَ ملابست دپاره ده، اى متلبّسًا بالحق، او دَ حق مطلب دا دې چې دا پيداکول دَ اسمانونو او زمکې عبث ندي بلکه دليل دې په صانع باندې. او مشتمل دې په ډيرو مصالحو باندې. غير عابث بل ليكونَ دليلاً على الصّانع (مظهري) مشتملاً على الحكَم والمصالح (روح).

﴿يُكَوِّرُ الَّيْلَ عَلَى النَّهَارِ﴾ دا بيان دَ تصرُّف دې، "يكوّر" دَ تكوير نه مشتق دې، يو څيز په بل څيز باندې چاپيره كولو ته وئيلې كيږي. في الاصل هو اللّف (روح) دَ "اللّيل" نه مخكښې "ظلمة" مقدر دې اى يكوّر ظلمة اللّيل يعني چاپيره وي تياره دَ شپې په رڼا دَ ورځې باندې، او دغه رنګ دَ "النهار" نه مخكښې "ضياء" مقدر دې اى على ضياء النهار. لكه بل آيت كښې دى يغشى اللّيل النهار

ځنو مفسرينو دَ تكوير مطلب دلته ادخال او ايلاج بيان كړې دې يعني داخلوي الله ﷻ شپې لره په ورځې كښې نو شپه زياته شي او اوګده شي، او ورځ لنډه شي (لكه دَ ژمي په موسم كښې) او داخلوي ورځې لره په شپه كښې نو ورځ اوګده شي او شپه لنډه شي (لكه دګرمۍ په موسم كښې). لكه سورت ال عمران كښې دى: تولج الليل في النهار وتولج النهار.. ليكن اول تفسير غوره دې.

**فائده**: په آيت كريمه كښې دَ ليل (شپې) تقديم او شويه نهار باندې په دې كښې اشاره ده چې حساب شرعي دَ شپې نه شروع كيږي،

﴿كُلٌّ يَجْرِي لِأَجَلٍ مُّسَمًّى﴾ بيان دې دَ ﴿وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ﴾، ﴿لِأَجَلٍ مُّسَمًّى﴾ لام پمعنى د "الى" سره دې اي الى اجل مسمى او "اجل مسمى" تفصيل په سورت لقمان او سورت يس كښې تير دې.

| خَلَقَكُمْ | مِّنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَةٍ | ثُمَّ جَعَلَ مِنْهَا | زَوْجَهَا | وَ أَنْزَلَ |
|---|---|---|---|---|
| پيداكړي ئې يئ تاسو | دَ نفس (ادم عليه السلام) | يونه بيا ئې پيداكړه دَ ده نه | بي بي دَده، | او پيدا كړي ئې دي |

لَكُمْ مِّنَ الْاَنْعَامِ ثَمٰنِيَةَ اَزْوَاجٍ ؕ يَخْلُقُكُمْ فِىْ بُطُوْنِ اُمَّهٰتِكُمْ خَلْقًا

تاسو دپاره دڅاروونه اته(۸)قسمه، پيداكوي تاسو په خيټود ميندو ستاسو كښې يوه مرحله د تخليق وي

مِّنْۢ بَعْدِ خَلْقٍ فِىْ ظُلُمٰتٍ ثَلٰثٍ ؕ ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمْ لَهُ الْمُلْكُ ؕ لَاۤ

ورستو د بلې مرحلې نه په تيارو دريو كښې. دغه الله دې، رب دې ستاسو، هم ده لره بادشاهي ده. نيشته

اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ فَاَنّٰى تُصْرَفُوْنَ ۝ اِنْ تَكْفُرُوْا فَاِنَّ اللّٰهَ

دې لائق دعبادت مګر هم دې دې. نو كوم طرف ته تاسو اړه ولې كيږئ. كچرې كفر كوئ تاسو نو بيشكه الله ﷻ

غَنِىٌّ عَنْكُمْ ۟ وَلَا يَرْضٰى لِعِبَادِهِ الْكُفْرَ ۚ وَاِنْ تَشْكُرُوْا يَرْضَهُ

بې پرواه دې ستاسو دايمان نه او نه خوښوي دپاره دخپلو بندګانو كفر. او كچرې شكر اوكړئ تاسو نو خوښوي هغه

لَكُمْ ؕ وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِّزْرَ اُخْرٰى ؕ ثُمَّ اِلٰى رَبِّكُمْ مَّرْجِعُكُمْ

تاسو لره، او نه اچتوي يو بار اچتونكې بوج د بل چا، بيا به په طرف درب ستاسو ورتلل ستاسو وي

فَيُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ؕ اِنَّهٗ عَلِيْمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ۝

نو خبريه كړي تاسو په هغې چې تاسو به كول ، بيشكه الله ﷻ پو هه دې په خبرو د سينو باندې

﴿خَلَقَكُمْ مِّنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَةٍ﴾ دويم دليل عقلي دې على سبيل الترقي، يعني الله ﷻ صرف داسمانو او دزمكې خالق ندې بلكه ستاسو خالق هم دې، او هغه داسې چې اول ئې آدم ﷺ پيدا كړو هغې نه بعد ئې ورله بى بى پيدا كړه، او دې نه بعد ئې بيا دوئ نسل خور كړو.

د ﴿نَفْسٍ وَّاحِدَةٍ﴾ نه آدم ﷺ مراد دې ﴿زَوْجَهَا﴾ نه مراد بي بي حواء ده، ﴿جَعَلَ﴾ بمعنى د ﴿خَلَقَ﴾ سره دې، او د ﴿مِنْهَا﴾ ضمير ﴿نَفْسٍ وَّاحِدَةٍ﴾ ته راجع دې، او معنى د دې يا من عينها ده، يعني حوا د آدم ﷺ نه پيدا شوه لكه حديث كښې راغې بي بي حواء ﷺ په جنت كښې د حضرت ادم ﷺ د چپې پښتئ پيدا شويده، او يا ورته مضاف مقدر دې، اى من جنسها. يعني زوجه ئې

هم د هغه جنس نه پيدا کړه ،چې دواړه بشر دي ، دغه شان آيت په سورت الاعراف کښ هم تير دي، خو هلته دَ "ثم" په ځائ "واؤ" دي"خلقكم من نفس واحدة وجعل منها زوجها" . دېکښې نکته داده چې دلته دَ الله ﷻ دَ قدرت دلائلو ذکر دي،نوبني آدم تخليق ځان له دليل دي اودَ آدم ﷺ نه دهغه بي بي پيدا کول ځان له غټ دليل دي، نوځکه "ثم" راوړلې شو چې تراخي رتبي دپاره دي ، چې يوخو داپته اولګی چې دَبی بی پيدا کول ځان له مستقل دي، او بل داچې دا دَ بني آدم دَتخليق نه غټ دليل دي؛ ځکه چې دې پيدائش بالکل خلاف عادت وو دې سره يو بل اشکال هم حل شو،چې هغه دادې چې دلته عطف دَ"جعل منها زوجها"په"خلقكم"باندې په "ثم" سره شوي دي، او"ثم"تراخی دپاره راځی،نو دې تقاضه داده چې تخليق دا بي بي حوا اورستو دې تخليق دانسانيت نه،او داخو بالکل غلط خبره ده،نوجواب اوشو چې "ثم" دلته زمانی تراخی دپاره نه دې،بلکه تراخی رتبی دَپاره دې اوکه"ثم"تراخی زمانی دَپاره شی نو بيا دا جمله عطف په"خلقكم"باندې نه ده بلکه دَدې معطوف عليه محذوف دې چې"خلقها"دې او صفت دې د نفس واحدة، أي:نفس واحدة خلقها ثم جعلها منها، يعنی اول ئی آدم ﷺ پيدا کړو د هغه نه ورستوئی ورله بي بي پيدا کړه دهغه نه.

﴿وَأَنزَلَ لَكُم مِّنَ ٱلۡأَنۡعَٰمِ﴾دا جمله معترضه ده ، په مابين دَ «خلقكم من نفس واحدة....» او «يخلقكم في بطون....» کښې ،او په ديکښې په انسان باندې د احساناتو ذکر دې چې مختلف قسم ځاروي ئې هم د ده فائدې د پاره نازل کړي دي.

"انزال" نه دلته يا **حقيقي معنی** راکوزول مرادده،او د دې مفسرينو دوه توجيهات بيان کړی دی: (۱)يو داچې داټول ځاروی جنت کښ وو.او الله ﷻ جنت نه بيا راکوزکړل،نو ځکه انزل ئی اوفرمائيل(۲)دويم داچې دا ورته دَنوح ﷺ کشتئ اعتبار سره اوئيلې شو ځکه چې داټول ځاروی هغه دَ الله ﷻ په حکم کشتئ کښ سواره کړی بيا چې کله طوفان ختم شو نوراکوزئی کړل،

اوياد "انزال"نه **مجازی معنی** مراد ده مفسرينو ددې متعدد مجازی معنې بيان کړی دی:(۱)يوا داچې دې نه مراد تذليل وتسخير دې،يعنی الله ﷻ داځاروی تاسوله مسخر کړی دی اوستاسو منقاد ئی کرځولی دی او "انزال"دَ تذليل په معنی کښ ډير استعماليږی.لکه نزل

على حكم فلان، انزلني الدهر على حكمه وغيره(۲)اویا انزال نه مراد د الله ﷻ تکویني فیصله وقضاده،چونکه داپه لوح محفوظ کښ ثبت وی او فرشتې ئی دتعمیل دپاره هلته.نه راکوزوی نوځکه انزال سره ترینه تعبیر اوشو،(۳)اویا انزال پمعنی د خَلَقَ سره دې،او اَنزَلَ سره ئی تعبیر ځکه اوشو چې څاروي په بوټوسره ژوندي پاتې کیږي،اوبوټي په اوبو سره پیدا کیږي او اوبه دَبرې نه راځي

﴿ثَمَٰنِيَةَ أَزْوَٰجٍ﴾دینه مرادهغه پالتوحلال مذکرمؤنث څناورمراددي چې بیان ئی په سورة الانعام آیت(۱۴۳ ، ۱۴۴)کښ تیرشویدې من الضأن اثنین ومن المعز اثنین ومن الابل اثنین ومن البقر اثنین.

﴿يَخْلُقُكُمْ فِي بُطُونِ أُمَّهَٰتِكُمْ﴾دا د«خلقكم من نفس واحدة» د کیفیت بیان او تفصیل دي، یعنی الله ﷻ ستاسو تخلیق مختلف مراحلو کښ تقسیم کړي دې،او ددې مراحلو تذکره په سورت المؤمنون آیت ۱۴ کښ تیره ده،ثم خلقنا النطفة علقة فخلقنا العلقة مضغة او (يخلقكم) کښ خطاب انسانانو اوڅناورو دواړو اومذکر اومؤنث هر یوته دي. کم ضمیر چې دپاره مذکر ذوی العقول دې تغلیبا راوړلې شوې دې﴿خَلْقًا﴾مفعول مطلق نوعې دې ﴿مِّنۢ بَعْدِ خَلْقٍ﴾جار مجرور سره دَ متعلق نه وړله صفت جوړیږی یعنی هر مرحلې نه بعد جدا مرحله راځی.

﴿فِي ظُلُمَٰتٍ ثَلَٰثٍ﴾دا اظهار دعجائبُ دَقدرت دې،چې مخلوق په یوه تیاره کښ هیڅ څیز نشي جوړه ولې،او الله ﷻ انسان په درې تیاروکښ جوړه وي،یوه تیاره دَبطن(خیټې دَمور)، بله تیاره دَرحم(بچه داني)، بله تیاره دَمشيمَة،داهغه باریکه پرده ده چې دَبچې نه چاپیره وي اوبچې پکښ محفوظ وي ، پښتوکښ ورته پریوان وئیلې کیږي،﴿ذَٰلِكُمُ﴾اشاره ده هغه ذات ته چې متصف دي په اوصافِ مذکوره سابقه وُسره،﴿لَهُ ٱلْمُلْكُ﴾تقدیم د له دَحصرمعنیٰ فائده کوي یعني بادشاهي صرف ده لره ده بل چالره نشته دي،﴿لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ﴾دا ثمره اونتیجه ده دَماقبل دلائلو.

﴿إِن تَكْفُرُوا۟﴾دا تخویف اخروي دې چې دومره واضحو دلائلو باوجود تاسو کفرکوئ نو

بې شکه الله ﷻ ته هم ستادایمان راوړوضرورت نشته دې ﴿وَلَا يَرْضَىٰ لِعِبَادِهِ الْكُفْرَ﴾ البته الله ﷻ نه خوښه وي دخپلوټولوبندګانودپاره کفرکول.داآیت داهل سنت والجماعت دپاره صریح دلیل دی،داهلِ سنت والجماعت عقیده داده چې دهرخیراوشرخالق الله ﷻ دې د الله ﷻ داراده نه بغیرهیڅ څیزوجودته نه راځي خواکه خیروي اوکه شر.البته رضااوخوښه ئی د بندګانودپاره صرف خیراواسلام دی،دمعتزلوعقیده داده چې دخیرخالق الله ﷻ دې او د شر خالق شیطان دی نو الله ﷻ نه دشردوجودارادہ کوي اونه ئی خوښه وي.دې وجه نه هغوئ دلته درضامعنیٰ اراده کوي لیکن دامعنیٰ کول دظاهرنه خلاف ده،(۱)ځکه چې رضاء ویلې کیږي د یو څیز تعریف اوثناکول،لکه لقدرضي الله عن المؤمنين(الفتح:۱۸)ای یُمدحهم ویثنی علیهم(کبیر

(۲)او کچرې بالفرض درضانه مراد،ارده شي نو﴿لِعِبَادِهِ الْكُفْرَ﴾کښې دعبادونه مرادمؤمنان دي،لکه نوروځایونوکښې دعبادلفظ دمؤمنانودپاره راغلي دي."انّ عبادي ليس لك عليهم سلطانٌ"(الحجر:۴۲)وعبادُ الرّحمن الّذين (فرقان:۶۳)عيناًيشرب بهاعبادُ الله(الدهر:۶)(۳)اوکه بالفرض عبادُنه مرادعام اوټول عبادشي نوبیاهم داآیت دمعتزله ؤدپاره استدلال نه ګرځي ځکه ددې آیت تخصیص په هغه آیاتونوسره شویدې چې هغه نص دي په دې چې کفردکافریه ارادې دالله ﷻ سره دې،وَمَاتَشَآؤُونَ اِلاَّ اَن يَّشَآءَ اللهُ،دامسئله نوروځاینوکښې هم تیره شویده.

﴿وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ﴾یعنی دقیامت په ورځ به څوک دبل چا دګناه بوج نشی اوچتولې تو دا مه ګنړئ چه خمونږه دکفر بوج به بل څوک واخلی او مونږ به بری شو.دَدې آیت دَولیحملنّ اثقالهم و اثقالاً مع اثقالهم سره ئی تعارض نشته دي،ځکه دینه مراددا سې بوج اوچتول دي چې په هغې سره دبل نه تخفیف راشي، یعَني ستاسودکفراوناشکرئ سزابه صرف تاسوته میلاویږي بل څوک به درسره مددنشي کولي.﴿فَيُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ﴾زجردې کافراوګنهګارته اوبشارت دي مؤمن اومطیع ته ﴿إِنَّهُ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ﴾علت دي دماقبل

| مُنِيبًا | رَبَّهُ | دَعَا | ضُرٌّ | الْإِنسَانَ | مَسَّ | وَ إِذَا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوکله چې اورسیږي انسان ته تکلیف نودې سوال کوي خپل رب ته،په دې حال کښې چې رجوع کونکې وي | | | | | | |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اِلَيۡهِ | ثُمَّ | اِذَا | خَوَّلَهٗ | نِعۡمَةً | مِّنۡهُ | نَسِىَ مَا | كَانَ يَدۡعُوۡٓا |

هغه ته، بیاچې کله ورکړي ده ته الله جَلَّ جَلَالُهُ نعمت دَخپل طرفه، نوهیرکړي دي هغه تکلیف چې دوئ به سوال کولو

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اِلَيۡهِ | مِنۡ | قَبۡلُ | وَ | جَعَلَ | لِلّٰهِ | اَنۡدَادًا لِّيُضِلَّ |

الله ته دَ لرې کولو دَهغې تکلیف مخکښ دَدینه، اواوګرځوي الله جَلَّ جَلَالُهُ لره شریکان، دَپاره ددې چې ګمراه کړي

| | | |
|---|---|---|
| عَنۡ | سَبِيۡلِهٖ | قُلۡ تَمَتَّعۡ بِكُفۡرِكَ قَلِيۡلًا ۖ اِنَّكَ مِنۡ اَصۡحٰبِ النَّارِ ⑧ |

خلق، دلارې دَالله جَلَّ جَلَالُهُ نه، ته اووایه فائده واخله په خپل کفرسره لګه زمانه. بیشکه ته دَخاوندانودَاورنه ئي،

﴿وَاِذَا مَسَّ الۡاِنۡسَانَ ضُرٌّ﴾ دابل زجردې بطور شکوه، دَ"الانسان"نه مرادیاجنس انسان دي، یاانسان کافردې، یعنې چې کله کافرانسان باندې څه مصیبت راشي اودَخپلومزعومه معبودانونه ناامیده شي نوبیاډیرعاجزئ سره الله جَلَّ جَلَالُهُ ته سوالونه کوي دَهغې ضررداَزالې لپاره خوکله چې تکلیف ورنه لرې شي نوبیاشرک شروع کړي اونجات دهنده خپل معبودِباطل ګڼړي دَخلقودګمراه کولولپاره.او خلقو ته وائی چه فلانی بت، قبر، ذیارت پوجه ماته نجات میلاؤ شو. ﴿ضُرٌّ﴾ هرقسمه تکلیف خواه که بدني وي اوکه مالي وي اوکه په اهل اولادکښ ئی وي. ﴿مُنِيۡبًا اِلَيۡهِ﴾ رجوع کونکې وي الله جَلَّ جَلَالُهُ ته دپاره دَازاله دَدغه ضرر﴿ثُمَّ اِذَا خَوَّلَهٗ﴾ مشتق دې دَ"خَولَ" نه دیوځیز نعمت دوباره واپس کیدوته ونیلې کیږي،ای الرّجوع الیه مرةً اخریٰ(روح)اطلاق ئی دلته په مطلقِ اعطاء(ورکولو)باندې شویدې یادَ"خَوۡلَه" معنی اعطاء الخول ده او"خول" خدمت ګارانو او غلامانوُ ته وائی،یعنی افرادی نعمت سره ئی مالامال کړی او الله جَلَّ جَلَالُهُ طرف نه غلامان وینزی او اولاد ورته میلاؤشی.﴿نِعۡمَةً مِّنۡهُ﴾ اي: من جانب الله تعالی و تبارک. ﴿نَسِىَ مَا كَانَ﴾ "ما"یاموصوله ده پمعنیٰ دَالّذي سره، مرادورنه ضرراوتکلیف دې ای نسيَ الضرالّذي کان یدعوالله تعالی الی ازالته وکشفه(روح) یعني هیرکړي هغه ضررچې ده به بلنه کوله الله جَلَّ جَلَالُهُ ته دَهغې دَازاله اودَختمیدلو ، ﴿الیه﴾ پمعنٰی دَ"الی ازالته"دې، یا"ما"پمعنی دَ"من"سره دې

مرادورنه الله ﷻ دي، كقوله تعالى،وماخلق الذكر و الانثىٰ(الليل:۳)ولا انتم عابدون ما اعبد، فانكحوا ما طاب لكم(النسآء:۳)والمعنى:نسِي ربّه الذي كان يتضرع اليه،هيرکړي هغه رب چې د ده به ورته بلنه اوعاجزي کوله.

﴿وَجَعَلَ لِلَّهِ أَندَادًا﴾جمع دَنِد ده شريك فى العبادة ته ويلې کيږي، ﴿لِّيُضِلَّ﴾لام دعاقبت دي لکه فالتقطه ال فرعون ليكون لهم عدوا وحزنايعنى کله ورته دمصيبت نه نجات ميلاؤشي نو د بتانو عبادت شروع کړي،او خلقو ته ذا تاثر ورکوي چې زمانه داتکليف دي بتانو لرې کړې دي ،چې دهغې په نتيجه کښې خلق دَ الله ﷻ دلارې نه واړوي اوهغوئ هم شرک شروع کړي ﴿سَبِيلِهِۦ﴾ نه مراد توحيد دي.﴿قُلْ تَمَتَّعْ﴾امردتهديدډپاره دي،يعني چې دومره واضح دلائلو باوجود کفرباندې قائم ئې اودې کښې خپله فائده ګټې نويو څوورځې فائده واخله آخر کار ستا ټکانه جهنم دي، ﴿قَلِيلًا﴾اى تمتعاًقليلاً(لکه فائده)ځکه چې متاع الدنياقليل،يازماناًقليلاً،لږه زمانه يعني ترمرګ پورې

| |
|---|
| أَمَّنْ هُوَ قَانِتٌ آنَاءَ الَّيْلِ سَاجِدًا وَقَآئِمًا يَحْذَرُ الْآخِرَةَ |
| آياهغه څوک چې هغه اطاعت ګزار وي په وختونودشپې کښې کله سجده کونکې کله اولاړ،يريږي دآخرت نه |
| وَيَرْجُوا رَحْمَةَ رَبِّهِۦ قُلْ هَلْ يَسْتَوِى الَّذِينَ يَعْلَمُونَ وَالَّذِينَ |
| اواميدساتي دَرحمت دَرب خپل، ته اووايه! آيا برابردي هغه کسان چې علم دين لري اوهغه چې |
| لَا يَعْلَمُونَ إِنَّمَا يَتَذَكَّرُ أُولُوا الْأَلْبَابِ ﴿٩﴾ |
| علم دين نه لري ، بيشکه نصيحت قبلوي صرف خاوندان دَعقل. |

﴿أَمَّنْ هُوَ قَٰنِتٌ ءَانَآءَ ٱلَّيْلِ﴾دااول خل دَمؤمنانواودَمشرکانودَصفاتوپه مينځ کښې دَتقابُل ذکردي،چې يوکافراومشرك دي،چې دهغه حال دغه دي چې روستو آيت کښې ذکرشواوبل مؤمن دي چې هرحالت کښې الله ﷻ ته قائم وي،خوف خدائی زړه کښې وي،اودَرحمت اميدوار ئې هم وي نوآياداواړه برابرکيديشي؟ظاهره ده چه دواړه هرګز نشی برابر کيدلې (امّن)،به

اصل کښ "امْ" حرف استفهام او "مَن" موصوله نه مرکب دې،يوميم بل ميم کښ مدغم شويدې، "مَن" مبتدا دې او خبر ئې محذوف دې چې "کمن هُوليس کذلك" دې.يعني هغه مومن چې دهغه دا صفات وي آياکيديشي دده په شان هغه کافرچې هغه کښ داصفات نه وي،نوپدې آيت کريمه کښ دَمؤمن درې صفات ذکرشويدي:**اول صفت قانتٌ** ذکر شوې دې،ددې ډير تفسيرونه شويدي(۱)مُطيع يعني اطاعت گزار،دامعنیٰ دَحضرت ابن مسعود ﷛ نه نقل ده،(۲)خاشعٌ في صلاتِه،په مونځ کښ خشوع کونکې،لکه په قوموا لله قانتين‌کښ ئې دامعنی ده (۳)دائم على الطاعة: يعنی مستقل مزاجی سره عبادت کول،لکه په وصدقت بكلمات ربها وكتبه وكانت من القانتين کښ دا معنی مراد ده، راجح دا ده چې دا ټولې معنې ترينه مراد دی،يعنی دَ الله ﷻ اطاعت خه په خشوع او مستقل مزاجئ سره کونکې.﴿ءَانَآءَ ٱلَّيۡلِ﴾ اي: ساعات الليل، (آناء) جمع اَنیٰ ده لکه "امعاء" جمع ده دَ "مَعَی" يعنی دَ شپې مختلف اوقاتو کښ دَ الله ﷻ عبادت کوی چې دا بې ريا او نفس باندې ډير شاق (گران)وی، او مراد دلته دا اناء الليل‌نه مطلق ساعات دَ ليل دی چې کوم وخت هم وی دَشپې که ماسخوتن وی اوکه جوف الليل وی يا تهجد وی او يا ټوله شپه عبادت وی څه مخصوص وخت نه دې مراد.

﴿يَحۡذَرُ ٱلۡأٓخِرَةَ﴾**دادويم صفت** دې،هرکله چې انسان په عبادت کښ مواظبة کوي نوپه هغه کښ صفت دخوف هم پيداکيږي اوصفت دَرجا(اميد)هم اودادواړه صفتونه دَايمان دي،الايمانُ بين الرّجاء والخوف،نودويم صفت دَخوف دې ای يحذرعذاب الآخرة.﴿وَيَرۡجُواْ رَحۡمَةَ رَبِّهِۦ﴾**دادريم صفت** صفت دَرجاء دې، يعنی بل طرف ته دا اِميدئې هم وی چې الله ﷻ به دده سره رحم معامله اوکړی او جنت به ئې داخل کړی

﴿قُلۡ هَلۡ يَسۡتَوِي ٱلَّذِينَ يَعۡلَمُونَ﴾دادَماقبل تائيددې په صورت دَمثال کښ يعني لکه څنګه چې عالم اوجاهل برابرندي دغه شان قانت اوعاصي برابرندې(بيضاوي)ياپه ماقبل کښ عملي تقابل وؤاوداعلمي تقابل دې،يعني مؤمن اوکافرعلم کښ هم ندی يوشان لکه عمل کښ چې يوشانته ندی.﴿يَعۡلَمُونَ﴾فعل متعدي دې ای يعلمونَ الدّين والّذين لايعلمون الدّين،نودافعل

متعدي نه مفعول حذف شو او فعل لازمي ئې دهغې په منزله او ګرځوو .نو بيا پکښې اشاره ده چې چاسره ددين علم نه وي اګرکه نوردنياوي علوم ورسره وي ليکن دې لايعلم دې.يعني ده ته عالم نه ويلې کيږي او ده سره هيڅ نشته او کوم عالم دين کښې چې دادرې صفتونه نه وي نو دی هم عندالله جاهل دې(قرطبي).امام رازي رحمه الله فرمائي چې﴿ٱلَّذِينَ يَعۡلَمُونَ﴾نه مراد هغه دي چې دهغوئ صفات مخکښې ذکرشول يعني پخپل علم ئې عمل وي او دوالّذين لايعلمون. نه مراد هغه دي چې په هغوئ کښې داصفات نه وي.يعني پخپل علم ئې عمل نه وي.نو دا د عامل او غير عامل مثال دې.

﴿إِنَّمَا يَتَذَكَّرُ أُوْلُواْ ٱلۡأَلۡبَٰبِ﴾يعني دعالم او دجاهل په مينځ کښې فرق باندې هغه خوك پوهيږي چې "اولو الالباب" وي ، د" اولو الالباب "(خاوندان دعقل) نه مراد مؤمنان دي . ځکه چې کافرونو ته اګرکه آله دعلم(عقل)ملاؤ شويده ليکن هغوئ پدې سره خپل خالق او نه پيژندو او دغيرُالله په عبادت اومحبت کښې مبتلاشو او تحصيل دعلم دنيانه ئې اعراض وکړو.نو پدې وجه سره ګوياکه هغوئ اولوالالباب نه دي،امام رازي فرمائي: دې ايت کښې يوعجيبه سر(راز)دادې چې ابتداء ددې په ذکردعمل سره شويده چې قنوت دې،سجود.قيام دې او انتهائې په علم سره شويده نو داپدې دلالت کوي چې کمال دانسان پدې دواړو مقصدونو علم مع العمل ياعمل العلم کښې محصوردې.

| |
|---|
| قُلۡ يَٰعِبَادِ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱتَّقُواْ رَبَّكُمۡۚ لِلَّذِينَ |
| ته او وايه اې بندګانو ځما هغه کسانو چې ايمان مو راوړې دې،اوويريږئ دخپل رب نه. دپاره دهغه کسانو چې |
| أَحۡسَنُواْ فِي هَٰذِهِ ٱلدُّنۡيَا حَسَنَةٞۗ وَأَرۡضُ ٱللَّهِ وَٰسِعَةٌۗ إِنَّمَا |
| نيك عملونه ئې کړي وي په دې دنيا کښې حسنه ده ، او زمکه د الله تعالى فراخه (ارته)ده،بيشکه |
| يُوَفَّى ٱلصَّٰبِرُونَ أَجۡرَهُم بِغَيۡرِ حِسَابٖ |
| ورکوليشي صبرکونکو ته اجرد دوئ بې حسابه |

﴿قُلْ يَـٰعِبَادِ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟﴾ دادنيوي اواُخروي بشارت دي مؤمنانوته. الله ﷻ ايمان والوته دتقوىٰ امركوي، چې تقوىٰ اختيارکړئ دنياکښ به هم درته هرقسمه انعامات درکړي آخرت کښ به هم درته بې حسابه اجردرکړي ﴿لِلَّذِينَ أَحْسَنُوا۟﴾ داتعليل دې ماقبل امر يعنې تقوىٰ ځکه اختيار کړه چې متقيانو او نيکانودپاره به حسنه وي ﴿فِى هَـٰذِهِ ٱلدُّنْيَا﴾ دجارمجرورپه متعلق کښ دوه احتماله دي: يو دا چې په (احسنوا) پورې متعلق شي. بل داچې په (حسنةٌ) پورې متعلق شي، کچرته په (احسنوا) پورې متعلق شي نومطلب به داشي: للذين احسنوافى هذه الدنياحسنةٌ فى الاخرة: يعني هغه کسان چې نيك عملونه ئې کړيدي پدې دنياکښ دوئ دپاره به حسنه وي په آخرت کښ چې دخول دې جنت ته، اوتنوين په حسنةٌ کښ دتعظيم دپاره دې. اوکه متعلق شي په حسنةٌ پورې نومطلب به داشي: للذين احسنوالهم حسنةٌ فى هذه الدنيا: دپاره دهغه کسانوچې نيك عملونه کوي هغوئ دپاره به په دنياکښ حسنه وي چې صحت عافيت. کفايه دې لکه په سورة بقره کښ ذکردي.

﴿وَأَرْضُ ٱللَّهِ وَٰسِعَةٌ﴾ داترغيب دې هجرت ته، چې کچرې دغلبهٔ کفاريادماحول پوجه تاته به يوه علاقه کښ تقوىٰ اواعمال صالحه مشکل وي نودهغې نه هجرت اوکړه بلې داسې علاقې ته لاړشه چې هلته ته په اطمينان سره ته تقوىٰ اواعمال صالحه اختيارکړې ځکه زمکه دالله ﷻ فراخه ده. (مُلك خداتنگ نيست، پائى گدالنگ نيست) ليکن چونکه په هجرت کولوکښ او د خپلې علاقې پريخودلوکښ انسان ته ډيرتکليف رسيږي نوورپسې جمله کښ دصبرفضيلت دې ﴿إِنَّمَا يُوَفَّى ٱلصَّـٰبِرُونَ أَجْرَهُم﴾ دصابرينو نه دلته مرادمطلقا صبرکونکى دى او على الخصوص هغه صبر کونکى چې دهجرت اودمحبوب اشياؤو پريخودلو په تکليف باندې ئې صبرکړې وي ﴿بِغَيْرِ حِسَابٍ﴾ اى بغيرتقدير (قرطبي) يعني صبرکونکوته به بې اندازه ثواب ملاويږي په وزن اوکيل سره به نه وي، لکه حديث شريف کښې راځي، چې قيامت په ورځ به شهيدراشي او الله تعالي به ورله ميزان عدل قائم کړي، بيا به صدقه کونکې راشي او هغه دپاره به هم ميزان عدل قائم کړې شي ، بيا به مصيبت زده خلق راوستې شي نو هغوئ د پاره به نه ميزان قائم کيږي او نه به ئې د نيکيو دفتر خلاصولې کيږي . بلکه الله به ورله بې حسابه اجر

ورکړي. نو اهل عافیت چې کله دا معامله اوګوري نو تمنا به اوکړي چې کاش دوئ د جسم ټکړې ټکړې کړې شوې وې .ځکه چې دومره لوئ اجر دې ددې خلقو .معجم طبراني بعض
د﴿بِغَيْرِ حِسَابٍ﴾معنى بغيرمتابعةٍ ولامطالبةٍ کړیده چې الله ﷻ به صبر کونکوته دهغوئ :
درخواست اومطالبه نه بغیراجراوثواب ورکوي

قُلْ اِنِّيْٓ اُمِرْتُ اَنْ اَعْبُدَ اللّٰهَ مُخْلِصًا لَّهُ
ته اووایه بیشکه حکم کړې شوې دې ماته ددې چې ځه عبادت کوم د الله بدې حال کښې چې خالص کونکې یم د ده له

الدِّيْنَ ۙ وَاُمِرْتُ لِاَنْ اَكُوْنَ اَوَّلَ الْمُسْلِمِيْنَ ﴿۱۲﴾ قُلْ اِنِّيْٓ اَخَافُ
عبادت او حکم کړې شوې دې ماته چې شم ځه اول د مسلمانانو نه. ته اووایه بیشکه ځه یریږم کچرې

اِنْ عَصَيْتُ رَبِّيْ عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيْمٍ ﴿۱۳﴾ قُلِ اللّٰهَ اَعْبُدُ
ځه نافرماني وکړم د رب خپل، د عذاب د ورځې لوئ نه. ته اووایه چې خاص د الله عبادت کوم ځه

مُخْلِصًا لَّهٗ دِيْنِيْ ﴿۱۴﴾ فَاعْبُدُوْا مَا
حال دا دې چې خالص کونکې یم ده له د خپل عبادت. نو عبادت کوئ تاسو دهغې چې

شِئْتُمْ مِّنْ دُوْنِهٖ ؕ قُلْ اِنَّ الْخٰسِرِيْنَ الَّذِيْنَ خَسِرُوْٓا
خوښ وي ستاسو ماسوا د الله نه اووایه بیشکه نقصان مندهغه دي چې په نقصان کښې ئې اچولي دي

اَنْفُسَهُمْ وَاَهْلِيْهِمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ؕ اَلَا ذٰلِكَ هُوَ الْخُسْرَانُ الْمُبِيْنُ ﴿۱۵﴾
ځانونه خپل او اهل خپل په ورځ د قیامت، خبردار، هم دا نقصان ښکاره دې

لَهُمْ مِّنْ فَوْقِهِمْ ظُلَلٌ مِّنَ النَّارِ وَمِنْ تَحْتِهِمْ ظُلَلٌ ؕ
وي به دوئ له د پاسه طرفه ددوئ نه سائبانونه د اور او د لاندې د دوئ به سائبانو نه وي،

| ذٰلِكَ | يُخَوِّفُ | اللّٰهُ | بِهٖ | عِبَادَهٗ | يٰعِبَادِ | فَاتَّقُوْنِ ۝١٦ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| دا | «اوردجهنم»يره وي | الله | پدې سره | خپل بندګان. | اې بندګانو | خمانه وېرېږئ |

﴿قُلْ إِنِّيٓ أُمِرْتُ﴾ دادویم دلیل وحې دې په توحید باندې چې ماته الله ﷻ حکم کړیدې چې څه خالصةً د الله ﷻ عبادت کومه، چونکه دعبادت دپاره دوه ارکان دي. دزړه عبادت اودجوارحو عبادت، نودزړه عبادت اشرف دې نوذکرئ اولاً اوشوچې ﴿مُخْلِصًا لَّهُ الدِّينَ﴾ اووروسې دجوارحو د عبادت ذکردې چې ﴿وَأُمِرْتُ﴾ دې ، نواول أمرتُ کښې دزړه عبادت ته اشاره اودويم امرتُ کښې دجوارحو عبادت ته ، نوتکرارلازم نشو ﴿لِأَنْ أَكُونَ﴾ بعض مفسرين وائي چې لام زائده دې، ځکه چې قرينه وربانډې قول د الله ﷻ دې، "وامرتُ ان اكونَ اوّل من اسلمَ" (انعام: ۱۴) او څنې وائي چې زائده ندې بلکه لام اجليه تعليليه دې اوپه عبارت کښې حذف دې اى امرتُ بالعبادة لان اكونَ،

﴿أَوَّلَ الْمُسْلِمِينَ﴾ اوليت نه مراد اوليت دې په رتبه کښې، يعنى چې څه په مسلمينو کښې د صف اول (اول نمبر) نه شم، ياپدې امت کښې اول مسلم، ځکه چې هرنبي دامت نه اول مسلمان وي.

﴿قُلْ إِنِّيٓ أَخَافُ إِنْ عَصَيْتُ رَبِّي﴾ پدې دواړوخايونوکښې نسبت دفعل خپل خان ته شويدې اومرادورنه مخاطبين دي چې نبي معصوم چې خوف لري دعذاب نه نوتاسوخامخاولرئ.

﴿عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيمٍ﴾ مراد يوم نه يوم القيامة دې، يعني که عصيان اوشرك اوكفروكړئ نودقيامت عذاب عظيم به درته ميلاؤشي،

﴿قُلِ اللَّهَ أَعْبُدُ﴾ دادويم خل دعوه دسورت ذكركيږي، لفظ د "الله" مفعول دې د (اعبدُ) په تقديم سره ئې حصرفائده كړيدې يعني صرف اوصرف د الله ﷻ عبادت كومه، اوداتكرارندې دماقبل سره ځکه په ماقبل "قل انّي امرتُ" کښې امرشوې وؤپه توحيدفى العبادت باندې اودلته امتثال اوعمل كول دي په امرباندې.

﴿فَٱعۡبُدُواْ مَا شِئۡتُم﴾ امردَاجازت دپاره نه دي بلکه دَتوبيخ اوزورني دپاره دي. يعني تاسوته اختياردي چې دَالله ﷻ نه ماسوی دَچاهم عبادت کوئ نوکوئ تاسوبه دخپل کفر عاقبت اوګورئ، چې دَقيامت په ورځ به خساري کښې يئ. ﴿وَأَهۡلِيهِمۡ﴾ مراددَاهل نه(۱)یادَګمراه متبوعينو اوپيرانوګمراه اتباع اومريدان دي چې شرك ته ني رابلل.(۲)یاورنه مراداهل وعيال(بال بچ)دي، يعني کامل اوپوره نقصان اوخساري والاهغه دي چې دشرك په وجه ني خپل ځان هم اوخپل اتباع اواولادئ هم دَقيامت په ورځ په خساري کښې واچوي(۳)یاورنه مراداهل دَجنت دي چې هغه الله ﷻ هر انسان دَپاره په جنت کښې اهل پيدا کړی دی. که چرته ايمان راوړی نو ورته ميلاوشي، اوکه ايمان نه راوړی خو هغه اهل او نعمتونه اوبائيلی. ابن عباس رضی الله عنه فرمائي: انّ لكلّ رجل منزلاً واهلاً وخدماً فى الجنّة،فان اطاع أُعطيَ ذلك،وان كان من اهل النّارحرم ذلك فخسر (کبيروغيره)چې دَهرچادپاره يومقام اواهل اوخادمان وغيره دي په جنت کښې نوکچرته ايمان راوړي نوهغه به ورته ورکړيشي اوکچرته ايمان رانه وړي اودَاهلِ جهنم نه وګرځي نوده خپل ځان،اهل اوخپل مقام ضائع کړل.

﴿أَلَا ذَٰلِكَ هُوَ ٱلۡخُسۡرَانُ ٱلۡمُبِينُ﴾ تکراردَتاکيددَپاره دي،پدې آيت کښې دَخسران په باره کښې شپږ(۶)تاکيدات ذکرشول:(۱)تکراردَخسران(۲)حرفِ تنبيه چې"الا"دي(۳)کلمه دَ"هُو"چې په حصرباندې دلالت کوي(۴)توصيف دَخسران په"المبينُ"سره.(۵)صيغه دَمبالغه خسران راوړل(۶)خبر معرفه راوړل الخسران المبين

﴿لَهُم مِّن فَوۡقِهِمۡ ظُلَلٞ مِّنَ ٱلنَّارِ وَمِن تَحۡتِهِمۡ ظُلَلٞ﴾ دا تفصيل دَخُسران دي،داکنايه ده دَاحاطې دَعذاب نه پدوئ باندې چې دې جهنم به په دوئ باندې دَهرطرف نه احاطه کړې وي، "ظلل"جمع دَ"ظُلَّةٌ"ده سائبان ته ويلې کيږي،

**که څوك اشکال** وکړي چې سائبان خودَپاسه وي نو﴿تَحۡتِهِمۡ﴾ته ظلل څنګه اوويلې شو؟

**جواب:** (۱)اطلاق دَ"ظُلل" په" تحتهم" باندې دَقبيلې دَاطلاق دَاحدُالضدين دي په آخرباندې لکه وجزاءُ سيئةٍ سيئةٌ(شوریٰ:۴۰)

(۲)چونکه په جهنم کښې لاندې باندې طبقات دي نودَبرې طبقې والابه دَلاندې والادپاره

سائبان وي نو ځکه ﴿تَحۡتِهِمۡ ظُلَلٌ﴾ او وئيلې شو

(۳) اطلاق دَ ظُلل په "تحتهم" باندې مشاكلةً او مشابهةً شوېدې ځکه چې لاندې به هم په حرارت او په سوزولو کښې مشابه وي دَ بره سره (والله اعلم) (حاشية الجمل)

﴿لَهُم﴾ خبر مقدم دې، ﴿ظُلَل﴾ مبتداء ده ﴿مِّن فَوۡقِهِمۡ﴾ په اعتبار دَ متعلق سره حال دې دَ ﴿ظُلَل﴾ نه اى كائنةٌ من فوقهم او ﴿مِّنَ ٱلنَّارِ﴾ صفت دې دَ ﴿ظُلَل﴾ اى كائنةٌ من النّار. ﴿وَمِن تَحۡتِهِمۡ﴾ په اعتبار دَ متعلق سره حال دې دَ مابعد ﴿ظُلَل﴾ نه.

﴿ذَٰلِكَ﴾ يعنى دا عذاب دَ جهنم ﴿يُخَوِّفُ ٱللَّهُ بِهِۦ عِبَادَهُۥ﴾ يعنى دا عذاب الله ﷻ په آياتونو کښې ذکر کوې چه بندګان ئې اوېرېږي او دَ ګناهونو نه لرې شي

| |
|---|
| وَالَّذِيْنَ اجْتَنَبُوا الطَّاغُوْتَ اَنْ يَّعْبُدُوْهَا وَاَنَابُوْٓا اِلَى اللّٰهِ لَهُمُ |
| او هغه خلق چې ځان ئې ساتلې وي دَ بُتانو نه چې عبادت او کړي دَ هغوئ او متوجه وي الله ته دَ دوئ دپاره |
| الْبُشْرٰى فَبَشِّرْ عِبَادِ ﴿۱۷﴾ الَّذِيْنَ يَسْتَمِعُوْنَ الْقَوْلَ فَيَتَّبِعُوْنَ اَحْسَنَهٗ |
| زيرې دې، نو زيرې ورکړه ځما بندګانو ته. هغه چې غوږ کيدې خبرې ته نو اتباع کوي دوئ دَ ټولو نه دَ ښې خبرې |
| اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ هَدٰىهُمُ اللّٰهُ وَاُولٰٓئِكَ هُمْ اُولُوا الْاَلْبَابِ ﴿۱۸﴾ |
| دا هغه خلق دي چې هدايت ورته کړيدې الله ﷻ او دغه خلق صرف هم دوئ خاوندان دَ عقل دي. |

﴿وَٱلَّذِينَ ٱجۡتَنَبُواْ﴾ دا بشارتِ أخروي دې مؤمنانو ته چې الله ﷻ سره شرك نه کوي، دوئ ته به په وخت دَ زنکدن کښې، قبر کښې فرشتې دَ جنت زيرې ورکړي، پدې اياتونو کښې دَ مؤمنانو يو څو صفتونه ذکر کيږي، **اول صفت** دا چې ﴿ٱجۡتَنَبُواْ ٱلطَّٰغُوتَ﴾ چې دَ الله ﷻ نه ماسوا دَ هر معبود دَ عبادت نه اعراض او ځان ساتي، دَ طاغوت ډيرې معنى دي چې تفصيل ئې په سورة بقره ايت (ج۱ ص۴۰۴) کښې تير شويدې (فراجعه). ﴿أَن يَعۡبُدُوهَا﴾ بدلِ اشتمال دې دَ ﴿ٱلطَّٰغُوتَ﴾ نه ﴿وَأَنَابُوٓاْ إِلَى ٱللَّهِ﴾ دا **دويم صفت** دې دَ مؤمنانو، وا وتفسيريه دې نو دا دَ ماقبل

تفسيردي،يعني چې دَغيرالله نه ئي اجتناب كړي وي اوصرف الله ﷻ ته ئي مكمله رجوع اوتوبه ئي كړي وي.

﴿لَهُمُ ٱلۡبُشۡرَىٰ﴾دلته يوښواموردي(۱)دابشارت اوزيرې به ورته په كوم وخت كښې ملاويږي؟ نودې باره كښې يوښواقوال دي:(۱)په وخت دَزنګدن كښې(۲)په قبركښې(۳)په وخت دَبعث بعدالموت اوميدانِ حشركښې(۴)په جنت كښې،خوآصحه داده چې دې ټولوته عام دې يعني دې ټولومواقف كښې به ورته بشارت ملاويږي

(۲)دابشارت اوزيرې به دَڅه وي؟ نودابشارت به دَتكليفونو دَ ختميدلو او دَ مقصود او مطلوب دَحاصليدلوبه وي كقوله تعالىٰ: الاّ تخافوا ولاتحزنواوابشروابالجنّة التي (فصّلت:۳۰) بُشراكم اليوم جناتٌ تجري(الحديد:۱۲).

(۳)زيرې وركونكې به څوك وي؟ نوزيرې وركونكي به يا(۱)ملائكه به وي كقوله تعالىٰ:الّذين تتوفّاهُم الملائكةُ طيّبينَ يقولون سلام عليكم(النحل:۳۲) والملائكةُ يدخُلونَ عليهم من كلّ باب ﴿الرعد: ۲۳) (۲)يابه الله ﷻ پخپله زيرې وركوي،لكه: تحيّتهم يومَ يلقونه سلام(الاحزاب:۴۴).

﴿فَبَشِّرۡ عِبَادِ﴾په اصل كښې "عبادِي" دې،نومعلومه شوه چې عبديت سبب دَبشارت دې

﴿ٱلَّذِينَ يَسۡتَمِعُونَ ٱلۡقَوۡلَ﴾دادريم صفت دې دَمؤمنانو،ددې آيت په تفسيركښې دَمفسرينو متعدداقوال دي،بعضِ حضرات فرمائي چې"القَول" خاص دې،مرادورنه دَالله ﷻ كلام(قرآن) اواحاديث دي،يعني دَالله ﷻ قرآن اوحديث اوري نو﴿فَيَتَّبِعُونَ أَحۡسَنَهُۥٓ﴾دَاحسن اتباع كوي،دَاحسن نه مراديادَپوره قرآن اتباع ده لكه موسىٰ ﷺ ته الله ﷻ حكم كړيدې،دَتورات متعلق وأمرقومَكَ يأخذوابأحسنها(اعراف:۱۴۵) چې تفصيل ئي هلته تيرشويدې،ياداحسن نه مرادمُقابل دَحسن دې،ځكه چې په قرآن كښې بعضِ احكامات حسن دي،اوبعضِ احسن دي،مثلاًدَچانه خپل انتقام اوبدله اخستل هم جائزدي اوهغه معاف كول ئي هم جائزدي ليكن انتقام حسن دې اومعافي كول احسن دي"وَاَن تعفوا اقرب للتقوىٰ"اودغه شان په ځنې احكاماتوكښې رخصت،هم وي اوعزيمت هم وي ليكن عزيمت باندې عمل كول احسن وي اورخصت باندې حسن وي،نومطلب دَآيت داشوچې دامؤمنان هغه دي چې رُخصت هم اوري

او عزيمت هم آوري ليکن اتباع دَاحسن کوي چې خو مخ دي. يعني احسن اختيار وي

بعضې حضرات فرمائي چې ﴿اَلْقَوْلَ﴾ عام دئ هر قسم اقوالو ته شامل دي چې په هغې کښې دَتوحيد او شرک، حق او باطل، اقوال داخل دي. نو مطلب دَآيت دا شو چې دامؤمنان هغه دي چې خبرې تولې آوري ليکن اتباع صرف دَاحسن کوي. يعني په توحيد او شرک کښې اتباع دَ توحيد کوي او شرک نه مني.

﴿أُوْلَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ هَدَىٰهُمُ ٱللَّهُ﴾ دا څلورم صفت دې دَمؤمنانو چې دوئ دالله ﷻ دَطرفه هدايت موندونکي دي مختلفې خبرې آوري ليکن ګمراه کيږي نه. ﴿وَأُوْلَٰٓئِكَ هُمۡ أُوْلُواْ ٱلۡأَلۡبَٰبِ﴾ دا ئې پنځم صفت دې. الباب دَ لُب جمع ده هغه عقل ته وائي چې مخلوط دَوهم سره نه وي. او پېدې کښې حصر دې، يعني صرف هم دوئ خاوندان دَعقل دي، چې دَعقل په ذريعه سره دحق او باطل. حسن او اچسن په مينځ کښې فرق کوي.

اَفَمَنۡ حَقَّ عَلَيۡهِ كَلِمَةُ ٱلۡعَذَابِ ؕ اَفَاَنۡتَ تُنۡقِذُ مَنۡ فِي ٱلنَّارِ ﴿١٩﴾

آيا هغه خوک چې ثابته شوې وي په هغه باندې فيصله دَعذاب، آيا نو ته به خلاص کړې هغه خوک چې په اُور کښې وي.

لٰكِنِ ٱلَّذِيۡنَ ٱتَّقَوۡا رَبَّهُمۡ لَهُمۡ غُرَفٌ مِّنۡ فَوۡقِهَا غُرَفٌ مَّبۡنِيَّةٌ

ليکن هغه خلق چې يريږي دَرب خپل نه، وي به دوئ لره بالاخانې دَپاسه دَهغې به نورې بالاخانې جوړې کړې شوې

تَجۡرِيۡ مِنۡ تَحۡتِهَا ٱلۡاَنۡهٰرُ ؕ وَعۡدَ ٱللّٰهِ ؕ لَا يُخۡلِفُ ٱللّٰهُ ٱلۡمِيۡعَادَ ﴿٢٠﴾

بهيږي به دَلاندې دَهغې نه ولې، وعده کړيده الله ﷻ يقيني وعده، خلاف نه کوي الله ﷻ دَوعدې.

اَلَمۡ تَرَ اَنَّ ٱللّٰهَ اَنۡزَلَ مِنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءً فَسَلَكَهٗ يَنَابِيۡعَ فِي ٱلۡاَرۡضِ

آيا تا نه دي ليدلي چې بيشکه الله تعالى او وَروې دَآسمان نه اوبه، بيا رواني کړې هغې لره چينې په زمکه کښې

ثُمَّ يُخۡرِجُ بِهٖ زَرۡعًا مُّخۡتَلِفًا اَلۡوَانُهٗ ثُمَّ يَهِيۡجُ فَتَرٰىهُ مُصۡفَرًّا

بيا را او باسي پېدې سره فصل چې مختلف وي رنګونه دَهغې، بيا وچ شي دغه فصل نو وينې ته هغه تک زير

ثُمَّ يَجْعَلُهٗ حُطَامًا ؕ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَذِكْرٰى لِاُولِي الْاَلْبَابِ ﴿۲۱﴾

بیا او گرځوي الله ﷻ هغه زرې زرې، بیشکه پدې کښې خامخا نصیحت دې دپاره دخاوندانو دعقل.

﴿اَفَمَنْ حَقَّ عَلَيْهِ كَلِمَةُ الْعَذَابِ﴾ داتخویف اخروي دې اودویم تقابُل دې په مابین د صفاتو دمؤمنانو او د کافرانو کښې، چې یو طرف ته دا ضدی کافران دی چې د وعیدونو آیاتونو مستحق گرځیدلی دی او بل طرف مؤمنان چې هغه الله ﷻ احکامات منی نو آیا دا دواړه یوشان کیدې شي؟ همزه داستفهام انکار دپاره دې ﴿من﴾ موصوله مبتدا ده او خبرئی محذوف دې چې هغه "کمن نجا" یا "کمن لیس کذلک" دې او ﴿افانت تنقذ﴾ جدا جمله ده چې دماقبل مضمون تقریر او تاکید کوي. یا خبر د مبتدا ﴿افانت تنقذ﴾ جمله ده، دې صورت کښې همزه استفهام او ف، په "افانت" کښې زائده دی دپاره دتاکید د ماقبل همزې او فاء. او یا ﴿من﴾ موصوله نه دې بلکه شرطیه مبتدا دې "حق علیه" شرط دې "افانت تنقذ" جزا ده او همزه استفهام په "افانت" کښې زائده دې دپاره دتاکید او "فاء" جزائیه ده.

﴿كَلِمَةُ الْعَذَابِ﴾ غوره قول دا دې چه کلمة العذاب نه مراد وعید الهی دې چې د قرآن په مختلف ځائیونو کښې مختلفو اسالیبو سره مذکور دې ﴿اَفَاَنْتَ تُنْقِذُ﴾ دلته هم استفهام دپاره انکار دې یعنی کومو خلقو باندې د الله ﷻ دعذاب فیصله شوې ده هغه ته جهنم نه نشی بچ کولې هغهٔ پکښې ضرور داخلیږي ﴿مَنْ فِي النَّارِ﴾ پدې کښې وضع داسم ظاهر ده په ځائ د ضمیر، حق دعبارت داسې وو ((فانت تنقذه)) نو پدې کښې هم تاکید دې.

﴿لٰكِنِ الَّذِيْنَ اتَّقَوْا رَبَّهُمْ﴾ دابشارت اخروي دې مؤمنانو ته، "لکن" دلته فارقه دې یعني ماقبل او مابعد احوالو کښې فرق کوي چې کافرانو حال خوذا ووچې جهنم کښې به وي لیکن مؤمنانو ته به دایمان او تقویٰ په وجه ښوښو چهته بنگلې مېلاویږي

﴿لَهُمْ غُرَفٌ﴾ دامقابل دې د ﴿لَهُمْ مِّنْ فَوْقِهِمْ ظُلَلٌ﴾ "غُرَف" جمع د "غرفةٌ" ده بالاخانې ته وئیلې کیږي ﴿مَّبْنِيَّةٌ﴾ "بناء" نه دې یعنی جوړې کړې شوې مفسرینو ددې لفظ متعدد توجیهات لیکی

دی چې بالاخانې خولازمې دی بناء لره، داسې کیدې نشی چې بالاخانې وی اوعمارت ئی نه وی نو بیا ولې مَّبۡنِيَّةٞ صفت راوړلې شو(۱)بعضو وئیلی دې چې داتمهید دې دَمابعد. تجری من تحتها الانهاردپاره، یعنی دابالاخانی به په داسې انداز جوړې کړې شوې دی چې دیکښې به هم نهرو بهیږي، په خلاف دَدنیا بالاخانو نه.(۲)بعض وائی چې دیکښې اشاره ده چې دا بالاخانې اوسه نه الله ﷻ تیارې کړې اوجوړې کړی دی،(۳)خنې فرمائی چې دیکښې، پختگی او مضبوطی طرف ته اشاره ده. چې بالاخانې دَجنت دَدُنیادَبالاخانوپه شان ندې، دَدنیادَبنګلودپاسه چې بل چهت وي نو فوقاني(برنې)چهت دَلاندني نه کمزورې وي، نودَ﴿مَّبۡنِيَّةٞ﴾مطلب دادې چې اګرکه دَجنت بالاخانې به دَیوبل دَپاسه وي لیکن په مضبوط والي اوپوخ والي کښې به یوشان وي (۴)او خنې مفسرین فرمائي چې پدې صفت سره رفعتِ شان دَدوئ ته اشاره ده چې بانې ئي الله ﷻ دي.﴿وَعۡدَ ٱللَّهِ﴾ای وعدالله وعدا یعنی الله ﷻ دا یقینی وعده کړیده الله ﷻ خپلې وعدې خلاف نه کوی،

﴿أَلَمۡ تَرَ أَنَّ ٱللَّهَ أَنزَلَ﴾دادریم دلیلِ عقلي دې په توحیدباندې،او مثال دې دَژوند دَدنیا چې الله ﷻ دَآسمان نه اوبه دَباران نازلې کړي نودَمحفوظولودپاره ئي په زمکه کښې داخلې کړي،نوخلق ورنه تردیره وخته پورې فائده اخلي چې څپل فصلونه باغونه پرې اوبه کړی بیادغه شین فصل زیړشی،بیا زرې زرې شی،نو عقل والا پوهیږی چه داټول تصرفات دَ الله ﷻ دی نو مستحق دَعبادت هم صرف هغه دې.﴿فَسَلَكَهُۥ يَنَٰبِيعَ﴾اي في ینابیع منصوب بنا بر نزع خافض دې. ینابیع. جمع دَینبوع. ده چینې ته وائی،مطلب دادې چې زمکه کښې دننه الله ﷻ دَچینو یوجال خورکړې دې چې کله باران اوشی نودَهغې اوبه محفوظولو دَپاره الله ﷻ اوبه په چینو کښې اچلوی نوفائده عامه هم شی او تامه هم شی او داچینې دَزمکې دَپاره داسې حیثیت لرې لکه دَانسان په جسم کښې درګونو حیثیت دې چې پوره بدن کښې خواره وی او هر خائی ته غذا اوطاقت رسوی.

﴿زَرۡعٗا مُّخۡتَلِفًا أَلۡوَٰنُهُۥ﴾ دادبوټی مختلف مراحلو بیان دې چې باران سره ئی الله ﷻ راوخیژوی نو خپل اصل رنګ کښې وی ښه خائسته ښکاری څه موده پس بیا وچ شی نو تک

زير ښكاري اوبيا خه وچ شي نواوريژي او چور چور شي. "مختلفاً الوانه" نه مراد مختلف رنګونو والا فصل دي،چې ځني شنه وي،ځنې سره،ځنې زيړاوبعض سپين.وغيره وي.ياد "مختلفاً الوانه" نه "مختلفاً اصنافُه وانواعه"مراددي،يعني مختلف قسمه فصل.غنم.جوار.ساګ وغيره.

﴿يَهِيجُ﴾اي ييبس يعنى اوچ شي﴿حُطَـٰمًا﴾اى فتاتا،ټکړې ټکړې.﴿إِنَّ فِي ذَٰلِكَ﴾اشاره ده ماقبل ذكرشوي تفصيل ته،﴿لَذِكْرَىٰ لِأُولِي الْأَلْبَابِ﴾اى تذكيرا عظيمًا(روح) يعني پدې كښې لوئ نصيحت دې اوعبرت دې په فناء كيدودَدُنياباندې، اوپه حال دَدُنياباندې،چې﴿أَنزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً﴾ مثال دَقطرې دَمني دې،چې په رحم دَمادركښې داخله شي،﴿ثُمَّ يُخْرِجُ بِهِ زَرْعًا مُّخْتَلِفًا أَلْوَانُهُ﴾مختلف قسمه خلق ورسره پيداشو﴿ثُمَّ يَهِيجُ﴾بياځوان اوقوي شو﴿فَتَرَاهُ مُصْفَرًّا﴾ بيابوډاشو،﴿ثُمَّ يَجْعَلُهُ حُطَامًا﴾ بيامړشواوپه قبركښې زړې زړې شو.نوپدې سره انسان دَخپل تخليق حقيقت پيژندلې شي،چې داذريعه ده دَمعرفت الهي.

أَفَمَن شَرَحَ اللَّهُ صَدْرَهُ لِلْإِسْلَامِ فَهُوَ عَلَىٰ نُورٍ مِّن رَّبِّهِ

آياهغه څوك چې پرانستې وي الله ﷻ سينه دَهغه دَاسلام دَپاره،نووي دې په يولوئ نوردَطرفه دَرب خپل نه،

فَوَيْلٌ لِّلْقَاسِيَةِ قُلُوبُهُم مِّن ذِكْرِ اللَّهِ ۚ أُولَٰئِكَ فِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ ﴿٢٢﴾

نوهلاكت دې هغه خلقو لره چې سخت وي زړونه دَهغوئ دَذكردَالله نه،دغه خلق په ګمراهئ ښكاره كښې دي.

اللَّهُ نَزَّلَ أَحْسَنَ الْحَدِيثِ كِتَابًا مُّتَشَابِهًا مَّثَانِيَ

الله نازل كړيدې ډيرښائسته كلام،چې عظيم الشان كتاب دې،يوبل پشان دې په مضمون كښې مكرر دې،

تَقْشَعِرُّ مِنْهُ جُلُودُ الَّذِينَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ ثُمَّ تَلِينُ جُلُودُهُمْ

تريكي دَددې دَوعيدنه څرمنې دَهغه خلقو چې يريږي دَخپل رب نه،بيانرمې په سكون شي څرمنې دهغوئ

| وَقُلُوبُهُمْ إِلَىٰ ذِكْرِ اللَّهِ ذَٰلِكَ هُدَى اللَّهِ يَهْدِي بِهِ مَنْ |
|---|
| وزړونه دهغوئ داللهﷻ ذکر(بشارت)ته دا(کتاب)هدايت دې دالله ﷻ.هدايت ورکوي پدې سره چاته چې |
| يَشَاءُ وَمَن يُضْلِلِ اللَّهُ فَمَا لَهُ مِنْ هَادٍ ﴿٢٣﴾ |
| ئي خوښه شي اوهغه څوك چې ګمراه ئي کړي اللهﷻ، نونه وي هغه لره هيڅ څوك هدايت ورکونکې |

﴿أَفَمَن شَرَحَ اللَّهُ صَدْرَهُ﴾ دادريم ځل ذکردتقابل داوصافودمؤمنانواوکافرانودې،دلته هم استفهام انکاري دې،من موصوله مبتدا ده اوخبرئې محذوف دې چې کمن هوليس کذلك دې.يعني هغه مؤمن چې هغه دتوحيدپه دلائلوکښې غوراوفکروکړواواللهﷻ دهغه سينه د قبول اسلام دپاره کولاوه کړله،اودالله ﷻ په توفيق سره ئي سينه دقرآن اودا اسلام په نورسره منوره شوه،نوآيادې کيديشي په شان دهغه سنګدل کافرچې دضداودعنادپه وجه ئي زړه سخت شوې وي اودقبول اسلام نه محرومه شوي وي؟ هرګزنشي کيدى.﴿شَرَحَ اللَّهُ صَدْرَهُ﴾ د شرح صدرنه مراددقبول ايمان اودنورايمان صلاحيت دې،ددې په مقابل کښې قساوت قلب دې چې ورستوئي ذکرراځي،دحضرت ابن مسعودؓ نه روايت دې چې نبي اکرمﷺ داآيت کريمه تلاوت کړو﴿أَفَمَن شَرَحَ اللَّهُ صَدْرَهُ لِلْإِسْلَامِ فَهُوَ عَلَىٰ نُورٍ مِّن رَّبِّهِ﴾ نومونږورنه دشرح صدرمطلب تپوس وکړو،نوحضورﷺ اوفرمايل چې:دايونوردې چې اللهﷻ ئي دمؤمن په زړه کښې واچوي،نودده زړه کلاؤ اوارت شي،داحکام الهيه باندې دعمل کولودپاره،نوصحابه ؓ عرض وکړوچې ددې څه علامه ده؟نونبي اکرمﷺاوفرمايل:الانابةُ الى دارالخلود ، والتّجافي عن دارالغرور ، والتأهبُ للموت قبل نزوله(روح بحواله بيهقي،حاکم)يعني دشرح صدرعلامه داده چې دآخرت شوق پيدا شي دنيا نه بى رغبتى پيدا شي،اومرګ دراتلو نه مخکښې دهغې دپاره تيارى شروع کړى.﴿فَهُوَ عَلَىٰ نُورٍ﴾تنوين دتعظيم دپاره دې،دنورمرادنوردهدايت اودمعرفت دې.﴿فَوَيْلٌ لِّلْقَاسِيَةِ قُلُوبُهُم مِّن ذِكْرِ اللَّهِ﴾ من اجليه دې،اى من اجلِ ذکره سبحانه(روح)يعني دالله تعالى دذکردوجهې نه ددوئ په زړونوکښې قساوت(سنګدلي)پيدا شي.

**كه څوک اشكال** وكړي چې دَالله تعالى ذكرخودَشرح صدراواطمينان قلبي سبب دي لكه الله ﷻ فرمائي"الا بذكرالله تطمئنّ القلوب" نوپدې آيت كښ ورته سبب دقسوة قلبي ولې وونيلى شو؟

**جواب** دادې(۱) چې "ذكرالله"اصل خاصيت خودادې چې زړونو ته ورسره اطمينان نصيب كيږي،ليكن بيادَزړونو فرق دې څنې سليم وي نو هغوئ ته ورسره اطمينان حاصل شي اوځنې غيرسليم وي نوهغې ته اطمينان نه حاصليږي بلكه قساوت پكښ پيدا كيږي لكه ديوكس معده خرابه ده اودَبل صحيح كار كوي.دواړه خه مقوي غذا استعمال كړي نو چې كوم كس معده صحيح وي هغه له فائده وركړي اوچاچې كمزوري وي نوهغه له الټا نقصان وركړي
(۲) دويم داچې دانسبت تسببًادې،يعني دَدوئ اعراض دَذكراودَقرآن نه سبب دې دَقساوة قلبي دَدوئ.

﴿ٱللَّهُ نَزَّلَ أَحۡسَنَ ٱلۡحَدِيثِ﴾ دادريم(۳)دليل وحې دې په توحيدباندې.چې څه دځېل څان نه هيڅ هم نه وايم بلكه دَالله ﷻ طرفه په ماقرآن نازليږي،پدې آيت كښ دَقرآن مجيد يوصفات ذِكرشويدي(۱)أَحۡسَنَ ٱلۡحَدِيثِ حديث لفظي معنى هغه كلام ياقصه چې بيانيږي،قرآن ته احسن الحديث پدې وجه ويلي شويدي چې دې په ټولو كلامونو كښ احسن دې،لكه په﴿ٱلَّذِينَ يَسۡتَمِعُونَ ٱلۡقَوۡلَ فَيَتَّبِعُونَ أَحۡسَنَهُۥٓ﴾كښ تيرشو،اوقرآن مجيدهم لفظاً احسن دې، څكه چې ډيرفصيح كلام دې،اومعناًهم احسن دې،څكه چې دَهرقسمه تناقض اواختلاف نه منزّه دې،كقوله تعالى:ولو كانَ من عند غيرالله لوجدوا فيه اختلافاً كثيراً(نساء:۸۲).

(۲)﴿كِتَٰبٗا﴾بدل دې دَاحسن الحديث نه،تنوين پكښ دَتعظيم دپاره دې،دائي دويم صفت دې،كتاب په لغت كښ جمع ته وائي،قرآن ته كتاب څكه ويلې كيږي چې دې جمع كونكې دې ټولوخيرونولره

(۳)﴿مُّتَشَٰبِهٗا﴾دائی دريم وصف دې،په معنىٰ دَمتماثلاً سره دې،يعني يوبل سره يوشان دې په مضمون كښ يوبل سره ئې تضاد نشته

(۴)﴿مَّثَانِيَ﴾جمع دَمثنىٰ ده پمعنى دَمكرركيدوسره،يعني دده مضامين اواحكام او

مواعظ باربارذكرشويدي.اودارنگه تلاوت ئي باربارکیږي.وقيل يثنى في التلاوة. نور وجوهات ئي په سورة الحجر(۸۷)کښې تیرشویدي

(۵){تَقْشَعِرُّ مِنْهُ جُلُودُ الَّذِينَ }دا پنځم صفت دې يعنى ددې وعيد ونه اوتخويفاتو سره په زړه کښې خوف راځی اوبشارتونو اووعدو سره اطمينان اورجا راځی. اقشعرار:موئ برتن خاستن.يعني په وخت دخوف اویره کښې په بدن باندې ویخته زيگيدوته وانې. او {مِنْهُ} ضمیردقرآن مجيدوعيدونو اوتخويفاتو ته راجع دې.يعني دمؤمن شان دادې چې کله دقرآن وعيدونه واوري،نوويرېږی اوويخته ئي په بدن باندې زيگ شي.{ثُمَّ تَلِينُ } اي تطمئن وتسكن،دا د تقشعر منه جلود الذين په مقابله کښې دې يعنى كله چې دقرآن بشارتونه او وعدې واوری نو دمؤمنانوزړونو کښې اطمینان پیدا شی.لين الجلود: نه مراد په بدن کښې د اقشعرار کیفیت ختمیدل دی او د قلوبهم: اضافی کښې ورسره اشاره اوشوه دیته چې د اقشعرار او دخوف کيفيت ختميدلو سبب غفلت نه وی،بلکه قرآن دهغوئ په زړونو اثر کړې وی.اصل سبب ئی هغه اطمينان وی چې قرآن په برکت ورته نصیب شوې وی.{إِلَىٰ ذِكْرِ اللَّهِ }دذكرالله نه وعدې اوبشارتونه مراددي،يعني په مؤمن باندې دقرآن اثرداوي چې کله دې دقرآن وعيدونه واوري نواویریگي اوچې کله بشارتونه،وعدې واوري نوزړه ئي خوشحاله شي اومطمئن شي. نو دادمؤمن صفت دې اوچې په چاکښې داصفت کمزورې وي نودا ايماني کمزوري ده

**فائده**:حضرت عثمانی رحمه الله فرمائی دا حال داقویاؤو کاملينو دې کچرته په ضعفاوؤ او ناقصينو څه نور قسم احوال طاری شی لکه صعقه بې هوشی وغیره،نوددې آيت نه ددې نفی نه کیږی،اونه د داسې خلقو فضيلت ورسره لازمیږی بلکه داسې بې قابول کیدل عموما دليل وی د وارد: د قوت، او مورود: د ضعف. جامع ترمذی کښې په حضرت ابوهريره رضي الله عنه باندې د يوحديث په بيان په وخت کښې داسې احوالو طاري کیدلو تصريح راغلې ده.

{ذَٰلِكَ }مشارٌاليه ياقرآن دې چې داقرآن دالله تعالى دطرفه هدايت دې هدايت کوي پدې سره هغه چاته چې ئي اوغواړي هدايت،يامشار اليه اقشعرار،اولين دي،يعني خوف اوخوشحالي پيداكيدل په قرآن سره اثردهدايت دالله تعالى دي.{وَمَن يُضْلِلِ اللَّهُ }اودچاپه زړه کښې چې دقسوة

قلبي اوپه ګناهونوباندې اصرارکولودوجه نه دقرآن دااثرپيدانشي نو ﴿فَمَا لَهٗ مِنْ هَادٍ﴾ بل مؤثربياده لره نشته دې، اللّهم اعذنامن الضلالة.

| |
|---|
| اَ فَمَنْ يَّتَّقِيْ بِوَجْهِهٖ سُوْٓءَ الْعَذَابِ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ |
| آياهغه څوك چې ځان بچ كوي په مخ خپل سره دسخت عذاب نه په ورځ دقيامت، كيدلې شي په شان دمؤمن |
| وَ قِيْلَ لِلظّٰلِمِيْنَ ذُوْقُوْا مَا كُنْتُمْ تَكْسِبُوْنَ ﴿۲۴﴾ كَذَّبَ الَّذِيْنَ مِنْ |
| او اوبه اويلې شي ظالمانو ته، چې اوڅكئ سزا دهغه عملونو چې تاسو كسب كول. تكذيب كړي وو هغه خلقو چې |
| قَبْلِهِمْ فَاَتٰىهُمُ الْعَذَابُ مِنْ حَيْثُ لَا يَشْعُرُوْنَ ﴿۲۵﴾ فَاَذَاقَهُمُ اللّٰهُ |
| مخكښې وو دوئ نه نوراغلې وهغوئ ته عذاب دداسې ځائ نه چې نه پوهيدل دوئ. نو اوڅكوله دوئ ته الله |
| الْخِزْيَ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۚ وَلَعَذَابُ الْاٰخِرَةِ اَكْبَرُ ۘ لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ ﴿۲۶﴾ |
| رسوائي په ژوند د دنيا كښې ، او يقيناً چې عذاب دآخرت ډيرلوئ دې، كچرې دوئ پوهيدلې |
| وَلَقَدْ ضَرَبْنَا لِلنَّاسِ فِيْ هٰذَا الْقُرْاٰنِ مِنْ كُلِّ مَثَلٍ لَّعَلَّهُمْ |
| اوخامخا په تحقيق سره بيان كړيدې مونږ خلقوته پدې قرآن كښې هر قسم مثال ، ددې پاره چې دوئ |
| يَتَذَكَّرُوْنَ ﴿۲۷﴾ قُرْاٰنًا عَرَبِيًّا غَيْرَ ذِيْ عِوَجٍ لَّعَلَّهُمْ يَتَّقُوْنَ ﴿۲۸﴾ |
| نصيحت قبول كړي. قرآن دې په عربئ ژبه كښې، نه دې خاوند دكوږوالي، ددې دپاره چې دوئ اويريږي |

﴿اَفَمَنْ يَّتَّقِيْ بِوَجْهِهٖ﴾ داخلورم خل تقابل ذكركيږي په مابين دصفاتو دمؤمنانو او كافرانو كښې، دلته هم استفهام انكاري دې، "من" اسم موصول مبتدا ده او خبرئې محذوف دې چې "كمن هو ليس كذلك" دې، ياكمن هوآمن من العذاب دې، يعني هغه كافرچې لاس تړلې پرمخې جهنم ته اوغورځولې شي، نودې په مخ خپل سره ځان دجهنم داورنه بچ كوي، ليكن نه به شي بچ كولې ، نوآيادې كيديشي په شان دهغه مؤمن چې ددې عذاب نه محفوظ وي؟هرګزنشي

كيدي، مفسرين وائي چې داكنايه ده ددينه چې كافر به دجهنم داورنه دخان بچ كولونه عاجزه وي ځكه چې مخ اشرف الاعضاء دی.انسان خپل مخ په لاس سره بچ كوي اولاسونه ددوئ خوبه په ستونوپورې ترلې وي نوچې جهنم ته غورځيږي نوپه مخ به خان بچ كوي.اوپه مخ خوځوك خان نشي بچ كولې نودوئ به دخان بچ كولونه عاجزه وي

﴿وَقِيلَ لِلظَّٰلِمِينَ ﴾داتخويف اخروي دی. ﴿مَا كُنتُمْ تَكْسِبُونَ ﴾اي وباله يعني كافرانوته به قيامت كښې اوويلې شي چې دنياكښې موكوم مشركانه افعال كول نن دهغې عذاب اوڅكئ.

﴿كَذَّبَ ٱلَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ ﴾داتخويف دنيوي دی.چې ستاسونه مخكښې دتوحيداورسالت نه انكاركونكوباندې مونږداسې عذاب راوستلوچې دوئ پوهه هم نه شول دنيااوآخرت كښې رسواشول،تاسودافضل الانبياء تكذيب كوئ ددې دانجام نه اويريږئ.﴿فَأَتَىٰهُمُ ٱلْعَذَابُ مِنْ حَيْثُ ﴾حيث مكانيه دی،يعني دداسې طرفه اومقام نهورباندې عذاب راغې چې ددوئ په وهم اوګمان كښې هم نه وو.

﴿وَلَقَدْ ضَرَبْنَا لِلنَّاسِ ﴾داتمهيددې ورستوراتلونكي مثال ضَرَبَ ٱللَّهُ مَثَلًا رَّجُلًا دپاره.چې په قرآن كښې مونږه نصحيت حاصلولو دپاره خلقوته هرقسمه مثال بيانوؤ،﴿قُرْءَانًا﴾حال مؤكده دي د ﴿هَٰذَا﴾،اويامنصوب على المدح دي،﴿غَيْرَ ذِى عِوَجٍ ﴾ عِوَج بالكسر هغه نقصان اوكوږ والي ته وائي چه مدرک بالعقل او بالبصيرت وي، او عَوَج بالفتح هغې ته وائي چه مدرک بالحس وي،نو دلته داول ذكر شونو اشاره ده چه قرآن داسې مرتبه كښې دې چه عقل هم پكښې كوږ والې نشي پيدا كولې نو په حس سره خو پكښې په طريق اولى كوږ والى اونقصان نشى موندلې ، بعض وائى مراددعوج(كوږ والي)نه خلاف واقع خبره ده،اودغه رنګه هرقسم نقصان اوتعارض تناقض پكښې نشته دې.

| ضَرَبَ | ٱللَّهُ | مَثَلًا | رَّجُلًا | فِيهِ | شُرَكَآءُ | مُتَشَٰكِسُونَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بيانوي | الله تعالى | يومثال، | د يوسړي(غلام) | چې په هغه كښې | شريكان وي، | بدخويه(جګړه كونكي) |

وَ رَجُلًا سَلَمًا لِّرَجُلٍ هَلْ يَسْتَوِيٰنِ مَثَلًا ؕ اَلْحَمْدُ

اود يو بل سړى غلام، چې صرف د يو سړي وي آيا برابر كيدېشي دادواړه په مثال كښې. ټول صفتونه د خداى تو ب

لِلّٰهِ ؕ بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿٢٩﴾ اِنَّكَ مَيِّتٌ وَّاِنَّهُمْ

الله ﷻ لره دي. بلكه ډېر د دوئ نه ، نه پوهيږي، بيشكه ته مړكيدونكې ني او بيشكه دوئ هم

مَّيِّتُوْنَ ﴿٣٠﴾ ثُمَّ اِنَّكُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ عِنْدَ رَبِّكُمْ تَخْتَصِمُوْنَ ﴿٣١﴾

مړي دونك دي بيا به بيشكه تاسو په ورځ د قيامت په حضور د خپل رب كښې جګړه كوئ

﴿ضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا ﴾ پنځم تقابل دې د مؤمن او د مشرك او مثال په ذريعه واضحه كيږي .

چې يو غلام دې چې هغه د دوؤ ياد ډيروبد اخلاقو مالكانو شريك دې. يو ني مشرق ته ليږي نو بل ئي مغرب ته ليږي، نو دې پريشانه او حيرانه وي چې د كوم يو د حكم تعميل وكړي. او بل هغه غلام دې چې صرف يو مالك ئي دې، نو آيا دادواړه برابر كيدېشي؟ هر ګزنشي كيدې نو دغه شان اول غلام د مشرك مثال دې، چې كله يو درګاه ته منډه ،كله بل درګاه ته منډه كله يو بت نه غواړه كله بل بت نه غواړه او دويم مثال د مؤمن دې چې صرف الله ﷻ ته سجده ريز وي

﴿مَثَلًا﴾ مفعول ثاني د ضرب دې او ﴿رَّجُلًا﴾ مفعول اول دې چونكه دا د تمثيل ،چې فيه متشاكون دې، يو جز دې نو دې وجهې نه روستې ذكر كړې شو، چې دې سره اتصال راشي ﴿فِيهِ﴾ خبر مقدم دې، او ﴿شُرَكَآءُ﴾ مبتدا مؤخر دې ﴿مُتَشٰكِسُوْنَ﴾ صفت دې، مأخوذ دې د تشاكس نه تشاكس: تخالف مع سوء الخلق ته وائي، يعنې داسې شركاء وي چې خپل مينځ كښې ئي اختلاف هم وي او بد اخلاقه هم وي، ﴿وَرَجُلًا﴾ دا د مؤحد او د مومن مثال دې ﴿سَلَمًا﴾ اى خالصًا.

﴿هَلْ يَسْتَوِيٰنِ مَثَلًا ﴾ "مثلاً" تميزعن النسبة دې، تقدير دا رنګه دې هل يستوي مثلهما وحالهما يعني آيا د دوئ دواړو برابرى كيدېشي په حالت او په مثال كښې. ﴿اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ ﴾ ثمره ده د ماقبل دلائلو او مثالونو چې د ماقبل دلائلو نه معلومه شوه چې مستحق د الوهيت صرف د الله ﷻ ذات دې

﴿إِنَّكَ مَيِّتٌ وَإِنَّهُم مَّيِّتُونَ ﴾داجواب دي يو دقول دَمشركانو چې دوئ به داخبرې كولې چې دامحمّد ﷺ به مړشي نومونږاوزمونږه بتان به ورنه خلاص شي.لكه بل ځائ كښ الله ﷻ فرمائي:ام يقولونَ شاعرٌنتربّصُ به ريبَ المنون(طور: ۲۰)نوالله ﷻ ددې جواب وركوي چې دَمرګ نه خوهيڅ څوك هم نشي خلاصيدلې كه تاسودَحضور ﷺ دَمرګ انتظاركوئ نو تاسوباندې به هم مرګ راځي،اودَغه شان په مرګ سره هم خبره نه ختميږي بلكه ورستودَمرګ نه به په دوباره ژوندِدَقيامت كښ به فيصله كيږي،ضمناًپدې كښ ددې تنبيه هم ده چې افضلُ الخلائق اوسيّدالرسل كيدوباوجودحضور ﷺ هم دَمرګ دَفيصلې نه مستثنیٰ ندې.لپاره دَ دی چه دَ حضور ﷺ وفات نه روستو خلک پدېکښ اختلاف اونكړی او دغه شان ټولوخلقوته دَ فكر آخرت اودنيك عمل كولوترغيب دې،باقي په عالم برزخ كښ دَانبياء عليهم السّلام حيات، نو پدې باندې دَټولو اهل سنت والجماعت اتفاق دې چې انبياء عليهم السّلام ته په قبوروكښ په نهايت اعلیٰ درجه سره حيات حاصل دې،چې په بعضِ اعتباراتوسره دَدنيوي حيات نه هم قوي دې،حيات انبياء عليهم السّلام باندې تحقيق حضرت والدمحترم نوّرالله مرقده په تفسير دَسورة بقره آيت(۱۵۴)كښ په تفصيل سره كړيدې(اللّهم تقبّل منه).

ددې آيتِ كريمه تعلق دَدغه مسئله سره نشته دې ځكه چې پدې آيت كښ صرف وعده .وفات كيدِوده،ځكه چې مَيّت'بتشديدالياء'اطلاق په هغې چاكيږي چې په زمانه مستقبل كښ په هغه باندې مرګ طاري كيږي نو'انّكَ ميّت 'پمعنی دَستموت سره اوميت(بسكون الياء) هغه چاته وائي چې مړوي.

﴿ثُمَّ إِنَّكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عِندَ رَبِّكُمْ ﴾خطاب عام دې،چې تاسوټول به دَقيامت په ورځ دَالله ﷻ په درباركښ جګړه كوئ،كافربه وائي'ما جاءنا من بشيرٍ و لا نذيرٍ'پيغمبربه وائي چې ماتاسوته دَالله ﷻ پيغام رارسولې وؤليكن تاسونه وؤمنلې،اودغه شان مظلوم به دَظالم سره مخاصمه كوي خواه كه ظالم مسلمان وي اوكه كافرلكه حديث كښ راځي چې په كوم سړي باندې دَبل وروروحق اوذمه باقي وي نوهغه لره پكاردې چې نن په دنياكښ ئې ادايامعاف كړي ځكه چې په آخرت كښ به دينار اودرهم نه وي،نوكه ظالم سره څه اعمالِ صالحه وي نوبقدرِظلم به مظلوم ته وركولې شي،اوكه اعمالِ صالحه ورسره نه وي نودَمظلوم ګناهونه به په ده.باندې اچولې كيږي.

| |
|---|
| فَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ كَذَبَ عَلَى اللّٰهِ وَكَذَّبَ بِالصِّدْقِ اِذْ جَآءَهٗ |
| نو خوك دي زيات ظالم دهغه كس نه چې دروغ تړي په الله او تكذيب ني اوكړو د رښتياوو چې كله راغي ده ته |
| اَلَيْسَ فِيْ جَهَنَّمَ مَثْوًى لِّلْكٰفِرِيْنَ ﴿٣٢﴾ وَالَّذِيْ جَآءَ بِالصِّدْقِ |
| آيا نده په جهنم كښې تهكانه دپاره د كافرانو او هغه سړي چې راوړي ني وي رښتيا |
| وَصَدَّقَ بِهٖٓ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُتَّقُوْنَ ﴿٣٣﴾ لَهُمْ مَّا يَشَآءُوْنَ |
| او ايمان ئي پرې هم راوړې وي، دغه كسان هم دوئ پرهيزګاران دي دوئ دپاره هغه نعمتونه دي چې ددوئ خوښ وي |
| عِنْدَ رَبِّهِمْ ۚ ذٰلِكَ جَزَآءُ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿٣٤﴾ لِيُكَفِّرَ اللّٰهُ عَنْهُمْ اَسْوَاَ |
| په نزد رب ددوئ، دا بدله ده دخايسته عمل كونكو ددې دپاره چې معاف كړي الله تعالى دوئ ته بدترين هغه |
| الَّذِيْ عَمِلُوْا وَيَجْزِيَهُمْ اَجْرَهُمْ بِاَحْسَنِ الَّذِيْ كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿٣٥﴾ |
| عملونه چې دوئ كړي وو او وركړي الله دوئ ته اجر ددوئ دهغه ښائسته عملونو چې دوئ كولو |

﴿فَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّن كَذَبَ﴾ دا زجر او تخويف اخروي دې، استفهام انكاري دې، يعني دهغې كس نه زيات ظالم بل څوك نشته دې چې په الله ﷻ دروغ وائي او په الله ﷻ دروغ وئيل دا دي چې نسبت دولد ورته كوي، شريك ورسره ګرځوي حلال حرام، حرام حلال ګڼړي وغيره، ﴿وَكَذَّبَ بِالصِّدْقِ﴾ او بل دا چې رښتياوو ته دروغ وائي صدق نه مراد قرآن، نبي كريم ﷺ او د اسلام ټول احكامات دي، ﴿إِذْ جَآءَهُ﴾ اذ، مفاجاتيه دې، يعني څنګه دا رښتيا ورته ر اورسيدلو نو ده ئي فورا تكذيب اوكړو، څه غور وفكر ئي اونكړو ﴿أَلَيْسَ فِي جَهَنَّمَ﴾ استفهام تقريري دې يعني ضرور به جهنم تهكانه دكافرانو ده.

﴿وَالَّذِي جَآءَ﴾ دا بشارت اخروي دې مؤمنانو ته، راجح قول دا دې چې جاء او صدق به

د واړو مصداق يو كس دې. اود يو كس دوؤصفتونو بيان دې. يودا چې كله خبره كوي نو رښتيا وصحيح خبره كوي، دې كښ ئې صفت علم او عدل ته اشاره ده. دويم دا چې كله دليل سره يو خبره رښتونې ثابته شي نو بيا دهغې تصديق هم كوي. تكبر ترينه نه كوي ديكښ صفت تو اضع ته اشاره ده، دې قول مطابق آيت عام دې. نبي ﷺ ته هم شامل دې صحابه كرامو ﷺ ته هم اوهغه چاته هم چې هغه كښ دا دواړه صفات وي.

څنې مفسرينو ددې دواړو مصداق جدا جدا كسان ګرځولي دي او په بيان د مصداق كښې هغوئ نه متعدد اقوال نقل دي:

(۱) د "الّذي جآء" نه مرادحضور ﷺ دې. او "بالصّدق" نه مراديا قرآن دې. يا كلمه د توحيد يعني "لااله الاالله" اودغه شان نور تعليمات، ﴿وَصَدَّقَ بِهِۦٓ﴾ نه مراد ابوبكر ﷺ دې، يعني حضور ﷺ قرآن پيش كړو او ابوبكر ﷺ ئې تصديق وكړو.

(۲) ﴿وَٱلَّذِى جَآءَ﴾ نه مرادجبرائيل ﷺ دې، د ﴿بِٱلصِّدْقِ﴾ نه مرادقرآن دې، ﴿وَصَدَّقَ بِهِۦٓ﴾ نه مرادحضور ﷺ دې، يعني جبرائيل ﷺ قرآن راوړو او حضور ﷺ ئې تصديق اوكړو، او په ﴿أُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْمُتَّقُونَ﴾ كښ ضميرونه اګرچه د جمعې دي خو تثنيه ته هم د جمعې ضميرراجع كيږي.

(۳) د ﴿وَٱلَّذِى جَآءَ﴾ نه مرادانبياء عليهم السّلام دي، د ﴿بِٱلصِّدْقِ﴾ نه مرادتوحيد اودغه شان نور تعليمات دي، و ﴿وَصَدَّقَ بِهِۦٓ﴾ نه مراد، أتباع او اُمتيان دي،

﴿لَهُم مَّا يَشَآءُونَ عِندَ رَبِّهِمْ﴾ دا ئي د انعاماتو تذكره ده، او دا **اول انعام** دې چې په جنت كښ به د دوئ د خواهشاتو مطابق پدوئ باندې د نعمتونو وسعت وي ﴿ذَٰلِكَ﴾ دا وُسعت د نعمتونو دا د نيكو عملونو كونكو بدله ده،

﴿لِيُكَفِّرَ ٱللَّهُ عَنْهُمْ﴾ دا **بل انعام** دې، اولام د پاره د عاقبت دې، يعني تقوى اختيارولو نتيجه به داوى چې الله ﷻ به ورته ګناهونه اوقصورات معاف كړي، ﴿أَسْوَأَ ٱلَّذِى عَمِلُوا۟﴾ ددې **دوه تفسيرونه** شوي دي (۱) "اسوأ" اسم تفضيل دې يعني ډيربد ګناهونه چې كبيره ګناهونه دي هغه به ورته الله ﷻ معاف كړي، نو داكنايه ده د معاف كيدلو د ټولو ګناهونونه كه صيغره وي

اوكه كبيره وي خكه چې "اسوء" گناه كبيره معاف شي نو (سوء) گناه صغيره خوبطريق اولى معاف كيږي، (۲) بعضِ وائي چې ﴿أَسْوَأَ﴾ اسم تفضيل ندې بلكه دَ "السيئ" پمعنى سره دې گناه ته وائي كبيره وي اوكه صغيره وي.

﴿وَيَجْزِيَهُمْ أَجْرَهُم بِأَحْسَنِ الَّذِي﴾ دادريم انعام دې چې دَدوئ په نيكوعملونوباندې به ورته اجراوثواب ملاويږي، ﴿بِأَحْسَنِ﴾ د احسن هم **دوه تفسيره** شوى دى : يو داچې دا پمعنى د "الحسن" سره دې يعنى دَنيكو اعمالو بدله به ورله الله ﷻ وركړى، دويم داچې اسم تفضيل په خپلې معنى كښ استعمال دې، دې اعتبارسره دَآيت **خو مطلبه** بيان كړې شوي دي: (۱) يو داچې دَعمل نه بهترينه بدله ،به وركوى، هغه داده چې يوې نيكئ په عوض كښ به لس نيكئ وركوى (۲) دويم دا چې هرنيک عمل باندې به ورله بدله دَ "احسن" عمل وركولې كيږى خواه كه في نفسه احسن وى اوكه نه (۳) دريم دا چې "باحسن" كښ باء سببيه ده اوجار مجرور صفت جوړيږى دَ "اجرهم" دپاره يعنى الله ﷻ به ورله دَ احسن اعمالوپه وجه بدله وركوى. [التحرير و التنوير]

| |
|---|
| أَلَيْسَ اللَّهُ بِكَافٍ عَبْدَهُ ۖ وَيُخَوِّفُونَكَ بِالَّذِينَ مِن دُونِهِ |
| آيانه دې الله تعالى كافي دَخپل بنده دپاره، اودوئ تايره وي دَهغه معبودانوباطله ؤنه چې ماسوادالله نه دي، |
| وَمَن يُضْلِلِ اللَّهُ فَمَا لَهُ مِنْ هَادٍ ﴿٣٦﴾ |
| اوهغه خوك چې گمراه كړي ده لره الله ﷻ نونه وي هغه ته هيڅ خوك هدايت كونكي، |
| وَمَن يَهْدِ اللَّهُ فَمَا لَهُ مِن مُّضِلٍّ ۗ أَلَيْسَ اللَّهُ بِعَزِيزٍ |
| اوهغه خوك چې هدايت وركړي هغه ته الله ﷻ نونه وي هغه لره هيڅ خوك گمراه كونكي، آياندې الله غالب، |
| ذِي انتِقَامٍ ﴿٣٧﴾ وَلَئِن سَأَلْتَهُم مَّنْ خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ |
| خاوند دَبدلي اخستلو. اوكه چرې تپوس وكړي ته دَدوئ نه چه چاپيداكړيدي اسمانونه، او زمكه، |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لَيَقُولُنَّ | اللّٰهُ | قُلْ | اَفَرَءَيْتُمْ | مَّا |
| نوخامخابه دوئ وائي چې الله ﷻ پيدا کړيدي، | | ته اوايه چې | خبراکړئ | ما ته ذهغه معبودانونه |

تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ اِنْ اَرَادَنِيَ اللّٰهُ بِضُرٍّ هَلْ هُنَّ

چې تاسو ورنه سوالونه کوئ ماسوا د الله ﷻ نه، که اراده وکړي ماته الله ﷻ د تکليف رسولو آيادي دوئ

كٰشِفٰتُ ضُرِّهٖۤ اَوْ اَرَادَنِيْ بِرَحْمَةٍ هَلْ هُنَّ مُمْسِكٰتُ رَحْمَتِهٖ

لري کونکي د تکليف ذهغه ياکه اراده وکړي ماته د رحمت رسولو، آيادي دوئ بنده ونکي د رحمت ذهغه،

قُلْ حَسْبِيَ اللّٰهُ عَلَيْهِ يَتَوَكَّلُ الْمُتَوَكِّلُوْنَ ﴿٣٨﴾

ته اوايه چې پوره دې مالره الله تعالى، خاص په هغه توکل کوي توکل کونکي

﴿أَلَيْسَ ٱللَّهُ بِكَافٍ عَبْدَهُۥ﴾ پدېکښې تسلي ده حضورﷺ ته اوزجردې مشرکانوته،ددې آيت په شانِ نزول کښې مفسرينوليکلي دي چې مشرکانوحضورﷺ ته اووې چې دې زمونږبتانوته بد ،رد مه وايه ورنه دوئ به تاته ازار اوکړي،ليوني يابه ناجوړه شې،نو الله ﷻ ددې په جواب کښې داآيت نازل کړو،چې څه ستا دپاره کافي يم ،يوطرف ته څه يم په هر چاغالب په هر چابرتر،چې چاله پناه ورکړم څوک ورته څه وئيلې نشی اوڅوک چې نيول غواړم نو څوک ئې بچ کولې نشی زبردست انتقام والا يم،.اوبل طرف ته دابې بسه اوعاجزه خدايان چې خپل ځايه هم نشی خوځيدې نو دوئ دومره نه پوهيږي چې څوک دداسې ذات بنده وي هغه ته به دوئ څه اوائی؟

﴿عَبْدَهُۥ﴾ نه مراد حضورﷺ دي اومضمون دآيت عام دې چې الله تعالى دخپل هربنده دحفاظت دپاره کافي دې ﴿وَمَن يُضْلِلِ ٱللَّهُ﴾ يعنى داډيره واضحه خبره ده چې هغه الله نه يريدل پکار دى چې هغه په هر چا قادر دې او هغه ته څوک هم څه نشی وئيلې خوداخبره ددوئ په فهم کښې نه راځی،ځکه چې ضداوعناد په وجه الله ﷻ گمراه کړی دی.

﴿أَلَيْسَ ٱللَّهُ بِعَزِيزٍ ذِى ٱنتِقَامٍ﴾ استفهام انکاري دې اوپديکښې تخويف دې مشرکانو ته،

اوتسلي ده حضور ﷺ ته،چه الله ﷻ په خپلو دښمنانو غالب دې او انتقام اخستلو باندې قادر دې نو که دا خلق دَ کفر اوعناد نه منع نه شول نو الله ﷻ به ورته عبرتناکه سزا ورکړي.

﴿وَلَئِن سَأَلْتَهُم مَّنْ ﴾داځلورم دليل عقلي دې على سبيل الاعتراف من الخصم. يعنى كه ته ترينه سوال اوكړې چې آسمانونو اوزمكى خالق څوک دې؟نودوئ به په خپله اعتراف اوكړي چې الله ﷻ دې.

﴿قُلْ أَفَرَءَيْتُم مَّا تَدْعُونَ ﴾دا بل سوال دې چې اول سوال په جواب باندې متفرع دې يعنى كله چې تاسو دا اقرار اوكړو چې د آسمانونو اوزمكې خالق صرف الله ﷻ دې نو اوس دا راته اوايئ چې متصرف پكښې څوک دې؟مثلا كه الله ﷻ ماته تكليف راكول غواړي اوياځه راحت رارسول غواړي نو دامعبودان دَالله ﷻ ارادې خلاف كولې شى اوكه نه؟ كه هاؤ كښې جواب وركوى نو خبرو كښې ئى تضاد راځى،ځكه چې اوس خوئى خپله اقرار اوكړو چې خالق صرف الله ﷻ دې اودې سره لازمه ده چې متصرف ئى هم الله دې،اوكه نا كښې جواب وركوي نو عقيده اومذهب ئى باطليږى ﴿فبهت الذين كفر﴾كله هيڅ جواب ورسره نه وؤ،نو الله ﷻ خپل حبيب ﷺ ته حكم كوى چې ته ورته حسبي الله... "فاء" په "افرأيتم" كښې دپاره دَتفريع ده اويا "فاء" فصيحيه ده چې شرط مقدر باندې دلالت كوى،اي اذا اقررتم بهذا فاخبروني...

﴿هَلْ هُنَّ كَٰشِفَٰتُ﴾معبودان باطلؤو ته ضميردَمؤنث راجع شويدې،اودغه شان "كاشفات، ممسكات" دَمونث صيغې اختياركړې شويدي دَدې وجه نه(١)چې پديكښې تنبيه ده په ضعف اوكمزورئ دَمعبودانو باندې،(٢)اوبل ددې وجهې چې ځنې معبودانو ته دوئ اناث(ښځې)ويل لكه لات،عزىٰ،مناة(خطيب،كبير)

﴿قُلْ حَسْبِيَ ٱللَّهُ ﴾ثمره ده دماقبل دلائلو يعنى دوئ خولاجوابه شول،نو اې حبيبه ته ورته اووايه چې متصرف صرف الله ﷻ دې او ټولومصائبواوتكليفونولرې كولوكښې اوپه خير رسولوكښې الله تعالى كافي دې.اومؤمنان هم په هغه باندې توكل او اعتماد كوى ځكه چه دَالله ﷻ نه ماسوى دَچاپه اختيار كښې څه شته دې هم نه.

| |
|---|
| قُلْ يٰقَوْمِ اعْمَلُوْا عَلٰى مَكَانَتِكُمْ اِنِّيْ عَامِلٌ |
| ته اوايه، اې قومه زما عمل کوئ تا سو په خپله طريقه ، بيشکه زه عمل کونکي يم پخپله طريقه |
| فَسَوْفَ تَعْلَمُوْنَ ﴿٣٩﴾ مَنْ يَّاْتِيْهِ عَذَابٌ يُّخْزِيْهِ وَيَحِلُّ عَلَيْهِ |
| نو زر ده چې تاسو به او پيژنئ، هغه څوك چې راځي هغه ته عذاب چې رسوا به کړي هغه لره او نازل به شي په هغه |
| عَذَابٌ مُّقِيْمٌ ﴿٤٠﴾ اِنَّآ اَنْزَلْنَا عَلَيْكَ الْكِتٰبَ لِلنَّاسِ بِالْحَقِّ فَمَنِ |
| عذاب دائم«هميشه» بيشکه مونږ نازل کړيدي په تا باندې کتاب د پاره د خلقو په حقه سره، پس څوك |
| اهْتَدٰى فَلِنَفْسِهٖ وَمَنْ ضَلَّ فَاِنَّمَا يَضِلُّ |
| چې هدايت قبول کړي نو فائده ئي د خپل ځان ده، او څوك چې گمراه شي نو بيشکه وبال د گمراهي ئي |
| عَلَيْهَا وَمَآ اَنْتَ عَلَيْهِمْ بِوَكِيْلٍ ﴿٤١﴾ |
| په خپل ځان دې او نه ئي ته په دوئ باندې وکيل«ذمه وار». |

﴿قُلْ يٰقَوْمِ اعْمَلُوْا عَلٰى مَكَانَتِكُمْ﴾ دا تخويف اُخروي دې يعني دومره دلائلو باوجود چې کله تاسو څما خبره نه منئ نو لگيا اوسئ چې څه کول غواړئ خو عنقريب يو رسوا کن عذاب در باندې را راوان دې، امر د تهديد او ورزوني د پاره دې، او د ﴿مَكَانَتِكُمْ﴾ نه مراد حالتکم او عادتکم دې، يعني تاسو پخپل عادت چې څما سره عداوة کول او ماته ضرر رسول دې په هغې باندې عمل کوئ، او ﴿اِنِّيْ عَامِلٌ﴾ على مكانتي پکښې مقدر دې يعني څه به پخپل حالت او عادت چې په دين او توحيد باندې کلك پاتې کيدل دي، عمل کوم ﴿مَنْ يَّاْتِيْهِ عَذَابٌ يُّخْزِيْهِ﴾ يعنى دير زر به تاسو ته پته اولگى چه په حقه څوک دي او باطل څوک دې من مفعول به دي د تعلمون د پاره. پديکښې اشاره ده عذاب د نيوي ته چې په ورځ د بدر ورته ملاؤشو ، او دوئ رسوا او ذليله شول، ﴿وَيَحِلُّ عَلَيْهِ عَذَابٌ مُّقِيْمٌ﴾ مقيم نه مراد دائم«هميشه» دي، پديکښې د آخرت عذاب

طرف ته اشاره ده، څکه عذابِ دائم عذاب دآخرت دي(اعاذناالله).

﴿إِنَّآ أَنزَلْنَا عَلَيْكَ ٱلْكِتَـٰبَ﴾داخلورم دليل وحي دي په توحيدباندې. (للناس)اي لاجلهم قرآن دَخلقو دَمعاش اومعاد مصلحتونو لپاره مناط دي ﴿بِٱلْحَقِّ﴾اى انزلنا الكتاب متلبساً بالحق. دَ حق مراد توحيددې،يعني داكتاب(قرآن)شامل دي په توحيد باندې، نو مسئله دَ توحيد ستا دَ طرفه خودساخته نه ده. ﴿فَمَنِ ٱهْتَدَىٰ فَلِنَفْسِهِۦ﴾ داتسلي ده حضورﷺ ته چه ستاكار صرف ددې قرآن بيانول دى دَدوئ دَهدايت ته مكلف نه ئى كه هدايت ئى قبول كړو نو خپله فائده ئى ده اوكه نه ئى كړو قبول نوخپل نقصان ئى دې "وكيل" پمعنى دَ مكلف سره دې يعنى ته ئى ذمه وار نه ئى.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| تَمُتْ | لَمْ | وَالَّتِىْ | مَوْتِهَا | حِيْنَ | الْاَنْفُسَ | يَتَوَفَّى | اَللّٰهُ |

| اللهُ | يَتَوَفَّى | الْاَنْفُسَ | حِيْنَ | مَوْتِهَا | وَالَّتِىْ | لَمْ | تَمُتْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| الله تعالى | قبض كوي | رُوحونه | په وخت دَ | مرګ كښ، | او هغه رُوحونه چې | نه | مړكيږي |
| فِىْ | مَنَامِهَا | | فَيُمْسِكُ | الَّتِىْ | قَضٰى | عَلَيْهَا | |
| قبض كوي هغه | په وخت دخوب كښ، | | نوو ساتي خپل خان سره | هغه چې | فيصله ئي كړي | وي په هغه | |
| الْمَوْتَ | وَيُرْسِلُ | الْاُخْرٰى | اِلٰى | اَجَلٍ | مُّسَمًّى | | |
| دَمرګ | اورااوليږي | هغه بل نفس | تر | يوې نيټې | مقررې پورې، | | |
| اِنَّ فِىْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّتَفَكَّرُوْنَ﴿٤٢﴾ | | | | | | | |
| بيشكه په دېكښ دَبعث بعدالموت دلائل دي دَهغې قوم دپاره چې فكركوي. | | | | | | | |

﴿ٱللَّهُ يَتَوَفَّى ٱلْأَنفُسَ حِينَ مَوْتِهَا﴾داپنځم دليل عقلي دي په توحيدباندې،ددې حاصل دادي چې دَانسانانورُوحونه په هرحال كښ دَالله تعالى په تصرّف اواختياركښ دي،كله ئي چې اوغواړي نوپه قبض كولوباندې ئي قادردې.اوددې قدرت مظاهره تاسو روزانه ګورئ، چې دَخوب په وخت كښ ستاسوروحونه په يوحيثيت سره قبض كړي(چې تفصيل ئي ورستو

راروان دي اوبيائي درته په وخت دَبيدارئ کښې واپس کړي، اوپه وخت دمرګ کښې ئې هم قبض کړي، نوبيادرته په دنياکښې نه واپس کوي، نوپدې تصرفاتو کښې اختيارصرف الله تعالیٰ ته دی، بل چاته پکښې دخل نشته دي، نوپدې کښې غوروفکرکونکودپاره دَالله تعالیٰ دَواحدانيت اودَقدرت کامله لوئ لوئ نشانات دي.

په آيت کريمه کښې يتوفیٰ په عموم مجازباندې محمول دې، يعني مطلق قبض کول، که صرف ظاهراًوي لکه دَخوب په حالت کښې چې صرف ظاهراًروح قبض وي اوباطناًنه وي قبض بلکه دَبدن سره ئې تعلق وي، اوکه ظاهراًباطنادواړه وي لکه دَ مرګ په حالت کښې. نودلته دالفظ په موت اوحيات دواړوکښې مستعمل شويدي. لکه عيسى ﷺ ته الله ﷻ فرمائی انی متوفيک يعنی څه تا اوچتوم سره دَبدن اوروح ستا.

• ددې آيت کريمه په تفسيرکښې يو څواهم بحثونه دي:

(۱) **اول بحث**: آيانفس يودې اوکه دوه دي؟ بعض حضرات وائي چې نفسونه دوه دي (۱) نفس حيواني، چې پدې سره ساه اغستلې کيږي (۲) نفس تميز: چې پدې سره علم حاصليږي، نوپه ﴿اَللّٰهُ يَتَوَفَّى الْاَنْفُسَ حِيْنَ مَوْتِهَا﴾ کښې دَنفس حيواني ذکردې، يعني په وخت دَمرګ کښې الله تعالیٰ نفسِ حيواني قبض کوي، ﴿وَالَّتِيْ لَمْ تَمُتْ فِيْ مَنَامِهَا﴾ کښې دَ نفس تميز ذکر دې. چې الله تعالیٰ ئې په وخت دَخوب کښې قبض کوي ځکه النوم اخ الموت او جارومجرورمتعلق دي دَمحذوف سره اى يتوفاها في وقت موتها يعني الله ﷻ هغه روحونه په خوب کښې قبض کوی چه لا تر اوسه ئې دمرګ نيټه نه ده راغلې ﴿فَيُمْسِكُ الَّتِيْ قَضٰى عَلَيْهَا الْمَوْتَ﴾ نفسِ حيواني ورنه مراددې چې قبض ئې کړي نوبيائې وساتي اودنياته ئې نه واپس کوي ﴿وَيُرْسِلُ الْاُخْرٰٓى﴾ نفسِ تميزورنه مراددې، چې په وخت دَنوم کښې قبض وي اوپه وخت دَبيدارئ کښې دوباره راواپس شي.

**بعض حضرات** وائي چې يونفس دې چې نفسِ حيواني دې، دَنوم په وخت کښې هم دې قبض کيږي ليکن تعلق ئې دَبدن سره وي چې په وخت دَبيدارئ کښې فوراًپه شان دَ نظر را واپس کيږي، اوپه وخت دَمرګ کښې هم دې قبض کيږي هم ظاهرا هم باطنا چه بدن بلاحيات پاتی شی.

(۲)**دويم بحث**: آيانفس (ساه)اوروح دواړه يوشيزدي اوكه جداجداشيزونه دي؟ پديكښې دوه قوله دي:

(۱)دَمحققينواودَاكثرعلماء قول دادې چې نفس اوروح يوشيزدې،دَانسان په بدن كښې يوروح دې،ليكن صفات ئي چونكه متعدددې نوځكه ئي نومونه هم متعددې.

(۲) بعضِ وائي چې روح اونفس دواړه جداجداشيزونه دي،اودَهريوجداجدا صفات دي،دَرُوح صفت تميز اوپوهيدل دي،اودَنفس صفت ساه اغستل خبرې كول،حركت كول وغيره دي، استدلال نيولې دې دوئ په قول دَابن عباس رضي الله عنه چې انّ فى ابن ادم نفساًوروحاً بينهمامثل شعاع الشمس(روح المعاني)

ليكن قول اول راجح دې په يوڅووجوهوسره:(۱)دَاآيت كريمه دلالت پدې كوي چې نفس اوروح شئ واحددې(۲)په متعددواحاديثوكښې دَنفس اودَروح استعمال دَيوبل په ځائ راغلې دې لكه په حديث دَامّ سلمه كښې،چې دافرمائي چې كله ابوسلمه رضي الله عنه وفات شو ، حضور ﷺ تشريف راوړو ،اودَابوسلمه رضي الله عنه سترګې كهلاوې پاتې شوې وې،نوحضورﷺ ورله سترګې پټې كړې اووئي فرمايل:"انّ الّروح اذاقُبضَ تبعه البصر"كله چې روح قبض شي نوسترګې ورته ګوري،نوپه دې حديث پاك كښې دَ"روح"لفظ راغلې دې،اودغه شان مضمون چې په بل حديث كښې راغلې دې،نوهلته دَ"نفس"لفظ راغلې دې:فذلكَ حين يتبعُ بصره نفسَه(مسلم فى الجنائز)دغه رنګه په حديث كښې دي چې په وخت دَمرګ كښې ملائك حاضرېږي نوكچرې دامړې رجُلِ صالح وي نوفرشتې ورته وائي"اُخرجي ايّتها النّفس المطمئنة"اودغه شان مضمون په بل حديث كښې راغلې دې نوهلته دَنفس په ځائ"روح"راغلې دې:اذا اخرجت روح المؤمن تلقها ملكان يصعدانِ بها(قرطبي) نوددينه معلوميږي چې نفس اوروح يوشيزدې.

(۳)**دريم بحث**: آيامړې ته پس دمرګ نه په قبركښې اعاده(واپس كيدل)دَروح كيږي اوكه نه؟ جمهورعلماء اواهل سنت ددې قائل دي چې اعاده دَروح بدن دَانسان ته په قبركښې كيږي امام ابوحنيفه رحمه الله هم تصريح كړيده په فقه اكبركښې چې:واعادة الرّوح الى العبد في قبره حق،اوفقه اكبر داامام صاحب خپل تصنيف دې،بعض حضراتونه دامغالطه شوې ده چې فقه اكبردَامام صاحب خپل تصنيف نه دي،حالانكه تاريخ اومسلمانان پدې شاهد دي چې داداامام صاحب خپل تصنيف دې.ددې اعادې ثبوت (۱)حديث دَحضرت براء بن عازب دې چې هغه فرمائي چې

مونږ دحضورﷺ سره دَيو انصاري صحابي په جنازې کښې دشرکت دپاره رااووتلو .قبرستان ته رااورسيدلو ليکن لا تراوسه قبرنه وؤ تيارشوې،حضورﷺ هلته تشريف فرماشو مونږ هم ورسره کيناستو،حضورﷺ په يوطويل حديث کښې دمؤمن اودکافردمړيدودکيفيت تذکره اوکړه.په هغې کښې دمومن په باره کښې دا ارشادهم مذکوردې :حتّیٰ يُنتهیٰ بها الى السّماء السّابعة فيقول الله تعالى:اکتبوا کتاب عبدي في علّيّن و اعيدوهُ الى الارض فانّي منهاخلقتُهم و فيها اُعيدُهم ومنها اُخرجهم تارةً اخرىٰ فتعادُروحُه فى جسدهِ فياتيه ملکانِ فيُجلسانِه،فيقولان له مَن ربّكَ... (ابن کثير،احمد).

(۲) مسند احمد يو روايت کښې دي :فتر سل من السماء، ثم تصير الى القبر ، فيجلس الرجل الصالح، يعني "روح د آسمان نه واپس راوليږلې شي ، بيا قبر ته لاړ شي او بيا بنده صالح کينولې شي" . د دې روايت نه هم معلوميږي چې د روح اعاده کيږي ، حافظ ابن تيميه رحمه الله دې روايت متعلق په حواله حافظ ابو نعيم اصفهاني ليکي: هذا الحديث متفق على عدالة ناقليه( شرح حديث النزول ، بحواله تسکين الصدور)

(۳)امام قرطبي رحمه الله په ( التذکره کښې ) حوالې دَحافظ ابونعيم سره دحضرت جابرﷺ روايت نقل کړيدې چې دهغې په آخرکښې دادي"وتردّ الروح الى جسدهِ"نوددې رواياتونه معلومه شوه چې په قبر کښې اعاده دَروح کيږي اودادَاکثراهل سنت والجماعت عقيده ده.

بعضِ حضرات فرمائي چې داآيت مذکوره"فيمسكُ الّتي قضى عليهاالموتَ"دليل دې په دې چه اعاده دَروح نه کيږي،کچرې اعاده دروح اومنلې شي نوددَدې آيت سره به ئې منافات اومخالفت راشي،اودغه شان"ربّنا امتّنا اثنتين و احييتنا اثنتين(مؤمن:۱۱)"هم په عدمِ اعادې باندې دلالت کوي،ځکه کچرې اعاده دَروح اوشي نوبياژوندې کيدل به دوځله نشي بلکه درې به شي.

**جواب:** دادې چې دايوه عظيمه مغالطه ده،ځکه چې اعاده دَروح په دوه قسمه ده،يوه هغه اعاده ده لکه نائم ته چې کيږي په وخت دَبيدارئ کښې چې په هغې سره حياتِ دنيوي راځي لکه"ويُرسِلُ الاخرىٰ" کښې چې ذکرشو،دويمه هغه اعاده ده چې عارضي اوخفيةً وي په طريقه دَحلول دبدن سره نه وي،بلکه يوضعيف حيات وي چې په زوال سره ئې تعبيرپه مرګ سره نه کيږي،نوپه ايت کريمه کښې چې دکوم عدمِ اعادې ذکردې يا په "احييتَنا اثنتينِ" کښې چې کوم ذکر دې،نوددينه قسم اول مراددې اوداخومسلّمه ده چې دغه شان اعاده مړي ته نه کيږي بلکه

دادویم قسم اعاده ده،نوددې وجه نه دَاعادې دَروح ددې آیت سره هیڅ منافات اومخالفت نشته دې

اَمِ اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ شُفَعَآءَ ۚ قُلْ اَوَلَوْ كَانُوْا لَا يَمْلِكُوْنَ

آیادوئ نیولي دي ماسوئ دَالله تعالی نه نور سفارشیان، ته اووایه آیا اګر که دوئ نه وي مالکان

شَيْـًٔا وَّلَا يَعْقِلُوْنَ ۝ قُلْ لِّلّٰهِ الشَّفَاعَةُ جَمِيْعًا ۚ لَهٗ مُلْكُ

دَهیڅ خیز او نه په څه پوهیږي . ته اُووایه الله ﷻ لره دي اختیار دَشفاعت ټول ، هغه لره ده بادشاهي

السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ ثُمَّ اِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ۝ وَاِذَا ذُكِرَ اللّٰهُ وَحْدَهُ

دَ آسمانونو او دَ زمکې ، بیابه هغه طرف ته تاسو واپس بوتلي شئ،اوکله چې یاد کړې شي الله تعالی تن تنها

اشْمَاَزَّتْ قُلُوْبُ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ ۚ وَاِذَا ذُكِرَ

نونفرت وکړي اوتریږي زړونه دَ هغه کسانو چې ایمان نه راوړي په آخرت باندې ، اوکله چې یادکړې شي

الَّذِيْنَ مِنْ دُوْنِهٖۤ اِذَا هُمْ يَسْتَبْشِرُوْنَ ۝ قُلِ اللّٰهُمَّ فَاطِرَ

هغه چې ماسوئ دَالله ﷻ نه دي نو دغه وخت دوئ ډیرخوشحاله وي. ته اُووایه یاالله! چې پیداکونکې ئې

السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ عٰلِمَ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ اَنْتَ تَحْكُمُ

دَاسمانونو اودَزمکې عالم ئې په غیب اوپه ښکاره، ته فیصله کوې

بَيْنَ عِبَادِكَ فِيْ مَا كَانُوْا فِيْهِ يَخْتَلِفُوْنَ ۝

په مینځ دَبند ګانو خپلو کښې په هغې کښې چې وُو دوئ په هغې کښې اختلاف به ئې کولو

﴿اَمِ اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ شُفَعَآءَ﴾ ام منقطعه ده دَپاره دَاضراب دې ، او اضراب یا ابطالي دې چې ابطال کوي دَمضمون دَ"یتفکرون" یعنی دوئ فکر چرته کوي!! دوئ خو من دون الله شفعاء ګنړي، او یا اضراب انتقالي دې ،ماقبل کښې د مشرکینو شرکیه عقائدو بطلان وؤ،

اوس دَهغوئ اعذاروبطلان دې اوزجر دې ورته،چې دوئ وائی مونږ خپل معبودان الهه نه گنړو، بلکه صرف شفعاء ئی گنړو.الله ﷻ فرمائی چې شفیع گرځیدلو دپاره خوهم څه حیثیت اوصلاحیت پکاردې، اودابتان خو نه دڅه شی مالکان دی چې په هغې سره ئی سره رعب اودبدبه وی اونه پکښې څه عقل شته،چې دَهغې وجهې نه ورته څه مقام مرتبه میلاؤشی.

﴿قُلْ أَوَلَوْ كَانُوا﴾ همزه استفهام مدخول باره کښې دَنحویانو دوه رائی دي (۱)یوداچې دې مدخول لوکانوا دې اصل کښې داسې وؤ "و أ لو كانوا" چونکه همزه استفهام دَصدارت کلام تقاضه کوی نودې وجهې نه واؤ مقدم کړې شو(۲)دویمه، ائې داده چې دې مدخول محذوف دې: اي ايشفعون ولو كانوا ، اول قول زيات غوره دي.

﴿قُل لِّلَّهِ ٱلشَّفَٰعَةُ جَمِيعًا﴾دا دَدوئ يو بل عذر جواب دې چې دوئ وائی زمونږ شفعاء بُتان نه دی چې تاسو وائي چې لايملكون شيئًاولايعقلون،بلكه هغه مقرب اشخاص هم دي چې دهغوئ په شكلونودوئ بتان جوړكړي وؤ،نوجواب ترينه اوشو چې دشفاعت واک اختيار صرف الله ﷻ سره دې،دهغه مرضئ نه بغير څوک نه سفارش کولې شی اونه داچا سفارش قبليدې شې او هغه مرضئ په دوه شرطه سره مشروط ده(۱)شفیع اهل وی دَشفاعت.چې هغه انبياءاو صلحاء د امت دي (۲)مشفوع له اهل وی دشفاعت،اوهغه مؤمنان دی نوکه دوئ خپل شفعاء شيطانان اوجنات گنړی نودواړه شرطونه نشته،اوکه انبيا اوصلحاء امت گنړی نودويم شرط نشته.

﴿لَّهُۥ مُلْكُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ﴾تعليل دې دَماقبل چې اختيارمنددَشفاعت صرف الله تعالى خكه دې چې دَټول كائناتوحكومت اوبادشاهي صرف دَالله تعالى دپاره ده،پخپلې مرضئ سره پكښې تصرف كوي نودَشفاعت اختيارهم صرف الله تعالى سره دې،﴿ثُمَّ إِلَيْهِ تُرْجَعُونَ﴾عطف دې په لله الشفاعة جميعايعنی صرف الله ﷻ ته به ستاسورجوع كيږی،بيا به درسره هلته دا معبودان اوشفعا نه وی. (روح).

﴿وَإِذَا ذُكِرَ ٱللَّهُ وَحْدَهُ﴾داشكوه ده دَحال دَمشركانونه،چې دَدوئ عجيبه حال دي چې كله دوئ ته اوويلې شي چې صرف دَيوالله ﷻ عبادت كوئ اوصرف دَيوالله ﷻ نه هرڅه كيږي مخلوق نه هيڅ نه كيږي،نودَدوئ زړونه خفه اومتنفرّه شي،اوچې كله دَغيرالله دَعبادت اجازت

ورکړيشي اوډَزيارتونوتذکرې وکړيشي نوبيادوئ خوشحاله وي.﴿ذُكِرَ ٱللَّهُ وَحْدَهُ﴾يعنى يواځې الله ﷻ ذکر شی او دَدوئ آلهه ورسره ذکر نشی يادا وئيلې شی چه الله يو دې اوهغه سره څوک شريک نشته.(کبير)﴿ٱشْمَأَزَّتْ﴾اى انقبضت ونفرتْ،مشتق دې دَ اشمئزاز نه چې زړه دَغيظ اودَغيم نه داسې ډک شي چې دَهغې دَوجه نه په مخ کښې ځونړونه پيداشي،ان يمتلئ غيظًا وغمًّا ينقبض عنه اديم الوجه كما يُشاهدفى وجه العابس المحزون(روح المعانى).

﴿وَإِذَا ذُكِرَ ٱلَّذِينَ مِن دُونِهِۦٓ﴾يعني چې دَالله تعالىٰ نه ماسوادَدوئ دَمعبودانوباطلې تذکرې اوکړيشي يادَالله تعالى دقدرت سره سره ددوئ دَمعبودانوتذکره هم اوکړيشي، نو بيا دوئ ډيرخوشحاله شي.﴿يَسْتَبْشِرُونَ﴾ استبشار،نه مشتق دې،مقابل دې دَ اشمئزاز چې دَ خوشحالئ اثرات ئې په مخ کښې ښکاره شي.

﴿قُلِ ٱللَّهُمَّ فَاطِرَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ﴾دادويمه تفصيلي ثمره ده دَماقبل دلائلو،يعني چې ددومره دلائلوباوجودوئ نه منې نو اى پيغمبره بياته دادُعاکوه،اې دَآسمانونو اوزمکې پيداکونکې ذاته اې په پټ اوښکاره هر څه باندې باخبر ذاته،ته مونږ په هدايت قائم اوساتى اوزمونږ او دَمشرکينو په مينځ کښې عملى فيصله اوکړى.اللّهم منادىٰ موصوف ده اوفاطرالسمٰوٰت،ئې صفت دې،انت تحکم‌مقصود بالندا ده لفظاً خبر دې خو معناً انشاء دې،اي احكم بين عبادک‌او يا مقصودبالنداء په اخرکښې مقدره ده چې‌اقضِ حاجتي يااهدني لمااختُلف فيه من الحقّ،دي،اودا په حديث دَمسلم کښې دَحضرت عبدالرحمٰن بن عوف‌ﷺ نه مروي دي چې ما د حضرت عائشهﷺ تپوس وکړوچې حضورﷺبه دَشپې مونځ(يعني دَتهجدمونځ)دَڅه نه شروع کولو، نو هغې اوفرمايل چې کله به حضورﷺدَتهجدمونځ دپاره پاسيدونودادُعابه ئې ويله، اللّهمّ ربّ جبرئيل و ميكائيلَ و اسرافيل ، فاطر السّموات و الارضِ عالم الغيب وَ الشّهادةِ انتَ تحكم بين عبادكَ فيما كانوا فيه يختلفونَ ، اهدني لما اختُلف فيه من الحقّ باذنكَ انّكَ تهدي من تشاءُ الى صراط مستقيم (قرطبي) او سعيد بن جبيرﷺنه فرمائي چې څوک داايات تلاوت کړي اودهغې نه بعد دُعا اوکړي اقضِ حاجتي اووائي نوالله تعالى به ئې سوال قبوله وي(قرطبي).

وَلَوْ اَنَّ لِلَّذِيْنَ ظَلَمُوْا مَا فِي الْاَرْضِ جَمِيْعًا وَّمِثْلَهٗ

او کچرې شي دهغه خلقو د پاره چې ظلم (شرك) ئې کړيدې هغه څيزونه چې په زمکه کښې دي ټول او په مثل د هغې

مَعَهٗ لَافْتَدَوْا بِهٖ مِنْ سُوْٓءِ الْعَذَابِ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ۭ وَبَدَا

نور دور سره شي خامخا به فديه ورکړي په هغې سره د ناکاره عذاب نه په ورځ د قيامت، او راښکاره به شي

لَهُمْ مِّنَ اللّٰهِ مَا لَمْ يَكُوْنُوْا يَحْتَسِبُوْنَ ﴿٤٧﴾ وَ بَدَا لَهُمْ سَيِّاٰتُ

دوئ ته د طرفه د الله تعالى نه هغه عذاب چې دوئ به ئې ګمان نه کولو. او راښکاره بهٔ شي دوئ ته سزاګانې

مَا كَسَبُوْا وَحَاقَ بِهِمْ مَّا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ ﴿٤٨﴾

د هغه بدعملونو چې دوئ کړي وؤ، او نازل به شي په دوئ هغه عذاب چې دوئ په هغې پورې توقې کولې.

فَاِذَا مَسَّ الْاِنْسَانَ ضُرٌّ دَعَانَا ثُمَّ اِذَا خَوَّلْنٰهُ

پس هرکله چې ورسيږي انسان ته څه تکليف نو پدغه وخت کښې سوال کوي زمونږنه، بياچه کله ورکړومونږده ته

نِعْمَةً مِّنَّا ۙ قَالَ اِنَّمَآ اُوْتِيْتُهٗ عَلٰى عِلْمٍ ۭ بَلْ هِيَ فِتْنَةٌ

نعمت د خپل طرف نه، نو وائي چې بيشکه راکړې شويدې ماته دا نعمت زما په علم باندې، بلکه دا امتحان دې

وَّلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿٤٩﴾ قَدْ قَالَهَا الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ

خو ليکن اکثر د دوئ نه نه پوهيږي. په تحقيق سره کړي وي دغه شان خبرې هغه کسانو چې مخکښې وؤ د دوئ نه،

فَمَآ اَغْنٰى عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ ﴿٥٠﴾ فَاَصَابَهُمْ سَيِّاٰتُ مَا

نو فائده ورنکړه دوئ ته هغې عملونو چې دوئ کول، نو اورسيدې هغوئ ته سزاګانې د هغه

| كَسَبُوْا | ط | وَالَّذِيْنَ | ظَلَمُوْا | مِنْ | هٰٓؤُلَآءِ |
|---|---|---|---|---|---|
| عملونوچې دوئ کړي وو، اوهغه کسان چې ظلم(شرك)ئي کړيدې دَدوئ (اهل مکو) نه | | | | | |
| سَيُصِيْبُهُمْ | سَيِّاٰتُ | مَا | كَسَبُوْا لا | وَ مَا هُمْ بِمُعْجِزِيْنَ ﴿٥١﴾ | |
| زرده چې اوبه رسيږي دوئ ته هم سزاګانې دَهغه عملونوچې دوئ کړيدي، اونه دي دوئ عاجزه کونکې الله ﷻ لره. | | | | | |

﴿وَلَوْ أَنَّ لِلَّذِيْنَ ظَلَمُوْا﴾ داتخويف اخروي دي،مشرکانو ته،چه دَقيامت په ورځ کله دَمشرکانو جهنم ته دَتلو فيصله اوشي نو دوئ به دومره بدحاله وی چه فرض کړه کچرته دَزمکې ټولې خزانې بلکه دَدې هومره نورې ورسره وی او دغه ټولی دَخپل ځان دَ خلاصولو لپاره ورکوی ليکن بيا به ترې هم نه قبليږی،دَخپل شرک سزا به ورته خامخا ميلاويږی.﴿وَبَدَا لَهُم مِّنَ اللَّهِ مَا لَمْ يَكُونُوا﴾ "ما"نه مرادعقوبات دي،يعنی دکومو سزاګانو نه ئی انکار کولو هغه به ورته ښکاره شی حضرت سفيان ثوريؒ فرمائي داآيت دَرياکارانومتعلق دې،چې دَقيامت په ورځ به دوئ ته دَدوئ ګمان نه خلاف سزاملاؤشي.

﴿وَبَدَا لَهُمْ سَيِّئَاتُ مَا كَسَبُوا﴾ دَسيئاتونه مراداثاردَسَيئّاتودي"ما"مصدريه دي او اضافت دَسيئات بياني دې،يعني ښکاره به شي دوئ ته آثاردګناهونودَدوئ.

﴿فَإِذَا مَسَّ الْإِنسَانَ ضُرٌّ﴾ دابل زجردې بطورِشکوه،دَ"الانسان"مرادياجنسِ انسان دې، او مقصوداخباردَ صفتِ غالبه دَانسان دي چې داصفت اکثرپه مشرکانوکښې پيداکيږي،ياورنه انسانِ کافرمراد دي،﴿قَالَ إِنَّمَا أُوتِيتُهُ﴾ انّمادَحصردپاره دې،يعني ندې راکړې شوې ماته هيڅ نعمت نعمتونونه مګر﴿عَلَىٰ عِلْمٍ﴾ ای علی علمٍ منّي بوجوهِ کسبهٖ(روح) يعني ددې نعمت نسبت خپل کسب اوهنرته کوي چې داماته دَهنرپوجه ملاؤشويدي،اوعلیٰ علمٍ من الله تعالیٰ بي وباستيجابي ،يعني دَالله تعالیٰ عالم ووپه ماچې ځه لائق اواهل ووم ددې نعمت،﴿أُوتِيتُهُ﴾ کښې ضميردَمذکرراجع دې نعمت ته په اعتبار دَمعنی ځکه نعمت په معنی دَ انعام دې اويا په تاويل

دَ نيتا سره ورته راجع شوې دې ﴿بَلْ هِىَ فِتْنَةٌ﴾ رددې دَماقبل قول دَانسان، چه دامال ورته مونږ به طور امتحان ورکړيدې چه شکرادا کوي او که ناشکري، داسې نه ده لکه دې چه ګنړي ضميردَهي راجع دې نعمت ته باعتباراللفظ، ﴿وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ﴾نه پوهيږي پدې چې دَاملاويدل دَمال اودَنعمتونو امتحان دې.

﴿قَدْ قَالَهَا﴾ داتخويف دنيوي دې، ضميرمنصوب دَ﴿قَالَهَا﴾راجع دې، انّمااوتيته على علمٍ،ته ﴿الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ﴾نه مرادقارون اوقوم، هغه دې چې وئيلي وۀ، انّمااوتيتهٗ على علمٍ عندي (القصص: ٧٨)﴿فَمَا أَغْنَىٰ عَنْهُم﴾ما يانافيه ده، او﴿مَّا كَانُوا يَكْسِبُونَ﴾ نه مرادمالونه اواولادونه دي ياورنه کفراوغلط عقائدمراددي، يعني هغوئ هم دغه شان خبره کړې وه ليکن ددوئ مالونوغيره اودغه شان دَدوئ کفردوئ لره دَعذاب دَالله تعالى نه بچ نه کړل بلکه:فخسفنابه وبداره الارض،اويا ما استفهاميه ده اي:فما الّذي اغنىٰ اموالهم يعني ددوئ مالونودوئ ته څه فائده ورکړه؟

﴿وَالَّذِينَ ظَلَمُوا مِنْ هَٰؤُلَاءِ﴾اشاره مشرکانودَمکه ته ده، اوتنبيه ده ورته﴿سَيُصِيبُهُمْ سَيِّئَاتُ مَا كَسَبُوا﴾دې نه ياعذاب دنيوي مراد دې،چنانچه دَقحط په صورت کښې په دوئ باندې، وه(٧)کاله راغلي وۀاودغه شان په بدرکښې ورنه اويا(٧٠)کسان قتل شوي وۀياعام دې دنيوي اواخروي دواړه ورنه مراددي.

| |
|---|
| اَوَ لَمْ يَعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَآءُ وَ يَقْدِرُ ؕ اِنَّ |
| آيادوئ نه پوهيږي چې بيشکه الله تعالى فراخه ورکوي رزق هغه چاته چې ئې خوښه شي اوتنګوي ئې، بيشکه |
| فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ﴿۵۲﴾ قُلْ يٰعِبَادِيَ الَّذِيْنَ |
| پدې کښې خامخا دلائل دَتوحيددي هغه قوم دپاره چې ايمان راوړي. ته اُوايه اې بندګانو زما هغه چې |

اَسْرَفُوْا عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ لَا تَقْنَطُوْا مِنْ رَّحْمَةِ اللّٰهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ يَغْفِرُ

زياتې موکړيدې په خانونو خپلو . مه نااميده کيږئ د رحمت د الله تعالى نه. بيشکه الله تعالى معاف کوي

الذُّنُوْبَ جَمِيْعًا ؕ اِنَّهٗ هُوَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ ﴿۵۳﴾

ګناهونه ټول بيشکه هم هغه بخښونکې مهربانه دې،

﴿أَوَلَمْ يَعْلَمُوٓا۟ أَنَّ ٱللَّهَ يَبْسُطُ ٱلرِّزْقَ﴾ دا شپږم دليلِ عقلي دې، چې د رزق تنګې او فراخي د الله تعالى په اختيار کښ ده چاته ئي چې خوښه شي فراخه کوي ئي ورته او چاته ئي چې خوښه شي تنګي ورباندې راولي، نو پديکښ د هرمؤمن دپاره واضح او ښکاره نښانات دي پدې چې الله تعالى واحدلاشريك ذات دې او د هرڅه اختيار صرف الله تعالى سره دې، ﴿قُلْ يَٰعِبَادِىَ ٱلَّذِينَ أَسْرَفُوا۟﴾ دا ترغيب دي راوړلو د ايمان ته د دې آياتونو په شان نزول کښ مفسرينو ډيراقوال ذکر کړي دي چې هغې خلاصه دا ده چې اسلام ته ترقى او استحکام ميلاو يدلونه ورستو، ډير مشرکين داسې وو چې هغوئ باندې داسلام حقانيت واضح شو او اسلام ئي راوړل غوختل خو دا خدشه وه ورسره چې مونږ خو ډير ګناهونه کړي دي اسلام خلاف خو جنګونه او مسلمان خو قتل کړي دي نو آيا زمونږ د اسلام راوړلو اعتبار به او کړې شي او کنه؟ نو الله ﷻ ورته په دې آيت کښ ترغيب ورکوي چې ايمان راوړئ په ايمان راوړلو سره، څومره هم لوئ ګناه وي هغه الله ﷻ معاف کړي. د سعيدبن جبير او د ابن عباس رضي الله عنه روايت دې چې څه خلق داسې وو د مشرکانونه چې ناحق قتلونه ئي کړي وو او ډيرئي کړي وو او زناګانې ئي کړې وې او ډيرې ئي کړې وې، د حضور ﷺ په خدمت کښ حاضر شول او عرض ئي وکړو، چې کوم طرف ته چې ته دعوت ورکوي نو هغه خو ډير ښه دې، ليکن ته مونږ ته خبرراکړه چې کچرې مونږ مسلمانان شو نو آيا زمونږ توبه به قبليږي؟ نو الله تعالى دا آياتونه نازل کړل (بخاري في التفسير).

د ابن عباس رضي الله عنه نه دا هم روايت نقل دې چې دا آياتونه د وحشي قاتل د حضرت حمزه رضي الله عنه په باره کښ نازل دي چې حضور ﷺ هغه ته د اسلام راوړلو دعوت ورکړو نو ده ورته راواوليګل چې څه به څنګه اسلام راوړم چې الله تعالى فرمائي: والّذين لايدعونَ مع الله (فرقان:۶۸) نو الله تعالى آيت نازل کړو چې "الّا من تاب وآمن" (فرقان:۷۲) نو وحشي اووې چې دا خو سخت شرط دې

کیدیشي چې څه ددې په پوره کولوباندې قادرنه شم، نو الله تعالى آیت نازل کړو چې ﴿انّ الله لایغفران یّشركَ به﴾(نساء:۴۸) نو وحشي اووي چې اوس هم ماته شك دې چې آیا څما مغفرت به الله تعالى اوغواړي اوکنه؟ نو الله تعالى داآیاتونه نازل کړل نو وحشي ایمان راوړو، (قرطبي)
شان نزول ددې آیت اګرچې خاص دې لیکن حکم ئي عام دې تولو مسلمانانوته شامل دې.

﴿يَٰعِبَادِيَ﴾ دَعباد لفظ اکثر دَمؤمنانوپه باره کښې استعمالیږي، لکه وعبادُ الرّحمن الّذينَ ..... عيناً يّشرب بهاعبادُالرحمن(الدهر) خو دلته ترينه مؤمنان اوکافران دواړه مراد دی، ﴿أَسْرَفُوا عَلَىٰٓ أَنفُسِهِمْ﴾ اسراف معنی دَحد نه تجاوز کول دي په هرکارکښې چه انسان ئی کوی، اګرچه مال خرچ کولوکښې داالفظ مشهور دې، نومطلب دادې چه هغه کسان چې افراط اوزیاتې ئي کړې وي په ګناهونوکښې.

﴿لَا تَقْنَطُوا﴾ دا اول خطاب دې بندګانوته چې دَ الله ﷻ رحمت بې انتهاء وسیع دې دګناهونو په وجه مایوسه کیږئ مه. ﴿إِنَّ ٱللَّهَ يَغْفِرُ ٱلذُّنُوبَ جَمِيعًا﴾ ظاهره داده چې مغفرت دَذنوبو مقید اومشروط نه دې په شرط دَتوبې سره، دګناهونو معافی دوه صورته دی: **یوداچې** انسان توبه اوباسی نودې صورت کښې آیت په خپل عموم باندې دې چې الله ﷻ هرقسم ګناه په توبې سره معاف کوی خواه هغه شرک وی اوکه غیر شرک، **دویم داچې** بلاتوبه معاف شی، نودې صورت کښې دَشرک نه ماسوا نور ګناهونه مراد دی، ځکه چې شرک الله ﷻ نه معاف کوی ان الله لایغفر ان یشرک او دینه ماسوا ګناهونه دا دَالله ﷻ په مشیت باندې موقوف دی که اوغواړی نو بلاتوبه ئی معاف کړی اوکه اوغواړی نوسزا به ورله ورکړی اوداجمله علت ده لاتقنطوا. دَدې بحث حضرت والدمحترم نورالله مرقده وبرّدمضجعه دَسورة نساء ایت(۳۵) "ان تجتنبوا کبائر ما تنهون" کښې په تفصیل سره کړیدې نو رجوع دې ورته وشي رشد القرآن ج۲ صفحه۵۳ ﴿هُوَ ٱلْغَفُورُ ٱلرَّحِيمُ﴾ تعلیل دي دَ"ان الله یغفر الذنوب جمیعا".

| وَأَنِيبُوٓا۟ إِلَىٰ رَبِّكُمْ وَأَسْلِمُوا۟ لَهُۥ مِن قَبْلِ أَن يَأْتِيَكُمُ ٱلْعَذَابُ ثُمَّ |
| --- |
| اورجوع وکړئ خپل رب طرف ته اوتابع شئ دَهغه مخکښې دَدې نه چې راشي تاسوته عذاب بیابه |

لَا تُنۡصَرُوۡنَ ﴿۵۴﴾ وَاتَّبِعُوۡۤا اَحۡسَنَ مَاۤ اُنۡزِلَ اِلَيۡكُمۡ مِّنۡ رَّبِّكُمۡ

ستاسو مدد اونکړې شي او اتباع کوئ دښکلي هغه کتاب چې نازل شويدي تاسو ته دطرفه درب ستاسو نه

مِّنۡ قَبۡلِ اَنۡ يَّاۡتِيَكُمُ الۡعَذَابُ بَغۡتَةً وَّاَنۡتُمۡ لَا تَشۡعُرُوۡنَ ﴿۵۵﴾ اَنۡ تَقُوۡلَ

مخکښې ددينه چې راشي تاسو ته عذاب ناڅاپه او تاسو به نه پوهيږئ دپاره ددې چې اونه وائي

نَفۡسٌ يّٰحَسۡرَتٰى عَلٰى مَا فَرَّطۡتُّ فِىۡ جَنۡۢبِ اللّٰهِ وَاِنۡ كُنۡتُ لَمِنَ السّٰخِرِيۡنَ ﴿۵۶﴾

يو نفس هائي افسوس! په کوتاهئ زما په حق د الله تعالى کښې او بيشکه چې وم خه دمسخرې کونکو نه

اَوۡ تَقُوۡلَ لَوۡ اَنَّ اللّٰهَ هَدٰٮنِىۡ لَكُنۡتُ مِنَ الۡمُتَّقِيۡنَ ﴿۵۷﴾ اَوۡ تَقُوۡلَ

يا دا اُونه وائي که چرې الله تعالى هدايت کړې وې ماته نو خامخا به ومه خه د متقيانو نه. يا دا اُو نه وائي

حِيۡنَ تَرَى الۡعَذَابَ لَوۡ اَنَّ لِىۡ كَرَّةً فَاَكُوۡنَ

په هغه وخت کښې چې اُويني عذاب، هائي افسوس چې وې ماله واپسي دُنياته نو شم به زه د

مِنَ الۡمُحۡسِنِيۡنَ ﴿۵۸﴾ بَلٰى قَدۡ جَآءَتۡكَ اٰيٰتِىۡ فَكَذَّبۡتَ بِهَا

نيکوکارانو نه بلکه ثابته ده دا خبره چې راغلي وُوْتاته آياتونه زما نو تکذيب وکړو تا په هغې

وَاسۡتَكۡبَرۡتَ وَكُنۡتَ مِنَ الۡكٰفِرِيۡنَ ﴿۵۹﴾

او تکبر دې وکړو او وې ته د کافرانو نه.

﴿وَأَنِيبُوٓا۟ إِلَىٰ رَبِّكُمْ﴾ **دويم خطاب** دې او په دې کښې ترغيب او امر دې توبې طرف ته، چې الله ﷻ ته رجوع اوکړئ د معاصيونه اعراض اوکړئ او خپل عبادت الله ﷻ لپاره خاص کړئ توبه کول د ګناهونونه واجبه ده، ليکن ددې حکم منافات نشته دې ددې سره چې حصول د مغفرت بغير د توبې نه هم کيږي. انابت رجوع بالکلية ته وائی چې انسان د هر قسم ګناه نه ځان بالکل پاک کړی او ځان خالص الله ﷻ ته پيش کړی. فرق په مابين د تائب او د منيب کښې دا دې چې

تائب رجوع کوي دَوجه دَخوف دَعقوبة نه، او منيب رجوع کوي دَوجه دَمحبت دَالله ﷻ نه.

﴿ وَأَسۡلِمُواْ ﴾ **دريم خطاب** دې، چې اطاعت اوکړئ دالله ﷻ او احکامات ئې اومنئ، **انابت** او **اسلام** کښې دوه فرقه بيان کړې شوي دي: (۱)انابت کښې تخليه ده، چې ځان دکفر وشرک او ګناهونو نه پاک کړئ، او اسلام کښې تحليه ده چې تصديق او نيک اعمالو سره ځان مزين کړئ، (۲)انابت تعلق زړه سره دې او اسلام تعلق اعضاؤو سره دې، ﴿مِن قَبۡلِ أَن يَأۡتِيَكُمُ﴾تنبيه ده په سرعت اوپه جلدئ کولو په توبه کښې، چې دَمرګ نه مخکښې دشرك اومعاصيؤنه توبه اوباسئ.

﴿وَٱتَّبِعُوٓاْ أَحۡسَنَ مَآ أُنزِلَ ﴾دا **څلورم خطاب** دې چې قرآن دَخپلې زندګئ منشور جوړکړئ او دهغې په تعليماتو باندې عمل کوئ.**پنځم دليل وحې** دې، دَ﴿أَحۡسَنَ مَآ أُنزِلَ ﴾ نه مرادقرآن دې، اوقرآن ته﴿أَحۡسَنَ مَآ أُنزِلَ ﴾پدې اعتبارسره اووئيلې شوچې ځومره کتابونه، تورات، زبور، انجيل چې دَالله تعالی دَطرفه نازل دي په هغه ټولوکښې قرآن احسن دې.

﴿أَن تَقُولَ ﴾دا دَماقبل خطاباتو «انيبو، اسلموا، اتبعوا»علت بيان دې يعنی انابت او قرآن اتباع ځکه اوکړئ چې داسې نه صبا بيا دَافسوس نه لاسونه مروړئ اوځه درله په لاس نه درځی"ان تقول"مفعول له دې په تقديردَ مضاف سره دَ"انيبوا"دپاره، اي انيبوا الی ربکم کراهة ان تقول...اودلته اګرچې مفعول له او فعل معلل به فاعل يو نه دې ، ځکه چې فعل معلل به فاعل جمع مخاطب دې او د مفعول له فاعل الله ﷻ دې خو د محققونو په نيز دا اتحادشرط نه دې اوکوم نحويانو په نيزچې دا شرط دې نو هغوئ دامفعول له کرځوليدې دَفعل محذوف دَپاره اي آمرکم باتباع هذه الامور کراهة أن تقول يعنی دا احکامات می ځکه درکړل چې څه نه خوخوم چې سبا بيا څوک افسوس کوی.﴿عَلَىٰ مَا فَرَّطتُ﴾ "علي" تعليليه دې او "ما" مصدريه ده، اي: بسبب تفريطي، تفريط کوتاهي اونقصان ته ويلې کيږي،مرادورنه شرك اونورګناهونه دي. ﴿فِي جَنۢبِ ٱللَّهِ﴾ "جنب" تشي ته وئيلې کيږي، دلته حقيقي معنیٰ مراداغستل متعذردي نو ددی وجهی نه مفسرينو مختلفې معنې بيان کړيدي چې په هغې کښې دوه قوله زيات صحيح

دي : (۱)يو داچې جنب نه مرادجانب دي اوددې نه پس طاعة لفظ حذف دې،اى فى جانب طاعة الله،يعني افسوس دې چې ماكومه كوتاهي دَالله تعالى داطاعت په طرف تللو اودهغې اختياره ولوكښ كړيده، نو ؤلته نفي دَجانب اطاعت اوشوه نونفي اطاعت په طريق اولى سره ثابتيږي.
(۲)دويم داچې جنب پمعنىٰ دَحقّ كښ دې،اوجنب كله كله دحقّ پمعنىٰ كښ استعماليږي لكه شاعروايي:

اما تتّقين الله فى جنب عاشق

اى فى حقّ عاشقٍ نو معنىٰ به داشي چې افسوس دې په كوتاهئ چې مادَالله تعالى په حق كښ كړيده .

﴿وَإِن كُنتُ﴾ ان مخففه من المثقله دې،يعني بيشكه څه ووم دَمسخره كونكونه په دين دَالله تعالى اوپه اهل الله اواولياء الله پوري،﴿أَوْ تَقُولَ لَوْ أَنَّ﴾يعنى چه بيا داسې اونه وائى چه كچرته الله ﷻ ماته هدايت كړې وې نوځه به دَشرك نه بچ شوې وم لكه بل ځائ ارشاد دې لوشاء الله ماالشركنا،دادواړه تمناگانې قبل دَمشاهدې دَعذاب نه دي،

﴿أَوْ تَقُولَ حِينَ تَرَى ٱلْعَذَابَ﴾داتمنّاورستودَمشاهدې دعذاب نه ده،ددې وجه نه بعضِ مفسرين فرمائي: چې دادرې واړه تمناگانې دَيوجماعت دي چه دَقيامت سختو ليدلو وخت كښ به اووينى چې خلقوته دَخپلو نيكو عملونو بدلى وركولې كيږى نو اول به پخپل تقصير باندى حسرت كوى بيابه عذر كوى چه تقصير ځما دَطرفه نه وؤ،بيا چه پخپل تقصير ئى علم راشى نوبيا به تمنا كوى دَرجوع دنيا ته،بعضِ فرمائي چې دادرې واړه تمناگانې دَمختلفو جماعتونودي.

﴿بَلَىٰ قَدْ جَآءَتْكَ ءَايَٰتِى﴾داجواب دې دَ لوانّ الله هدانى چې دَهدايت دپاره الله تعالى تاته خپل كتابونه اوآياتونه راليږلي وؤ ليكن تاپه هغې تكذيب اوكړواوتكبرپوجه دى ورنه انكار اوكړو.

| وَيَوْمَ الْقِيٰمَةِ تَرَى الَّذِيْنَ كَذَبُوْا عَلَى اللّٰهِ وُجُوْهُهُمْ مُّسْوَدَّةٌ |
|---|
| او په ورځ دَ قيامت به ته وينې هغه خلق چې دروغ ئې ويلي دي په الله ﷻ مخونه به ئې تک تورو وي، |
| اَلَيْسَ فِيْ جَهَنَّمَ مَثْوًى لِّلْمُتَكَبِّرِيْنَ ﴿٦٠﴾ وَ يُنَجِّي اللّٰهُ الَّذِيْنَ اتَّقَوْا |
| آيا نده په جهنم كښې ټهكانه دَتكبر كونكو. او نجات به وركړي الله ﷻ هغه كسانو ته چې تقوىٰ ئې اختيار كړيوي |
| بِمَفَازَتِهِمْ لَا يَمَسُّهُمُ السُّوْٓءُ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ﴿٦١﴾ اَللّٰهُ خَالِقُ |
| سره د كاميابۍ د دوئ، نه به رسيږي دوئ ته تكليف او نه به دوئ غمژن وي . الله تعالىٰ خالق دې |
| كُلِّ شَيْءٍ وَّهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ وَّكِيْلٌ ﴿٦٢﴾ لَهٗ مَقَالِيْدُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ |
| دَ هر خيز ، او هغه د هر خيز ساتونكې دې. الله سره دي كنجياني دَخزانودَ آسمانونو او دَ زمكې، |
| وَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ﴿٦٣﴾ |
| او هغه كسان چې كفر ئې كړيدې په آياتونو دَالله تعالىٰ دَغه كسان هم دوئ تاوانيان دي |

﴿وَيَوْمَ الْقِيٰمَةِ تَرَى الَّذِيْنَ ﴾داتخويف اخروي دې،دَ﴿كَذَبُوْا عَلَى اللّٰهِ ﴾نه مرادنسبت دشريك اودَولدكول دي الله تعالىٰ ته،حرامو ته حلال او حلالوته حرام ويل دى﴿وُجُوْهُهُمْ مُّسْوَدَّةٌ ﴾ مخونه به ئې تورو وي،ياحقيقةً چې دابه علامه وي دَدوئ يامجازاً كنايه ده دَذلت او رسوائي نه.

﴿وَيُنَجِّي اللّٰهُ الَّذِيْنَ ﴾بشارت أخروي دې مؤمنانوته،﴿بِمَفَازَتِهِمْ﴾مفازة (١)يا مصدر ميمى دي دَ فاز ، يفوز ، فوزا اوباء دپاره دَملابست ده اي متلبسين بمفازتهم يعنى كاميابۍ سره به ورله الله ﷻ نجات وركړى،او يا "باء"سببيه ده اي بسبب فوزهم يعنى كاميابيدلو دَوجهې نه به ورله الله ﷻ نجات وركړى.(٢)يا مفازة اسم ظرف دي يعنى ځائى دكاميابۍ چې هغه جنت دې،او "باء"بمعنى دَ"فى"سره ده.يعنى الله ﷻ به ئى په جنت كښې داخل كړى اودې ذلتٰ اورسوائى نه

به ورله نجات ورکړي. ﴿لَا يَمَسُّهُمُ السُّوٓءُ﴾تفسيردي دَ بمفازتهم يعنى كاميابى ئى داده چه دوئ ته به داسې مقام ورکړی چه دَهر قسمه تکليف او دَغم نه به محفوظ وي.السوء نه مراد جسمانی تکليف اوعذاب دې،اوجمله فعليه راوړلو کښې اشاره ده دې ته چې په کافرانو به دامتجدد وی ﴿ولاهم يحزنون﴾دينه روحانی تکليف اوعذاب مراد دې اوجمله اسميه راوړلو کښې اشاره ده ديته چې داعذاب به کافرانو دائمی وي.

﴿اَللّٰهُ خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ﴾داووم(۷)دليلِ عقلي دې په توحيد ،دې کښې دَدرې امورو ذکر دې : (۱)(خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ) چې الله ﷻ دَهر څيز پيداکونکې دې لهذا صرف دهغه عبادت کوئ. (۲)(وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ وَّكِيْلٌ) الله ﷻ دَهرڅيز ساتونکې اومحافظ دې لهذا صرف هغه ته رجوع کوئ.(۳)(لَهٗ مَقَالِيْدُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ) الله ﷻ په څيز کښې متصرف دې اودَزمکې او آسمانونو خزانو کنجياني هغه سره دی لهذا صرف دهغه نه غواړئ."مقاليد"کنجيانو ته وائی دا لفظ عربی دې اوجمع دَمقليدده،اويامعرب دې اوجمع دَ اقليد ده چې معرب دې دکليد نه ، په فارسئ کښې کنجی ته وائی.

﴿وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ﴾داجمله په ماقبل درې واړو امورو باندې متفرع ده يعنی خالق هم الله ﷻ دې محافظ هم الله ﷻ دې اومتصرف هم الله ﷻ دې دې باوجود چې څوک ايمان نه راوړی اوتوحيد نه اختياروی نوهغه به ډيرې غټې خساره کښې دې (بيان القرآن)

| قُلْ اَفَغَيْرَ اللّٰهِ تَاْمُرُوْٓنِّيْٓ اَعْبُدُ اَيُّهَا الْجٰهِلُوْنَ ﴿۶۴﴾ |
|---|
| ته او ايه(اې پيغمبره) آيابيا هم غير دَالله تعالى نه امرکوئ تاسوماته چې زه ئې عبادت اوکړم اې جاهلانو. |
| وَلَقَدْ اُوْحِيَ اِلَيْكَ وَ اِلَى الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكَ |
| او په تحقيق سره وحې کړې شويده تا ته او هغه کسانو ته چې مخکښې وو ستانه، |

| |
|---|
| لَئِنْ اَشْرَكْتَ لَيَحْبَطَنَّ عَمَلُكَ وَلَتَكُوْنَنَّ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ ﴿٦٥﴾ بَلِ |
| قسم دي که بفرض محال تاهم شرك وكړو نو خامخا برباد به شي عمل ستا او خامخا شي به ته د تاوانيانو نه بلكه |
| اللّٰهَ فَاعْبُدْ وَكُنْ مِّنَ الشّٰكِرِيْنَ ﴿٦٦﴾ وَمَا قَدَرُوا اللّٰهَ حَقَّ قَدْرِهٖ |
| د يو الله عبادت كوه او اوسه ته د شكر كونكو نه. او دوئ قدر اونكړو د الله تعالى څنګه چې د هغه قدر كولو حق وو |
| وَالْاَرْضُ جَمِيْعًا قَبْضَتُهٗ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَالسَّمٰوٰتُ مَطْوِيّٰتٌ |
| او زمكه ټوله به يو موټې وي د الله ﷻ په ورځ د قيامت او اسمانونه رانغښتلي شوي به وي |
| بِيَمِيْنِهٖ سُبْحٰنَهٗ وَتَعٰلٰى عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ﴿٦٧﴾ |
| په ښي لاس د الله ﷻ كښې، پاكي ده هغه لره او لوئ دي د هغې نه چې دوئ ورسره شريكوي. |

﴿قُلْ اَفَغَيْرَ اللّٰهِ﴾ دا دريم خل دعوه د سورة ذكر كيږي، مشركانو نبي كريم ﷺ ته اووې چې اسلم ببعض آلهتنا ونؤمن بآلهتك (كبير وغيره) ته زمونږ په بعض آلهه ؤباندې ايمان راوړه مونږ به ستا په اله باندې ايمان راوړو، نو الله تعالى حضور ﷺ ته حكم اوكړو چې ته ورته اووايه چې (دومره دلائلو نه بعدبيا هم) تاسو ما ته د غير الله د عبادت امر كوئ، دا خو ډيرلوئ جهل دې، نو ځكه ئي ورته په ﴿اَيُّهَا الْجٰهِلُوْنَ﴾ سره نداء اوكړه، "فاء" په "افغير" كښې د پاره د تفريع ده يعنى دومره دلائلو باوجود تاسو ما ته دا حكم كوئ "غير الله" مفعول به دې د "اعبد" د پاره، او "تامروني" په مينځ كښې جمله معترضه ده او يا مفعول به دې د "تامروني" او "اعبد" ورنه بدل اشتمال دې.

﴿وَلَقَدْ اُوْحِيَ اِلَيْكَ﴾ دا شپږم دليل وحې دې، ﴿وَاِلَى الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكَ﴾ دليل نقلي دې تقدير د عبارت داسې دې چې "اوحي اليك والى الذين من قبلك بالتوحيد" ﴿لَئِنْ اَشْرَكْتَ﴾ لام په كښې موطئه للقسم دې او خطاب يا صرف حضور ﷺ ته دې، يا هر نبي ته دې باعتبار كل واحد، ليكن دا كلام على سبيل الفرض والتقدير دې، يعني دا شرك كول داسې ناقابل معافي جرم دې چې كچرې بالفرض والمحال د پيغمبرانو نه هم صادر شي نو معافي ورته نشي كيدې او ټول نيك عملونه به ئي

برباد شي، نودَبل چاځه حيثيت دي،داسې په( و لو اشركوا لحبط عنهم، انعام:۸۸)-كښې هم تير شويدي. ﴿لَيَحْبَطَنَّ عَمَلُكَ﴾ايت مستدَل دې دَاحنافودپاره پدې چې په ارتدادسره اعمالِ سابقه باطليږي،داحنافواودَشوافعو په مينځ كښې دامسئله مختلف فيه ده اوتفصيل ئې حضرت والدمحترم نورالله مرقده په تفسيردَسورة بقره آيت(۲۱۸)ج۱ صفحه ۳۵۵كښې كړيدې.

﴿بَلِ اللَّهَ فَاعْبُدْ﴾جواب دې دَمطالبې دَمشركانونه چې حضورﷺته وئيلي وؤ"اسلم ببعضِ آلهتنا"، بل دَپاره دَاضراب ابطال دې يعنى شرك پريګده. صرف ځماعبادت كوه، او ځما شكر ګزاربنده جوړه شه.

﴿وَمَا قَدَرُوا اللَّهَ﴾داشكوه ده،يعنى څنګه چې دَالله ﷻ تعظيم حق وؤ، دې مشركانو هغه شان تعظيم اونكړو،بلكه مخلوقات ئې وسره شريک اوګرځول﴿ قَدَرُوا اللَّهَ﴾پمعنىٰ دَ"ماعظموا الله"سره دې،يعني دوئ دَ الله تعالىٰ قدراوتعظيم نه دې كړې په حق قدراوتعظيم سره،﴿حَقَّ قَدْرِهِ﴾مفعول مطلق دې،په اصل كښې قدره الحقّ دې،اضافت دَصفت شوې دې موصوف ته.

﴿وَالْأَرْضُ جَمِيعًا قَبْضَتُهُ﴾ دې كښې دَ الله ﷻ **عظمت شان بيان دې**،چې قيامت په ورځ به ټوله زمكه دَ الله ﷻ په موټى كښې پرته وى اودآسمانونه دانظام به نه وى،بلكه داټول به راټول كړې شوى وى،اودَالله ﷻ دلاس نه به راتاؤوى.هيڅ څوک به ترينه رپ نشى وهلې.

**فائده۱**:زمكه چونكه وړه ده او ړوكې څيز خلق په موټې كښې رابندكړى نوځكه دې سره دَ "قبضة" ذكر اوشو ،اوآسمانونه چونكه لوئ دى اولوئ څيز په موټى كښې نه راځى،بلكه خلق ئې لاس كښې اخلى اولاس نه ئې رانغاړى نو ځكه دې سره"مطويات بيمينه"ذكر اوشو.نو دې كښې دمخلوق محاورې اعتبار شوې دې اګر چه الله ﷻ ته هيڅ هم لوئ نه دى.

**فائده۲**: قبضة،يمين وغيره الفاظ دَمتشابهاتو نه دې چې معنى ئې الله ﷻ نه سوا بل چاته نه ده معلومه،متقدمينو مسلک دې متعلق تفويض دې في اول وهله اومتاخرينو اومتكلمينو مسلک تاويل دې.

﴿سُبْحَانَهُ وَتَعَالَىٰ﴾دادَمخكښې تيرشوؤدلائلوثمره ده،دَتيرشوې دلائلونه دامعلومه شوه

چې الله تعالی واحدلاشریك ذات دي، دهرقسم شریك نه منزه دی.

| |
|---|
| وَنُفِخَ فِي الصُّوْرِ فَصَعِقَ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَمَنْ |
| اوپوکل به اوکړیشي په شپیلۍ کښې نوبې هوشه به شي هغه څوك چې په اسمانونوکښې دي اوهغه څوك چې |
| فِي الْاَرْضِ اِلَّا مَنْ شَآءَ اللّٰهُ ثُمَّ نُفِخَ فِيْهِ |
| په زمکه کښې دي مګر هغه څوك چې خوښه وي دَ الله ﷻ بیا به پو کړیشي په هغې کښې |
| اُخْرٰى فَاِذَا هُمْ قِيَامٌ يَّنْظُرُوْنَ ﴿٦٨﴾ وَ اَشْرَقَتِ الْاَرْضُ |
| دویم ځل پس بیا به ټول خلق ولاړوي ګوري به او روښانه به شي زمکه دَ محشر |
| بِنُوْرِ رَبِّهَا وَوُضِعَ الْكِتٰبُ وَجِايْٓءَ بِالنَّبِيّٖنَ وَالشُّهَدَآءِ |
| په نُور رب خپل سره،اوکیخودلي به شي عملنامې، او را به وستلې شي نبیان او ګواهان |
| وَقُضِيَ بَيْنَهُمْ بِالْحَقِّ وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ ﴿٦٩﴾ وَوُفِّيَتْ |
| اوفیصله به وکړیشي په مینځ دَدوئ کښې په عدل سره او په دوئ به ظلم نه کیږي، اوپوره به ورکړیشي |
| كُلُّ نَفْسٍ مَّا عَمِلَتْ وَ هُوَ اَعْلَمُ بِمَا يَفْعَلُوْنَ ﴿٧٠﴾ |
| هرنفس ته بدله دَهغه عملونوچې ده کړي وي اوالله تعالی ښه پوهیږي په هغې عملونوچې دوئ ئې کوي. |

﴿وَنُفِخَ فِي الصُّوْرِ﴾ دیکښې دَ الله ﷻ **عظمت شان یو بل مظهر** ذکر کیږی نفخی نه مراد نفخه اولی ده،چې هغې سره به ټولو ژوندو ته مرګ راشی،**البته دا اشکال قابل غوردې**،چې حدیث کښې د دې صعقې په مرو باندې طاری کیدل هم ثابت دی،نو په مړو باندې مرګ څنګه راځي، لکه مسلم شریف «رقم الحدیث ۲۳۷۳» کښې دي:چې یو یهودی دې الفاظو سره قسم اوخوړو:والذي اصطفی موسی علی البشرقسم په هغه ذات چې موسی ﷺ له ئی په ټولو انسانانو فضیلت ورکړې دې، صحابی اولاړ وو،نوهغه ورله سپیړه ورکړه اوورته اووئیل:چې نبی کریم ﷺ موجود دې اوته داسې خبرې کوې،هغه یهودی نبی ﷺ ته شکایت اوکړو،نو

نبی ﷺ په دې ډیر خفه شو او اوئی فرمائیل: چې صور په پوه کړې شی اوزمکه آسمانونه کښې څومره مخلوقات دی هغوئ بانديې به صعقه طاری شی سوا دَهغه کسانو نه چې هغوئ باندې الله ﷻ طاری کول نه غواړی، بیا به دوباره "صور" اوهلې شی نو تولو نه اول به څه راپورته شم چې اوګورم نو موسی ﷺ به عرش نیولې اولاړوی، ماته داپته نشته چې په موسی ﷺ دا بالکل طاری شوې نده ده کوه طور صعقې په بدله کښې اوکه طاری شوې ده خو څمانه مخکښې را اوچت شوې دې.

نو دینه معلومیږی چې دا صعقه به په انبیاؤ طاری کیږی خو موسی ﷺ باره کښې ورته تردد اوشو چې دې به ترینه مستثنی وی اوکه ده باندې به هم طاری کیږی، نو انبیاء خووفات شوی دی، نوهغوئ باندې دوباره مرګ مطلب څه شو؟

**مفسرینواومحدثینو ددې اشکال متعدد جوابونه کړی دی:**

(۱)علامه عینی رحمه الله په شرح بخاری عمدة القاری کښې ترینه دا جواب کړې دې چې انبیاؤ مرګ دعاموخلقو مرګ په شان نه دې، حقیقت کښې هغوئ ژوندی وی. صرف انتقال شوی وي دیو دارنه بل دارته. جسمونه دَهغوئ بالکل محفوظ وي، نو دې وجهې نه دا صعقه به هغوئ باندې هم اثر کوی، نوکوم خلق چې په مخ ده زمکه ژوندی وی نوهغه به ورسره مړه شی او چې کوم انبیاء دی په قبرونوکښې هغوئ باندې بې هوشی طاری شی.

(۲)بعضوترینه په دې سره ځان خلاصولو کوشش کړې دې چې نفخې درې دی: (۱)نفخه اماتت(۲)نفخه بعث(۳)نفخه فزع، چه دابه دَژوندې کیدلونه روستې وی، نودلته مراد دَ نفخې نه نفخه فزع ده لیکن دا قول انتهائي ضعیف دې.

(۳)دریم قول چې هغه زمونږ اکابرواختیار کړې دې دادې چې آیت کښې دَنفخه اولی ذکر دې، چې داکله اووهلې شي نو اول به ورسره ګبراهټ طاری شی، هغې نه بعد چې کوم څیزونو کښې دفنا او مرګ قبولو صلاحیت شته، هغوئ باندې به مرګ طاری شی، نو دې سره به دنیا کښې څومره ژوندی وی هغه به مړه شی ،اوکومو کښې چې مرګ قبولو صلاحیت نشته بلکه روح، هغې باندې به بې هوشی طاری شی، اودَمرګ ساعت نه واخله تردې وخته پورې چې کوم احساس اوشعور ورته کیدلو دَعذاب او نعیم هغه به دې موده کښې ورته نه کیږی. (فیض الباری، تفسیر عثمانی، تکملة فتح الملهم)

﴿إِلَّا مَن شَآءَ ٱللَّهُ﴾ یعنی څنې کسان به داسې وی چې هغوئ به الله ﷻ دَدې صعقې نه محفوظ

ساتی، قرآن وحدیث کښې ددوئ هیڅ تعیین نه دي راغلي لهذا راجحه خبره داده چې دادې په خپل ابهام پریخودلې شی البته څنی مفسرینو نه ددې تعیین باره کښې اقوال منقول دي (۱) دینه مراد دجنت حوری اوولدان دی (۲) دینه مراد شهدا دی وغیرهامن الاقوال

﴿ثُمَّ نُفِخَ فِيهِ أُخْرَىٰ﴾ نفخه ثي ثانيه ورنه مراد ده ﴿فَإِذَا هُمْ قِيَامٌ﴾ قيامٌ جمع تكسير دَقائمٌ ده لكه "نصارٌ" جمع تكسير دَ "ناصر" ده، يعني ټول خلق به راژوندي شي اوراپابه سي ﴿يَنظُرُونَ﴾ اي: ينتظرون امرالله، دَالله تعالى دَامرانتظاربه كوي، ياپمعنیٰ دَنظرسره دې يعني يوطرف ته بل طرف ته به ګوري.

﴿وَأَشْرَقَتِ الْأَرْضُ بِنُورِ رَبِّهَا﴾ دیکښې دَ الله تعالي **عظمت شان یو بل مظهر** ذکر کيږي، د "الارض" نه زمکه دَمحشرمراد ده، يعني کله چې به الله تعالى میدانِ حشرته دَحساب کتاب دپاره تجلي وکړي، کمايليق بشانه، نوزمکه دَمحشربه ټوله روښانه شي په نوردَالله تعالى سره، يا ﴿بِنُورِ رَبِّهَا﴾ کنايه ده دَعدل وانصاف نه، اي: بعدلِ ربها (قرطبي، كبيروغيره) يعني دَالله تعالى په عدل سره به روښانه شي اوتياري دَظلم به ختمې شي لانّ الظلم ظلماتٌ

﴿وَوُضِعَ الْكِتَابُ﴾ "الكتب" نه مراداعمال نامې دي، يعني اعمال نامې به دَ خلقو په لاسونوکښې کيخودلې شي، چاته په ښي لاس کښې اوچاته په چپ لاس کښې، نوداکنايه ده دَشروع کيدودَحساب نه،

﴿وَجِاىٓءَ بِالنَّبِيِّينَ﴾ انبياء كرام به دګواهئ دپاره راوستلې شي، كقوله تعالى: يوم يجمع الله الرّسلَ فيقول ماذا اجبتم (المائده: ۱۰۹) فكيف اذا جئنا مِن كلِّ امةٍ بشهيدٍ و جئنا بك (النساء: ۴۱).

﴿وَالشُّهَدَآءِ﴾ جمع دَ "شاهد" ده ګواه ته وائي يعني ګواهي کونکي به راوستلې شي اوقيامت په ورځ ديرګواهان وی: (۱) **انبياءكرام** : كمافي قوله تعالى: فكيف اذا جئنا من كل امة شهيدا وجئنا بك على هؤلاء شهيدا (۲) **فرشتي**: كما في قوله تعالى: وجاءت كل نفس معها سائق وشهيد (۳) **امت محمديه**: كما في قوله تعالى: لتكونوا شهداء على الناس (۴) **اعضاء و اندامونه**: كمافي قوله تعالى: اليوم نختم على افواههم

وتكلمنا ايديهم وتشهد ارجلهم.(۵)زمکه : کما في قوله تعالى: يومئذ تحدث اخبارها

﴿وَقُضِيَ بَيْنَهُم بِالْحَقِّ﴾اى بالعدل﴿وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ﴾په چابه ظلم نه کيږي چې ثواب ورته کم ملاؤشي،یاورته سزازیاته ملاؤشي،بلکه هریوکس ته به دخپلوعملونوپوره پوره بدله ورکولې کيږي، ﴿وَهُوَ أَعْلَمُ بِمَا يَفْعَلُونَ﴾تعليل دې دماقبل چې دخلقوپه مينځ کښې په عدل سره فيصله کيږي ، په چاباندې به ظلم نه کيږي،اوهريوکښې ته به پوره اجرځکه ملاويږي چې الله تعالى په هرڅه باندې عالم اوپوهه دې(اللّهم لاتخزنا يومَ جمع بالنبيّن والشهداء،آمين).

| |
|---|
| وَسِيقَ الَّذِينَ كَفَرُوا إِلَى جَهَنَّمَ زُمَرًا ۖ حَتَّىٰ إِذَا جَاءُوهَا فُتِحَتْ |
| اوروان به کړېشي کافران جهنم طرف ته ډلې ډلې،تردې چې کله راشي دوئ جهنم ته پرابه نستلې شي |
| أَبْوَابُهَا وَقَالَ لَهُمْ خَزَنَتُهَا أَلَمْ يَأْتِكُمْ رُسُلٌ مِّنكُمْ يَتْلُونَ |
| دروازې دجهنم اوأوبه وائي دوئ ته څوکيداران دجهنم،آيانه وو راغلي تاسوته رسولان ستاسونه چې لوستل |
| عَلَيْكُمْ آيَاتِ رَبِّكُمْ وَيُنذِرُونَكُمْ لِقَاءَ يَوْمِكُمْ هَٰذَا ۚ قَالُوا |
| ئي په تاسوآياتونه درب ستاسو اوچې يره ولئ ئي تاسودملاقات ددې ورځې ستاسونه،وابه وائي دوئ |
| بَلَىٰ وَلَٰكِنْ حَقَّتْ كَلِمَةُ الْعَذَابِ عَلَى الْكَافِرِينَ ﴿٧١﴾ قِيلَ |
| چې ولې نه ليکن لازم شو حکم دعذاب په کافرانوباندې.اوبه ويلې شي |
| ادْخُلُوا أَبْوَابَ جَهَنَّمَ خَالِدِينَ فِيهَا ۖ فَبِئْسَ مَثْوَى الْمُتَكَبِّرِينَ ﴿٧٢﴾ |
| چې ننوځئ دروازو دجهنم‌ته هميشه به ئي‌پديکښې، نو ډيره بده ټهکانه ده د تکبر کونکو. |

﴿وَسِيقَ الَّذِينَ كَفَرُوا﴾دا تخويف اخروي دې اوتفصيل دې د"وفيت كلّ نفس" چې د خلقوپه مينځ کښې به فيصله اوشي نوکافران به جهنم طرف ته روان کړېشي اومؤمنان به جنت طرف ته روان کړېشي، ﴿زُمَرًا﴾جمع د"زُمرةٌ" ده،جماعت اوډلې ته وائي،په کافرانوکښې هم ډلې

نې وي، بعض سيکان، بعض هندوان، بعض عيسايان وغيره
﴿حَتَّىٰٓ إِذَا جَآءُوهَا فُتِحَتۡ أَبۡوَٰبُهَا﴾دلته لفظ دَ فُتحت بغيردَواؤنه ذکرشو. نوپديکښې
اره ده، چې جهنميانوته، به دَجهنم دروازې دَجيل پشان به بندې وي اوچې دوئ راشي
ورته به پرانستلې شي، نوپديکښې دوه حکمتونودي، يوداچه پديکښې دَدوئ توهين اوتذليل
، اوبل داچې دَجهنم دروازې بندې وي اوچې دوئ راشي نوورته به پرانستلې شي، نودوئ
ناڅاپه جهنم اووينې نوښه به ګبراؤشي
﴿وَقَالَ لَهُمۡ خَزَنَتُهَآ﴾داخبره به ورته على سبيل التوبيخ کوي، يعني ملامته کوي به ئې
پديکښې هم دَدوئ تذليل دې، ﴿أَلَمۡ يَأۡتِكُمۡ رُسُلٌ مِّنكُمۡ﴾ اى من جنسکم، ستاسو دَجنس نه
سوته رسولان نه وو راغلي چې تاسودَهغوئ په خبروباندې پوهيدلئ؟ اوهغوئ ته رجوع
ل تاسودپاره اسان وو. ﴿لِقَآءَ يَوۡمِكُمۡ هَٰذَا﴾يوم پمعنئ دَوقت سره دې، اى لقاء وقتكم هذا
وح، کبير)يعني تاسوئی ددې وخت نه يره ولئ، چې وخت دَدخول دَناردې، نوکافران به ورته
وائي﴿قَالُواْ بَلَىٰ وَلَٰكِنۡ حَقَّتۡ كَلِمَةُ ٱلۡعَذَابِ﴾مراددَ كلمة العذاب نه فيصله دَبدبختئ اودَشقاوة
ده په حق ددوئ کښې دَوجه دَبدعملونونه، يعنی مونږ له ازله بدبخته وو کنې هدايت تول سامان
ته ميلاؤ وو. (روح)ياورنه مرادقول دَالله تعالى دې ابليس ته: لاملئنّ جهنّم منك وممن تبعكَ (ص:
٨٥) ﴿عَلَى ٱلۡكَٰفِرِينَ﴾ وضع دَاسم ظاهرده په موضع دَضميرباندې، اشاره ده علت دَعذاب ته
چې کفردې، ﴿قِيلَ ٱدۡخُلُوٓاْ﴾قائل ددې قول هم خزنه دَجهنم دی ليکن ذکرئې نه کړو ځکه چې
مخکښې د﴿وَقَالَ لَهُمۡ خَزَنَتُهَآ﴾نه معلوميږي چې قائل ددې خزنه دي، يادَوجه دَتشديد ددې قول
ته ئې قائل مجهول اوګرځولو يا مجهول صيغه عموم دپاره ده او دې ذکر کولو کښې اشاره
دېته چې دافيصله به په عين انصاف باندې مبنی وی ګويا هر هر څيز به داوائی چې دوئ
دَجهنم مستحق دی. ﴿فَبِئۡسَ مَثۡوَى ٱلۡمُتَكَبِّرِينَ﴾ د تکبريوقسم اعراض کول دي دحق نه
اوعدم انقياددې دَرسولانو اوداکفردې نوپدې کښې هم علت دَعذاب ته اشاره ده.

وَسِيْقَ الَّذِيْنَ اتَّقَوْا رَبَّهُمْ اِلَى الْجَنَّةِ زُمَرًا ؕ حَتّٰۤى اِذَا جَآءُوْهَا

اوروان به کړشي هغه کسان چې پرېدلي دي دَخپل رب نه جنت ته ډلې ډلې، تردې چې کله راشي دوئ جنت ته

وَفُتِحَتْ اَبْوَابُهَا وَقَالَ لَهُمْ خَزَنَتُهَا سَلٰمٌ

اوحال داچه پرانستلې شوې به وي دروازې دَهغې اواوبه وائي دوئ ته چوکیداران دَهغې سلام دې وي

عَلَيْكُمْ طِبْتُمْ فَادْخُلُوْهَا خٰلِدِيْنَ ﴿۷۳﴾ وَقَالُوا الْحَمْدُ لِلّٰهِ

په تاسوخوشحاله وسیږئ داخل شي دیته همیشه به یئ پدیکښې.اواُوبه وائي دوئ تول تعریفونه الله لره دي

الَّذِيْ صَدَقَنَا وَعْدَهٗ وَاَوْرَثَنَا الْاَرْضَ نَتَبَوَّاُ مِنَ

هغه چې پوره ئي کړه مونږسره وعد خپله اوپه میراث کښې ئي راکړه مونږته زمکه دَجنت، ټهکانه نیسو مونږ په

الْجَنَّةِ حَيْثُ نَشَآءُ ۚ فَنِعْمَ اَجْرُ الْعٰمِلِيْنَ ﴿۷۴﴾ وَتَرَى الْمَلٰٓئِكَةَ

جنت کښې چې کوم ځائ زمونږخوښ وي، نو ډېر ښه دې اجر دَ عمل کونکو. او ته به وینې فرشتې

حَآفِّيْنَ مِنْ حَوْلِ الْعَرْشِ يُسَبِّحُوْنَ بِحَمْدِ رَبِّهِمْ ۚ وَ قُضِيَ

حلقه به ئي جوړه کړي وي چاپېره دَعرش نه، تسبیح به وائي سره د حمد دَ رب خپل، او فیصله به

بَيْنَهُمْ بِالْحَقِّ وَ قِيْلَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۷۵﴾

اوکړیشي په مینځ دَدوئ کښې په حقه سره اواوبه ویلې شي چې تول تعریفونه الله لره دي چې ربّ العالمین دی

﴿وَسِيْقَ الَّذِيْنَ اتَّقَوْا رَبَّهُمْ﴾ دابشارتِ اخروي دې مؤمنانوته، مراد دَسوق نه په جلدئ سره بوتلل دي انعامونو دَجنت ته نوپدیکښې دَجنتیانویواکرام دې.یاورنه مراد مراکب (سورلئ) د جنتیانودي،یعني دَدوئ مراکب بهٔ شرلئ کیږي جنت طرف ته"والمرادُ بسوق اهل الجنة سوق مراكبهم(كبير،روح وغيره)" ﴿زُمَرًا﴾ مؤمنان به هم ډلې ډلې وي، دَهرپیغمبرامت به جداجدا وي، او

دغه رنګه پاعتباردَعملونوسره به هم ډلې ډلې وي،بعضِ به صحابه ﷺ وي،بعضِ به فقهاء وي،بعضِ به ائمه مجتهدين وي،بعضِ علماء وي،بعضِ طلباء،بعضِ شهيدان،بعضِ غازيان وغيره.

﴿حَتَّىٰٓ إِذَا جَآءُوهَا﴾ حتىٰ د پاره دغايت دې ،او اذا متضمن دې معنى شرط لره (يعني کله چې دوئ جنت ته را اورسي) جزاء په باره کښې ډير اقوال دي .

(۱) دَ دې جزاء وفتحت ابوابها ده او،واؤ زائد دې خو دا قول ضعيف دې ، ځکه چې دَ "واؤ" د زيادت قول تائيد دَ کلام عرب نه ، نه کيږي.

(۲)دويم قول دادې چې جزاء محذوفه ده چې هغه هُذِّبُوا وَ نُقُّوا ده ،او وفتحت ابوابها په جزاء محذوفه باندې عطف دې،او دَ دې تائيد د حديث نه هم کيږي چې جنتيان کله حساب کتاب نه فارغ شي او جنت دروازو ته راشي نو اول به کومې لږې ډيرې خطاګانې شوې وي هغې نه به پاک کړې شي او بيا به جنت ته داخل کړې شي (صحيح بخاري ، رقم الحديث: ۲۴۴۰).

(۳) دريم قول دا دې چې واؤ په وفتحت ابوابها کښې د پاره دَ حال دې او جمله حال واقع ده په تقدير دَ "قد" سره دَ جاؤواها ضمير مرفوع نه ، او جزاء محذوفه ده ،اي : دخلوها، مطلب به د آيت دا شي چې کله دوئ جنت طرف ته راشي نو دَ هغې دروازې به ورته د مخکښې نه کولاو وي نو دوئ به ورته ننه په عزت او اکرام سره داخل شي،

**فائده** : دې آيت او د جنت عدن مفتحة لهم الابواب تحت اکثر مفسرينو دا نکته ليکلې ده چې د جنتيانو دَ راتلو نه به مخکښې دَ دوئ اعزاز او اکرام دَ پاره به د جنت دروازې کولاو وي، خو په دې اشکال کيږي چې احاديثو نه خو معلوميږي چې جنت دروازې به بندې وي، دَ جنتيانو راتلو نه ورستې به کولاويږي ، لکه مسلم شريف حديث کښې راځي:انا اول من يقرع باب الجنة،چې دَ ټولو نه اول به ځه د جنت دروازه ټکوم، بل حديث کښې راځي: انا اول من ياخذ بحلقة باب الجنة فاقعقعها (صحيح ابن حبان: ۵۱، مسند ابي يعلي: ۳۹۸۹) ټولو نه اول به ځه د جنت دروازې،کنډه نيسم او هغه به ټکوم، او بل روايت کښې دي: انا اول من يفتح له باب الجنة(مسند ابي يعلي ۶۶۵۱، مسند البزار: ۹۵۲۷)

دې کیفیت کتابونو کښې داسې مذکور دي چې جنتیان به د حساب کتاب نه فرغیدلو نه ورسټو جنت طرف ته راشي، نو دهغې دروازې به بندې وي، نو دوئ به جنت دروازه کولاوولو دپاره الله تعالى ته به سفارش کښې نبی کریم صلی الله علیه وسلم پیش کړي ، الله جل جلاله به دا سفارش قبول کړي او جنت دروازې به ورته خلاصې کړي.(البعث والنشور للبيهقي: ۴۰۹)

نو دې تولو احادیثو نه معلومیږي چې جنت دروازې به اول بندې وي ، ورستو به کولاویږي ،امام سخاوي رحمه الله په فتح القدیر شرح الجامع الصغیر (۱:۳۷)کښې په دې تفصیلي بحث کړې دې چې په هغې کښې دا درې جوابونه قابل ذکر دي:

(۱)فتح اواغلاق على الاطلاق نه دې بلکه بعضو دپاره به بندې وی او بعضو دپاره به خلاصې وی چه کوم جنتیان ئی چې به اول جنت ته داخلیږی نوهغه وخت به دابندې وی اوکله چې دهغوئ دپاره خلاصی شی نو بیابه نه بندیږی اونورو راتلونکو جنتیانو دپاره به کولاو وی،چونکه نبی ﷺ اوفقراء مؤمنان به اول جنت ته داخلیږی نوځکه په حدیث کښې ددروازو بندې دلو ذکر دې،او آیت کښې ددوئ نه علاوه نورمؤمنان دی.

(۲)آیت کښې دروازو نه مراد دَجنت منازلو دروازی دی چې هغه به مخکښې نه کولاؤ وی،اواحادیث کښې دَجنت مرکزی دروازو ذکر دې چې هغه به بندې وی.

(۳)بعضو علماؤ دې له ترجیح ورکړې ده چې آیت نه دَدروازو مخکښې نه کولاولیدل بالکل نه معلومیږی ځکه چې"مفتحة" اسم مفعول صیغه ده حال یا استقبال معنی ورکوی،او استقبال په صورت کښې خومعنی بالکل واضح ده چې آئنده به ورله کولاویږی،اوکه حال معنی واغستې شی نومطلب به داوی چې داخلیدلو په وخت کښې به ورله دروازې کولاوی،دهغه شان "وفتحت ابوابها"نه هم دا ثابتیږی،ځکه چې واؤ حالیه نه دې بلکه عاطفه دې او "فتحت ابوابها"جزاء محذوفه باندې عطف دې،نو تقدیر به داسې شی:حتی اذا جاؤها هلوبوا ونقوا و فتحت ابوابها،اومعنی به داسې شی چې کله دوئ جنت ته راورسیږی نو کومې لږې ډیرې خطاګانې دی هغې نه به پاک کړې شی اوجنت دروازې به ورته کولاؤ کریشی (فیض القدیرج۱ص۳۷،الکنزالثمین ج۱۲ص۳۲۳)

﴿وَقَالُوا ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ ٱلَّذِى صَدَقَنَا وَعْدَهُۥ﴾مراددَوعدې نه دَبعث اودَاجروثواب وعده

ده. ﴿وَأَوْرَثَنَا ٱلْأَرْضَ﴾ الارض نه مراد زمکه دَجنت ده. او تعبير. ورنه په ميراث سره څکه وشوچې ارث سببِ قوي دَملك وي، ياپه ميراث کښې به ملاؤشوي وي دَاهلِ نارنه ﴿فَنِعْمَ أَجْرُ ٱلْعَٰمِلِينَ﴾ ظاهره داده چې داکلام هم دَجنيانودې او مخصوص بالمدح محذوف دې چې الاجر يا الجنة دې، اى هذاالاجر (روح). بعضِ وائي چې داکلام دَالله تعالى دې،

﴿وَتَرَى ٱلْمَلَٰٓئِكَةَ حَآفِّينَ﴾ پدېکښې دَالله تعالى دَعظمت شان بل مظهر بيان دې چې قيامت په ورځ به فرشتې عرش الهى نه چاپيره وى او تسبيح وتحميد کښې به مصروفه وى. ﴿حَآفِّينَ﴾ د حفَّ يحفّ حفًا نه مشتق دې پمعنىٰ دطواف کولو سره (کبير) ﴿مِنْ حَوْلِ ٱلْعَرْشِ﴾ من پکښې زائد دې (روح) ﴿وَقُضِىَ بَيْنَهُم﴾ ضمير تولوبندګانوته راجع دې اى بين العباد کلّهم بادخال بعضهم الجنة وبعضهم النّار (روح) ﴿وَقِيلَ ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ﴾ قائل مومنان دي، په ﴿وَقَالُوا۟ ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ ٱلَّذِى﴾ کښې حمد په پوره کولودعدې باندې وؤاودلته حمد په حقِ فيصلې باندې دې نو تکرار نه راغې (روح).

| ركوعاتها (۹) | سورة المومن مكية | آياتها (۸۵) |
|---|---|---|
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان او ډیر رحم کونکي دې شروع کوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۴۰) وحسب النزول (۶۰)**

نزلت بعدالزمر

دې سورة ته سورة غافرهم وئيلې کيږي،تسميه ددې سورة په مومن سره اوپه غافرسره ظاهره ده چې داپه آيت(۳)اوپه(۲۸)کښ ذکردی.

ددې سورة نه دَ حواميمُ سبعه ؤ(اوه حواميم)شروع کيږي.اودَحواميم سبعه فضائل په ډيرو رواياتو کښ راغلی دی:

په يوروايت کښ راغلي دي چې حواميم اوه(۷)دي اودَجهنم دروازې (طبقات) اوه(۷) دي (۱)جهنم (۲)حطمة(۳)لظیٰ(۴)سعير(۵)سقر(۶)هاويه(۷)جحيم،څوك چې دااوواړه اوايمان پرې لري،نودَجهنم په هره دروازه به يو يو سورت دَ حواميمو نه ولاړ وي اوداسې به جهنم ته نه پريدی،(رواه البيهقي في شعب الايمان رقم ۲۲۵۰، واسناده منقطع)

دَابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې چې،لكلّ شيئ لُبابٌ ولُبابُ القرآن الحواميم،چې دَهرڅه يوه خلاصه وي اودَقرآن خلاصه داوه(۷)سورتونه دی،

حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دې چې الحواميم ديباج القرآن ، حواميم د قرآن ديباچه ده(مستدرک حاکم: ۳۲۳۴) او حضرت سعد بن ابراهيم تابعي نه روايت دې چې حواميم عرائس القرآن دي

مفسرين فرمائي چې داسورة مومن دَحواميمُ لباب اوخلاصه ده،يعني داسورة لُبّ لُباب دي،اوددې سورة لباب اوخلاصه﴿وَقَالَ رَبُّكُمُ ادۡعُوۡنِيۡۤ اَسۡتَجِبۡ لَكُمۡ﴾ آيت: ۶۰ دې،نودَټول قرآن خلاصه داده چې﴿وَقَالَ رَبُّكُمُ ادۡعُوۡنِيۡۤ اَسۡتَجِبۡ لَكُمۡ﴾ يعني تاسو تنهاخمانه حاجتونه مرادونه غواړئ حاجتونو مرادونوپوره كولوالاصرف څه يم.

**ربط:** ماقبل سورة زمرسره ئی ربط دوؤطريقوسره دي.

**ربط نامی اسمی** په سورة زمرپه آخرکښ ددوؤډلوذکراوشو .چې یوه ډله دجنت ده اوبله دجهنم ده.پدې سورة کښ دَدغه دوؤفرقوبیان کیږی په ذکرکولودَ رجل مؤمن چې دې جنتی وؤ .اودالِ فرعون چې جهنمی وؤ یعني مسئله دَتوحیدئی چې اومنله نوهغه جنتی وؤاومسئله دَتوحیدئی چې اونه منله نوهغه جهنمي وؤ

**ربط معنوی**: په سورة زمرکښ ذکرشوچې ٍفاعبدالله مخلصاله الدین صرف دَالله تعالی عبادت کوئ.نوپدې سورة کښ دَعبادت اهم فردچې دُعاء ده دَهغې ذکراوتفصیل دې چې﴿ وَقَالَ رَبُّكُمُ ادْعُونِي ﴾ دي.

**دَسورة دَمضامینواجمالي خلاصه**: دَسورة دوه حصې دی.اوله حصه دَابتداء نه تر ﴿هُوَ الْحَيُّ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ فَادْعُوهُ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ ۗ الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ ﴾آیت(۶۵)پورې،دویمه حصه دَ﴿قُلْ إِنِّي نُهِيتُ أَنْ ﴾آیت(۶۶)نه ترآخرِدسورة پورې،اوله حصه کښ اول تمهیدچې په دیکښ ترغیب ذکرکیږ دعوهٔ توحیدمنلوته په څلورو عنواناتوسره،بیادعوه دَسورة ذکرکیږي درڅلې.دعوهٔ توحید اودَهغې دَاثبات دپاره،یودلیل وحي دوه نقلي دلیلونه یونقلي تفصیلا.اوبل اجمالاًاودوه عقلي دلیلونه.تخویفِ دنیوي تفصیلي نمونه ذکرکیږي چې هلاکِ فرعون دي.دَثبوت قیامت دپاره یودلیل اني اوبل لَمي، حضورﷺ ته دوه ځلي تسلي.دویمه حصَه کښ دَاولي حصې دَمضامینو اعاده کیږي.

**تفصیلي خلاصه**:

**اوله حصه**:﴿ حمٓ ﴾ آیت(۱)نه تر﴿ فَالْحُكْمُ لِلَّهِ الْعَلِيِّ الْكَبِيرِ ﴾آیت (۱۲) پورې تمهیددې چې په څلوروعنواناتوباندې مشتمل دې:

(۱)﴿ تَنزِيلُ الْكِتَابِ ﴾ آیت(۲)نه تر ﴿ إِلَيْهِ الْمَصِيرُ ۝ ﴾ آیت(۳)پورې

(۲)﴿ مَا يُجَادِلُ فِي آيَاتِ اللَّهِ ﴾ آیت:۴ نه تر﴿ أَنَّهُمْ أَصْحَابُ النَّارِ ﴾ آیت:۶ پورې

(۳) ﴿ الَّذِينَ يَحْمِلُونَ ﴾آیت:۷ نه تر﴿ وَذَٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ ۝ ﴾ آیت:۹

(۴)﴿ إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا يُنَادَوْنَ ﴾ آیت: ۱۰ نه تر﴿ فَالْحُكْمُ لِلَّهِ الْعَلِيِّ الْكَبِيرِ ﴾ آیت:۱۲ پورې،

**درې ځلې دعوه دسورة**:

(۱)﴿ فَادْعُوا اللَّهَ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ ﴾ آیت:۱۴

(۲) ﴿ وَقَالَ رَبُّكُمُ ادْعُونِيٓ أَسْتَجِبْ ﴾ آيت: ۶۰

(۳) ﴿ هُوَ الْحَيُّ لَآ إِلٰهَ إِلَّا هُوَ ﴾ آيت: ۶۵

﴿ تَنزِيلُ الْكِتَٰبِ مِنَ اللَّهِ ﴾ آيت: ۲ مسئله توحيد باندې دليل وحي دې

﴿ وَلَقَدْ ءَاتَيْنَا مُوسَى الْهُدَىٰ ﴾ آيت: ۵۳ دليل نقلي دې تفصيلاً از موسى ﷺ.

﴿ وَبِمَآ أَرْسَلْنَا بِهِۦ رُسُلَنَا ﴾ آيت: ۷۰ دليل نقلي اجمالاً.

﴿ اللَّهُ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ الَّيْلَ ﴾ آيت: ۶۱ اول دليل عقلي دې

﴿ اللَّهُ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ الْأَرْضَ ﴾ آيت: ۶۴ دويم دليل عقلي دې.

**دويمه حصه:**

﴿ قُلْ إِنِّي نُهِيتُ أَنْ أَعْبُدَ ﴾ آيت: ۶۶ دليل وحي اعاده ده،

﴿ الَّذِينَ كَذَّبُوا بِالْكِتَٰبِ ﴾ آيت: ۷۰ دليل نقلي اعاده ده

﴿ هُوَ الَّذِي خَلَقَكُم مِّن تُرَابٍ ﴾ آيت: ۶۷ اول دليلِ عقلي اعاده ده.

﴿ اللَّهُ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ الْأَنْعَٰمَ ﴾ آيت: ۷۹ دويم دليل عقلي اعاده ده.

﴿ أَفَلَمْ يَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ فَيَنظُرُوا ﴾ آيت: ۸۲ دتخويف دنيوي اعاده ده

حمٓ ① تَنزِيلُ الْكِتَٰبِ مِنَ اللَّهِ الْعَزِيزِ الْعَلِيمِ ② غَافِرِ الذَّنۢبِ

الله ﷻ عالم دي په مراد د دي، داكتاب نازل كړې شويدې دطرفه دالله ﷻ نه چه غالب دې عالم دې، بخښونكې دې دګناه

وَقَابِلِ التَّوْبِ شَدِيدِ الْعِقَابِ ذِي الطَّوْلِ لَآ إِلٰهَ إِلَّا هُوَ إِلَيْهِ الْمَصِيرُ ③

او قبلونكي دتوبې دې، سخت عذاب وركونكې دې، طاقت والا دې، نشته دې بل معبود سوا د ده نه. هم ده طرف ته دې واپس كيدل

﴿ حم ﴾ دا حروفِ مقطعات دی، علم ئی مفوض دې الله تعالى ته. نه ئی معنى لغوي معلومه ده او نه ترينه مراد معلوم دې جزمًا، لكه دسورة بقره په شروع كښې تيرشويدې (ج ۱ ص ۸۲) بعض حضرات مفسرين فرمائي چې دا نوم دې دنومونو دالله تعالى نه. ابن عباس ﷺ فرمائي: حمٓ اسم الله الاعظم (قرطبي) چې حم اسم اعظم دالله ﷻ دې، چاويلي دی چې اسمٌ من اسماء القرآن بعض فرمائي چې ح كښې نومونو دالله تعالى: حميدٌ، حليم، حكيمٌ ته اشاره ده او په ميم كښې، مالكٌ، مجيدٌ.

منانٌ وغيره ته اشاره ده راجع قول دا دي چې دا حروف د پاره د تحدي دي چې قرآن دې حروفو نه جوړ دي او دې باوجود تاسو داسې کلام راوړلو نه عاجز يئ نو پوهه شئ چې دا د الله جل جلاله له طرفه دي

﴿تَنزِيلُ ٱلْكِتَٰبِ مِنَ ٱللَّهِ﴾ **دا تمهيد مع ترغيب دي** مسئله دتوحيد منلو ته. چې په څلورو عنواناتو مشتمل دې. دا اول عنوان دې. او دا دليلِ وحي هم دې، چې دا قرآن دعزيزاو عليم ذات دطرفه دې نو پديکښې مسئله دتوحيد هم دالله ﷻ طرفه ده نو دا اومنئ.

پدې عنوان کښې ترغيب دې په قرآن باندې د ايمان راوړلو د الله جل جلاله **شپږو صفاتو** بيان سره ﴿ٱلْعَزِيزِ﴾ دا **اول صفت دې** چې الله جل جلاله عزت والا دې او عزت په درې **قسمه دې**. (۱) عزة القهر: چې په هر څه غالب دې (۲) عزة القدر: يعني جاه وشرافت والا دې (۳) عزة الامتناع: چې هر عيب او نقصان نه پاک دې يعني داسې عزت والا ذات دا قرآن نازل کړې دې نو دا اومنئ او ديکښې چې کومه مسئله توحيد ذکر ده هغې باندې ايمان راوړئ.

﴿ٱلْعَلِيمِ﴾ **دويم صفت دې** . العليم مبالغه ده په علم کښې، يعني داسې ذات چې هغه سره ماضي، حال او استقبال د هرې زمانې علم دې ، د هغه علم ازلي هم دې او ابدي هم دې. نه ورباندې نسيان راځي او نه ورباندې ذهول طاري کيږي ، نو هغه دا قرآن نازل کړې دې لهذا په دې ايمان راوړئ. ﴿غَافِرِ ٱلذَّنۢبِ﴾ **دريم صفت دې** چې الله جل جلاله ګناه بخونکې ذات دې ، ايمان راوړئ الله جل جلاله به درله ګناهونه معاف کړي ﴿وَقَابِلِ ٱلتَّوْبِ﴾ **څلورم صفت دې** چې الله جل جلاله توبه قبلونکې ذات دې چې انسان ورته يو ځل په ندامت سره متوجه شي نو هغه ورله ګناهونه معاف کړي ، لهذا که هر څومره ګناهونه خو کړي وي الله جل جلاله ته متوجه شئ ، هغه به درله معاف کړي ﴿ٱلتَّوْبِ﴾ مصدر دې، بمعنیٰ دَرجوع سره، شپږو اوصافو کښې صرف دې دوؤ صفاتو په مينځ کښې واؤ حرف عطف ذکر شو نورو کښې نشته ، د دې مفسرينو څو توجيهات بيان کړي دي.

(۱) پديکښې اشاره ده ديته چې الله تعالى توبه کونکی دپاره ددوؤرحمتونوجمع کونکې دي. يو ورله ګناه محو کول ، ګويا چې ده بالکل ګناه نه ده کړې. کقوله عليه السلام: التائب من الذنب کمن لا ذنب له ، او بل ورله توبې په وجه نيکي ليکل.

(۲)يا چونکه به ظاهر دا دواړه صفتونه متحد ښکاري نو دې سوهم ازالې دَ پاره په مينځ کښې "واؤ" ذکر شو چې دې دواړو صفتونو کښې فرق او تغائر دې. او مفسرينو يو څو فرقونه دې دواړو صفتونو کښې ظاهر کړي دي :**يودا** چې غافر الذنب کښې بغير د توبې نه ګناه معاف کولو ته اشاره ده او قابل التوب کښې توبې په ذريعې ګناه معاف کولو ته اشاره ده، **دويم دا** چې غافر الذنب معني دا ده چې تيرشوی ګناهونولره بخونکې دې اودَ﴿وَقَابِلِ ٱلتَّوۡبِ﴾ معنیٰ داده چې په آئنده کښې هم توبه قبلونکې دي(ابن کثير)**دريم دا** چې غافردبقاء الذنب په صورت کښې وي اګرچه بخنه شوي وي،اودَقبول دَتوبې په صورت کښې بقاء الذنب نه وي کما في الحديث:التائبُ من الذنبِ کمن لاذنبَ له.

﴿شَدِيدِ ٱلۡعِقَابِ﴾ دا **پنځم صفت** دې،يعني څوک ئې چې احکاماتو نه اعراض کوي هغه له سخت عذاب ورکونکې دې ، لهذا په دې قرآن او مسئله توحيد باندې ايمان راوړئ او د عذاب نه ځان بچ کړئ،

**فائده**:غافرالذنب، قابل التوب، شديدُالعقاب،درې واړه صيغې دَصفت دی اوپه درې واړو کښې اضافت دَصفت شويدې معمول ته اواضافت دَصفت چې معمول خپل ته اوشي نو دا اضافتِ لفظيه او اضافتِ غيرِمحضه وي،اوداسې اضافت تعريف نه فائده کوي(يعني دمعرفی صفت نشي جوړيدې)نودلته د اسم جلاله په﴿تَنزِيلُ ٱلۡكِتَٰبِ مِنَ ٱللَّهِ﴾کښې چې اعراف المعارف دې،دپاره دادرې واړه صفات څرنګه ګرځي؟

دکوفيانوپه مذهب کښې پديکښې هيڅ اشکال نشته دې ځکه چې دَدوئ په نزداضافتِ غيرمحضه دَمعرفې صفت واقع کيديشی لکه: مررت بزيد حسن الوجه،البته د بصريانو په مذهب دا مسئله قابل اشکال ده ؛ځکه چې د هغوئ په نيز اضافتِ لفظيه په صورت کښې مضاف د معرفې صفت نشي واقع کيدې ، دَ دوئ مذهب مطابق هم د غافر او قابل نه جواب کول آسان دي، ځکه چې دا دواړه صيغې د اسم فاعل دي او اسم فاعل چې کله حال يا استقبال په معني کښې وي او اضافت ئې خپل معمول طرف ته شوې وي نو بيا اضافت . اضافتِ لفظيه وي ليکن که حال او استقبال په معني کښې نه وي نو بيا اضافت غير لفظيه وي او تعريف فائده ورکوي، نو دلته هم اسم فاعل پمعنی دَ حال او استقبال سره ندې اغستې شوې بلکه دَثبوت اواستمرارپه معنی سره دې،لهذا دَ دې صفت واقع کيدل بالکل صحيح

دي. البته د شديد العقاب صفت واقع كيدل قابل غور دي د دوئ مذهب مطابق، ځكه چې شديد صيغه د صفت مشبه ده او دَ دې اضافت چې كله خپل معمول ته اوشي نو دا بيا علي الاطلاق اضافت لفظيه وي او تعريف فائده بالكل نه وركوي، زجاج رحمه الله دَ دې حل دا پيش كړې دې چې شديد بدل دې او صفت نه دې، خو چې ديته اوكتلې شي چې دينه مخكښې او ورستو ټول صفات دي نو دَ دې جواب صفاكمزوئ واضحه شي. بعضو چې ديته كتلي دي نو هغوئ دې شپږو وارو صفاتو باندې د بدل اطلاق كولو ته مجبوره شوي دي ليكن يو مبدل منه دپاره متعدد بدل واقع كيدل دا هم چرته كلام كښې معروف نه دي لهذا آخري كوشش دَ حل دَ بصريانو په مذهب مطابق دا شوې دې چې شديد پمعني د مشدد اسم فاعل سره دې، او اسم فاعل د پاره د ثبوت او استمرار دې. نو دا هم اضافت معنويه محضه اوګرځيدو لهذا صفت ئې واقع كيدل صحيح دي (وكلام الكوفيين خال عن هذه التكلفات و التاويلات البعيدة)

﴿ذِي الطَّوْلِ﴾ دا **شپږم صفت** دې چې الله جل جلاله زبردست قدرت او طاقت والادې كه نافرماني ئې كوئ نو بيا ترينه بچ كيدې نشئ (الطول) قدرت ته وئيلې كيږي او ځنې مفسرينو ترينه دلته مالي قدرت او وسعت مراد اغستې دې چې هغه غنا ده يعني الله جل جلاله غني ذات دې، په تاسو فضل واحسان كوي نو دَ دې تقاضه هم دا ده چې تاسو پرې ايمان راوړئ،

﴿لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ﴾ دا هم ترغيب دې چې الله جل جلاله هغه ذات دې چې هغه نه ما سوا بل څوک اله او معبود نشته چې تاسو دهغه ځكم نامه اومنئ، لهذا په قرآن باندې ايمان راوړئ او مسئله توځيد اومنئ، دَ ځضرت شيخ حسين علي رحمه الله په نيز دا جمله هم صفت ده د پاره اسم جلاله، خو په دې اشكال كيږي چې جمله خو نكره په حكم كښې وي نو بيا دا څنګه د اعرف المعارف دپاره صفت ګرځيدې شي؟هغوئ د دې جواب دا كړې دې چې كله د جملې مضمون منحصر وي په موصوف معرفه كښې نو بيا جمله د معرفې صفت واقع كيدې شي، نو د «لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ» مضمون هم منحصر دې په اسم جلاله كښې، نو دې وجهې نه ورله صفت واقع كيدې شي، نورو مفسرينو دا جمله مستانفه يا خاليه ګرځولې ده

﴿ إِلَيْهِ الْمَصِيرُ ﴾ حضرت شيخ حسين علي رحمه الله په نيز دا جمله هم صفت ده د پاره د اسم جلاله، او ترغيب دې قرآن منلو ته، چې ستاسو پيښې به صرف او صرف الله جل جلاله ته كيږي، د الله جل جلاله نه ما سوا بل داسې ذات نشته چې هغه ته تاسو رجوع اوكړئ، يا هغه تاسو د عذاب نه بچ كړي، لهذا دا حكم نامه اومنئ او ايمان پرې راوړئ،

مَا يُجَادِلُ فِيْٓ اٰيٰتِ اللّٰهِ اِلَّا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا فَلَا يَغْرُرْكَ

جګړه نه کوي په آياتونودالله تعالى کښې مګرهغه کسان چې کفر ئي کړې دی عناداً.نونه دې کړي دهوکه تاله

تَقَلُّبُهُمْ فِي الْبِلَادِ ۝ كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوْحٍ وَّالْاَحْزَابُ مِنْۢ بَعْدِهِمْ

ګرځيدل دَدوئ په ښارونوکښې.تکذيب کړې وۀمخکښې دَدوئ نه قوم دنوح ﷺ اونوروقومونو ورستوددوئ نه.

وَهَمَّتْ كُلُّ اُمَّةٍۭ بِرَسُوْلِهِمْ لِيَاْخُذُوْهُ وَجٰدَلُوْا بِالْبَاطِلِ

اوقصدکړې وۀهريواُمت په پيغمبرخپل پورې چې اونيسى هغه اوجګړه کوله دوئ پيغمبرسره په باطله سره.

لِيُدْحِضُوْا بِهِ الْحَقَّ فَاَخَذْتُهُمْ فَكَيْفَ كَانَ عِقَابِ ۝

دَپاره ددې چې مغلوبه کړي پدې سره حق.نوونيول ماهغوئ.نوڅنګه ووعذاب زما.

﴿مَا يُجَادِلُ﴾ داپه دويم عنوان سره ترغيب ذکرکيږي قرآن اومسئله توحيد منلو ته،چې الله جل جلاله آياتونه بالکل واضحه دي، ديکښې هيڅ قسم ابهام او شبه نشته .لهذا تاسو ديکښې بحث مباحثه او ضد وعناد دوجهې نه ترې انکار مه کوئ . کچرې ضد کوئ نو بيا انجام اوګورئ دَ هغه قومونو چې دَ خپل رسولانو مخالفت ئي ضد وعناد دَ وجهې نه کړې وو .﴿فِيْٓ اٰيٰتِ اللّٰهِ﴾ مجادله في الايات نه مراد هر هغه کار دې چې هغه په قرآن کريم کښې د شکوکو او شبهاتو پيدا کولو باعث ګرځي، لکه دا وئيل چې دا سحر دې . شعر و شاعري ده ، دَ دې مضامينو تعارض دې ، دې احکامات عدل باندې مبني نه دي، يا لکه نن صبا مزاج مطابق دا وئيل چې دې دير احکامات سائنسي تحقيقاتو خلاف دي، په آيت کريمه کښې هم ديته کفراوويلې شواوپه حديث مرفوع کښې هم ديته کفرويلې شويدى،انّ جدالاً فى القرآن كفرٌ(کبير،روح وغيره)اوهرچه دې دَمبهم کلام تحقيق کول يادَيوآيت نه دَ حضراتو مجتهدينو استنباط اوپه هغې کښې بحث وتحقيق کول، نو داپديکښې ندى داخل بلکه هغه خوکارِثواب اواعظم جهادفى سبيل الله دې (روح، قرطبي وغيره).

﴿إِلَّا الَّذِينَ كَفَرُوا﴾ د کفر نه مراد دلته کفر عنادي دی . یعني دې احکام دومره او دلائل دومره مضبوط دی چې څوک پکښې بحث مباحثه نه کوي سوا د هغه کسانو نه چې د ضد د وجهې نه حق نه انکار کوي.

دا په شروع کښې په دوؤوجهوسره ترغیب ذکرشوتوحیدطرف ته،اوپه دوؤوجهوسره به ورستو ذکر کیږي،په درمیان کښې دَاصلاح منکرینُ دپاره درې طریقې ذکرکیږي.

﴿فَلَا يَغْرُرْكَ تَقَلُّبُهُمْ فِي الْبِلَادِ﴾ دا **اوله طریقه** ده دَاصلاحِ منکرینو .یعني منکرینو سره کوم مال و دولت او کر و فر دې ، کله یو ځائ ته دروممي کله بل ځائ ته ، دا د دنیا زندګئ حقیر سامان دې . نه ئي څه پائیداري شته او نه به په آخرت کښې پکار راځي. چرته دا رنګ رنګینئ تاسو د الله جل جلاله نه غافله نه کړي . «فلا یغررک» کښې خطاب عام دې هر مخاطب ته . «تقلب» بدلیدو رابدلیدو او اړیدو رااړیدو ته وائي ، او «تقلب في البلاد» کنایه ده د عیش وعشرت نه چې نن په یوعیش کښې سی صبا په بل کښې .

﴿كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ﴾ دا **دویمه طریقه** ده دَاصلاح چې عذاب دنیادې چې کچرته دا مشرکین مکه د نبي کریم صلي الله علیه وسلم مخالفت نه منع نشول نو دوئ باندې به هغه شان عذاب راشي لکه چې دوئ نه مخکښې کومو امتونو تکذیب کړې وو په هغوئ راغلې وو، او دعذاب دنیوي درې اسباب دي:**اول**: تکذیب رسل ، **دویم** : توهین رسل او **دریم** : جدال بالباطل ﴿كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ﴾ دا اول سبب دې ﴿وَالْأَحْزَابُ﴾ جمع دَحزب ده،ډلې ته وائي . او مراد ترینه قوم ثمود او عاد وغیره دي ،﴿وَهَمَّتْ كُلُّ أُمَّةٍ﴾ دا دویم سبب دې چې توهین رسل دې ، ﴿بِرَسُولِهِمْ﴾ ضمیر مجرور "هم" راجع دې امت ته باعتبار معني ﴿لِيَأْخُذُوهُ﴾ "اخذ" دلته کنایه ده د تمکن یعني قابو کښې راوستلو نه ، یعني دا ئي اوغوختلو چې رسولان خپل ګرفت کښې راولو چې بیا ورسره څه کول غواړو هغه اوکړو ، که قتل کول ئي اوغواړو نو قتل ئي کړو ، که قید کول ئي اوغواړو نو قید ئي کړو او که نور څه تکلیف ورته رسول غواړو هغه ورته اورسو. نوددې نه معلومیږي چې اهلُ الله اواولیاء الله ته تکلیف رسول اودَهغوئ بې ادبي کول سبب دَعذاب الهی ګرځي، کقوله ﷺ:من اذاني ولیّافقداذنتُه بالحرب.

شعر:

بی ادب تنها نه خود را داشت بد     بلکه اتش در همه افاق زد

از خدا خواهی توفیق ادب بی ادب محروم گشت ازفضل رب

﴿وَجَٰدَلُوا بِٱلْبَٰطِلِ﴾ دا دريم سبب دي . دَ عذاب دنيا راتلو باء په «بِٱلْبَٰطِلِ» كښي د پاره د ملابست ده ، اي : متلبسين بالباطل ، يعني باوجود د دينه چې دوئ په ناحقه وو خو بيا د رسولانو سره بحث مباحثه كوله. ﴿لِيُدْحِضُوا بِهِ ٱلْحَقَّ﴾ ديكښي د مجادلې مقصد بيانيږي ، چې دوئ مقصد د مجادلې نه حق طلب كول نه وو بلكه حق نه انكار او د هغې ختمول وو، «يدحضوا» مشتق دي د "دحض" نه ، خوښيدلو ته وائي او "ادحاض" بل خوښيولو ته وائي او دلته ترينه مراد د حق خاتمه او ازاله ده، ﴿فَكَيْفَ كَانَ عِقَابِ﴾ په اصل كښ عقابي دي.

وَكَذَٰلِكَ حَقَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ عَلَى ٱلَّذِينَ كَفَرُوٓا۟ أَنَّهُمْ أَصْحَٰبُ ٱلنَّارِ ۝٦

اودغه شان ثابت(پوره)شويدې حكم دَرب ستاپه هغه كسانوچه كافران دی.چې بيشكه دوئ خاوندان دَاُوردی.

ٱلَّذِينَ يَحْمِلُونَ ٱلْعَرْشَ وَمَنْ حَوْلَهُۥ يُسَبِّحُونَ بِحَمْدِ رَبِّهِمْ

هغه فرشتې چه پورته كونكی دَعرشِ الهی دی اوهغه چه چاپيره دی دَعرش نه.تسبيح كوی دَحمددَرب خپل سره.

وَيُؤْمِنُونَ بِهِۦ وَيَسْتَغْفِرُونَ لِلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ رَبَّنَا

اوايمان راوړی په الله،اوبخښنه غواړي دَپاره دَهغه كسانوچه ايمان ئي راوړی دي،(وائي)اې ربه زمونږه

وَسِعْتَ كُلَّ شَىْءٍ رَّحْمَةً وَعِلْمًا فَٱغْفِرْ لِلَّذِينَ تَابُوا۟

وسيع(رسيدلې)دې هرڅيزته ستارحمت اوعلم،نومغفرت وكړه هغه خلقوته چه توبه ئي كړی وی دَشرك نه،

وَٱتَّبَعُوا۟ سَبِيلَكَ وَقِهِمْ عَذَابَ ٱلْجَحِيمِ ۝٧ رَبَّنَا وَأَدْخِلْهُمْ

اواِتباع ئي كړې وی ستادَ لارې اووساتې دوئ عذاب دَجهنم نداي ربه زمونږه! اوداخل كړې دوئ

جَنَّٰتِ عَدْنٍ ٱلَّتِى وَعَدتَّهُمْ وَمَن صَلَحَ مِنْ ءَابَآئِهِمْ وَأَزْوَٰجِهِمْ

هغه جنَتِ عدن ته چې وعده كړيده تادَدوئ سره،اوهغه خوك چې ايمان ئي راوړې دې دَپلارانودَدوئ اودَبيبيانودَدوئ نه

| وَذُرِّيّٰتِهِمْ ۚ اِنَّكَ اَنْتَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ۞ وَقِهِمُ السَّيِّاٰتِ ۚ وَمَنْ تَقِ |
|---|
| او د اولادو دوئ نه.بیشکه صرف ته غالب ئي حکمتونو والاتې او وساتې دوئ د عذابونونه.اوهغه څوک چه ته ئي وساتې |
| السَّيِّاٰتِ يَوْمَئِذٍ فَقَدْ رَحِمْتَهٗ ۚ وَذٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ۞ |
| د عذابونونه پدغه ورځ نوپه تحقیق سره تاپه هغه رحم وکړو.اوصرف داکامیابي لویه ده |

﴿وَكَذٰلِكَ حَقَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ﴾ **د ادریمه طریقه** د اصلاح ده چې منکرینو ته صرف دنیوي عذاب باندې اکتفا نه کیږي بلکه آخرت کښې به هم دوئ ته عذاب میلاویږي او همیشه دپاره به جهنم کښې وي، ﴿وَكَذٰلِكَ﴾ په باره کښې مشهور درې قوله دي : (۱) حضرت شیخ حسین علي رحمه الله په نیز "کاف" په معنی د لام تعلیلیه سره دې ، اي :لذلک او مشارالیه ئي جدال بالباطل ده ،یعني ناحقه مجادلې په وجه الله جل جلاله د ابدي عذاب فیصله په دوئ ثابته شوه چې دوئ به همیشه په جهنم کښې وي. (۲) "کاف" د پاره د تشبیه دې او مشبه به ورله استحقاق د عذاب دنیوي دې ، یعني څنګه چې دوئ د دنیوي عذاب مستحق اوګرځیدو نو دغه شان د اخروي عذاب مستحق هم اوګرځیدو ، (۳) "کاف" د پاره د تشبیه دې ، خو مشبه به ورله په خپله د "حقت کلمة ربک" مضمون دې او مقصود ترینه مبالغه ده ، یعني دومره لوئ سزا کچرې تشبیه ورکول غواړو نو د خپل ذات نه ماسوا بل څه سره ورله تشبیه هم نشو ورکولې.

﴿ أَنَّهُمْ أَصْحَابُ النَّارِ ﴾ بدل دې د «كَلِمَتُ رَبِّكَ» نه، یا علت دې د ماقبل حکم ، او لام تعلیلیه محذوف دې ای لانهم اصحابُ النّار.

﴿ الَّذِينَ يَحْمِلُونَ الْعَرْشَ ﴾ دا په **دریم عنوان سره ترغیب دې** توحیدته.چې دامسئله د توحید اومنئ که دامُوا ومنله نوحملة العرش چې د الله ﷻ مقرّب فرشتې دی هغه درته دامذکوره دعاګانې کوي.﴿يَحْمِلُونَ الْعَرْشَ﴾نه مراد هغه فرشتې دی چې حاملان(پورته کونکی)د عرش الٰهی دی چې تعدادئی اوس څلوردې اوپه ورځ دقیامت به اته(۸)وي،لقوله تعالیٰ"ويحمل عرشَ ربّك فوقهم يومئذٍ ثمانية" اوتخصیص ددې فرشتوځکه اوشوچې دوئ مقربّ اولوئ شان والادی.

﴿وَمَنْ حَوْلَهُ﴾عطف دې په "الذين" باندې اى والّذين حوله.ددې نه مرادهم فرشتې دى چې حتماً تعداد ئې چاته نه دې معلوم الاّالله«يُسَبِّحُونَ بِحَمْدِ رَبِّهِمْ» خبر دې د پاره د مبتدا او جمله فعليه د پاره د تجدد او تكرار ده.

﴿وَيُؤْمِنُونَ بِهِ﴾اى بالله،يعني دافرشتې ايمان راوړي په الله ﷻباندې كه څوك اشكال وكړي چې څه فائده ده په قول دَالله تعالى كښې چې﴿وَيُؤْمِنُونَ بِهِ﴾ ځكه چې حملة العرش اوحول العرش فرشتې چې تسبيح دَالله ﷻ كوي ظاهره ده چې مؤمنانى دى؟ جواب(١)صاحب دروح المعانى وائى چې پدې باندې ئى تصريح اوكړه دپاره دَاظهاردفضيلت دايمان اوداهل ايمان(٢)صاحب دكشاف علامه زمخشري رحمه الله پديكښې ډيره احسنه نكته ذكركړيده.امام رازي رحمه الله ددې باره كښې فرمائى چې رحم الله صاحب كشاف فلولم يحصل فى كتابه الاّهذه النكتة لكفاهُ فخراً وشرفاً هغه داچې پديكښې اشعاردې پدې چې حملة العرش اوسكان الفرش برابردى په ايمان بالغيب كښې ځكه چې ايمان تصديق قلبى ته وئيلى كيږى بغير دَ رؤية نه.نوكچرې «وَيُؤْمِنُونَ »ئى نه وي نوداوهم به كيدلي چې تسبيح دَدوئ په مشاهدې دَالله تعالى سره ده،اوداكمالِ مدحه نده،بلكه كمالِ مدحه داده چې بغيردَمشاهدې نه اطاعت،عبادت اوشي.

﴿وَيَسْتَغْفِرُونَ﴾دا جمله عطف ده په خبر«يسبحون» باندې، اصل مقصود د خبر نه دا جمله ده او ماقبل دوه جملې«يسبحون» او«يؤمنون» بطور تمهيد ذكر شوې، چې دا استغفار دوئ د پاره داسې فرشتې كوي چې هغوئ په الله جل جلاله ايمان راوړي او هر وخت دَ هغه حمد وثنا كښې لګياوي او داسې شان والا فرشتو دعاګانې زياتې قبوليږي.او څلور دعاګانې دي : (١) فاغفر للذين تابوا، (٢) قهم عذاب الجحيم، (٣) ربنا وادخلهم، (٤) قهم السيئات،

﴿رَبَّنَا وَسِعْتَ كُلَّ شَيْءٍ﴾دا تفسير دې د ماقبل ﴿وَيَسْتَغْفِرُونَ﴾.او تمهيد دې دپاره د مابعد او تعليم دې د دې خبرې چې دعا نه مخكښې د الله جل جلاله صفاتو سره وسيله نيول پكار ده

﴿رَحْمَةً وَعِلْمًا﴾منصوب دى بناء برتميزاصل دَعبارة داسې دې چې وسعت رحمتكَ وعلمكَ كلَّ شيءٍ يعني وسيع دې رحم ستااوعلم ستا هرڅيزته، تحويل اوشوذات دَالله ﷻ ته،دپاره دَ

مُبالغي په وسعت دَرحم اودَعلم دَالله ﷻ کښې ګويا چې ذات د الله جل جلاله عين رحمت او علم اوګرځولې شو.

﴿ فَاغْفِرْ لِلَّذِينَ تَابُوا ﴾ دا **اوله دعا** ده متفرع ده دالله جل جلاله په دؤو صفاتو وسعت رحمت اووسعت علم باندې . وسعت رحمت باندې متفرع کول بالکل ظاهره خبره ده ځکه چې رحمت الهي سبب او وسيله ده د مغفرت . البته وسعت علم خو سبب د مغفرت نه دې نو بيا پرې څنګه مغفرت متفرع کړې شو ؟ نو مفسرينو د دې متعدد توجيهات ليکلي دي:

(۱) شيخ عبد الحق حقاني رحمه الله فرمائي چې دا محض د عاجزئ او حاجت مندئ اظهار د پاره ذکر دې چې اي الله ! ته زمونږ په ضعف او حوائجو باندې ښه خبر ئې مونږ د مغفرت ډير محتاجه يو ستا د عذاب برداشت طاقت نه لرو ته مونږ معاف کړې. (تفسيرحقاني بتغيير)

(۲) ابن عاشور رحمه الله په خپل تفسير التحرير والتنوير کښې دا توجيه ليکلې ده چې وسعت علم تعلق توبې او ايمان سره دې او وسعت رحمت تعلق مغفرت سره دې . نو ګويا دا فرشتې په دې شان دعا غواړي : اي الله ! ستا علم وسيع دې ،تا ته د هغوئ ايمان او توبې علم دې او ستا رحمت وسيع دې ته د توبه کونکو او مؤمنانو مغفرت کوې لهذا دَ دوئ مغفرت اوکړه . ﴿وَاتَّبَعُوا سَبِيلَكَ﴾ اى دين الاسلام(قرطبى)

﴿ وَقِهِمْ عَذَابَ الْجَحِيمِ ﴾ دا **دويمه دُعا** ده تاکيد اومبالغه ده دَ يستغفرون يعني داسې مغفرت ورته اوکړه چې دَجهنم نه محفوظ شي

﴿ رَبَّنَا وَأَدْخِلْهُمْ ﴾ **دريمه دُعا** ده مؤمنانودپاره چې اې الله ! ته دوئ هم جنت ته داخل کړې او د دوئ مؤمنان مور ، پلار ، بيبيانې او او اولاد ورسره هم جنت ته داخل کړې ﴿وَعَدْتَهُمْ﴾ اى دخولها، يعني چې تاورسره دَجنت ته دَداخليدلووعده کړيده. ﴿وَمَن صَلَحَ﴾ عطف دې په ضمير منصوب دَ ﴿وَأَدْخِلْهُمْ﴾ اى و ادخِل معهم هؤلاء،دا دُعا ورته دَسرور کامل دپاره کوي. مراد دَ ﴿ وَمَن صَلَحَ ﴾ نه اهل ايمان دى ﴿ مِنْ آبَائِهِمْ ﴾ اباء ذکرتغليباً شويدي امّهات هم پکښې داخل دى . لکه په سورة الرعد (آيت: ۲۲) کښې تير شويدي.

﴿إِنَّكَ أَنتَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ﴾ تعليل دي دماقبل، چې ته قادرئې په مغفرت ددوئ باندې. او حكيم ئې نو هريو ته مناسب درجه وركوي دخپل حكمت او مصلحت په بناء باندې.

﴿وَقِهِمُ السَّيِّئَاتِ﴾ دا خلورمه دُعا ده، ﴿السَّيِّئَاتِ﴾ نه مراد معاصي دي. يعني اې الله ته ئې د ګناهونو نه اوساته، ځكه چې عذاب سبب خو دغه ګناهونه دي. نو څوک چې دينه ستا په فضل سره بچ شو نو هغه حقيقت كښې ستا د رحمت مورد اوګرځيدو او لويه كاميابي ورته حاصله شوه او ﴿يَوْمَئِذٍ﴾ نه مراد دې دنيا زندګي ده او يا ﴿السَّيِّئَاتِ﴾ نه مراد مطلقاً عقوبت او عذاب دي خواه هغه دنيوي وي او كه اخروي، نو تعميم بعد التخصيص شو. په ﴿وَقِهِمْ عَذَابَ الْجَحِيمِ﴾ كښې صرف د اخروي عذاب نه پناه غوختلو ذكر وو او په ديكښې ورله دنيوي او اخروي دواړه قسم عذابونو نه پناه غوختلو ذكر دې.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِنَّ | الَّذِينَ | كَفَرُوا | يُنَادَوْنَ | لَمَقْتُ | اللَّهِ | أَكْبَرُ | |
| بيشكه هغه كسان چه كفرئې كړيدې دوئ ته به دقيامت په ورځ آوازكيديشي چې غصه دالله تعالى تاسوته زياته ده | | | | | | | |
| مِن | مَّقْتِكُمْ | أَنفُسَكُمْ | إِذْ | تُدْعَوْنَ | إِلَى | الْإِيمَانِ | فَتَكْفُرُونَ ۝ |
| دغصې | ستاسونه | خپل | ځانونوته | ځكه | چه تاسو رابللى كيدئ | ايمان ته | نوتاسوبه كفركوؤ |
| قَالُوا | رَبَّنَا | أَمَتَّنَا | اثْنَتَيْنِ | وَأَحْيَيْتَنَا | اثْنَتَيْنِ | فَاعْتَرَفْنَا | بِذُنُوبِنَا |
| وائي به دوئ اې ربه زمونږمړه دې كړومونږدوه خله اوژوندى دې كړو دوه خله نواقراركوؤمونږبه ګناهونوخپلو | | | | | | | |
| فَهَلْ إِلَىٰ خُرُوجٍ | مِّن سَبِيلٍ ۝ | ذَٰلِكُم | بِأَنَّهُ | إِذَا دُعِيَ | اللَّهُ | وَحْدَهُ | كَفَرْتُمْ |
| نوآياشته دې وتلو څه لاره.دادې وجه نه چه هركله به چې بللې شوالله يواځې نوتاسوبه كفركوؤ، | | | | | | | |
| وَإِن | يُشْرَكْ | بِهِ | تُؤْمِنُوا | فَالْحُكْمُ | لِلَّهِ | الْعَلِيِّ | الْكَبِيرِ ۝ |
| اوكچرې شرك به كيدوشوده الله سره نوتاسوبه په هغې يقين كولو،نوحكم الله لره دې چې ډير برتر او لوئ ذات دې | | | | | | | |

﴿إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا يُنَادَوْنَ﴾ دا په څلورم عنوان سره ترهيب دې توحيد ته، چې دامسئله دتوحيد اومنئ كچرې دامواونه منله نوپه آخرت كښې به دغضب الهي مورديئ. ﴿لَمَقْتُ اللَّهِ﴾

مقت سخت بغض ته وئيلې كيږي . نسبت چې ئي الله جل جلاله ته اوشي نو مراد ورنه ډير ناراضګي وي﴿ إِذْ تُدْعَوْنَ ﴾ "اذ" تعليليه دې علت دې د ﴿ أَكْبَرُ مِن مَّقْتِكُمْ أَنفُسَكُمْ ﴾ او زمانه د "مقت" آخرت ده، نو مطلب دا دې چې قيامت په ورځ په كافرنو ته اووئيلې شي چې نن ورځ تاسو له په ځان څومره غصه درځي نو د الله جل جلاله ناراضګي او غصه په تاسو دَ دينه زياته ده، ځکه چې تاسو دينا کښې بار بار ايمان طرف ته بللې کيدلئ خو تاسو ايمان نه راوړلو. او يا "اذ" تعليل دې دَ﴿ مَّقْتِكُمْ أَنفُسَكُمْ ﴾ يعني نن ورځ تاسو ځکه ځان ته غصه يئ چې دنيا کښې تاسو بار بار ايمان طرف بللې کيدلئ خو ايمان مو نه راوړلو. او يا اذ ظرفيه دې متعلق دې د لمقت الله سره ، او د مقت الله زمانه جدا او مقتكم انفسكم زمانه جدا ده ، ﴿ لَمَقْتُ اللَّهِ ﴾ نه مراد په د نيا کښې په احکاماتو نه منلو د الله جل جلاله ناراضګي او غصه ده او ﴿ مَّقْتِكُمْ أَنفُسَكُمْ ﴾ نه مراد په آخرت کښې د کافرانو په خپلو ځانونو غصه ده،حاصل دادې چې دَقيامت په ورځ چې كله كافران دَجهنم دَعذابونومشاهده اوكړي نوډيربه غصه وي نوفرشتې به ورته اووائی چې نن چې تاسوڅومره غصه يئ نوددې نه زيات الله ﷻ تاسوته په دنياکښې غصه وؤکله به چې تاسوته دعوت درکړې شود توحيد اوتاسوبه انکارکولو،بعضِ حضرات فرمائی چې دَ﴿ مَّقْتِكُمْ أَنفُسَكُمْ ﴾ نه مرادمقتُ بعضهم بعضًادې لکه يلعن بعضكم بعضًا «عنكبوت» کښې تيرشويدې،يعني نن چې تاسويوبل ته غصه يئ.اواتباع په متبوعينو باندې الزام لګوي اومتبوعين په اتباعوباندې نوالله تعالى ددې نه زيات غصه وؤتاسوته.

﴿ قَالُوا رَبَّنَا ﴾پدې آيت کښې دکافرانودَاعتراف جرم بيان دې په ورځ دَ قيامت، دَ دوئ جرم دَ آخرت دَژوندنه انکاروؤيعني بعث بعدالموت نه منکروؤ،چې کله دوئ دَآخرت دَ عذابونو مشاهده وکړي ، اوجهنم ته داخل شي، نوالله تعالى ته به عرض کوي چې مونږچې دَدوباره ژوندي کيدلونه انکارکولواوس مونږته خپله غلطي معلومه شوه،نوآيااوس دَجهنم نه دَوتلوڅه لاره اوصورت شته دې؟ الله تعالى به ورته اوفرمائی چې "مالکم من سبيلٍ"يعني هيڅ لاره دَوتلونشته دې.

. ﴿ أَمَتَّنَا اثْنَتَيْنِ ﴾ "اثنتين"صفت دې دپاره دَمصدرمحذوف چې"اماتتين"دې تقديرداسې دې «ربّنا امتّنا اماتتين اثنتين»يعني اې ربه تامونږه دوه ځله مړه کړو ،دَدوؤ ځلونه مراديودَعدم والاموت

دي، چې انسان په صلب دآباؤوکښ په شکل دنطفې کښ وؤ .نوداپه منزله دموت شو .ځکه چې دامامت معنی يوڅيز نه حيات صفت لرې کول دي او داعام دې چې ابتداء کښ وي يابعدکښ وي اوددويم موت نه مرادموتِ عرفي دې چې ورسره دحيات دنيوي خاتمه کيږي

﴿وَأَحْيَيْتَنَا اثْنَتَيْنِ﴾دلته هم "اثنتين" دمصدرِمحذوف دپاره صفت دې ای احييتنااحيائين اثنتين. اول حيات نه مراددُدنياواله، حيات دې اوددويم نه مرادبعث بعد الموت دې.هرچې دې حيات دعالم برزخ نودهغې شمارئې ځکه اونه کړوچې:(۱)هغه حيات حقيقي نه دې. (۲)ياهغه چونکه مختصر وؤ نو ځکه ذکر نشو او د دنيا ژوند هم اګرکه مختصروؤ خو هغه مبنی عليه وؤنوځکه ذکرشو(۳)ددويم حيات نه مراد د آخرت والاحيات دې چې ابتداء ئې دقبرنه کيږي اوانتهاء ئې نشته دي (حقاني). نوددې قول په بناء حيات دعالم برزخ هم پکښ راغی. دامضمون حضرت والدمحترم نوّرالله مرقده وبرّدمضجعه.په بقرة آيت:۲۸(ج۱ ص۱۲۳)کښ په تفصيل سره ذکرکړيدي .لهذارجوع ورته اوکړئ.

﴿فَهَلْ إِلَىٰ خُرُوجٍ مِّن سَبِيلٍ﴾ يعني دې عذاب نه د وتلو څه لار شته چې مونږ ترينه اوخو . جواب د سوال محذوف دې چې هغه لا سبيل الى الخروج دې ،

﴿ذَٰلِكُم بِأَنَّهُ﴾ دا جواب محذوف علت دې ، چې تاسو اوس دې عذاب نه هيڅ صورت کښې خلاصيدلې نشئ ځکه چې نجات موندلو دوه لارې دي (۱) يو دا چې نيک اعمال ئې کړي وي او ايمان ئې راوړې وي (۲) دويم دا چې خپل څه اعمال خو ئې نه وي خو بل څوک دومره صاحب حيثيت وي هغه دې بچ کړي ،او دلته دواړه سببونه نشته .﴿ذَٰلِكُم﴾کښې اشاره ده ابدي عذاب ته ﴿إِذَا دُعِيَ اللَّهُ وَحْدَهُ﴾دا د نجات اول سبب نفي ده چې اعمال مو هم د دې قابل نه دي چې خلاص خو کړي ، ځکه چې توحيد خو نه منلو او شرک خو کولو ،

﴿فَالْحُكْمُ لِلَّهِ﴾دويمې وجهې او سبب د نجات نفي ده چې بل څوک هم نشته چې تاسو له نجات درکړي ځکه چې دا د الله جل جلاله فيصله او حکم دې . دهغې خلاف څوک کولې نشي. ﴿الْعَلِيِّ الْكَبِيرِ﴾ يعني دا دهغه ذات فيصله ده چې ډير برتر او لوئ دې ،نه ورسره څوک ذات کښې برابر شته او نه ورسره صفاتو کښې ،څه چې کول غواړي هغه کوي نو څوک داسې نشته چې د هغه فيصلې مخالفت اوکړي او تاسو له نجات درکړي.

| هُوَ الَّذِي يُرِيكُمْ آيَاتِهِ وَيُنَزِّلُ لَكُم مِّنَ السَّمَاءِ رِزْقًا ۚ وَمَا يَتَذَكَّرُ |
|---|
| الله تعالى هغه ذات دې چه ښائي تاسو ته آياتونه خپل اونازلوي تاسولره د آسمان نه رزق باران، اونه قبلوي نصيحت |
| إِلَّا مَن يُنِيبُ ﴿١٣﴾ فَادْعُوا اللَّهَ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ وَلَوْ كَرِهَ الْكَافِرُونَ ﴿١٤﴾ |
| مگر هغه څوك چه انابت كوي نوغواړئ د الله نه په داسې حال كښې چې خالص كونكي وئ هغه لره د خپل عبادت اگركه بد گڼرې كافران |
| رَفِيعُ الدَّرَجَاتِ ذُو الْعَرْشِ يُلْقِي الرُّوحَ مِنْ أَمْرِهِ عَلَىٰ مَن يَشَاءُ مِنْ عِبَادِهِ |
| الله ﷻ لوئ درجاتو والا دې،خاوند د عرش دې،نازلوي وحې د خپل امر په هغه چاچه خوښ ئې شي د بندگانو خپلونه |
| لِيُنذِرَ يَوْمَ التَّلَاقِ ﴿١٥﴾ يَوْمَ هُم بَارِزُونَ ۖ لَا يَخْفَىٰ عَلَى اللَّهِ |
| ددې پاره چې اُويروي خلق د ورځې د ملاقات نه ، هغه ورځ چې دوئ به ښرگند وي نه به وي پټ په الله تعالى باندې |
| مِنْهُمْ شَيْءٌ ۚ لِّمَنِ الْمُلْكُ الْيَوْمَ ۖ لِلَّهِ الْوَاحِدِ الْقَهَّارِ ﴿١٦﴾ الْيَوْمَ تُجْزَىٰ |
| د دوئ هيڅ څيز،د چا ده بادشاهي نن ورځ؟ د الله تعالى ده چې يودې غالب دې،نن ورځ بدله به وركوليشي |
| كُلُّ نَفْسٍ بِمَا كَسَبَتْ ۚ لَا ظُلْمَ الْيَوْمَ ۚ إِنَّ اللَّهَ سَرِيعُ الْحِسَابِ ﴿١٧﴾ |
| هرنفس ته د هغه عملونوچه ده كړي وي،نشته څه ظلم نن ورځ بيشكه الله تعالى زرحساب كونكې دې |

﴿ هُوَ الَّذِي يُرِيكُمْ آيَاتِهِ ﴾ دې آيت كښې **توهيب** دې توحيد ته،چې الله جل جلاله تاسو ته د خپل عظمت او وحدانيت دلائل او نخې په هر څيز كښې ظاهره وي او ستاسو د رزق لپاره د آسمان نه باران نازلوي ،خو ددغې دلائلو د قدرت نه صرف هغه كسان نصيحت حاصلوي چې الله جل جلاله ته رجوع كونكي وي«رِزْقًا» نه مراد سبب د رزق يعني باران دې ، او دا تخصيص بعد التعميم دې او دې تخصيص كښې څو فائدو طرف ته اشاره ده :

(۱) يو خو ديكښې اشاره ده دې خبرې ته چې څنگه باران او رزق ستاسو بدن او حيات دنيوي د پاره ضروري دې او تاسو ترينه بغير د څه اختلافه فائده اخلئ نو دغه شان دا آياتونه هم ستاسو روح او اخروي د پاره ضروري او فائده مند دې نو ضد او عناد پريګدئ او تول ترينه فائده واخلئ،

(۲) باران د الله جل جلاله رحمت مظهر دې نو دیکنبې هم ترغیب دې چې داسې رحیم پروردګار پاندې ایمان راوړئ،

(۳) دا دلیل ډیر ظاهر، عظیم او کثیر المنفعت وو، نو دې وجهې نه ئې هم تخصیص اوشو،

﴿ فَادۡعُوا اللّٰهَ مُخۡلِصِیۡنَ ﴾ دَتمهید او ترغیب نه بعد **اول ځل دعوه دَسورت** ذکر کیږي او تفریع ده په ماقبل څلورو ترغیبونو، یعني دَماقبل ترغیبونو خلاصه داده چې خالص د الله جل جلاله عبادت کوئ ﴿وَلَوۡ كَرِهَ الۡكٰفِرُوۡنَ﴾ لو وصلیه دې متعلق دې دَ﴿ فَادۡعُوا اللّٰهَ ﴾ سره یعني خپل هر قسمه حاجت صرف دَالله ﷻ نه غواړئ او الله تعالی سره څوك په دُعا او عبادت کښې مه شریك کوئ اګر که کافران دا خبره ډیره بده ګنړي

﴿ رَفِیۡعُ الدَّرَجٰتِ ﴾ دې آیاتونو کښې هم **ترغیب** دې دعوې منلو او په توحید باندې ایمان راوړلو ته، چې دا کتاب څه معمولي کتاب نه دې بلکه د ډیر لوئ ذات او دعرش مالک طرف نه نازل شوې دې او دې سره ستاسو دنیوي او اخروي دواړه فائدې وابسته دې او« رَفِیۡعُ الدَّرَجٰتِ » **اول صفت دې د پاره د ترغیب**، رفیع صیغه د صفت مشبه ده او اضافت ئې فاعل ته شوې دې، اي: رفیعة درجاته، او دا کنایه ده د عظمت شان نه، یعني دا کتاب هغه ذات نازل کړې دې چې ډیر لوئ شان والا دې لهذا دا اومنئ او دیکنبې چې کوم احکامات دي هغې باندې ایمان راوړئ، یا رفیع صیغه د مبالغې ده، اي: کثیر رفع الدرجات، یعني دا کتاب د هغه ذات له طرفه دې چې هغه د خپلو مؤمنانو بندګانو درجات اچتونکې دې، نو تاسو هم ایمان راوړئ، الله جل جلاله به ستاسو درجات هم اوچت کړي، کما في قوله تعالی: یرفع الله الذین امنوا منکم و الذین اوتوا العلم درجات(المجادلة:) نرفع به درجات من نشآء(یوسف:) ﴿ذُو الۡعَرۡشِ﴾ **دویم صفت** دې د پاره د ترغیب یعني الله جل جلاله عرش والا او په عرش باندې مستوي ذات دې، او دا کنایه ده د الله جل جلاله د بادشاهت نه، یعني الله جل جلاله د کائنات تن تنها بادشاه دې، او دا د هغه حکم نامه ده ،نو تاسو دا اومنئ او د دې په احکاماتو باندې ایمان راوړئ، ﴿یُلۡقِی الرُّوۡحَ مِنۡ اَمۡرِهٖ﴾ **دریم صفت** دې دَپاره د ترغیب، یعني الله جل جلاله چې کوم احکامات تاسو ته رالیږلي دي دې کښې د ستاسو دنیوي او اخروي فائدې دي لهذا دې باندې ایمان راوړئ ﴿ الرُّوۡحَ ﴾

کښې د قرآن دنيوي فائدو طرف ته اشاره ده ، څکه چې روح نه مراددلته وحي ده او وحي ته روح څکه وئيلې شي چې لکه څنګه چې روح سره بدن ته حيات ميلاويږي او دانسان سترګې ، غوګونه او ټول حواس کار شروع کړي نو دغه شان وحي سره زړونه ته حيات ميلاؤ شي او د انسان زړه سترګي او غوګونه کولاؤ شي او بصيرت ورته حاصل شي ﴿مِنْ أَمْرِهِ﴾جار مجرور حال دې د﴿ الرُّوحَ ﴾ نه ،او "امر" خپلې ظاهري معنې کښې دې يعني د خپل امر او قول وحي کوي ، ﴿عَلَىٰ مَن يَشَاءُ مِنْ عِبَادِهِ﴾ نه مراد انبياء او رسولان دي.

﴿ لِيُنذِرَ يَوْمَ التَّلَاقِ ﴾ ديکښې د قرآن اخروي فائدې بيان دې چې ديکښې د آخرت زندګئ متعلق هدايات او راهنمائي ده چې هغې باندې عمل انسان هميشه ژوند خائسته کيدې شي او دسختو سختو عذابونو نه پرې بچ کيدې شي، ضميرمستتر په "لينذر" کښې راجع دې يا "من" ته چې مصداق ئي پيغمبران دي څکه چې د دوئ وظيفه انذار وه ،ﷺ يا الله جل جلاله ته او يا " امر" ته ،﴿ يَوْمَ التَّلَاقِ ﴾نه مراد قيامت ورځ ده ،"التلاق" اصل کښې التلاقي وو ، "يا" تخفيفاً حذف شوې ده ، ملاقات ته وائي او قيامت ورځ ته د ملاقات ورځ څو وجهو نه وئيلې کيږي : (۱) ديکښې د خالق او مخلوق ملاقات کيږي (۲) دَ ټولو انسانانو يو بل سره ملاقات کيږي (۳) اهل ارض او اهل سما يو بل سره ملاقات کيږي (۴) د خپلو اعمالو سره ملاقات کيږي

**فائده** : رَفِيعُ الدَّرَجَاتِ ، ذُو الْعَرْشِ او يُلْقِي الرُّوحَ مِنْ أَمْرِهِ درې واړه صفات خبر واقع کيږي دپاره د مبتدا محذوف ، چې "هو" دې ،

﴿ يَوْمَ هُم بَارِزُونَ ﴾ بدل دې دَيوم التّلاق نه اوتخويف اخروي دې ،او (۱)بارِزون ياپمعنیٰ دَظاهرون سره دې،يعني دَميدانِ حشرزمکه به چونکه همواره وي،غر،ونه،وغيره به پکښې نه وي كقوله تعالى:فيذرهاقاعاًصفصفالاترىٰ فيهاعوجًاولاامتا،نوددې وجه نه به ټول خلق په ډاګه باندې ولاړوي (۲)ياپمعنی دَ:خارجون من قبورهم،سره دې،يعني دَقيامت په ورځ به ټول دَ خپلو قبرونو نه رااوزي(۳) بعضِ فرمائی چې داکنايه ده دَظهوردَاعمالواوانکشاف دَ اسرارونه،کقوله تعالى:يوم تبلى السّرائر،يعني دقيامت په ورځ به دَهيڅ چاحال اواعمال دَاللهﷻ نه پټ نوي،اللّهم استرنابسترك الجميل(۴)يا پمعني د عراة سره دې يعني ټول به بر بنډ ولاړ وي لکه

صحيح حديث کښې راغلي دي : انکم ملاقوا الله حفاة ،عراة ، غرلاً. يعني تاسو به الله جل جلاله سره ملاقات کوئ په داسې حال کښې چې خپې ابله به وئ، بر بنډ به وئ ، او غير مختون به وئ ﴿ مِنۡهُمۡ ﴾اى من اعيانهم واعمالهم واحوالهم ، يعني د دوئ هيڅ څيز به د الله نه پټ نه وي ، نه د دوئ ذوات ، نه د دوئ احوال او نه د دوئ اعمال (روح)

﴿لِمَنِ الۡمُلۡكُ الۡيَوۡمَ ﴾دا حکايت دي دهغې ندا چې قيامت په ورځ به د الله جل جلاله د طرفه کيږي چې نن ورځ بادشاهي دَچاده؟حقيقي بادشاهت خو الله جل جلاله لره دې په دنيا کښې هم او په آخرت کښې هم ، خو دنيا کښې مجازاً بادشاهت انسان ته هم حواله کړې دې ، دې وجهې نه څه نه څه درجه کښې د انسان سره واک او تصرف اختيار شته خو آخرت کښې به دا مجازي بادشاهي هم ختمه شي او الله جل جلاله به دا اعلان اوکړي چې لمن الملک اليوم ، رواياتو نه معلوميږي چې دا ندا به دوه کرته کيږي : (١) يو به هغه وخت کښ چې دَنفخۀ اولى نه ورستوټول مخلوقات فناشي اوبيامقربوفرشتوباندې هم مرګ طاري شي،اودَالله تعالى دَذات نه ماسواهيڅ څوک هم نه وي،نو الله جل جلاله به دا ندا اوکړي ، چونکه يدغه وخت کښ به جواب ورکولووالابل څوک نه وي نوجواب به هم اللهﷻپخپله اوکړي چې﴿لِلّٰهِ الۡوَاحِدِ الۡقَهَّارِ﴾ نوداسوال اوجواب دواړه دَالله تعالى دَطرفه دي،دَنفخۀ اولى نه بعد
(٢)او دويم ځل به د حشر په ميدان کښې دا ندا کيږي چې ټول مخلوقات به الله را جمع کړي نو تپوس به ترينه اوکړي (په خپله يا په واسطه د ملائکو ) چې لمن الملک اليوم ؟ نو څوک به د هيبته جواب نشي ورکولې نو الله جل جلاله به خپله اوفرمائي چې﴿لِلّٰهِ الۡوَاحِدِ الۡقَهَّارِ﴾(طبرى)

اوځنې رواياتو کښې راځي چې اهل محشر به دا جواب ورکړي مؤمنان به خوشحالئ او خوند سره ورکړي او کافران به په غم او حسرت په وجه ورکړي ، مسلم او ابو داؤد شريف حديث کښې راځي چې کله دقيامت ورځ شي نو الله جل جلاله به د زمکې او آسمان موجوده ټول نظام ختم کړي او اوبه فرمائي : انا الملک ، اين الجبارون ، اين المتکبرون ، او د آيت سياق نه معلوميږي چې دلته دا دويمه ندا مراد ده .

حکيم الامت مولانااشرف علي تهانوي رحمه الله فرمائي چې لمن الملک اليوم حکايت دې د هغې ندا نه،نه دې چې احاديثو کښې ذکر راغلې دې ، بلکه مشرکينوته خطاب دې چې هغه ورځ به حکومت داچاوي؟ اواِستفهام تقريري دې،يعنې هغه ورځ به ستاسو هيڅ مددګاراوهيڅ

معبودنه وي ماسوى الله جلّ شانه نه،لهذا هغه باندې ايمان رواړئ او احكامات ئې اومنئ .
ليكن په دې توجيه دااشكال كيديشي چې بياخو يومئذ پكاروود اليوم په ځائ،ځكه چې كه داچرې حكايت نه وي نوبياخوداورځ غائبه ده او اليوم خودحاضرې ورځې ده پاره رازي ؟ نو جواب ترينه دا كيږي چې قرآن كښې ډيرځائ الله تعالى دااسلوب اختياركړيدې چې يوغائب شې لپاره دَمبالغې په منزله دَحاضراوګرځوي،اودَحاضرپشان اندازتخاطب ورسره اختيار كړي لكه فاليوم الذين آمنوا من الكفار كنبې نودلته هم ددې يومئذ په ځائ اليوم ذكراوشو ﴿لِلّٰهِ الْوَاحِدِ﴾ نن ورځ بادشاهي صرف دَ الله جل جلاله ده ، مجازي بادشاهتونه ټول ختم دي ﴿الْقَهَّارِ﴾نن ورځ صرف هغه غالب دې او نور ټول خلق د هغه زير نګين دي ،نور د مجازي قاهر مقهور، غالب مغلوب ، او حاكم محكوم نظام ختم دې بس صرف د الله بادشاهي اوغلبه ده ،

﴿الْيَوْمَ تُجْزَىٰ كُلُّ نَفْسٍ﴾اى يقال لهم اليوم...يعني به ورځ دَقيامت به محشرو الؤته اوئيلى شي چې نن ورځ به هريو كس ته دَهغه دَعملونوپوره پوره بدله وركولې كيږي اوپه هيڅ چابه ظلم نه كيږي چې ثواب ورته كم ملاؤشي ياورته سزازياته ملاؤشي﴿إِنَّ اللَّهَ سَرِيعُ الْحِسَابِ﴾ازاله دَيووهم ده چې دَهركس سره پوره پوره حساب كول اوبدله وركول خوپه ظاهره كښې مشكل دي،ليكن الله تعالى فرمائى چې ماته هيڅ مشكل ندي ځكه ځه ډيرزرحساب اغستونكې يم،لكه په روايت كښې دي چې په مقداردَنصف النهاربه دَټول مخلوقاتوسره حساب ختم شي.

وَأَنذِرْهُمْ يَوْمَ الْآزِفَةِ إِذِ الْقُلُوبُ لَدَى الْحَنَاجِرِ كَاظِمِينَ

او اويره وه دوئ دَعذاب دَهغې ورځې نه چې نزدې راتلونكې ده،كله چه به زړونه دَمروسره وې ډك دَغم به وى نه

مَا لِلظَّالِمِينَ مِنْ حَمِيمٍ وَلَا شَفِيعٍ يُطَاعُ ﴿١٨﴾ يَعْلَمُ خَائِنَةَ الْأَعْيُنِ

نه به وي دَپاره دَظالمانو هيڅ غم خواردوست اونه شفاعت كونكې چه خبره ئې أومنلې شي پوهه دې الله تعالى په خيانت دَسترګو

وَمَا تُخْفِي الصُّدُورُ ﴿١٩﴾ وَاللَّهُ يَقْضِي بِالْحَقِّ وَالَّذِينَ يَدْعُونَ

اوپه هغه چه پټه وي ئې سينې،اوالله تعالى به فيصله كوي په حقه سره،اوهغه معبودان چه دوئ ورنه سوالونه كوي

| مِنْ دُوْنِهٖ لَا يَقْضُوْنَ بِشَيْءٍ ؕ اِنَّ اللّٰهَ هُوَ السَّمِيْعُ الْبَصِيْرُ ۟ |
|---|
| ماسوى د الله ﷻ نه، نه شي كولې فيصله د هيڅ څيز.بيشكه الله صرف هغه اوريدونكې دې ليدونكې دې |
| اَوَلَمْ يَسِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ فَيَنْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِيْنَ كَانُوْا مِنْ قَبْلِهِمْ ؕ |
| آيانه گرځي دوئ په زمكه كښې،پس چه اوگوري دوئ چه څنگه وؤانجام دهغه خلقوچه وؤهغوئ مخكښې ددوئ نه، |
| كَانُوْا هُمْ اَشَدَّ مِنْهُمْ قُوَّةً وَّاٰثَارًا فِي الْاَرْضِ فَاَخَذَهُمُ اللّٰهُ |
| وؤهغوئ ډيرسخت ددوئ نه په قوت كښې اوپه آبادئ كښې چې په زمكه كښې ئې پريخې دي نو اونيول هغوئ الله تعالى |
| بِذُنُوْبِهِمْ ؕ وَمَا كَانَ لَهُمْ مِّنَ اللّٰهِ مِنْ وَّاقٍ ۟ ذٰلِكَ |
| په سبب دگناهونودهغوى،اونه وؤهغوئ دپاره دعذاب د الله ﷻ نه هيڅ ثوك بچ كونكې،داعذاب |
| بِاَنَّهُمْ كَانَتْ تَّاْتِيْهِمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ فَكَفَرُوْا |
| په سبب ددې وؤچې بيشكه راتلل به هغوئ ته رسولان دهغوئ په ښكاره معجزوسره،نودوئ ترينه انكاراوكړو، |
| فَاَخَذَهُمُ اللّٰهُ ؕ اِنَّهٗ قَوِيٌّ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ۟ |
| نواونيول هغوئ الله ﷻ بيشكه الله قوي دې سخت عذاب وركونكې دې |

﴿ وَاَنْذِرْهُمْ يَوْمَ الْاٰزِفَةِ ﴾ پدې آياتونوكښې هم دقيامت دورځې حالت او شدت بيانيږي په څلورو صفاتوسره دپاره دتخويف، "الازفة"دقيامت دورځې نوم دې،ازف،يازف،ازفاً پمعنیٰ دقريب سره اوقيامت ته يوم الازفه ځكه وائى چې داهم قريبه ده ځكه چې هرراتلونكې قريب وي،بعض وائى چې ديومُ الازفة نه مرادورځ دمرگ ده صاحب دروح المعاني اوامام رازي رحمه الله هم دې قول ته ترجيح وركړيده.﴿يَوْمَ الْاٰزِفَةِ ﴾مبدل منه دې او﴿اِذِ الْقُلُوْبُ لَدَى الْحَنَاجِرِ ﴾ ورنه بدل دې،او دا اول صفت دې د قيامت ، يعني داخلق دهغه قريبې ورځې نه اويره وه هغه ورځ چې دخلقوزړونه به دډيرغم اوسختئ دوجه نه مرئ ته رارسيدلي وي،نو﴿لَدَى الْحَنَاجِرِ ﴾ يا كنايه ده دشدتِ غم نه لكه په سورة احزاب"وبلغت القلوب الحناجر"كښې تيرشويدي،او يا دا محمول دې په حقيقت باندې اوالقلوب نه مرادزړونه دكافرانودي يعني پدغه ورځ به د

كافرانو زړونه مرئ ته رارسيدلي وي نه به خپل ځائ ته واپس ځي اونه به ئی ساه اوځي چې مړه شي﴿ كَٰظِمِينَ ﴾دا دويم صفت دې دشدت قيامت ، او كاظمين جمع دَ كاظم ده ، مأخوذدې دَ كظم القربه،نه چې مشكيزه دَ ابونه ډكه كړې شي اوخوله ئی بنده كړيشي چې اوبه ورنه توئی نشي،او حال دې داصحاب القلوب نه ، چې هغه كافران دي، نومعنیٰ دا شوه چې ډير دخوف د وجهې نه به ئي ساګانې خپلې په زړونو كښې بندې كړې وي چې د ساه سره زړونه او نه اوزي،«روح» نو پديكښ مبالغه ده په شدت غم كښ﴿مَا لِلظَّٰلِمِينَ مِنْ حَمِيمٍ ﴾دريم صفت دې د شدت د قيامت ، چې دنيا كښې په چا څه مصيبت راشي نو ملګري دوستان ئې وي ،هغه ورسره غم كښ شريک شي او تسلي ورله وركړي ، خو آخرت كښې به دا هم نه وي چې ورسره همدردئ اظهار اوكړي ، مراددَظالمين نه كافران اومشركان دي.﴿حَمِيمٍ ﴾نه مراد غم خوار او غم شريک ملګرې دي ﴿وَلَا شَفِيعٍ يُطَاعُ﴾دا څلورم وصف دې د شدتَ قيامت ، چې دنيا كښې كه څوک څه مصيبت كښې ګرفتار شي نو جاه او حشمت والا پسې لاړ شي ،دهغه منت زارئ اوكړي ، هغه ورله سفارش اوكړي نو دې د هغې مصيبت نه بچ شي خو آخرت كښې خو به داسې هم څوک نه وي چې د دوئ سفارش اوكړي،﴿ يُطَاعُ ﴾ صفت دې دَ شفيع ، او آيت كښې نفي د صفت او موصوف دواړو ده ، يعني بالكل به ورله څوک سفارش كونكې نه وي نه مطاع او نه غير مطاع.

﴿يَعْلَمُ خَائِنَةَ الْأَعْيُنِ﴾ دا دويم ترغيب دې توحيد او دعوې منلو ته ،په څلورو صفاتو سره ، او دا اول صفت دې د پاره د ترغيب ، يعني الله جل جلاله هغه ذات دې چې ستاسو هر قسم اعمالو باندې خبر دې ،ظاهري وي او كه باطني ، لوئ وي او كه واړه ،نو دهغه ذات نه اويريږئ او حكم نامه ئي او منئ ، اواضافت دَ خائنة، الاعين ته اضافت دَصفت دې موصوف ته، اى يعلم الاعين الخائنة،يعني الله تعالى خيانت كونكي سترګې پيژني،يا﴿خَائِنَةَ﴾ مصدر دې په وزن دَاسم فاعل لكه عاقبة اى يعلم خيانة الاعين،يعني دَسترګوخيانت پيژني، خيانت دَ سترګو نامحرمه زنانه ؤ كتل دي په نظردَشهوت سره،ياپه اشارې سره دَ چا غيبت كول، يا استهزاء كول،﴿ وَمَا تُخْفِي الصُّدُورُ ﴾ دَزړونوپه پټو څيزنو هم الله تعالى باخبره دې،غلطې عقيدې، غلط نيتونه،غلط جذبات ټول باطني اعمال پكښې داخل دي،نوګوياكه په ﴿يَعْلَمُ

خَآئِنَةَ الْأَعْيُنِ ﴾ اوپه﴿ وَمَا تُخْفِي الصُّدُورُ ﴾ كښې اشاره ده ديته چې الله تعالى په ظاهري اوباطني ټولو عملونو باندې خبرداردې،امّ معبد ﷺ فرمائی چې حضور ﷺ به دادعاكوله اللّهم طهّرقلبي من النّفاق وعملي من الرّياء ولساني من الكذب وعيني من الخيانة فانك تعلمُ خائنة الاعين وماتخفي الصّدور(مشكواة).

﴿ وَاللَّهُ يَقْضِي بِالْحَقِّ ﴾دويم صفت دې د پاره د ترغيب ، يعني الله جل جلاله عدل باندې مبني احكامات راليږي او په انصاف سره فيصله كوي لهذا د داسې رب حكمنامه اومنئ او مخالفت ئې مه كوئ ،﴿ وَالَّذِينَ يَدْعُونَ مِن دُونِهِ ﴾دالله نه ماسوا چې دكوم معبودانو دوئ عبادت كوي هغوئ كښې دا صلاحيت نشته ، نه چا سره ښه كولې شي او نه بد ، نو د دوئ عبادت پريګدئ ،صرف الله جل جلاله ته متوجه شئ ،﴿ هُوَ السَّمِيعُ ﴾دريم صفت دې دپاره د ترغيب . چې صرف الله جل جلاله هغه ذات دې چې د هر چا ندا اوري ،د هغه نه ماسوا بل څوک داسې نشته ، لهذا صرف هغه ته بلنه كوئ او د هغه احكامات منئ ،﴿ الْبَصِيرُ ﴾څلورم صفت دې دپاره د ترغيب ، يعني صرف الله جل جلاله هغه ذات دې چې هر وخت كښې په تاسو نظر وي ستاسو حوائج ګوري او هغه پوره كوي ،نو صرف په هغه ايمان راوړئ او احكام ئې اومنئ .

﴿أَوَلَمْ يَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ ﴾داتخويف دنيوي دې مشركانوته آيادوئ چې تجارت وغيره دپاره شام ته سفر نه كوی اودوئ دَعاداوثمود بستئ نه دي ليدلي چې هغوئ دَدوئ نه په طاقت اوپه مال كښې ډيرزيات سخت وُ ،خوچې دَخپلورسولانوتكذيب ئې اوكړونوبيائې انجام څنګه وُ؟ چې دَخپلوګناهونوپوجه داسې هلاك شوچې بيائې څوك بچ كولو والانه وُ ،﴿وَآثَارًا فِي الْأَرْضِ ﴾ مراد ورنه هغه يادګارتعميرونه اومضبوطې قلعې دې چې تراوسه پورې ئې كنډرات موجودي ﴿بِذُنُوبِهِمْ ﴾باء سببيه ده اى بسبب ذنوبهم،يعني پدوئ باندې عذابونه دَدوئ دګناهونودَوجه نه راغلل نوددې حالاتوواقعاتونه دَهرې زمانې خلقودپاره عبرت اخستل پكاردي، ﴿وَمَا كَانَ لَهُم مِّنَ اللَّهِ مِن وَاقٍ ﴾يعني دوئ لره دَعذاب دَالله ﷻ نه بچ كولو والاهيڅ څوك نه وُلكه چې دَدوئ توقع وه چې زمونږمعبودان به مونږبچ كوي،لكه په سورة هودكښې تيرشوي دي چې فماغنت عنهم الهتهم الق... ﴿ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ ﴾داعلت دې دَعذاب په تيرشوي قومونوباندې،چې تكذيب اونافرماني دَ خپلو خپلورسولانودي.

| وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا مُوْسٰی بِاٰیٰتِنَا وَسُلْطٰنٍ مُّبِیْنٍ ﴿۲۳﴾ اِلٰی فِرْعَوْنَ وَھَامٰنَ |
|---|
| اوخامخا په تحقيق سره ليږلي وؤمونږ موسیٰ ﷺ په آياتونو خپلو سره اوپه دليل ښكاره سره فرعون ته اوهامن ته |
| وَقَارُوْنَ فَقَالُوْا سٰحِرٌ كَذَّابٌ ﴿۲۴﴾ فَلَمَّا جَآءَهُمْ بِالْحَقِّ مِنْ عِنْدِنَا |
| اوقارون ته، نواُوويل دوئ چه دي ساحردي، ډيردروغجن دي، پس هركله چه راغلوموسیٰ ﷺ دوئ ته په حق سره دطرفه زمونږنه |
| قَالُوا اقْتُلُوْٓا اَبْنَآءَ الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا مَعَهٗ وَاسْتَحْیُوْا نِسَآءَهُمْ |
| اوويل دوئ چه قتل كړئ ځامن دهغه خلقوچه ايمان ئي راوړيدي دده سره اوژوندي پريدئ ښځي ددوئ، |
| وَمَا كَیْدُ الْكٰفِرِیْنَ اِلَّا فِیْ ضَلٰلٍ ﴿۲۵﴾ وَقَالَ فِرْعَوْنُ ذَرُوْنِیْٓ اَقْتُلْ مُوْسٰی وَلْیَدْعُ رَبَّهٗ |
| اوندي مكردكافرانو مگرضائع دي اوويل فرعون پريږدئ ماچه قتل كړم موسیٰ اوراودغواړي دي رب خپل، |
| اِنِّیْٓ اَخَافُ اَنْ یُّبَدِّلَ دِیْنَكُمْ اَوْ اَنْ یُّظْهِرَ فِی الْاَرْضِ الْفَسَادَ ﴿۲۶﴾ وَقَالَ مُوْسٰی |
| بيشكه زه ويريږم ددې نه چې بدل به كړي دي دين ستاسوياداچه ښكاره(جوړ)به كړي په زمكه كښې فساد. اواُويل موسیٰ ﷺ |
| اِنِّیْ عُذْتُ بِرَبِّیْ وَرَبِّكُمْ مِّنْ كُلِّ مُتَكَبِّرٍ لَّا یُؤْمِنُ بِیَوْمِ الْحِسَابِ ﴿۲۷﴾ |
| چه بيشكه زه پناه نيسم په رب خپل سره اوپه رب ستاسودهرمتكبرنه چه نه راوړي ايمان په ورځ دحساب. |

﴿وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا مُوْسٰی﴾ دادتخويف دنيوي تفصيلي نمونه ذكركيږي چې هلاكت دفرعون دي، چې فرعون سره دلوئ بادشاهئ نه چې هركله ئي تكذيب وكړونوځكه مونږهغه هلاك كړو، ﴿بِاٰیٰتِنَا﴾ عام معجزات ورنه مراددي، چې په سورة اعراف اوسورة اسراء كښې تفصيل ذكر شويدي، ﴿وَسُلْطٰنٍ مُّبِیْنٍ﴾ ددينه خاص معجزه مرادده چې عصاده، ياترينه مرادهغه رُعب اوجلاليت دي چې الله تعالى موسیٰ ﷺ ته وركړې وؤچې فرعون اونورجبابره به ترينه ېريدل، ياورنه مرادتورات دي(قرطبي).

﴿اِلٰی فِرْعَوْنَ وَھَامٰنَ وَقَارُوْنَ﴾ چونكه دادرې واړه مداراوسبب د دُشمنئ وؤ دموسیٰ ﷺ سره، اودغه رنگه دوئ اشد وو په بادشاهئ او مال دولت كښې، نوځكه ئي دادرې واړه خاص كړل په ذكر سره، فرعون خو هر سړې پيژني چې څومره قدردرجه كافروؤ، اوهامان دهغه دوزير

نوم دي اوقارون دَ ده معتمد خاص وؤ،دَهامان اودَقارون ذکرپهٔ سورة قصص کښې تیرشویدي،موسیٰ ﷺ دوئ ته دَدوئ په مطالبه باندې معجزات ښکاره کړل نودوئ اوویل چې﴿ سَـٰحِرٌ كَذَّابٌ ﴾دامعجزې ندي بلکه داسحردې اوپه خپله دعوه کښې دروغ ژن دې.

﴿ فَلَمَّا جَآءَهُم بِٱلْحَقِّ ﴾مراددَحق نه نبوت پیش کول اوتوحیدبیانول دي،اوبقول حضرت تهانوي ﷫ دادویم ځل دعوت عاموخلقوته وؤاواول ځل خواصوته وؤ(کمامرّ)یادویم ځل هم خواصوته وؤ نوپدیکښې استقلال دَموسیٰ ﷺته اشاره ده،اوهدایت دې داعي ته.﴿ قَالُوا ٱقْتُلُوٓا أَبْنَآءَ ﴾ فرعون امر دَ قتل او دَ استحیاء دوه ځلې کړې وؤ، یودَموسیٰ ﷺ دَ پیدائش نه مخکښې چې نجومیانوورته خبر ورکړې وو چې داسې یو بچې به پیدا کیږي چې ستا د بادشاهئ ختمیدو سبب به وي نو ده د بني اسرائیلو نارینه بچو قتل حکم اوکړو ،بیا ورته چا اوئیل چې پدې قتل سره خوبه ټول نسل دبني اسرائیلوختم شي اوخدمت والا به پاتې نشي،نو دې منع شو،لکه داپه سورة بقره وغیره سورتونوکښې تیرشویدي،بیاچې کله موسیٰ ﷺ دعوه دَ نبوت اوکړه اوخلقو پرې ایمان راوړو نودې ګبراؤشوچې بني اسرائیل ځما د حکومت د پاره خطره جوړیدلې شي ، نو دموسي علیه السلام سره ئي مدداو تعاون نه ئي منع کولو دپاره ئي دا حربه اختیار کړه او دوباره ئې دَقتل اودَاستحیاء حکم اوکړوچې کوم دلته ذکردې، چې بني اسرائیل د موسي علیه السلام وجود ځان دپاره باعث عذاب او نحوست اوګرځوي او د ده مدد نه به لاس پورته کړي ،لکه سوره الاعراف کښې د دوئ داسې قَول منقول دې : قالوا اوذینا من قبل ان تاتینا ومن بعد ماجئتنا(الاعراف:١٢٩)

﴿وَمَا كَيْدُ ٱلْكَـٰفِرِينَ ﴾ دا سوال مقدر جواب دې چې فرعون د دې تَدبیرونه څه نتیجه رااوتله او دې منصوبو ورته څه نفع اورسوله ؟نو الله جل جلاله ورنه جواب اوکړو چې هیڅ فائده ئې ورنکړه بلکه دحق په مقابله کښې د کفارو تدبیر همیشه ضائع وي اوانجام اوغلبهٔ مؤمنانو وي ﴿إِلَّا فِى ضَلَـٰلٍ ﴾ای فی ضیاع(روح)

﴿وَقَالَ فِرْعَوْنُ ذَرُونِىٓ ﴾ فرعون چې په یوې منصوبې کښې ناکامه شونواوس بله منصوبه جوړه وي اووائي ماپریدئ چې څه موسیٰ ﷺ قتل کړم ځکه چې هم دې دَ دې بنیاد دې، کچرې دې قتل نشي نوخطره ده چې زمونږدین اوحکومت به ختم کړي،بعض وائي چې دا قول دَفرعون چې﴿ ذَرُونِىٓ ﴾ماپریدئ په حقیقت باندې محمول دې ځکه دې خپلووزیرانو دَ قتل

دَموسیٰ ﷺ نه منع کړې وو ،یادَدې وجه نه چې هغوئ دَموسیٰ ﷺ معجزې لیدې وې اویقین ئې شوې وو چې دې په حق پیغمبردې،هسې نه چې دَالله تعالی په ګرفت کښې راشو یا ئې دَملکي مصلحت خلاف ګنړله چې خلق به وائی فرعون دَ کمزوری سرې سره مقابله نشوه کولې نوقتل ئې کړو ،یادَ بعضِ کسانوپه زړونوکښې دَموسیٰ ﷺ سره محبت ووُلکه ښځه دَ فرعون چې فرعون ته ویلی وو، لاتقتلوه عسی ان ینفعنا(قصص:۹)بعض وائی چې﴿ذَرُونِیٓ﴾په حقیقت ندې محمول بلکه صرف هسې یوه دهمکي ده،اوخلقوباندې دَخپل شان وشوکت اظهاردې،چانیولې نه وو، هسې وئیل چې ماپریدئ چې دې قتل کړمه،اودې ځما نه هیڅ څوک نشي بچ کولې﴿وَلْيَدْعُ رَبَّهُۥٓ﴾ددې نه اندازِ کلام دَ فرعون معلومیږي چې دې "دهری" وو.

﴿إِنِّيٓ أَخَافُ﴾وجه دَقتل ئې بیانوي چې ځکه چې ما سره یره ده چې دې به ستاسودین چې هغه ځماعبادت دې اوشرکیه رسم رواج دې هغه به ختم کړی اوکه دین بدل نه کړی نوکم ازکم داخوبه اوکړی چې اقتدار او حکومت به درنه قبضه کړي ﴿أَوْ أَن يُظْهِرَ فِي ٱلْأَرْضِ ٱلْفَسَادَ﴾ مراد دَ فساد نه په حکومت باندې قبضه کول دی،لکه په سورة اعراف کښې دی"یریدُان یخرجکم من ارضکم"(۱۱۰)قتادة رحمه الله وائی چې مراددَفسادنه دَالله تعالی اطاعت دې،یعني دَالله تعالی اطاعت اوعبادت په زمکه کښې خورکړی اوځماعبادت به خلق پریدی،هم دغه وینا د نن صبا د فرعونیانو هم ده چې هغوئ د اسلام نظام خلافت او د هغې احیا د پاره سعي او کوششونه ته دهشت ګردي وائي او د الله جل جلاله په ځمکه د الله نظام او احکامات نافذول سبب د فساد ګنړي.

﴿وَقَالَ مُوسَىٰٓ إِنِّي عُذْتُ بِرَبِّي﴾دا خطاب دې دَموسیٰ ﷺ خپل قوم ته اوهغوئ ته تسلی ورکول دی،نوپه ﴿وَرَبِّكُم﴾کښې خطاب خپل قوم ته دې لکه په سورة اعراف کښې دی،وقال موسیٰ لقومه استعینوابالله....فرعونیانوته ندې ځکه چې هغوئ الله تعالی نه منلو، ﴿مِّن كُلِّ مُتَكَبِّرٍ﴾ای من شرّ کلّ متکبرٍ.

وَقَالَ رَجُلٌ مُّؤْمِنٌ مِّنْ ءَالِ فِرْعَوْنَ يَكْتُمُ إِيمَٰنَهُۥٓ أَتَقْتُلُونَ رَجُلًا أَن يَقُولَ

اوویل یوسړي مومن،چه دآلِ فرعون نه وؤپټولوئی ایمان خپل،آیاقتل کوئ تاسویوسړي(موسیٰ)ددې وجه نه چه وائي

| |
|---|
| رَبِّيَ اللّٰهُ وَقَدْ جَآءَكُمْ بِالْبَيِّنٰتِ مِنْ رَّبِّكُمْ ۖ وَإِنْ يَّكُ كَاذِبًا |
| رب زما الله ﷻ دي، او په تحقيق چې راغلي دي تاسوته په ښكاره معجزوسره د طرفه د رب ستاسو نه، او كه وي دې دروغژن |
| فَعَلَيْهِ كَذِبُهٗ ۖ وَإِنْ يَّكُ صَادِقًا يُّصِبْكُمْ بَعْضُ الَّذِيْ يَعِدُكُمْ ۖ |
| نو په ده دې ضرر د دروغو د ده، او كچېرې وى دې ريښتوني نو او به رسي تاسوته څه نه څه هغه عذاب چه وعده ئي كوى تاسو سره، |
| إِنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِيْ مَنْ هُوَ مُسْرِفٌ كَذَّابٌ ۝٢٨ يٰقَوْمِ لَكُمُ الْمُلْكُ الْيَوْمَ |
| بيشكه الله ﷻ نه كوي هدايت هغه چاته چه هغه اسراف كونكي وي دروغژن وي اې قومه زما تاسولره ده بادشاهي نن ورځ |
| ظٰهِرِيْنَ فِي الْأَرْضِ ۖ فَمَنْ يَّنْصُرُنَا مِنْ بَأْسِ اللّٰهِ إِنْ جَآءَنَا ۚ قَالَ فِرْعَوْنُ |
| چه غالب يئ په زمكه كښ، پس څوك به مدد او كړى زمونږ د عذاب د الله ﷻ نه كچېرې راشي په مونږ، او ويل فرعون |
| مَآ أُرِيْكُمْ إِلَّا مَآ أَرٰى وَمَآ أَهْدِيْكُمْ إِلَّا سَبِيْلَ الرَّشَادِ ۝٢٩ |
| چه نه ښايم زه تاسوته مګرهم هغه مصلحت چه وينم زه (چه په هغې كښ خيردې) اونه خايم ستاسوته مګرلاره سمه |

﴿وَقَالَ رَجُلٌ مُّؤْمِنٌ﴾ كله چې فرعون د موسى ﷺ قتلولو فيصله او اراده اوكړه نو ده په دربار كښې يو سړې وو چې هغه ايمان راوړې وو خو خپل ايمان ئي پټ ساتلې وو دا سړې قبطي او د فرعون د كورنئ كس او د خپلوانو نه ئي وو، څنې مفسرينو ليكي چې دې ئي تره خوې وو ، نو د ده دغې فيصلې په مخالفت او د حضرت موسى ﷺ په حمايت كښې جرات مندانه موقف اختيار كړو او په ډک دربار كښې ئي دا فيصله مدلل انداز سره رد كړه، الله جل جلاله د ده دا موقف اوتقرير دومره خوښ شو چې دا قرآن كريم حصه ئي اوګرځوله چې تر قيامته به لوستې شى، ﴿رَجُلٌ﴾ موصوف دې، ﴿مُّؤْمِنٌ﴾ صفت اول دې، ﴿مِّنْ اٰلِ فِرْعَوْنَ﴾ دا صفت ثاني دې د ﴿رَجُلٌ﴾ اوجار مجرور متعلق دې په "كائن" محذوف سره، ﴿يَكْتُمُ إِيْمَانَهٗ﴾ دريم صفت دې، كتمان حق يعني حق او ايمان پټول صرف هغه صورت كښې جائز دې چې انسان ته د دنيوي يا ايماني ضرر خطره وي ، دنيوي ضرر دا دې چې د ځان تللو خطره وي او ايماني ضرر دا دې چې ايمان تللو خطره وي ، برابره خبره ده چې دا خطره د مسلمان نه وي يا د كافر نه ، البته اطمينان قلبي او په تنهائئ او عدم خوف حالت كښې اقرار باللسان ورله شرط دې ،

شيعه ګانو عقيده "تقيه" خالص منافقت او دروغ دي ، هغې د دې آيت سره هيڅ تعلق نشته او د دې آيت نه د هغې ثابتول سعي لاحاصل ده.

﴿ أَتَقْتُلُونَ رَجُلًا ﴾ دا درجل مؤمن موقف او تقرير اوله مرحله ده چې ديکښې دې خپل قوم د موسى عليه السلام د قتل نه منع کوي او ډير په حکمت او لطافت سره دَ خپل ايمان او د موسى عليه السلام حقانيت اظهار او قوم ته په ده باندې ايمان راوړلو دعوت ورکوي، همزه په «أَتَقْتُلُونَ» کښې کښې د پاره د استفهام انکاري ده يعني دا سړې مه قتلوئ ، د ده د قتل تاسو سره هيڅ جواز نشته ، دينه مخکښې دَ دې څو وجوهات بيانوي: ﴿ أَن يَقُولَ ﴾ دا اوله وجه ده ، چې تاسو ته ده ونيلي څه دي شې تاسو ئي قتلوئ ؟ دې خو بس صرف دومره خبره کوي چې ځما رب صرف يو الله دې، نو دا څه موجبِ قتل وينا خو نه ده . ﴿ وَقَدْ جَاءَكُم بِالْبَيِّنَاتِ ﴾ دويمه وجه ده (کما في التحرير والتنوير) يعني د ده دا وينا تشه دعوه نه ده بلکه په دې باندې ئي تاسو ته واضح دلائل او براهين رراوړي دي چې هغې ستاسو سره هيڅ جواب نشته ، پکار خو دا وه چې تاسو پرې ايمان راوړې وې ، خو که ايمان نه راوړئ نو کم از کم قتلوئ خو ئي مه

﴿وَإِن يَكُ كَاذِبًا فَعَلَيْهِ كَذِبُهُ﴾ دريمې وجهې بيان دې يعني لګ د ده په خبرى انصاف سره غور اوکړئ تاسو ته به دوَو خبرو کښې خامخا يوه خبره مخې ته راشي ، يا به دې دروغ ژن ظاهر شي او يا به رېښتونې ، او دواړونو صورتونو کښې د ده قتل جواز نه پيدا کيږې ، ځکه چې که دروغ ژن وي نو تاسو ته ئي هيڅ نقصان نشته ،دعوت باندې پرې پابندي اولګوئ او پريګدئ ئي ، خپله به ورته د خپلو دروغو انجام معلوم شي ، او که هغه رېښتونې وي (او يقيناً چې رېښتونې دې کما في قوله تعالى: و جحدوا بها واستيقنتها انفسهم ظلماً وعلوا) نو بيا خو د هغه مخالفت او قتل کوشش کولو کښې د ستاسو سراسر نقصان دې

**فائده (۱)**: "ان" د پاره دَشک راځي او رَجل مؤمن دَموسى عليه السلام په صداقت کښې شک نه وو خو دعوت کښې تلطف اونرمي راوستلو او د خپل ايمان پټ ساتلو د پاره ئي داسې تعبير اختيار کړو ، هم دې وجهې نه ئي "کاذباً" مخکښې او "صادقاً" ئي ورستو ذکر کړو،

**فائده (۲)**: د دې آيت نه دا استدلال کول صحيح نه دي چې د چا څه رائ او موقف وي حتي چې د نبوت دعوه ولې نه کوي خو هغه ته څه ونيل نه دي پکار ،ځکه چې وَإِن يَكُ كَاذِبًا فَعَلَيْهِ كَذِبُهُ " يو خو ه دې وجهې نه چې دا هغه صورت کښې دې چې حق او باطل کښې اشتباه

راشي ، خو کله حق او باطل واضحه وي نو بيا حق منل او باطل ختمول ضروري دي ، او **بل د دې وجهې** نه چې دا د دعوت د تلطف يو انداز دې چې مخالفت ضداو عناد نه راکوز شي او په انصاف آماده شي

**فائده(۳)**:داخبره دَهروخت دَحکمران دپاره ده.چې په اسلامي نظام نافذکولوکښې ستاسوکرسئ اوحکومت ته هيڅ خطره نشته دې،اوپه نه نافذکولوکښې ستاسوکرسئ اوحکومت ته خطره ده (ازوالدمحترم نورالله مرقده).

﴿يُصِبْكُمْ بَعْضُ الَّذِي﴾ هر کله چې موسیٰ عليه السلام د الله جل جلاله صادق پيغمبر دې نو د ده ټولې وعدې او وعيدونه حق او رښتيا دي ، خو بيا "بعض الذي" راوړلو کښې اشاره د **تلطف في الدعوه** ته، چې مخاطب په وحشت کښې مبتلا نشي او ضد او عناد شروع نه کړي ، مزيد دا چې ديکښې مبالغه في التحذير ده چې بعض عذاب نه ځان اوساتئ چې هغه هم ډير لوئ ده او ټول خو څه اندازه نشته (روح)

﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي مَنْ هُوَ مُسْرِفٌ كَذَّابٌ﴾ دا جمله ذو وجهين ده ،يعني موسیٰ عليه السلام ته په کښې هم اشاره ده او فرعون ته هم ، موسیٰ عليه السلام ته اشاره داسې ده چې دې څومره عجيب معجزات دوئ ته پيش کوي او څنګه عجيب دلائل په توحيد د الله جل جلاله بيانوي ، کچرته دې دروغژن او حد نه تجاوز کونکې وې نو هرګز به ورله الله جل جلاله د دې توفيق او طاقت نه وې ورکړې

او فرعون ته اشاره داسې ده چې کچرته باوجود ده دينه چې ده ته د موسیٰ عليه السلام حقانيت او صداقت يقين شوې وي ، بغاوت کوي او موسیٰ عليه السلام قتلول غواړي نو الله جل جلاله به چرې هم دې په خپل عزائمو او مقاصدو کښې کامياب نه کړي ځکه چې دې مسرف دې ، دشمنئ کښې د حد نه وتونکې دې او کذاب دې ،قوم ته دروغ وائي چې ځما نه سوا بل اله نشته او موسیٰ عليه السلام پيغمبر نه دې .(حاشيه الجمل)

﴿يَا قَوْمِ﴾دادرجل مؤمن دَبيان دويمه حصه ده چې د موسیٰ عليه السلام د قتل نه قوم منع کولونه ورستو اوس ډير په لطيف انداز سره ترغيب ورکوي قوم ته په موسیٰ عليه السلام باندې د ايمان راوړلو او يروې ئې د مخالفت نه ،﴿لَكُمُ الْمُلْكُ الْيَوْمَ﴾دا ترغيب دې چې نن ورځ ستاسو ته بادشاهئ ميلاو ده په دې مغروره کيږئ مه ، ديکښې ستاسو څه ذاتي کمال نشته ، بلکه دا د الله جل جلاله طرف نه عطيه او نعمت دې که د دې بقا غواړئ نو قدرداني ئې اوکړئ او قدر داني ئې دا ده چې الله جل جلاله احکامات اومنئ چې موسیٰ عليه السلام تاسو ته راوړې دي ((ظٰهِرِينَ

» حال دي دَ « لَكُمْ » ضمير مجرور نه، « الْأَرْضِ » کښې الف لام عهد خارجي دې او مراد ترينه زمکه د مصر ده ﴿فَمَن يَنصُرُنَا مِنۢ بَأْسِ اللَّهِ﴾ دا ترهيب دې يعني که تاسو د دې نعمت قدرداني نه کوئ بلکه دنيوي مفاداتو حصول او حکومت بچ کولو په خاطر د موسیٰ ﷺ مخالفت کوئ نو الله جل جلاله به درنه دا هر څه واخلي ، نو به بيا تاسو وئ او نه به مو دا حکومت وي او د الله جل جلاله سره څوک مقابله نشي کولې ، "فاء" په "فَمَن يَنصُرُنَا" کښې د پاره د تفريع ده ، يعني که ناشکرئ په نتيجه کښې راباندې د الله جل جلاله عذاب راغې نو بيا به مو څوک بچ کوي ؟

«قَالَ فِرْعَوْنُ »کله چې فرعن اوليدل چې د رجل مؤمن مدللو او نصيحت آموزو خبرو په مخاطبينو باندې اثر اوکړو نو هغې اثر زائلو کولو دپاره ئې فوراً دهغه کلام قطع کړو او قوم ته ئې اوئيل ،چې اې څما قومه! دې هسې فضولې خبرې کوي ، کومه خبره چې څه درته کوم هغې کښې ستاسو مصلحت دې او کوم کار حکم چې څه درته کوم هغې کښې ستاسو کاميابي ده ،

﴿مَا أُرِيكُمْ﴾رؤيت نه مراد رؤيت علمي دې ،اي: ما اعلمکم ولا اشير عليکم ،يعني نه خايم تاسو ته او نه درکوم مشوره تاسو ته مگر د هغې چې څه پکښې خير وينم ﴿إِلَّا مَا أَرَىٰ﴾دلته د رؤيت نه مراد رؤيت بصري دې

﴿ وَمَا أَهْدِيكُمْ إِلَّا سَبِيلَ الرَّشَادِ ﴾ "رشاد" ضد "غي" دې حق او کاميابئ لار ته وئيلې کيږي ، يعني کومه مشوره چې څه درکوم دې باندې عمل کولو کښې ستاسو کاميابي ده ، مفسرين فرمائي چې دې کلام نه د فرعون مقصود خپل خلوص قلبي اظهار دې ، چې بس تاسو کاميابي غواړم نور څه مقصد مې نشته ، «روح»او څنې مفسرين فرمائي چې ديکښې فرعون د خپل د عمل تصويب مقصود دې ، چې څنګه څما قول او رائ صحيح ده دغه شان چې څه تاسو دکوم عمل حکم کوم هغه صحيح دې ،چې هغه قتل د موسي عليه السلام دې ،دې تقدير باندې د سبيل نه مراد عمل دې په قرينې د الرشاد سره .«التحرير والتنوير»

وَقَالَ الَّذِيٓ ءَامَنَ يَٰقَوْمِ إِنِّيٓ أَخَافُ عَلَيْكُم مِّثْلَ يَوْمِ الْأَحْزَابِ ۝ مِثْلَ دَأْبِ

اوأويل هغه کس چه مؤمن وۀ ،اې قومه زما بيشکه زه يريږم په تاسوباندې په شان دَعذاب دَورځو دَډلو.په شان دَحال

| قَوْمِ نُوحٍ وَّعَادٍ وَّثَمُودَ وَالَّذِينَ مِنْ بَعْدِهِمْ وَمَا اللّٰهُ يُرِيدُ ظُلْمًا |
|---|
| دقوم دنوح عليه السلام اودعادیانو اوثمودیانو اودهغې خلقوچه ورستووُددوئ نه.اوالله تعالی اراده نه کوي دظلم |
| لِّلْعِبَادِ ۞ وَيٰقَوْمِ إِنِّيٓ أَخَافُ عَلَيْكُمْ يَوْمَ التَّنَادِ ۞ يَوْمَ |
| دبندګانودپاره.اواې قومه زمابیشکه زه یریږم په تاسوباندې دعذاب دورځې دچغووهلونه،هغه ورځ |
| تُوَلُّونَ مُدْبِرِينَ مَا لَكُمْ مِّنَ اللّٰهِ مِنْ عَاصِمٍ وَمَنْ |
| چه اوبه ګرځئ تاسو شاکونکي،نه به وي تاسولره دعذاب دالله تعالی هیڅ څوك بچ کونکي.اوهغه څوك |
| يُضْلِلِ اللّٰهُ فَمَا لَهُ مِنْ هَادٍ ۞ |
| چې ګمراه ئې کړي الله تعالی نونشته دې هغه لره هیڅ څوك هدایت ورکونکي |

﴿وَقَالَ الَّذِيٓ اٰمَنَ﴾ دې ځائ نه د رجل مؤمن د تقرير دريمه مرحله شروع کيږي ،چې کله ده اوليدلو چې قوم په نرمئ او اشارو سره نه پوهيږي نو په ښکاره ئې د الله جل جلاله د عذاب نه يرول شروع کړو،«إِنِّيٓ أَخَافُ عَلَيْكُمْ » دا تخويف دنيوي دې ﴿مِّثْلَ يَوْمِ الْأَحْزَابِ﴾مرادورنه هغه عذابونه دي چې مخکښې امتونوباندې نازل شوي وؤ.يوم ياپخپله معنی حقيقي دې،يعني ورځ،نوپدې صورت کښې مضاف محذوف دې ای مثلُ حادِث يوم الاحزاب(روح)يعني پشان دعذابونودَاحزاب يا يوم پمعنی دعذاب الهي سره دې،دامعنی مجازي ئې هم معروفه ده،حتّی چې حقيقت عرفيه ګرځيدلي دې،نوپدې صورت کښې حذف دمضاف ته ضرورت نشته دې،البته په دواړوصورتونوکښې دااشکال دې چې مثل ايّام الاحزاب ويل پکاروؤ،ځکه چې ورځې دعذابونوديرې وې،تول قومونه په يوه ور نه وؤهلاك کړې شوی،جواب دادې: چې يوم نه مراد يوه ورځ نه ده بلکه ايام دي او په دې قرينه «الاحزاب»ده ، ځکه چې دې تفسير ورستو په قوم عاد وثمود سره شوې دې او دا بديهي خبره ده چې دا دِلې خو په يوه ورځې نه وې هلاکې شوې بلکه دوئ د هلاکت په مينځ کښې د يو بل نه ديره فاصله ده ، نو دې وجهې نه يوم او ايام راوړل دواړه برابر وو.او دواړو صورتونو کښې ئې معني د جمعې وه نو د تخفيف د پاره صيغې د مفرد له ترجيح ورکړې شوه ﴿مِثْلَ دَأْبِ قَوْمِ نُوحٍ وَّعَادٍ وَّثَمُودَ﴾بدل دې يا عطف

بيان دې د ﴿مِثْلَ يَوْمِ الْأَحْزَابِ﴾ نه ﴿وَالَّذِينَ مِنْ بَعْدِهِمْ﴾ قوم دلوط عليه السلام مراد دي ﴿وَمَا اللَّهُ يُرِيدُ ظُلْمًا لِلْعِبَادِ﴾ دا كلام يادرجل مؤمن دې، ياجمله مستانفه ده كلام الهي دې، دپاره دازالي دشبهي يعني دا دومره قومونه هلاكول ظلم ندې بلكه دقانون مكافات يوه لازمي نتيجه ده، چې دهغې نه هيڅ څوك مستثنى ندې، (لايظلم) په ځائ (لايريد ظلماً) تعبير راوړلو نه مبالغه في النفي مقصود ده چې الله جل جلاله ظلم كول خو څه چې د ظلم اراده هم نه كوي.

﴿وَيَا قَوْمِ إِنِّي أَخَافُ﴾ پدې كښې تخويف اخروي ذكركوي، ﴿يَوْمَ التَّنَادِ﴾ التناد مصدر دې او په اصل كښې التنادي دې يا حذف شويده دپاره دحُسن اودقافيه. ﴿يَوْمَ التَّنَادِ﴾ يوبل ته داوازونو والاورځ، دانوم دې دورځې دقيامت، قيامت ورځ ته يوم التناد ځكه وائى چې پدغه ورځ به ډيرې نداګانې وي، لكه مثلا: (١) اوله ندابه دنفخ صورپه وخت كښې وي، چې په يوم يُنادالمنادِ من مكانٍ قريب كښې ئى ذكردې، (٢) هرمسلك والابه خپله خپل مقتدااوپيشوا سره رابللې كيږي چې په يوم ندعواكلّ اناسٍ بامامهم كښې ئى ذكردې (٣) اهل جنت به اهل نارته اوازونه كوي اواهل ناربه اهل جنت ته اوازونه كوي، چې په ونادىٰ اصحاب الجنة .... ونادىٰ اصحابُ النّار سورة اعراف كښې يې ذكردې.

(۴) مؤمن ته چې خپله عمل نامه په خي لاس كښې ملاؤشي نواوازونه به كوي هاؤمُ اقرءوكتابيه. كافربه وائى يٰليتني لم اوت كتابيه، اودغه شان وائى به يويلتٰى، يحسرتىٰ، دهلاكت اودافسوس اوازونه به كوي (اللّهم اعذنابفضلك) (۵) يوه ندا به په آخركښې اوكړيشي چې يااهل الجنة خلودٌ لاموتٌ ويااهل النّارخلودٌ لاموت (الحديث).

﴿يَوْمَ تُوَلُّونَ﴾ بدل دې د ﴿يَوْمَ التَّنَادِ﴾ نه يعني په هغه ورځ چې اوبه ګرځئ تاسوشاكونكي، مطلب دادې چې كله داندا ګانې اوكړيشي چې دكوموذكرپه ﴿يَوْمَ التَّنَادِ﴾ كښې اوشو، نومجرمان به د موقف دحساب نه شاكونكي جهنم طرف ته به روان كړيشي، قاله قتادة (كبيروغيره) اونه به وي دوئ لره دعذاب دالله تعالى نه هيڅ څوك بچ كونكې، ضحاك رحمه الله وائي چې مطلب دادې چې كله مجرمان دجهنم خوف ناك اوازونه واوري نو ورنه منډې به كړي ، نوچې كوم طرف ته ځي فرشتو به ورته لارې بندې كړې وي او خپلو خپلو ځايونو ته به ئي واپس كوي.

﴿وَمَن يُضْلِلِ اللَّهُ فَمَا لَهُ مِنْ هَادٍ﴾دا يا كلام الهي دې چې په جواب دسوال كښې راغلې دې.چې آيادَرجل مؤمن په بيان سره فرعونيانوته څه فائده اوهدايت ملاؤشو؟ نوجواب اوشوچې چاله چې الله ﷻ دَضداوعنادپوجه ګمراه کړي،نوهغه ته بياڅوک هدايت نشي کولې.ياداکلام دَرجلِ مؤمن دې چې دې خبرو کښې د هدايت لوئ سامان پروت دې خو چې څوک الله جل جلاله د ضد او عناد د وجهې نه ګمراه کړي نو دې بيا هيڅ څوک هم په راه راست نشي راوستې.

| وَلَقَدْ جَآءَكُمْ يُوسُفُ مِن قَبْلُ بِالْبَيِّنَٰتِ فَمَا زِلْتُمْ فِى شَكٍّ |
|---|
| اوخامخاپه تحقيق سره راغلې وۀتاسوته يوسف ﷺ مخکښ دَدې نه په واضحو معجزوسره.نوهميشه وئ تاسوپه شک کښ |
| مِّمَّا جَآءَكُم بِهِۦ ۖ حَتَّىٰٓ إِذَا هَلَكَ قُلْتُمْ لَن يَبْعَثَ اللَّهُ |
| دهغې نه چې راغلې وو تاسوته په هغې سره تردې پورې چه کله هغه وفات شونو اوويل تاسوچه هرګزبه رانۀنه ليږي الله |
| مِنۢ بَعْدِهِۦ رَسُولًا ۚ كَذَٰلِكَ يُضِلُّ اللَّهُ مَنْ هُوَ مُسْرِفٌ مُّرْتَابٌ ﴿٣٤﴾ |
| ورستودَده نه هيڅ څوک رسول،هم ددې وجه نه ګمراه کوي الله تعالى هغه څوک چه دى اسراف کونکې.شک کونکې وي |
| الَّذِينَ يُجَٰدِلُونَ فِىٓ ءَايَٰتِ اللَّهِ بِغَيْرِ سُلْطَٰنٍ أَتَىٰهُمْ ۖ كَبُرَ مَقْتًا |
| هغه خلق چه جګړې کوي په آياتونودَالله کښ،بې دَ دليل نه چه راغلې وي دوئ ته،ځومره لوئ سبب دې دا جدال ، د ناراضګئ |
| عِندَ اللَّهِ وَعِندَ الَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ۚ كَذَٰلِكَ يَطْبَعُ اللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ قَلْبِ مُتَكَبِّرٍ جَبَّارٍ ﴿٣٥﴾ |
| په نيزدَالله ﷻ اوپه نزددَمؤمنانو.هم دغه شان مهرلګوي الله تعالى په ټول زړه دَمتکبرظالم باندې |

﴿ وَلَقَدْ جَآءَكُمْ يُوسُفُ ﴾داد رجل مؤمن د تقرير ځلورمه حصه ده چې ديکښې قوم ته په ايمان نه راوړلو توبيخ او ملامتيا ده چې تاسو د هغه آباؤو اجداد اولاد يئ چې هغوئ ته يوسف عليه السلام الله جل جلاله راليږلې وو او هغه ورته د الله جل جلاله د وحدانيت واضحه دلائل پيش کړي ووخو هغوئ بيا هم ايمان نه راوړو ، نو اوس تاسو هم د هغوئ په نقش قدم روان يئ،﴿وَلَقَدْ جَآءَكُمْ ﴾اى جاء الى آبائكم،نسبت دَ احوالودَ آباؤدې اولادته،ځکه چې يوسف ﷺ دوئ ته نه وۀمبعوث بلکه دَدوئ پلارانوته مبعوث وۀ،ياکيدَايشي چې بعضِ هغه

خلق چې یوسف ﷺ ورته مبعوث وؤ پدغه وخت کښې ژوندي وؤ. لکه په بعض تاریخونو کښې دي چې یوسف ﷺ دموسی ﷺ نه څلورشپیته(۶۴) کاله مخکښې تیرشوې وؤ. نوپدې کښې نسبت احوالودبعضو دې کُل ته(روح) ﴿بِالْبَيِّنَتِ﴾دې نه مرادواضح اومدلل بیان دتوحیددې چې وئیلې وؤ "آارباب متفرقون خیر"(یوسف) یاورته معجزات مراددي. اوس دې ورستوني آیاتونو کښې د دوئ د ګمراهئ څلوردرجات ذکر کیږي: (۱)شك (۲)ضلالت (۳)مجادله (۴)طبع یعني مهر جباریت،

﴿فَمَا زِلْتُمْ فِي شَكٍّ﴾ای آبائکم، دا د ګمراهئ اوله درجه ده چې ستاسوآباء همیشه دیوسف د رسالت په باره کښې په شك کښې وؤ، او ایمان ئې پرې نه وو راوړې،

﴿حَتَّىٰ إِذَا هَلَكَ﴾دیکښې د ګمراهئ دویمې درجې بیان دې چې هغه ضلالت دې ، یعني باوجود د دینه چې یوسف علیه السلام تاسو ته واضحه نشانیانې راوړې وې خو تاسو ایمان راوړلو په ځائ د هغه رسالت په باره کښې په شك کښې مبتلا شوئ، د هغې نتیجه دا وه چې یوسف علیه السلام حیات پورې خو شک وو خو چې څنګه هغه وفات شو نو خه ګمراه شوئ او صفا خو دا وئیل شروع کړو چې بس دا سلسله اوس ختمه شوه . دینه بعد به یو رسول هم نه راځي، دې تفسیر نه دا واضحه شوه چې دوئ دا وینا د تکذیب په بنیاد وه ، او څنې مفسرین فرمائي چې دوئ دا خبره بطورحسرت اوآفسوس کړیده، حضرت شاه صاحب رحمه الله فرمائي چې دیوسف ﷺ په ژوند کښې د مصر والا د ده دنبوت قائله نه وؤ. لیکن چې دې وفات شو او د مصر نظام سلطنت اوخزائن ګډ وډ شو نو بیا دوئ آرمان کولو چې ارمان دې چې داسې به بل رسول الله مبعوث نه کړي ! او غرض د رجل مؤمن دا وو چې اوس دموسی ﷺ نه انکارمه کوئ څکه چې بیابه وریسې ارمانونه کوئ، څکه چې دنعمت قدردزوال نه بعد وي.

﴿كَذَٰلِكَ يُضِلُّ اللَّهُ﴾ کاف په ﴿كَذَٰلِكَ﴾کښې یاکاف تشبیه دې، اومقصددادې چې لکه څرنګه چې اهل مصردشك په وجه ګمراه شول نودغه شان الله تعالی هرمسرف مرتاب ګمراه کوي، یاکاف پمعنیٰ دلام تعلیلیه سره دې ای لذلكَ اومشارٌالیه شكِ دې یعني دالله تعالی په توحیداودین کښې دشك پوجه مسرف مرتاب ته الله ﷻ هدایت نه کوي اوګمراه کوي ئې، ﴿مُسْرِفٌ﴾ کثرت سره ګناه کونکې او مشرك ورته مراد دې ﴿مُرْتَابٌ﴾دیرشك کونکې چې په درجه دانکارکښې اوګرځي

﴿ الَّذِينَ يُجَٰدِلُونَ ﴾ دا هم د رجل مؤمن د بيان حصه ده او ديکښې التفات دي خطاب نه غائب ته د پاره د تلطف ، چې ګورئ د الله جل جلاله احکامات او آيات بغير د څه دليل نه مه رد کوئ او خامخا مخالفت ئې مه کوئ ، دا صفت د الله جل جلاله ډير ناخوښه دې ، او ديکښې دګمراهئ دريمې درجې بيان هم اوشو چې هغه مجادله ده ، چې انسان ضلالت نه ورستو که چرته د الله جل جلاله په آيتونو باندې غور اونکړي نو هغه کښې د مجادلې صفت پيدا شي اودا د الله په نيز مبغوض ترين صفت دې ،« الَّذِينَ »مبتدا دې او « كَبُرَ مَقْتًا » ورله خبر دې ، كَبُرَ فعل تعجب دې او ضمير مستتر پکښې راجع دې مجادلې ته ، چې په هغې يُجَٰدِلُونَ فعل دلالت کوي ،او مَقْتًا تمييز محول عن الفاعل دې ، اي: کبر مقت جدالهم عند الله ،

﴿ وَعِندَ الَّذِينَ ءَامَنُوا ﴾ دا عطف دې په عند الله باندې او ديکښې د مؤمنانو فضيلت اظهار مقصود دې چې د هغوئ صفت دا دې چې جدال او جهګړې نه کوي بلکه کوم شې چې الله جل جلاله ته خوښ وي هغه دوئ ته هم خوښ وي او کوم شې چې الله جل جلاله ته ناخوښ وي هغه دوئ ته هم ناخوښ وي . او دغه شان دې کښې ديته هم اشاره ده چې د الله جل جلاله د ناخوښئ يو مظهر دا هم دې چې مؤمنان مجموعي طور باندې يو شې رد کړي . کقول ابن مسعود رضي الله عنه :ما رأئ المسلمون حسناً فهو عند الله حسن ، وما راوا سيئاً فهو عند الله سيئ (مسند احمد: ۳۶۰۰)

﴿ كَذَٰلِكَ يَطْبَعُ اللَّهُ ﴾ دا څلورمه درجه ده دګمراهئ ، چې د مجادلې په نتيجه آخر کار په انسان مهر جباريت اولګي ، بيا ورته هدايت نه ملاويږي،کاف په﴿ كَذَٰلِكَ ﴾کښې ياتشبيهيه دې يعني لکه څرنګه چې پدې مذکوره وجوهاتوسره دفرعون اوهامان په زړونوباندې مهرجباريت لګيدلې وؤنودغه شان الله تعالى دهرمتکبراوجبارپه زړه مهرلګوي،ياکاف پمعنى دلام تعليليه دې "اى لذالك" اومشاراليه.جدال دې يعني ددې جدال پوجه الله تعالى مُهردَجباريت لګوي ﴿ عَلَىٰ كُلِّ قَلْبِ ﴾ كلّ افرادي ندي چې معنىٰ داشي چې الله تعالى دَ هر هر فرد دَ متکبر باندې مُهردَطبع لګوي.ځکه بعضِ متکبرته کله هدايت هم اوشي بلکه کلّ مجموعي دې، يعني الله تعالى دَمتکبراودَجبارپه ټول زړه مهرلګوي،يعني دې مهراحاطه کړې وي اوټول زړه ئې ورته بندکړې وي﴿مُتَكَبِّرٍ﴾چې مُعانداونه منونکې وي دَالله تعالى دَاحکاماتو﴿جَبَّارٍ﴾چې ظلم کونکې وي په مخلوقاتودَالله تعالى باندې يعني ظالم وي.

وَقَالَ فِرْعَوْنُ يٰهَامٰنُ ابْنِ لِيْ صَرْحًا لَّعَلِّيْۤ اَبْلُغُ الْاَسْبَابَ ﴿۳۶﴾ اَسْبَابَ السَّمٰوٰتِ

اوویل فرعون اې هامانه! جوړکړه ماله اوچت عمارت، دپاره ددې چه اورسم زه لارونه. لاروداسمانونوته

فَاَطَّلِعَ اِلٰۤى اِلٰهِ مُوْسٰى وَاِنِّيْ لَاَظُنُّهٗ كَاذِبًا ؕ وَكَذٰلِكَ زُيِّنَ لِفِرْعَوْنَ

پس چه اوخېژمه زه اله دموسى ته. اوبېشکه زه ګمان کوم په ده د دروغژن. دغه شان ښائسته کړې شوفرعون ته

سُوْٓءُ عَمَلِهٖ وَصُدَّ عَنِ السَّبِيْلِ ؕ وَمَا كَيْدُ فِرْعَوْنَ اِلَّا فِيْ تَبَابٍ ﴿۳۷﴾

ناكاره عمل دهغه اومنع كړې شوي وڅسمې لارې نه. اونه وؤمكردفرعون مګرپه تباهى كښې.

﴿ وَقَالَ فِرْعَوْنُ يٰهَامٰنُ ﴾ د "رجل مؤمن" مدلل او متاثر کن تقرير اوريدلو نه ورستو فرعون لعين سره دا خوف پيدا شو چې قوم چرته ايمان رانه وړي "نو فوراً ئي د دې اثر ختمولو او خلقو توجه بدلولو دَ پاره ډېر مکاره او عياره طريقه اختيار کړه او خپل وزير "هامان" ته ئي او ئيلوچې کچرته واقعي ځما نه علاوه بل اله وي او موسي د هغه پيغمبر وي نو ته ماله يو دنګ عمارت جوړ کړه چې ځه ورسره آسمان لارو ته اورسيږم او بيا آسمان ته اوخيژم او دَ موسي اله اووينم . او دا خو ظاهر خبره ده چې څومره دنګ عمارت او سيړهئ ولې نه وي خو آسمان ته رسائي ورسره نشي کيدې ، نو دې نه ئي دا نتيجه اخذ کړه چې دې دروغ ژن دې ، ځکه که ځما نه ما سوا بل اله وې نو هغه ته به رسائي ممکن وه او دهغه ليدل کتل به ممکن وو ، دهغه به يو قصر سلطاني او تخت سلطنت وو لکه څنګه چې د دنيا بادشاهانو وي . او دا خو شته نه ،نو معلومه شوه چې ځما نه ماسوا بل اله هم نشته ، او چې اله نشته نو دې رسول د کوم ځايه راغې ؟!

هرچه ده داخبره چې هامان آياددې حکم تعميل کړې وؤاوکه نه وؤکړې دغه رنګه نور تفصيل په سورة قصص: فاوقدلى ياهامٰنُ على الطِّينِ (آيت:۲۸) کښې تيرشويدې ، ﴿ صَرْحًا ﴾ ښکاره اواوچت تعميرته وائى ﴿ الْاَسْبَابَ ﴾ جمع دَسبب ده اسباب دَختلولکه رسئ وغيره ياورنه مراد لارې دى يادروازې دى. ﴿ اَسْبَابَ السَّمٰوٰتِ ﴾ بيان دې دَ﴿ الْاَسْبَابَ ﴾ ، ﴿ فَاَطَّلِعَ ﴾ جواب دَلعلّ دې، چې په ﴿ لَعَلِّيْۤ ﴾ کښې ذکردې، ياجواب دَامردې چې ﴿ ابْنِ لِيْ ﴾ دې او دَ"فا" نه بعد "ان" مقدردې: اى فان اطلع. ﴿ وَاِنِّيْ لَاَظُنُّهٗ كَاذِبًا ﴾ يعني ځمايقين دادې چې موسى عليه السلام په دعوه دَخپل رسالت کښې

یا په بیان دَتوحید کښ دروغژن دې(نعوذبالله). ﴿وَكَذٰلِكَ زُيِّنَ﴾ یعني څنګه فرعون ته دا دلیل مزین کړې شوې وو حالانکه د دې هیڅ علمي او عقلي بنیاد نه وو: ځکه چې یو څیز عدم رؤیت یا عدم علم د هغې عدم وجود دلیل نه وي ، خو ده ته شیطان دا دلیل ډیر مضبوط ښکاره کړې وونو دغه شان دَ ده هر عمل بد ده ته مزین کړې شوې وو او د خیر اوکامیابۍ د لارې نه منع کړې شوې وو

﴿وَمَا كَيْدُ فِرْعَوْنَ إِلَّا فِي تَبَابٍ﴾ تباب ای هلاك وخسران. دا ادخال الهي دې چې دَفرعون هرتدبیرناکامه وؤ، اوپه هیڅ تدبیرسره ئې خپل ځان دَالله تعالی دګرفت نه بچ نه کړوتردې چې سره دَخپل لښکرنه په دریاب کښ غرق شو او موسي علیه السلام ته ئې هیڅ نقصان او نه رسولو.

وَقَالَ الَّذِيٓ اٰمَنَ يٰقَوْمِ اتَّبِعُوْنِ اَهْدِكُمْ سَبِيْلَ الرَّشَادِ ﴿٣٨﴾ يٰقَوْمِ

اواُویل هغه کس چه مومن وؤ،ای قومه زما تابعداري وکړئ زمااوبه ښایم تاسوته لاره سمه،ای قومه زما

اِنَّمَا هٰذِهِ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا مَتَاعٌ ۫ وَّاِنَّ الْاٰخِرَةَ هِيَ دَارُ الْقَرَارِ ﴿٣٩﴾ مَنْ عَمِلَ سَيِّئَةً

بیشکه دَاژونددَدُنیا لږه نفعه ده اوبیشکه آخرت صرف هغه کوردَقرارئ دې،څوك چې عمل وکړی بد

فَلَا يُجْزٰٓى اِلَّا مِثْلَهَا ۚ وَمَنْ عَمِلَ صَالِحًا مِّنْ ذَكَرٍ اَوْ اُنْثٰى وَهُوَ مُؤْمِنٌ

نوهغه ته بدله نشي ورکولې مګرپه شان دَهغې،اوڅوك چه عمل وکړي نیك سړي وي اوکه ښځه اودې مومن وي

فَاُولٰٓئِكَ يَدْخُلُوْنَ الْجَنَّةَ يُرْزَقُوْنَ فِيْهَا بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴿٤٠﴾ وَيٰقَوْمِ مَا لِيٓ

نودغه خلق داخلیږي به جنت ته رزق به ورکولیشي به دوئ ته په هغې کښ بې حسابه.اواې زماقومه! څه دی ماله

اَدْعُوْكُمْ اِلَى النَّجٰوةِ وَتَدْعُوْنَنِيٓ اِلَى النَّارِ ﴿٤١﴾ تَدْعُوْنَنِيْ لِاَكْفُرَ بِاللّٰهِ

چه دعوت درکوم زه تاسوته نجات طرف ته اوتاسودعوت راکوئ ماته اُورطرف ته.دعوت راکوئ ماته چه زه کفروکړم په الله تعالی

وَاُشْرِكَ بِهٖ مَا لَيْسَ لِيْ بِهٖ عِلْمٌ ؗ وَّاَنَا اَدْعُوْكُمْ

اوشریك اوګرځوم دَالله سره هغه چه نیشته دې ماسره دَهغه په معبودوالي باندې هیڅ دلیل،اوځه دعوت درکوم تاسوته

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| إِلَى | الْعَزِيزِ | الْغَفَّارِ ﴿٤٢﴾ | لَا جَرَمَ | أَنَّمَا | تَدْعُونَنِي | إِلَيْهِ |

هغه ذات طرف ته چه غالب دې بخښونكې دې يقيني ده داخبره چه بيشكه هغه معبود چې راغواړئ تاسو ما عبادت دهغه ته

لَيْسَ لَهُ دَعْوَةٌ فِي الدُّنْيَا وَلَا فِي الْآخِرَةِ وَأَنَّ مَرَدَّنَا إِلَى اللَّهِ

نيشته دې هغه دپاره طاقت دقبولو دعانه په دنياكښ اونه په آخرت كښ اوبيشكه پيشي زمونږه الله تعالى ته ده

وَأَنَّ الْمُسْرِفِينَ هُمْ أَصْحَابُ النَّارِ ﴿٤٣﴾ فَسَتَذْكُرُونَ مَا أَقُولُ لَكُمْ

اوبيشكه اسراف كونكي هم دوئ خاوندان داوردي،نوزرده چه بيابه ياده وئ تاسوهغه خبره چه زه ئې كوم تاسوته،

وَأُفَوِّضُ أَمْرِي إِلَى اللَّهِ إِنَّ اللَّهَ بَصِيرٌ بِالْعِبَادِ ﴿٤٤﴾ فَوَقَاهُ اللَّهُ سَيِّئَاتِ

اوزه حواله كوم خپل كارالله تعالى ته،بيشكه الله تعالى ليدونكي دې دهغه بندګانولره.نوبچ كړوده لزه الله دسختو

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مَا | مَكَرُوا | وَحَاقَ | بِآلِ | فِرْعَوْنَ | سُوءُ | الْعَذَابِ ﴿٤٥﴾ | | |
| تدبيرونونه | چې | دوئ | جوړې | كړې | وو | او | ګيركړل آل فرعون | ناكاره عذاب |

﴿ وَقَالَ الَّذِي آمَنَ يَا قَوْمِ اتَّبِعُونِ ﴾ داهم درجل مؤمن دبيان حصه ده چې پدې كښ دې خپل ايمان ظاهره وي اوقوم ته دخپلې اتباع دعوت وركوي چې ماپه حضرت موسى ﷺ باندې ايمان راوړې دې تاسوهم پدې كښ ځماموافقت وكړئ، ﴿ أَهْدِكُمْ سَبِيلَ الرَّشَادِ ﴾ اشاره ده چې فرعون دعوه د خدائي كوي خو دا لاره دهدايت نده بلكه دګمراهئ لاره ده.چې وئيلي وۆچې، ﴿ أَهْدِكُمْ سَبِيلَ الرَّشَادِ ﴾،

﴿ يَا قَوْمِ إِنَّمَا هَذِهِ الْحَيَاةُ الدُّنْيَا ﴾ تزهيدمن الدنيادې،چې ددنيامال دولت، عهدې،لذتونه وغيره ټول دهوكه ده،نوپدې اعتبارمه كوئ بلكه اعتبارپه اخرت پكاردې ځكه چې آخرت، ﴿ دَارُ الْقَرَارِ ﴾ كوردهميشه والي دې،چې فناكيدل پكښ نشته دې،

﴿ مَنْ عَمِلَ سَيِّئَةً ﴾ تخويف اخروي دې،چې چاځومره ګناه وكړو نودهغې په قدربه ورته بدله اوسزاملاويږي،داآيت اصل كبيردې په شريعت كښ چې په جناياتوكښ سزاوركول په مثل سره مشروع دى اوزائدعلى المثل مشروع ندې، ﴿ وَمَنْ عَمِلَ صَالِحًا ﴾ بشارت أخروي دې چې

اصلاح دآخرت په ایمان اونیك عمل سره کیږي،اوداهم ظاهره شوه چې دَالله تعالی رحمت په غضب دَهغه باندې غالب دې ځکه چې دګناه بدله بقدرمثل ورکوي اودَایمان اونیك عمل بدله داده چې ﴿بِغَيْرِ حِسَابٍ﴾ ای بغیرعددٍ یعني بې شماره، کنایه ده دکثرت نه،یعني دَعمل په مقدار به ورته اجرنه ورکوي بلکه ځوځوځنده زیات به ورکوي.

﴿وَيَٰقَوْمِ مَا لِيٓ أَدْعُوكُمْ﴾داهم دَرجلِ مؤمن دَبیان حصه ده چې پدې کښ دې نورهم وضاحت کوي چې داعجیبه خبره ده چې ځه تاسوته دَایمان دعوت درکوم اودا چې د الله جل جلاله عبادت کوئ او موسي علیه السلام تصدیق اوکړئ چې پدې سره نجات ملاویږي اوتاسوماکفرته راغواړئ چې هغه دَجهنم لارده،ځما د جانبه دوستئ او خیر خواهئ غوښتنه او ستاسو د جانبه دشمنئ او بدو غوښتنه !

﴿ تَدْعُونَنِي لِأَكْفُرَ بِاللَّهِ ﴾تفسیردې دَماقبل په طریقه دَ لُف نشرغیرمرتب سره،یعني تاسومادوزخ طرف ته راغواړئ هغه داچې ځه کفروکړم دَالله تعالی په ذات باندې، ﴿وَأُشْرِكَ بِهِ﴾ او شریك اوګرځوم الله تعالی سره﴿مَا لَيْسَ لِي بِهِ عِلْمٌ﴾ای بمعبودیّته،هغه بُتان چې دَهغې په معبودیة او الوهیة باندې ماسره هیڅ دلیل نشته دې.﴿مَا لَيْسَ لِي بِهِ عِلْمٌ﴾نفي دَعلم کنایه ده دَنفي دَمعلوم نه یعني دَالله ﷻ نه ماسوی بل معبودبرحق نشته دې،اوځه تاسونجات طرف ته راغواړم هغه داچې﴿الْعَزِيزِ ﴾غالب دې په انتقام کچرې تاسوموسیٰ ﷺ یاما ته مو تکلیف راکړو﴿الْغَفَّارِ﴾ بخونکې دې کچرې توبه موو کړه،

﴿لَا جَرَمَ أَنَّمَا تَدْعُونَنِي إِلَيْهِ﴾ یعني حقه ده داخبره چې تاسوماکوموممعبودانو طرف ته راغواړئ نوهغوئ دَچاهیڅ حاجت نه شي پوره کولې نه دنیاوي نه اُخروي.دَ﴿لَا جَرَمَ﴾ په اصل معنیٰ کښ مختلف اقوال دی چې حضرت والدمحترم نورالله مرقده وبرّدمضجعه ،په سورة هودآیت(۲۲)کښ ذکرکړیدی هغورجوع ورته اوکړئ. ﴿أَنَّمَا تَدْعُونَنِي إِلَيْهِ﴾ ان حرف مشبه بالفعل دې ،ما موصوله ورله اسم دې ، " تدعونني الیه " جمله ورله صله ده ،او " لیس له دعوة " جمله خبر ده د ان.

﴿ لَيْسَ لَهُ دَعْوَةٌ فِي الدُّنْيَا ﴾عبارة(۱)یاپه حذف دَمضاف سره دې،ای لیس له استجابةُ دعوةٍ،یعني دااصنام چې تاسوهغې طرف ته ماته دعوة راکوئ په هغوئ کښ طاقت

دَ دُعاقبلولو نشته دي او دَ چاحاجت اودعانشي قبلولې ۲ يايه حذف دموصوف سره دې اى لي س له دعوةٌ مستجابةٌ، مطلب دادې چې دااصنام نه مستحق دغوختني دى اوكه بالفرض والمحال دَدوئ نه غوښتنه اوكړېشي نودوئ جواب نشي وركولې.لكه په سورة فاطر(۱۴)كښې دي ان تدعوهم لايسمعوادُعاءكم ولوسمعواما استجابوالكم،نودَداسې قسمه معبودانوعبادت كول خوډېره بې وقوفي اوناداني اوګمراهي ده،كقوله تعالى:ومن اضل ممن يَدعوامن دُون الله من لاَيستجيب له الى يومِ القيامة وهم عن دُعائهم غفلون(احقاف ۵)(۳)كلبي رحمه الله وائي چې دوئ ستاسوشفاعت نشي كولې نه په دنياكښې(يعني دَالله تعالى دَعذاب نه مونشي بچ كولې)اونه په آخرت كښې(۴)بعضِ وائي چې مراددادې چې دوئ دَځپل ځان عبادت كولوته څوك نشي رابللې اومعبودبرحق خوهغه وي چې دعوت دعبادت وركړي خلقوته.لكه الله تعالى معبودبرحق دې نوځپل عبادت طرف ته خلق راغواړي، ﴿وَلَا فِي ٱلْآخِرَةِ﴾اوپه آخرت كښې به هم ستاسودَعبادت نه انكاراوكړي،كقوله تعالى: ويومَ القيامة يكفرون بشركِكم(فاطر ۱۴).

﴿وَأَنَّ مَرَدَّنَآ إِلَى ٱللَّهِ﴾عطف دې په﴿أَنَّمَا تَدْعُونَنِيٓ إِلَيْهِ﴾ يعني خامخازمونږمرجَع الله تعالى دې دَهغه په عدالت كښې به حاضريږو،نو﴿وَأَنَّ ٱلْمُسْرِفِينَ﴾چاچې زياتي كړې وي نودوزخ ته به ځي،مراددَ﴿ٱلْمُسْرِفِينَ﴾ نه يامشركين دى،ځكه چې شرك په ګمراهئ كښې اسراف دې او د هُمْ أَصْحَٰبُ ٱلنَّارِ مطلب دا دې چې دوئ به هميشه په اور كښې وي او يا ٱلْمُسْرِفِينَ نه مراد ګناه كښې اسراف كونكي دي نو مؤمن ګناه ګار پكښې هم داخل دي او أَصْحَٰبُ ٱلنَّارِ ورته په اعتبار دمكث طويل وئيلي شوي دي ،

﴿فَسَتَذْكُرُونَ مَآ أَقُولُ لَكُمْ﴾دا دَ رجل مؤمن تقرير آخري حصه او د بيان خاتمه ده په لطيف انداز كښې.چې زمانصيحت خواوس نه منئ خوچې كله عذابِ الهي راشي نوبيابه زمادَخبرورارمان وكړئ. ما په﴿مَآ أَقُولُ لَكُمْ﴾كښې يامصدريه دي اى فستذكرون قولي لكم اذا حلّ بكم العذاب(قرطبي)يعني چې كله درباندې عذاب راشي نوبيابه درته زماخبره ياده شي لكه صوفي عبد الرحمان بابا رحمه الله وائي شعر:

دَرحمان ويل به هله درته يادشي	چې دى يوكمرته مخ بل ته دې شاشي

يا ما موصوله دي اى الّذی اقولُ لكم(قرطبي)كله چې رجلِ مؤمن پوره تفصيلي بيان اوكړو اوزړه ئی په حق وينابانديٰ خه يخ كړو.ازوالد ﷺ نوفرعون دده دقتل اراده وكړه نورجلِ مومن دااووي، ﴿وَأُفَوِّضُ أَمْرِيٓ﴾يعني ځما مقصد دعوت رسول او نصيحت كول وو . هغه ما تاسو ته اوكړو اوس ستاسو خوښه ده ايمان راوړئ او كه نه راوړئ ؟ ما خپل ځان او خپله معامله الله جل جلاله ته سپارلې ده ، هغه خپلو بندگانو ته گوري او هغه ځماحامي او ناصر دې ،

﴿ فَوَقَىٰهُ ٱللَّهُ سَيِّـَٔاتِ مَا مَكَرُواْ ﴾دې آياتونو كښې د حق وباطل معركې آخري انجام بيان دې چې هغې خلاصه دا ده : (۱) چې فرعون په دې دنيا هم ناكام شو او سره د لښكرو غرق شو. (۲) په قبر او برزخ كښې ورته هم عذاب ميلاويږي (۳) او آخرت كښې به ورته د دينه سخت عذاب ميلاويږي ، نو دې آيت كښې د فرعون اول انجام ذكر دې چې موسي عليه السلام او دَ هغه ملگري الله جل جلاله كامياب كړو او فرعون سره دَ لښكرو نه غرق شو (( فَوَقَىٰهُ ٱللَّهُ )) كښې ضمير منصوب رجل مؤمن ته راجع دې ،اي: نجاه الله مع موسى (( سَيِّـَٔاتِ مَا مَكَرُواْ ))دينه مراد د فرعون مختلف تدابير او عذابونه دي (( وَحَاقَ بِـَٔالِ فِرْعَوْنَ ))دينه مراد فرعون متبعين دي او فرعون پكښې بطريق اولى داخل دې ؛ ځكه چې متبعينو ته ئي دا سزا ميلاو شوه نو دې خو سردار وو نو دې خو ئي خامخا مستحق وو ، (( سُوٓءُ ٱلْعَذَابِ )) نه مراد غرقيدل په بحيره قلزم كښې ، څنې مفسرينو ددې آيت تفسير د حضرت ابن عبا س رضي الله عنهما دا قول گرځولې دې چې كله رجل مؤمن دا تقرير اوكړو نو فرعون ورله د قتل دهمكي وركړه او د نيولو حكم ئي جاري كړو نو دې د دغه ځائ نه اوتختيدو او غر ته لاړو، فرعون دده په تالاش كښ زر (۱۰۰۰)كسان اوليږل چې دې راولئ،ليكن داكسان چې غره ته لاړل نودې رجلِ مؤمن مونځ كولو اودَه نه گير چاپيره ليوگان شرمخان ولاړ وۇ،بعضِ كسانو دَ هغه دَ نيولو اراده وكړه نو ليوگانو اوخوړل، بعضِ كسان دَتندې په وجه مړه شول،اوبعضِ كسان واپس راوتختيدل، نو چې دوئ فرعون خوا ته ناكامَ واپس شول نوفرعون ددې ټولوقتل كولوحكم اوكړو ،نوپهانسي ئي كړل اوقتل ئي كړل (روح المعاني)اوالله ﷻ رجلِ مؤمن ته دَدوئ دَتدبيربدنه حفاظت وركړو ، دې تقدير باندې د (( فَوَقَىٰهُ ٱللَّهُ )) نه صرف د رجل مؤمن نجات مراد دې ،((بِـَٔالِ فِرْعَوْنَ)) فوجيان د فرعون دي

چې د ده نیولو د پاره تللي وو او «سُوٓءُ الْعَذَابِ» نه مراد شرمخانو خوړل . تندي نه مړیدل او قتل کیدل دي . خو اول تفسیر راجح دي .

| |
|---|
| اَلنَّارُ يُعْرَضُوْنَ عَلَيْهَا غُدُوًّا وَّعَشِيًّا ۚ وَيَوْمَ تَقُوْمُ السَّاعَةُ ۚ اَدْخِلُوْٓا |
| اور د جهنم، دوئ پیش کولیشي په هغې باندې صبااوبیګا اوپه کومه ورځ چه قائم شي قیامت.فرشتوته به اوئیلي شي داخل کړئ |
| اٰلَ فِرْعَوْنَ اَشَدَّ الْعَذَابِ ﴿٤٦﴾ وَاِذْ يَتَحَاجُّوْنَ فِي النَّارِ فَيَقُوْلُ الضُّعَفٰٓؤُا لِلَّذِيْنَ |
| آل دفرعون ډیرسخت عذاب ته.اوکله چې داجهنمیان جګړه کوي په اُورکښ نووائي به کمزوري(اتباع)هغه خلقوته |
| اسْتَكْبَرُوْٓا اِنَّا كُنَّا لَكُمْ تَبَعًا فَهَلْ اَنْتُمْ مُّغْنُوْنَ عَنَّا نَصِيْبًا مِّنَ النَّارِ ﴿٤٧﴾ |
| چه تکبرئي کړي وو چه بیشکه وؤمونږه ستاسوتابع.نوآیاتاسولرې کولیشئ زمونږنه څۀ حصه دأور. |
| قَالَ الَّذِيْنَ اسْتَكْبَرُوْٓا اِنَّا كُلٌّ فِيْهَآ اِنَّ اللّٰهَ قَدْ حَكَمَ |
| اوبه وائي هغه خلق چه تکبر ئي کړي وو(متبوعین)بیشکه مونږټول پدیکښ یو ،بیشکه الله تعالی کلکه فیصله کړیده |
| بَيْنَ الْعِبَادِ ﴿٤٨﴾ وَقَالَ الَّذِيْنَ فِي النَّارِ لِخَزَنَةِ جَهَنَّمَ ادْعُوْا رَبَّكُمْ |
| په مینځ دبندګانو کښ. اواوبه وائي هغه خلق چه په جهنم کښ دي،چوکیدارانودجهنم ته سوال وکړئ خپل رب ته |
| يُخَفِّفْ عَنَّا يَوْمًا مِّنَ الْعَذَابِ ﴿٤٩﴾ قَالُوْٓا اَوَلَمْ تَكُ تَاْتِيْكُمْ رُسُلُكُمْ |
| چه سپک کړي زمونږنه یوه ورځ دعذاب.هغوئ به ورته اووائي،آیاولې نه وؤراغلی تاسوته رسولان ستاسو |
| بِالْبَيِّنٰتِ ۚ قَالُوْا بَلٰى ۚ قَالُوْا فَادْعُوْا ۚ وَمَا دُعٰٓؤُا |
| په واضحه معجزوسره، دوئ به اووائي: ولې نه ! ،اوبه وائي ورته فرشتې چه تاسوسوال وکړئ،اونده دعا |
| الْكٰفِرِيْنَ اِلَّا فِيْ ضَلٰلٍ ﴿٥٠﴾ |
| دکافرانوپه جهنم کښ مګرضائع ده. |

﴿اَلنَّارُ يُعْرَضُوْنَ عَلَيْهَا﴾ دى آياتونو كښ دَفرعونيانو د دويم انجام ذكر دې چې د قبر زندګي ئي د عذاب زندګي ده ،«اَلنَّارُ» مبتدا دې او «يُعْرَضُوْنَ» ورله خبر دې او دا پورا جمله بدل الاشتمال دې د «وَحَاقَ بِاٰلِ فِرْعَوْنَ» جملې نه څکه چې «سُوْٓءُ الْعَذَابِ» نه مراد غرقيدل دې .او غرق مشتمل دې په موت، اوموت د دوئ مشتمل دې په عذاب ،او يا «اَلنَّارُ» بدل كل دې د «سُوْٓءُ الْعَذَابِ» نه او «يُعْرَضُوْنَ» جمله ورله حال ده خو دې تقدير باندې ضروري ده چې «سُوْٓءُ الْعَذَابِ» نه مراد عذاب قبر شي او پاتې شول غرقيدل نو د هغې ذكر دلته نشته .‹كذا في التحرير والتنوير›

﴿غُدُوًّا وَّعَشِيًّا﴾ ياكنايه ده دَدوام نه يعني هروخت پدوئ اورپيش كولې كيږي.لكه د جنتيانوباره كښ الله تعالى فرمائي:ولهم رزقهم فيهابكرةً وعشيًا ‹مريم ٦٢›ياورنه مرادخپله معنى يعني صبااوبيګادې دَدُنيادَورځوپه حساب باندې.يعني څه وخت په اول دَورځې كښ ورته عذاب وركړې شي بياورنه چې لږ كړيشي نودوئ به داګمان اوكړي چې بيابه نه را واپس كيږي نوپه آخردَورځې كښ ورباندې بياراشي كقوله تعالى:كلّماارادواان يّخرجوا منها أُعيدوا فيها: ‹سجده ٢٠›اووددې:عرض النار:په :آل فرعون:باندې تفسيرپه روايت دَابن مسعودﷺ كښ راغلې دې چې:انّ ارواحهم فى اجوافِ طيرسودتغدوعلى جهنّم وتروحُ كلّ يومٍ مرتين فذلك عرضها:‹ابن كثير،قرطبي›يعني لكه څرنګه چې دَشهيدانوارواح دَ:طيورخضر:په حواصلو كښ داخل شي اودَجنت سيلونه كوي نودغه شان دَ فرعونيانو روحونه، طيور سود ‹تورو مرغانو›په حواصلوكښ داخل دى او هر صبا او بيګاه جهنم طرف ته ليږلې كيږي،اودغه شان حال دَهركافروي:انّ الكافراذامات عُرض على النّاربالغداة والعشيّ‹بخاري›يعني كافرچې مړشي نو روزانه صبااوبيګادې په اور پيش كيږي ، اودَمومن په باره كښ دي:وانّ المومن اذامات عُرض رُوحه على الجنّة بالغداة و العشيّ،مؤمن چې كله وفات شي نودده روح سهار او بيګا جنت باندې پيش كولې كيږي،په صحيحينوكښ دَابن عمرﷺ روايت راغلې دې چې حضورﷺ فرمائي:انّ احدكم اذامات عُرض عليه مقعده بالغداة والعشيّ ان كان من اهلِ الجنة فمن اهلِ الجنّة وان كان من اهلِ النارفمن اهل النّار فيقال:هذا مقعدك حتّى يبعثك الله تعالى‹رواه البخاري فى الجنائز›

﴿وَيَوْمَ تَقُومُ ٱلسَّاعَةُ أَدْخِلُوٓا۟ ﴾دې کښې د آخري انجام ذکر دې ، دَ ادخلوا نه مخکښې يُقال للملائكة مقدر دې،يعني دَقيامت په ورځ به ملائکوته اووئيلی شي چې داخل کړئ آل فرعون سخت عذاب ته،په يو قرائت کښې "اُدخلوا" راغلې دې امر دې دَ دخل يَدخُل دخولأنه او آل منصوب دې په تقدير دَحرف ندا سره اى اُدخلوا ياآل فرعونَ نو بنا په دې قرأت همزه په ادخلوا کښې وصلي ده، او دَاول قرأت په بنا همزه قطعي ده دَ ادخال نه ﴿أَشَدَّ ٱلْعَذَابِ ﴾اشد په نسبت سره عذاب دَ قبر ته، يااشد عذاب دَجهنم ته ئي داخل کړئ.

**فائده**: داآيت په اثبات د عذاب قبر باندې واضح دليل دې ځکه چې دلته اول د ﴿ٱلنَّارُ يُعْرَضُونَ عَلَيْهَا ﴾ ذکر دې چې سحر او بيګا په دوئ اور پيش کولې شي او بيا د ﴿وَيَوْمَ تَقُومُ ٱلسَّاعَةُ أَدْخِلُوٓا۟ ﴾ ذکر دې ،چې قيامت په ورځ به ورله د دينه سخت عذاب ورکولې کيږي ، نو دينه دوه خبرې ثابتې شوې : (۱) يو دا چې دا اول عذاب د دويم عذاب نه غير دې ؛ ځکه چې په مينځ کښې ئي حرف عطف راغلې دې او دا د مغائرت فائده ورکوي .(۲) دويم دا چې ﴿وَيَوْمَ تَقُومُ ٱلسَّاعَةُ ﴾ نه معلوميږي چې ﴿ٱلنَّارُ يُعْرَضُونَ عَلَيْهَا ﴾ عذاب د قيامت عذاب نه مخکښې دې ، او دا سوا د قبر عذاب نه بل عذاب نشي کيدې ، دې نه علاوه نور آياتونه او کنړ شمير احاديث په اثبات د عذاب قبر دلالت کوي او ددينه انکار لوئ ضلالت او قريب کيدل دي کفر ته.

﴿ وَإِذْ يَتَحَآجُّونَ فِى ٱلنَّارِ ﴾داتخويف اُخروي دې هغوخلقوته چې دَباطل اتباع کوي.لکه څرنګه چې آل فرعون دَفرعون اتباع وکړه نو په عذاب کښې مبتلاشول نودغه شان چې څوک دَباطل اتباع کوي نودَخپلو متبوعينو سره به په جهنم کښې وي اوجګړې به ورسره کوي، دَ "اذ" عامل په نزد دَ بعضو مقدر دې چې اذکر دې اى اذكروقت تخاصمهم فى النار(روح) ﴿فَيَقُولُ ٱلضُّعَفَٰٓؤُا۟ ﴾ تفصيل دې دَمخاصمې.دَضعفاء نه مراداتباع دى چې په عقل اوفهم رائ کښې ضعيف وو.﴿لِلَّذِينَ ٱسْتَكْبَرُوٓا۟ ﴾ نه مراد متبوعين دي چې اعراض اوتکبرئ کړيدې دَايمان اواطاعت درسول ﷺ نه،﴿إِنَّا كُنَّا لَكُمْ تَبَعًا ﴾تبعًا ياجمع دَتابع ده،يعني مونږستاسوتابع وُو په تکذيب دَرسولانو کښې،يامصدر دې او اسنادئې مبالغةً شويدې په اتباع کښې.

﴿فَهَلْ أَنتُم مُّغْنُونَ﴾ استفهام يا حقيقت باندې محمول دې چې مونږ خو ستاسو خدمت ګاران وو که څه طريقه وي د عذاب نه د بچ کيدلو نو بچ مو کړئ ؟ او يا د پاره د توبيخ او ملامتيا دې او د متبوعينو تعجيز مقصود دې چې دنيا کښې مو ځان پسې راکاږلو . اوس مو د عذاب نه بچ کړئ کنه !

﴿قَالَ الَّذِينَ اسْتَكْبَرُوا﴾ دا جواب دې د متبوعينو ، که استفهام خپلې حقيقي معنې کښې واغستلې شي نو بيا تقرير داسې دې چې ګورئ نه مونږ خپله په عذاب کښې اخته يو . که مونږ چرته عذاب لرې کولې شوې نو اول به مو د ځان نه لرې کړې وې . او که استفهام د توبيخ د پاره وي نو بيا ئې تقرير داسې دې چې مونږ مه ملامته کوئ . مونږ هم درسره عذاب کښې مبتلا يو ، داسې نه ده چې تاسو مو مخکښې کړي يئ او ځان مو ترينه بچ کړې دې ، ﴿إِنَّا كُلٌّ فِيهَا﴾ ((كُلٌّ)) مبتدا دې ، ((فِيهَا)) ورله خبر دې او پوره جمله خبر ده د "ان" ﴿إِنَّ اللَّهَ قَدْ حَكَمَ بَيْنَ الْعِبَادِ﴾ يعني دغه د الله جل جلاله حتمي فيصله ده چې اهل جنت به جنت او اهل جهنم به جهنم ته ځي ، اوس د دې بدلولو طاقت څوک نه لري .

﴿وَقَالَ الَّذِينَ فِي النَّارِ﴾ هر کله چې دااتباع اومتبوعين دَيوبل دَامدادنه مايوسه شي نو دَجهنم خزنه وُته به رجوع وکړي اوسوال به ورته اوکړي چې دَخپل رب نه درخواست وکړئ چې زمونږ نه عذاب څه وخت د پاره کم کړې شي.﴿يُخَفِّفْ عَنَّا يَوْمًا﴾اى مقداريوم من ايام الدنيا،دَيوې ورځې په مقداردې زمونږنه عذاب لرې کړي،يوه ورځ دې چهتې راکړي لکه چې په دُنياکښ به يوه ورځ چهتې وه،﴿مِّنَ الْعَذَابِ﴾"من"يابيانيه دې ياتبعيضيه دې اى شيئًامن العذاب. يعني يوې ورځې د پاره دې زمونږ نه څه عذاب کم کړي،

﴿قَالُوا أَوَلَمْ تَكُ﴾فرشتې به ورنه تپوس اوکړي چې آياتاسوته رسولان نه وُراغلي چې ددې ورځې نه ئې يره ولې؟ ((قَالُوا بَلَىٰ)) جواب دې د جهنميانو ، چې ولې نه وو راغلي ،خو مونږ ئې خبره نه وه منلې ، کما في قوله تعالي: قالوا بلي قد جآئنا نذير (الملک:۹) ((قَالُوا فَادْعُوا)) دا ورته د فرشتو جواب دې ، "فا" فصيحيه ده ، يعني هر کله چې رسولان تاسو ته راغلي وو او تاسو د هغوئ تکذيب کړې وو نو اوس مونږ ستاسو سفارش نشو کولې ، ځکه چې سفارش دَپاره دوه شرطه دی ،يو ايمان او بل اجازت ، او دلته دا دواړه نشته لهذا تاسوخپله دَخپل رب نه دعا

اوغواړئ خوداخبره يقيني ده چې دعا موخه فائده نشته.نوعذاب نشي کميدلې.(۲) يا ﴿فَادْعُوا﴾ مطلب دادې چې کله مو تکذيب کړې دې نو اوس وهئ چغې سورې . دا به درله هيڅ فائده نه درکوي ،(۳) يا ﴿فَادْعُوا﴾ مطلب فادعواالرسل دې يعني سفارش زمونږ کار نه دې .رسولانو کار دې ، لاړ شئ هغوئ پسې او هغوئ ته اووايئ. خو هغوئ ته به چرته وئيلې شي ځکه چې دوئ خوئي تکذيب کړې وو ، (تفسير عثماني)

﴿وَمَا دُعَٰٓؤُا الْكَٰفِرِينَ إِلَّا فِي ضَلَٰلٍ﴾اى ضياع وبطلان لايجاب(روح)داجمله ياکلام دخزنه ؤ د جهنم دې،ياکلام الهي دې،استدلال کړيدې بعضُ پدې آيت سره چې دکافردُعانه قبليږي، ليکن جمهوروائي چې په دنياکښې دکافراودمؤمن دواړودعاقبليږي،دابليس دعاچې د دوئ مشردې دعا ئې قبوله شويده نودَدوئ دُعاخوبطريق اولي قبليدی شي،اومراددې آيت نه دا دې چې په جهنم کښې به ئې دُعااودرخواست نه قبليږي.

| إِنَّا لَنَنصُرُ رُسُلَنَا وَالَّذِينَ آمَنُوا فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَيَوْمَ يَقُومُ |
|---|
| بيشکه مونږه خامخاامدادکوؤدَخپلورسولانواودَهغه کسانو چې ايمان ئې راوړې دې په ژوندددنياکښې اوپه هغه ورځ کښې چه قائم شي |
| الْأَشْهَادُ ﴿٥١﴾ يَوْمَ لَا يَنفَعُ الظَّالِمِينَ مَعْذِرَتُهُمْ وَلَهُمُ اللَّعْنَةُ وَلَهُمْ سُوءُ الدَّارِ ﴿٥٢﴾ |
| گواهي کونکي.هغه ورځ چه نفع به نه ورکوي ظالمانوته عُذردَهغوئ اودَپاره ددوئ لعنت دې اودوئ دپاره بدکوردې، |
| وَلَقَدْ آتَيْنَا مُوسَى الْهُدَىٰ وَأَوْرَثْنَا بَنِي إِسْرَائِيلَ الْكِتَابَ ﴿٥٣﴾ |
| اوپه تحقيق سره ورکړې وؤمونږموسیٰ عليه السلام ته هدايت اومونږه ميراث سره ورکړې وؤبني اسرائيلو ته کتاب. |
| هُدًى وَذِكْرَىٰ لِأُولِي الْأَلْبَابِ ﴿٥٤﴾ فَاصْبِرْ إِنَّ وَعْدَ اللَّهِ حَقٌّ |
| چه هدايت وؤاونصيحت وؤدَپاره دَخاوندانودَعقل نوصبرکوه(اى زماحبيبه ﷺ)بيشکه وعده دَالله حقه ده |
| وَاسْتَغْفِرْ لِذَنبِكَ وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ بِالْعَشِيِّ وَالْإِبْكَارِ ﴿٥٥﴾ |
| اوبخنه غواړه دَخپل گناه دپاره،اوپاکي بيانوه پيوست دَحمددَرب خپل سره بيگااوصبا. |

﴿إِنَّا لَنَنصُرُ رُسُلَنَا وَالَّذِينَ آمَنُوا﴾ما قبل کښې د حق وباطل معرکې کښې د باطل آخري انجام ذکر وو ، اوس دې آياتونو کښې د حق او اهل حق نتيجه ذکر کيږي چې (۱) دنيا کښې ورسره

هم د الله جل جلاله مدد او نصرت وي او غلبه ورله ورکوي (۲) او آخرت کښې به ئې هم مدد کوي او کاميابي به ورله ورکوي، ﴿ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ﴾ دنيوي غلبه مشروط ده په څو شرطونو سره.

(۱) ايمان کامل اوحقيقي : کما في قوله جل في علاه : وانتم الاعلون ان کنتم مؤمنين ،

(۲) اعمال صالحه : کما في قوله جل في علاه : وعد الله الذين آمنوا منکم وعملوا الصلحت ليستخلفنهم

(۳) نصرت دين الهي : کما في قوله جل في علاه : ياايها الذين آمنوا ان تنصروا الله ينصرکم ويثبت اقدامکم

(۴) اتفاق واتحاد : کما في قوله جل في علاه ،ولاتنازعوا فتفشلوا و تذهب ريحکم

(۵) دَ وس مطابق اسباب او آلات تيارول کما في قوله جل في علاه : واعدوا لهم مااستطعتم من قوة ، کله چې دا شرطونه پورا شي بيا د الله نصرت ضرور راځي اګرچې بيا هم بطورِ ابتلا وقتي يا فردي مغلوبيت او تکليف راتللې شي خو هغې د دې سره څه منافات نشته.

﴿ وَيَوْمَ يَقُومُ الْأَشْهَادُ ﴾مرادورنه دَقيامت ورځ ده،دادَ،علفتهاتبناًوماءًبارداً،دَقبيلې نه دې تقديردَعبارة دارنګه دي،ونجزيهم جزاءً حسناًيومَ يقوم الاشهاد. يامطلب دادې چې په ورځ دَقيامت به ئې هم نصرت کوو چې نجات دې دعذاب دَجهنم نه اوداخلول دى جنت ته، ﴿ الْأَشْهَادُ ﴾ ياجمع دَشهيد(ګواه)ده لکه دَشريف جمع اشراف راځي،ياجمع دَشاهد ده په ورځ دَقيامت به ډير ګواهان وى،فرشتې،چې دَانبياؤپه تبليغ باندې به ګواهي کوي. پيغمبران ، امت دَ محمد ﷺ ، اعضااوجوارح دَانسان،اوزمکه وغيره، ﴿ يَوْمَ لَا يَنفَعُ ﴾بدل دې دَ﴿ وَيَوْمَ يَقُومُ الْأَشْهَادُ ﴾نه او دَ ظالمينُ نه مرادکافران دى،لقوله تعالىٰ والکافرون هم الظّلمون (بقره) يعني دَقيامت په ورځ کافرانو ته دَدوئ عُذرنفع نه ورکوى،که چاته دااشکال اوشي چې ددې آيت نه معلوميږي،چې دوئ به عذرکوي خوعُذربه ورته فائده نه ورکوى،اودَمرسلت آيت(۳۵، ۳۶)هذايومُ لاينطقون،ولايؤذنُ لهم فيعتذرونَ. نه معلوميږي چې دوئ ته به دعذرکولو اجازت نه وي،فکيف التطبيق،جواب(۱)ددې آيت دامطلب نه دې چې دوئ به عذرنه کوي. بلکه مطلب دادې چې دَدوئ دپاره به عذرنافع نه وي،قطع نظرددې نه چې دوئ کوى او که نه کوي(۲)چونکه ورځ دقيامت به طويله وي په مقداردَخمسون الف سنة نوپه دې کښې به احوال هم متغيروي يوحال کښې به عذرونه کوي خونافع به نه وي اويوحالت کښې به ورته دَ عذر کولواجازت هم نه

وي(کبير ،شربيني وغيره) ﴿وَلَهُمُ ٱللَّعۡنَةُ﴾يعني دَالله تعالی دَرحمت نه به لري وي، ﴿وَلَهُمۡ سُوٓءُ ٱلدَّارِ﴾مرادورنه جهنم دې چې په دې کښ ناکاره عذابونه دی نوځکه ورته ناکاره کوراووئيلې شو.

﴿وَلَقَدۡ ءَاتَيۡنَا مُوسَى﴾داپه دعوىٰ دَسورة باندې دليلِ نقلي دې دَموسىٰ ﷺ نه،چې مونږ موسىٰ ﷺ ته تورات ورکړې وؤاودَتورات خلاصه هم داوه چې ان لاتتخذوا من دُونِي وكيلاً دَالله تعالی نه ماسوابل څوك كارسازمه جوړه وئ،اودغه شان پدې آيت کښ په نصرت دَ رسولانودليلِ نقلي دې دَموسىٰ ﷺ نه حاصل ئی دادې چې لکه څرنګه مونږ دَ موسىٰ ﷺ نصرت اوکړواوه دَهغه دَمخالفينونه موانتقام واخستونودغه شان ته هم صاحب رسالت ئي ستا نصرت به هم کوؤ ،اومخالفونه به انتقام اخلو ،دَ﴿ٱلۡهُدَىٰ﴾نه مراد ياتورات دې، يانبوت دې، يا معجزات، ياشرائع دی، ﴿وَأَوۡرَثۡنَا بَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ ٱلۡكِتَٰبَ﴾ اورثنا مجازدې دَ ترکنا نه،مطلب دادې چې دابني اسرائيل دَوفات دَموسىٰ ﷺ نه بعدترنزول دَانجيل پورې ددې تورات په احکاماتو باندې عمل کولو سره مکلف وؤ ،اودَ الکتاب نه مراد ياتوراة دې، يا هغه تمام کتابونه دی چې دَ بني اسرائيلوپه انبياؤباندې نازل وؤ ،يعني توراة، زبور، انجيل، ﴿هُدٗى وَذِكۡرَىٰ﴾دواړه منصوب دی نويامفعول له دَوجه نه ای لاجل الهدى والذكر ،ياپه موضع دَحال کښ دی مصدردی يعني دَاسم فاعل سره﴿هُدٗى﴾ ای هاديًا﴿وَذِكۡرَىٰ﴾ای مذكراً،يعني هدايت کونکې اونصيحت کونکې دې دپاره دَعقل سليم والؤ.

﴿فَٱصۡبِرۡ﴾داتسلي ده حضور ﷺ ته اوپدې کښ دَداعي دپاره څلوراداب بيانيږي : (۱) صبر کول په ايذااومخالفت باندې(۲)استغفارپه کوتاهئ(۳)دوام په دعوت(۴)دَالله تعالی دحفاظت سوال.﴿فَٱصۡبِرۡ﴾دا داول ادب بيان دې يعني دعوت دَتوحيدپه سلسله کښ چې دَ مشرکينو دَ طرفه تاته کوم تکليفونه رسيږي نوپه هغې باندې صبرکوه،الله ﷻ به تاته غلبه اوکاميابي درکوي ځکه چې﴿إِنَّ وَعۡدَ ٱللَّهِ حَقّٞ﴾وعده دَالله تعالی چې په انا لننصر رسلنا کښ ذکر شوه،حقه ده،تاسره به خامخاپوره کيږي،اوکه بالفرض ستانه په صبرکښ کمې راشي چې دا ستادَعالي شان سره لائقه نده،نوددې وجه نه په قانون دَ حسناتُ الابرارسيئات المقربين.

﴿وَٱسۡتَغۡفِرۡ لِذَنۢبِكَ﴾استغفارکوه دَذنب خپل،اوداد دويم ادب بيان دې پيغمبر ﷺ خومعصوم اومحفوظ وي دَګناه نه نوددې وجه نه(۱)مجازاًنسبت شويدې دَذنب حضور ﷺ ته اومرادورنه

خلاف اولى اوترك دَافضل، احسن دي(۲) استغفارهم يو عبادت دي. ارتکاب دګناه ورسره لازم نه دي، نوحضورﷺته حکم دَاستغفارتعبدأدي. حضورﷺفرمائي "اني لاستغفرالله كل يوم مائة مرة او کماقالﷺ" څه په ورځ کښې روزانه سل(۱۰۰)کرته استغفارکوم(۳) حکم حضورﷺ ته دي لیکن پدې کښې تعليم دې اُمت ته اوتحریض دې په استغفارکولوباندې(۴). چاویلی دی چې دلته مضاف حذف دي ای لذنبِ امتکَ، یعني دَخپل امت دَذنوبودپاره استغفارکوه. (والله اعلم). ﴿وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ﴾ مراددَالله تعالى پاکې اولوئي بیانول دی او﴿ بِالْعَشِيِّ وَالْإِبْكَارِ ﴾ نه مرادجمیع الاوقات دی اوداد دریم ادب بیان دي. یعني هروخت دَالله پاکي بیانه وه. یا دَ تسبیح نه مرادمونځ دي او "ابکار" عبارت دي دَاول النّهارنه ترنصف النّهار پورې. او "بالعشي" عبارة دي دَنصف النهارترآخرالنهارپورې، نوصلوات خمسه ته شامل دي(کبیر، روح وغیره).

| إِنَّ الَّذِينَ يُجَادِلُونَ فِي آيَاتِ اللَّهِ بِغَيْرِ سُلْطَانٍ أَتَاهُمْ ۙ إِنْ فِي صُدُورِهِمْ |
|---|
| بیشکه هغه خلق چه جګړې کوي په آیاتونودَالله کښې بغیردَدلیل نه چې راغلې وي دوئ ته، ندې په زړونودَدوئ کښې |
| إِلَّا كِبْرٌ مَا هُمْ بِبَالِغِيهِ ۚ فَاسْتَعِذْ بِاللَّهِ |
| مګرکبر دې، چې نه دی دوئ رسیدونکي دَغې ته، نوته پناه نیسه په اللهﷻسره، |
| إِنَّهُ هُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ ﴿٥٦﴾ لَخَلْقُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ أَكْبَرُ مِنْ خَلْقِ النَّاسِ |
| بیشکه الله صرف هغه اوریدونکي دې لیدونکي دې، خامخاپیداکول دَاسمانونواودَزمکې زیات لوئ دی دَپیداکولودَخلقونه |
| وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٥٧﴾ وَمَا يَسْتَوِي الْأَعْمَىٰ وَالْبَصِيرُ وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا |
| لیکن اکثرخلق نه پوهیږي. اونه دې برابر ړوند او بینا، او هغه چه ایمان ئې راوړیدې اوعملونه کوي |
| الصَّالِحَاتِ وَلَا الْمُسِيءُ ۚ قَلِيلًا مَا تَتَذَكَّرُونَ ﴿٥٨﴾ إِنَّ السَّاعَةَ لَآتِيَةٌ لَا رَيْبَ |
| نیك اونه ګناه ګار. ډیر لږ غوندې نصیحت قبلوئ تاسو . بیشکه قیامت خامخاراتلونکې دې، نیشته دې هیڅ شك |
| فِيهَا وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يُؤْمِنُونَ ﴿٥٩﴾ |
| په هغې کښې لیکن اکثر خلق ایمان نه راوړي |

﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ يُجَٰدِلُونَ أَتَىٰهُمْ﴾زجردي مجادله کونکوته، ﴿فِيٓ ءَايَٰتِ ٱللَّهِ﴾عام دي شامل دي دلائلو دَ توحیدته، اسماني کتابونوته او معجزاتوته. ﴿بِغَيْرِ سُلْطَٰنٍ﴾بغیردځه حجة نه چې الله تعالی ورته ورکړې وی. ﴿إِن فِي صُدُورِهِمْ إِلَّا كِبْرٌ﴾ خبرد دَې ﴿إِنَّ﴾. او ﴿إِن﴾نافیه دي یعني مافی صدورهم الا کبرٌ، دَ "كِبْرٌ"نه مراد خواهش دَلوئ جوړیدو دي یعني دوئ دحق سره مجادله صرف دَنامداره جوړیدو دپاره کوي: بڑابنے کی خواہش ہے. ځکه چې حق لوئ دي اولوئ کس سره مقابله کول سرې مشهوره وي، اوهم دادوئ مقصد دې، یا "كِبْرٌ" معنی تکبرده. مطلب دادې چې دوئ دَحق سره مجادله اوستامخالفت صرف تکبر پوجه کوي کچرې دوئ ستانبوت تسلیم کړي نوبیابه خوستادَحکم ماتحت وي، نو دَدوئ په زړونوکښې تکبردې ماتحتي نه برداشت کوي. لیکنَ الله تعالی ورباندې ردکوي، چې﴿مَّا هُم بِبَٰلِغِيهِ﴾ضمیردَمفردکبرته راجع دي یعني دوئ دې مقصدته نشي رسیدلې، ځکه الله تعالی به دوئ ذلیله وي، بعض مفسرین فرمائي چې داآیت کریمه دَیهودیانوباره کښې نازل شویدې، چې دوئ حضورﷺ ته اووې چې په اخره زمانه کښې به زمونږمسیح دجال راځي، دَهغه به داسې داسې بادشاهي وي، هغه به مونږته زمونږبادشاهي راواپس کوي اومونږته به غلبه حاصلیږي، نوالله ﷻ داآیاتونه نازل کړل(روح وغیره) نو دې روایت مطابق "کبر" نه مراد تمنا ده چې دا دَ دوئ زړونو تمنا ګاڼې دي چې دجال به راځي او مونږ له زمونږ بادشاهي واپس راکوي ﴿فَٱسْتَعِذْ بِٱللَّهِ﴾دا د ځلورم ادب بیان دې، مُعاندینو، حاسدینو دَ شرنه، دَالله ﷻ نه دَحفاظت سوال کوه، پدیکښې دَدجال دَشرنه دَحفاظت سوال کولوحکم هم شامل دې، ﴿إِنَّهُۥ هُوَ ٱلسَّمِيعُ ٱلْبَصِيرُ﴾علت دي دَماقبل، چې دَالله تعالی نه ځکه سوال کوه چې هغه هرڅه اوریدونکې اوهرڅه لیدونکې دې.

﴿لَخَلْقُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ﴾دلیلِ انّي دې دَثبوت دَقیامت دپاره، ما قبل سره ئې ربط دا دې چې مخکښې تخویف اخروي او بشارت اخروي ذکر شو چې حقیقي کامیابي او ناکامي د آخرت ده، کافران به په دې ورځې جهنم ته او مؤمنان به جنت ته ځي، دې دپاره چونکه وقوع د قیامت ضروري دې نو اوس د هغې په وقوع دلائل بیانیږي، دا اول دلیل دې چې حاصل ئې دادې چې دَقیامت نه انکارکونکی داوائي چې دَقبرونونه دوباره راژوندی کیدل محال اوناممکن دی کقوله تعالی: قال من یُحي العظام وهی رمیم(یسین) الله ﷻ ورته ارشاداوفرمایه

چې دآسمان اوزمکې دعظمت په مقابله کښې دانسان څه حیثیت دې. مشرکین خوداتسلیمه وې چې خالق دآسمانونو، زمکې صرف الله ﷻ دې، نوچې کوم ذات دومره لوئ مخلوقات پیداکړیدي دادلیل دې پدې خبره چې هغه ته دوباره دانسان پیداکول څه مشکل نه دې. نو دا استدلال دمعلول نه دې په علت باندې نودادلیل انّي دې(کدلالة الدّخان علی النّار)چې قطعي الدلالت دې چې په مجردنظرسره ورنه عاقل استدلال کولیشي. لیکن چې مشرکین بیا هم د بعث بعدالموت نه منکردی، نوددې وجه داده چې﴿وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ ٱلنَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ﴾ ای لاعلم لهم اصلابل هم کالبهائم لغلبة الغفلة علیهم(شربیني).

﴿وَمَا يَسْتَوِي﴾دادلیل لمّي دې په ثبوت دقیامت، حاصل ددې دلیل دادې چې دقیامت قائم کیدل ضروری دی، ځکه چې که قیامت رانشي نوبیاخوبه دمومن صالح چې منونکې دې اودکافربدکاره چې نه منونکې دې، په مینځ کښې فرق رانشي، حالانکه لکه څرنګه چې اعمی اوبصیرندي برابر، نودغه شان مومن صالح اوکافربدکاره ندې برابر، نولامحالة داسې یوه ورځ ضرورپکارده چې ددواړومینځ کښې فرق اوهریوته خپله خپله بدله میلاؤشي، اوداورځ نده مګرد قیامت ورځ ده. مراددَ﴿الْأَعْمَىٰ﴾ نه کافرمشرك دې، "اعمیٰ" ورته ځکه ویلې شویدی چې دې دلائلودتوحیدته په نظرعبرت سره نه ګوري چې توحید اومني، او دَ «وَالْبَصِيرُ» نه مراد مؤمن دې چې دلائل دتوحیدته اوګوري اوتوحیداومني،

﴿قَلِيلًا مَّا تَتَذَكَّرُونَ﴾زجر دې اعمیٰ اومسیئ ته بطورالتفات دغائب نه حاضرته، ﴿إِنَّ ٱلسَّاعَةَ لَآتِيَةٌ﴾دعوه ده دثبوت دقیامت.

وَقَالَ رَبُّكُمُ ادْعُونِي أَسْتَجِبْ لَكُمْ ۚ إِنَّ الَّذِينَ يَسْتَكْبِرُونَ

اووائي رب ستاسوسوال کوئ صرف ځما نه ، ځه به ئي قبولوم درله . بیشکه هغه خلق چې تکبر کوي(انکارکوي)

عَنْ عِبَادَتِي سَيَدْخُلُونَ جَهَنَّمَ دَاخِرِينَ ۞ اللَّهُ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ اللَّيْلَ

ځما دَ عبادت نه ، زرده چه داخل به شي جهنم ته ذلیله. الله هغه ذات دې چې ګرځولې ده ستاسودپاره شپه (تیاره)

لِتَسْكُنُوا فِيهِ وَالنَّهَارَ مُبْصِرًا ۚ إِنَّ اللَّهَ لَذُو فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ

ددې دپاره چې تاسو ارام وکړئ په هغې کښې، اوګرځولې ئي ده ورځ رڼا بیشکه الله تعالی خاوندفضل دې په خلقوباندې

| وَلٰكِنَّ | اَكْثَرَ | النَّاسِ | لَا | يَشْكُرُوْنَ ۝ |
|---|---|---|---|---|
| ليکن | اکثرخلق | | شکرنه | کوي |

﴿ وَقَالَ رَبُّكُمُ ادْعُوْنِيْٓ ... سَيَدْخُلُوْنَ جَهَنَّمَ دٰخِرِيْنَ ﴾ دادعوی د سورة ذکردي دويم ځل، چي حاجتونه مرادونه صرف ځمانه غواړئ څه ئي پوره کوم، «اُدْعُوْنِيْٓ» نه څه مراد دي ، دعا او که عبادت ؟ دواړه تفسيره منقول دي : ځني مفسرينو ئي تفسير په دعا سره کړي دي او «اِنَّ الَّذِيْنَ يَسْتَكْبِرُوْنَ عَنْ عِبَادَتِيْ » کښې ئي عبادت نه مراد دعا اغستې ده ، او د عبادت اطلاق کله کله په دعا هم کيږي لکه حضرت ابن عباس رضي الله عنهما قول دي : افضل العبادة الدعاء ، او معني د « اَسْتَجِبْ لَكُمْ » په دې تقدير باندې قبولول د سوال دي .او ځني مفسرينو ئي تفسير په عبادت سره کړي دي ؛ ځکه چې دعا اطلاق کله کله په عبادت هم کيږي ،لکه حديث شريف کښې راځي: الدعا هو العباده (الترمذي:۲۹۶۹) او «اِنَّ الَّذِيْنَ يَسْتَكْبِرُوْنَ عَنْ عِبَادَتِيْ » هم په دې قرينه ده چې دلته د «اُدْعُوْنِيْٓ» نه مراد عبادت دې ، او معني د «اَسْتَجِبْ لَكُمْ» په دې تقدير باندې اجر وثواب ورکول دي په عبادت باندې.

او دا هم کيدې شي چې په آيت کښې صنعتِ احتباک وي ، دعا او عبادت دواړه مراد وي، خو په «اُدْعُوْنِيْٓ» صرف ذکر د دعا شوې دې او عبادت حذف شوې دې او په «اِنَّ الَّذِيْنَ يَسْتَكْبِرُوْنَ عَنْ عِبَادَتِيْ » کښې صرف دعبادت ذکر شوې دې او دعا حذف شوې ده ، نو تقدير به داسې شي: ادعوني واعبدوني استجب لكم ، ان الذين يستكبرون عن عبادتي و دعائي .

« اَسْتَجِبْ لَكُمْ » جوابِ امر دې ځکه مجزوم دې ، البته دلته دا اشکال کيږي چې څوک دعا غواړي نو الله جل جلاله به ورله ضرور قبلوي ، حالانکه ډيرې داسې دعاګاني وي چې بنده غوښتې وی او هغه قبولې شوې نه وي؟ علماؤ د دې مختلف جوابونه کړي دی چې حاصل ئي دا دې چې د دعا خپل آداب او شرائط دي چې کله هغه ملحوظ اوساتلې شي نو بيا هغه دعا ضرور قبليږي ، مثلاً: (۱) حضورِ قلب سره دعا اوغواړي (۲) د قبوليت اميد سره ئي او غواړي (۳) قطع رحمي او ګناه ذکر پکښې او نکړي (۴) رزق ئي حلال وي ، وغيره ، نو داسې دعا الله جل جلاله ضرور قبلوي اګر که د قبوليت مختلف صورتونه دي : کله ورله الله جل

جلاله مطلوب شي ورکړي ، کله ورنه د هغې په بدله کښې شر او تکليف نړي کړي او کله ورله د آخرت د پاره ذخيره کړي .

﴿إِنَّ الَّذِينَ يَسْتَكْبِرُونَ عَنْ عِبَادَتِي﴾ زجردي دعانه غوښتونکوته دوجه دتکبرنه، په حديث دترمذي وغيره کښې دی، من لم يسأل الله يغضب عليه، اودالله تعالی دعبادت نه دانکار او تکبر کولو مطلب دادې چې دالله ﷻ په رابلنې باندې اکتفاء نه کوي بلکه نورورسره شريکه وي

﴿اللَّهُ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ اللَّيْلَ﴾ دااول دليلِ عقلي دې په توحيد ،چې د کائنات ټول نظام په شپې او ورځې روان دې دورځې کار او ستړتيا او د شپې آرام او سکون ، د ورځې رڼرا اود شپې تياره ، او بيا دې رڼراو تيارې سره وابسته د انسان زرګاؤو فائدې ، نو په دې غور اوکړئ چې دا نظام چا روان کړې دې ؟ دا شپه اوورځ چا پيدا کړې ده ؟صرف په دې کښې ستاسو څومره فائدې دي ؟ يقيناً چې الله جل جلاله په خلقو ډير احسانات دي خو خلق ئي بيا هم شکر نه ادا کوي او ورسره نور شريکان ګرځوي ﴿اللَّيْلَ﴾ مفعول اول دې دجعل او مفعول ثاني مقدر دې چې مظلماً دې، دلته هم صنعتِ احتباک دې ، چې په جانب معطوف عليه کښې مفعول ثاني مقدر دې او غايت چې هغه لِتَسْكُنُوا فِيهِ دې ، ذکر دې ، او جانب معطوف کښې مفعول ثاني ذکر دې چې مُبْصِرًا دې او غايت حذف دې چې هغه لتنشروا و لتبتغوا من فضله دې .

﴿إِنَّ اللَّهَ لَذُو فَضْلٍ﴾ دري تاکيدات دی پکښ(۱)انّ (۲)لام تاکيديه(۳)ذُو،يعني الله تعالی ډيرزيات مهربانه دې په ټولو انسانانوباندې،نوددې مهربانئ په بدله کښ پکاروه چې ټول خلق دالله ﷻ دنعمتونوشکرکونکی اوپه الله تعالی باندې ايمان راوړونکی وي ليکن اکثر خلق نا شکري کوي يا د کفر په وجه او يا د غفلت په وجه .

ذَٰلِكُمُ اللَّهُ رَبُّكُمْ خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ۖ فَأَنَّىٰ تُؤْفَكُونَ ۝

دغه ذات الله تعالی دې چې رب دې ستاسو خالق دې دهرڅيز،نيشته دې بل معبود مګرالله دې،نوکوم طرف ته تاسو اړه ولې کيږئ

كَذَٰلِكَ يُؤْفَكُ الَّذِينَ كَانُوا بِآيَاتِ اللَّهِ يَجْحَدُونَ ۝ اللَّهُ الَّذِي

دغه شان به اړولې کيږي هغه خلق چې دَ آياتونو د الله نه انکار کوي الله تعالی هغه ذات دې

| |
|---|
| جَعَلَ لَكُمُ الْأَرْضَ قَرَارًا وَّالسَّمَآءَ بِنَآءً وَّصَوَّرَكُمْ فَأَحْسَنَ صُوَرَكُمْ |
| چې گرځولې ده ستاسو دپاره زمکه قرار «ولاړه» او اسمان چهت او صورتونه ني درکړيدي تاسو ته نو ښکلي صورتونه ني درکړيدي، |
| وَرَزَقَكُمْ مِّنَ الطَّيِّبٰتِ ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمْ فَتَبٰرَكَ اللّٰهُ |
| اورزق ئي درکړيدي تاسو ته دپاکو څيزونو نه. دغه ذات الله دې چې رب دې ستاسو .نو برکت ورکونکې دې الله تعالى |
| رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿٦٤﴾ هُوَ الْحَيُّ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ فَادْعُوْهُ |
| چې رب دې دعالمينو .الله تعالى ژوندې په حياة دائمي ذاتي سره، نيشته دې بل معبود مگر الله دې،نو سوال کوئ دغه نه |
| مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ ۗ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿٦٥﴾ |
| په داسې حال کښې چې خالص ساتونکي وئ هغه لره دخپلې عقيدې تمام صفات دالوهية الله ﷻ لره دي چې رب دې دعالمينو. |

﴿ ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمْ خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ ﴾دانتيجه اوثمره ده دماقبل دليل ،دماقبل صفاتو ذکر کولو سره دالله تعالى دذات داسې تميزراغى لکه چې محسوس بالبصر او مشاهد وي نوځکه په ﴿ ذٰلِكُمُ ﴾سره ورته اشاره اوشوه،«ذٰلِكُمُ» مبتدا دې او مخکښې ورله څلور خبرونه ذکر کيږي «اَللّٰهُ» دا ئې خبر اول دې يعني دغه ذات الله دې چې د الوهيت او دکمال ټولو صفاتو سره متصف دې ، «رَبُّكُمْ» خبر ثاني دې ، يعني رب دې ، تربيت کوي او د ضرورياتو انتظام درله کوي ،«خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ» دريم خبر دې يعني صرف مربي نه ، بلکه د ټول کائنات خالق هم دې ، «لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ» څلورم خبر دې به طور نتيجه ذکر شوې دې ، چې دغه ذات الله هم دې ، رب هم دې ، خالق هم دې نو دينه معلومه شوه چې اله هم صرف دې دې بل څوک نشته ، «فَاَنّٰى تُؤْفَكُوْنَ» استفهام د پاره د تعجب دې ، يعني عجيبه خبره چې بيا هم تاسو په بله روان يئ،﴿ كَذٰلِكَ يُؤْفَكُ ﴾کاف د پاره د تشبيه دې او مشبه به ورله اعراض دې دحق نه بلا دليل ، يعني څوک چې هم محض عناد په وجه د الله جل جلاله د آياتونو نه اعراض کوي نو هغه نه هم دغه شان د حق قبولو استعداد سلب کړې شي.

﴿ اَللّٰهُ الَّذِيْ جَعَلَ لَكُمُ الْاَرْضَ ﴾دادويم دليلِ عقلي دې،چې مشتمل دې په درې قسم دليلونو: (١) آفاقي سفلي،(٢)افاقي علوي (٣)اودليل عقلي انفسي،﴿جَعَلَ لَكُمُ الْاَرْضَ ﴾

دليلِ عقلي افاقي سفلي دي، ﴿قَرَارًا ﴾مفعول ثانی دي یاپمعنی دَ ذات قرارِ سره دي يعني ساكنه ده حركتِ اضطراريه نه كوي چې يوطرف ته بل طرف ته ككه شي او استوگنه پكښې نشي كيدي، كقوله تعالى: والقىٰ فى الارض رواسي ان تميد بكم (النحل: ١٥) ياپمعنی دَ مستقرۃ سره دي، يعني الله ﷻ ستاسو دَاوسيدلو دپاره زمكه جائی قرار، گرځولې ده، ﴿وَالسَّمَآءَ بِنَآءً ﴾دليلِ عقلي افاقي علوي دي چې آسمان ئي درله چهت گرځولې دي ، ﴿وَصَوَّرَكُمْ ﴾ دليل انفسي دي تصوير په معنی د تخليق سره دي ، ليكن ديكښې د تخليق په نسبت اهتمام او او خصوصيت معني زياته وي نو معني به ئي داسې شي چې انسان ئي يو خصوصي او امتيازي شان سره پيدا كړي دي «فَأَحْسَنَ صُوَرَكُمْ » تفسير دي د ماقبل ، چې ټولو مخلوقاتو كښې ئي تاسو خائسته گرځولي يئ،قد وقامت اعتبار سره ، شكل وصورت اعتبار سره ، اعضاؤ او جوارح اعتبار سره ، علم وعقل او عاداتو او اطوارو اعتبار سره.

﴿وَرَزَقَكُم مِّنَ الطَّيِّبَاتِ ﴾ديكښې د بل نعمت ذكر دي په انسان، چې صرف تخليق ئي احسن نه دي بلكه دې سره سره ئي خوراك هم احسن دي ، په نورو مخلوقاتو كښې د چا رزق گندگي ده ، دچا بوټي ، د چا هډوكي وغيره ، خو د انسان رزق دې برعكس ډير لذيذ او عمده دي ،﴿ ذَٰلِكُمُ اللَّهُ رَبُّكُمْ ﴾ديكښې د ما قبل دليل ثمراتو بيان دي او دا اوله ثمره ده ،چې هم دغه ذات صرف اله دي او هم دغه صرف رب دي ، « فَتَبَارَكَ اللَّهُ رَبُّ الْعَالَمِينَ » دا دويمه ثمره ده چې دی نه دا هم معلومه شوه چې بركات دهنده او بركتونو والا ذات صرف الله جل جلاله دي بل څوک نشته «هُوَ الْحَيُّ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ » دا ئي دريمه ثمره ده ،چې دينه دا هم معلومه شوه چې حقيقي حيات الله جل جلاله ته حاصل دي چې حيات كامله او دائمه دي ،باقي ټول د عدم نه وجود ته راغلي او وجود نه بعد به پرې بيا فنا راځي ، ، نو كوم ذات چې داسې صفاتو والا دي نو " اله " هم صرف هغه كيدې شي ، بل څوک ورسره نشي كيدي «فَادْعُوهُ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ » دريم ځل دعوي د سورت ذكر دي « الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ »علت دي د پاره د دعوي ، يعني صرف د الله جل جلاله عبادت ځكه كوئ چې صفات د حمد او الوهيت هغه لره دي.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| قُلْ | إِنِّيْ | نُهِيْتُ | أَنْ | أَعْبُدَ | الَّذِيْنَ | تَدْعُوْنَ |

(اې پیغمبر!) ته اوايه چې بيشكه زه منع كړې شوې يم ددې نه چې زه عبادت وكړم دهغه معبودانو چه تاسوورته سوالونه كوئ

مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ لَمَّا جَآءَنِيَ الْبَيِّنٰتُ مِنْ رَّبِّيْ وَاُمِرْتُ اَنْ اُسْلِمَ

چه ماسوى دالله نه دى،هركله چې راغلل ماته واضع دليلونه دطرفه درب زمانه.اوامركړې شويدې ماته چې خه تابع شم

لِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿٦٦﴾ هُوَ الَّذِيْ خَلَقَكُمْ مِّنْ تُرَابٍ ثُمَّ مِنْ نُّطْفَةٍ ثُمَّ مِنْ عَلَقَةٍ

درب العالمين. الله تعالى هغه ذات دې چې پيداكړى ئى يئ تاسود خاورېنه بيائي دنطفې نه بيائي دعلقې نه

ثُمَّ يُخْرِجُكُمْ طِفْلًا ثُمَّ لِتَبْلُغُوْٓا اَشُدَّكُمْ

بيائي رااوباسلي يئ تاسوچه واړه وئ،بيائي (ستاسوتربيت كولوچه تاسواورسيدلئ خپلې خوانئ ته.

ثُمَّ لِتَكُوْنُوْا شُيُوْخًا ۚ وَمِنْكُمْ مَّنْ يُّتَوَفّٰى مِنْ قَبْلُ

(بيائي باقي پريخودلئ) چې شوئ تاسوبوډاګان،اوبعض په تاسوكښ هغه دى چې وفات شي مخكښ ددېنه

وَلِتَبْلُغُوْٓا اَجَلًا مُّسَمًّى وَّلَعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ ﴿٦٧﴾ هُوَ الَّذِيْ يُحْيٖ

اودپاره ددې چې ورسيږئ تاسو نيټې مقرري ته،اوددې پاره چه تاسوپوهه شئ.الله هغه ذات دې چې ژوندي كول كوي

وَيُمِيْتُ ۚ فَاِذَا قَضٰٓى اَمْرًا فَاِنَّمَا يَقُوْلُ لَهٗ كُنْ فَيَكُوْنُ ﴿٦٨﴾

او مړه كول كوي،نوكله چه فيصله وكړي دېوكارنواووائي هغه ته چې شه نوهغه اوشي.

﴿ قُلْ إِنِّي نُهِيتُ ﴾ددې ځائ نه دسورة دويمه حصه شروع كيږي،چې پديكښ داولنئ حصې دمضامينو اعاده ده اواعاده دتاكيداواهتمام شان دوجه نه كيږي،پدې آيت كښ ددليل وحي اعاده ده.﴿لَمَّا جَاءَنِيَ الْبَيِّنَاتُ ﴾ "لما" ظرف دې پمعنىٰ دحين سره اى حين جاءني البينات."بينات"نه مرادواضح دلائل عقليه دى چې بعضِ دهغې نه په ماقبل آيت كښ ذكرشو،يعني په ذريعه دوحې ماته دلائل عقليه راغلي دى اوځه منع كړې شوې يم چې ځه دهغه معبودان باطله ؤعبادت وكړم چې تاسوئي كوئ،اوماته امركړيدې الله تعالى چې ځه درب العالمين تابع دارشم،اوپه﴿ لِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴾كښ ګوياچې علت ته اشاره ده.

﴿هُوَ الَّذِي خَلَقَكُم مِّن تُرَابٍ﴾دادليل عقلي اعاده ده،چې پديکښې دتخليق انساني مختلف ادواربيان شويدی،چې داد قدرة دالله تعالی اودهغه دواحدانيت واضح دلائل دی.نوصرف دهغه عبادت کوئ اودهغه نه غواړئ،«خَلَقَكُم مِّن تُرَابٍ»دا د انسانيت د تخليق نقطه آغاز بيان دې چې هغه د خاورې نه شوې دې ، د ټولو انسانانو جد امجد حضرت آدم عليه السلام الله ﷻ د خاور نه پيدا کړې دې ، نو خلقكم ورته په اعتبار د اصل سره وئيلې شوې دې ،اې : خلق اباكم «ثُمَّ مِن نُّطْفَةٍ»د آدم عليه السلام نه ورستو د هغه سلسله نسل تخليق او د هغې مراحلو بيان دې چې ده نه بعد الله جل جلاله د منې او جامدې وينې نه دده نسل خور کړو ، او ديکښې اولې مرحلې ته اشاره ده چې هغه جنين حالت دې ، «ثُمَّ يُخْرِجُكُمْ طِفْلًا» جنين نه بعد دويمه مرحله ده چې بالکل ماشوم ئې د مور خيټې نه رااوباسې ،«طِفْلًا» حال دې د "کم" ضمير منصوب نه . او اطلاق د طفل په مذکر مؤنث او واحد تثنيه او جمع ټولو باندې کيږي .«ثُمَّ لِتَبْلُغُوا أَشُدَّكُمْ» دريمه مرحله ده چې بيا ورله عمر ورکړې تردې چې ځوانئ ته اورسې ."لام" حرف جر د پاره د تعليل دې او جمله ورله په تاويل د مصدر مجرور گرځي او جر مجرور متعلق کيږي په فعل محذوف پورې ،اې : ثم يربيكم و يعمر كم لتبلغوا اشدكم ، « أَشُدَّكُمْ » نه د ځوانئ او قوت عمر مراد دې ، «ثُمَّ لِتَكُونُوا شُيُوخًا»څلورمه مرحله ده ،چې بيا ورله مزيد عمر ورکړې تردې چې بوډا والي ته اورسې ، دلته هم جار مجرور په فعل محذوف سره متعلق کيږي ،اې: ثم يبقيكم لتكونوا شيوخا «وَمِنكُم مَّن يُتَوَفَّىٰ مِن قَبْلُ»قبل د پاره مضاف اليه محذوف ده چې هغه مذکوره احوال دې يعني الله جل جلاله نظام خو دا دې مراحلو جوړ کړې دې خو دا څه ضروري نه ده چې هر انسان به دې مراحلو نه خامخا تيريږي ، بلکه څنې د طفولت مرحلې نه مخکښې وفات شي چې هغې ته "سقط" وائي ، څنې د ځوانئ مرحلې نه مخکښې وفات شي ،څنې د شيخوخت مرحلې نه مخکښې په ځوانئ کښې وفات شي او څنې د بوډا والي مرحلې ته اورسيږي ، بس په دې باندې بيا د تخليق مراحلو انتها اوشي ،دې نه پس بيامرگ لازمي دې بله مرحله د تخليق نشته ،هم دا مراد دې د " وَلِتَبْلُغُوا أَجَلًا مُّسَمًّى " نه ، چې په دې مرحله کښې انسان خپل اجل مسمى ته اورسيږي او دتخليق مراحل پوره شي، دې تفسير مطابق « وَلِتَبْلُغُوا » عطف دې په

«لِتَكُونُوا» باندې ، او لِأَجَلٍ مُسَمًّى نه مراد مرګ دی، اي : يبقيكم لتكونوا شيوخاً و لتبلغوا اجلاً مسمي، ځنې مفسرين فرمائي چې « وَلِتَبْلُغُوا » کښې جار مجرور متعلق کيږي په ' يفعل ' فعل مقدر سره، او أَجَلًا مُسَمًّى نه مراد ورځ د قيامت ده او دا عطف دې په ‹خلقكم › باندې يعني ستاسو تخليق او دهغې مختلف مراحل هځې عبث نه دي بلکه دقيامت په ورځ به ستاسو پيشي وي او تپوس به درنه کيږي ، « وَلَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ »يعني دې مراحلو مقصد دا هم دې چې تاسو د الله جل جلاله عجيبو قدرتونو باندې پوهه شئ او دهغه وحدانيت استدلال ترينه اونيسئ او دغه شان په بعث بعد الموت باندې ترينه هم استدلال اوکړئ چې کوم الله مونږ عدم نه وجود ته راوستلي شي او بيا زندګئ مختلفو مراحلو کښې اړولې راړولې شي نو هغه دَ مرګ نه بعد دوباره هم را اوچتولې شي.

﴿ هُوَ الَّذِي يُحْيِي وَيُمِيتُ ﴾ دا بل دليل دې چې احياء او اماتت صرف دَهغه په قبضه قدرت کښې دې.

| أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ يُجَادِلُونَ فِي آيَاتِ اللَّهِ أَنَّى يُصْرَفُونَ ۝ الَّذِينَ |
|---|
| آيانه ګورې ته هغه کسانوته چې جګړې کوې په آياتونودَ الله تعالى کښې،کوم طرف ته دوئ اړولې کيږي هغه کسان |
| كَذَّبُوا بِالْكِتَابِ وَبِمَا أَرْسَلْنَا بِهِ رُسُلَنَا فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ ۝ |
| چې تکذيب ئې کړې دې په کتاب اوپه هغه څه چې مونږ اليږلي دي په هغې سره خپل رسولان،نوزرده چې دوئ به پوهه شي |
| إِذِ الْأَغْلَالُ فِي أَعْنَاقِهِمْ وَالسَّلَاسِلُ يُسْحَبُونَ ۝ فِي الْحَمِيمِ ثُمَّ فِي النَّارِ |
| کله چې طوقونه په ستونودَدوئ کښې وي اوزنځيرونه‌ئې په څپوکښې وي‌راښکلې کيږي به ،په ګرمواوبوکښې بيابه په اورکښې |
| يُسْجَرُونَ ۝ ثُمَّ قِيلَ لَهُمْ أَيْنَ مَا كُنْتُمْ تُشْرِكُونَ ۝ مِنْ دُونِ اللَّهِ |
| سيزلې شي.بيابه اوويلې شي دوئ ته چرته دی هغه معبودان چې تاسوشريکول دَالله سره،ماسوئ دَالله نه، |
| قَالُوا ضَلُّوا عَنَّا بَلْ لَمْ نَكُنْ نَدْعُو مِنْ قَبْلُ شَيْئًا كَذَلِكَ |
| اوبه وائي دوئ ورك شول زمونږ نه بلکه مونږه عبادت نه کولو دَدې نه مخکښې دَهيڅ څيز،دغه شان |

| يُضِلُّ اللّٰهُ الْكٰفِرِيْنَ ﴿۷۴﴾ ذٰلِكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَفْرَحُوْنَ فِي الْاَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ |
|---|
| گمراه کوي الله تعالى كافران.داعذاب په سبب ددې سره دې چې تاسوخوشحالي کوله په زمکه کښې په ناحقه سره |
| وَبِمَا كُنْتُمْ تَمْرَحُوْنَ ﴿۷۵﴾ اُدْخُلُوْٓا اَبْوَابَ جَهَنَّمَ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ۚ فَبِئْسَ مَثْوَى |
| اوپه سبب ددې چه تاسو تکبر کولو،داخل شئ دروازودجهنم ته هميشه به ني پديکښ،نوډيره بده ټهکانه ده |
| الْمُتَكَبِّرِيْنَ ﴿۷۶﴾ فَاصْبِرْ اِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ ۚ فَاِمَّا نُرِيَنَّكَ بَعْضَ الَّذِيْ |
| دتکبر کونکو.پس صبر کوه ته اې پیغمبره،بیشکه وعده دالله حقه ده،پس کچرې مونږه اوښايو تاته بعضې هغه عذاب |
| نَعِدُهُمْ اَوْ نَتَوَفَّيَنَّكَ فَاِلَيْنَا يُرْجَعُوْنَ ﴿۷۷﴾ |
| چه وعده ئې کوو مونږ ددوئ سره یا وفات کړو مونږ تا مخکښې دعذاب ددوئ نه ، نو مونږ ته به دوئ راوستلې شي |

﴿ أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ يُجَادِلُونَ فِي آيَاتِ اللَّهِ ﴾دا اعاده دزجر ده ، یعني څومره دتعجب خبره ده چې دومره واضحه دلائل بیان شو ، دينه باوجود دوئ هغې کښې بحث ومباحثه کوي او ایمان نه راوړي، «أَنَّىٰ يُصْرَفُونَ » «أَنَّىٰ» په معنی د کیف سره دې یعنی څنګه اړولې کیږې یا په معنې "این" سره دې یعني په کوم طرف دوئ روان دي ؟!

« الَّذِينَ كَذَّبُوا » اعاده ده د تخویف اخروي چې د قرآن او سنت منکرین به جهنم ته څې او هلته به ورته قسم قسم عذابونه میلاویږي ، «الَّذِينَ» یا مبتدا دې او « فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ » ورله خبر دې اویا بدل دې د« الَّذِينَ يُجَادِلُونَ» نه، «بِالْكِتَابِ » دینه مراد جنس کتاب سماوي دي او«وَبِمَا أَرْسَلْنَا بِهِ رُسُلَنَا»نه احکام شرعیه مراد دي او یا «بِالْكِتَابِ » نه مراد قرآن دي او « وَبِمَا أَرْسَلْنَا بِهِ رُسُلَنَا »نه مراد نور کتب سماویه دي « فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ » تهدید دې او مفعول د« يَعْلَمُونَ »حذف شوې دې د پاره د تهویل یعني ډیر زر به دوئ ته پته اولږي چې څنګه انجام دې او څنګه عذاب دې ؟ مخکښې آیاتونو کښې دَ تخویف اخروي تفصیل بیان دې او مختلف قسم عذابونو تذکره کیږي :

« إِذِ الْأَغْلَالُ فِي أَعْنَاقِهِمْ » دا اول عذاب دې چې ستونو کښې به ورله طوقونه اچولې شوي وي، « إِذْ» متعلق دې په « فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ» سره ، خو دلته اشکال کیږي چې « إِذْ» ماضي د پاره

راځي او سوف د استقبال د پاره ، نو دلته دا دواړه څنګه جمع کيدې شي ؟ جواب دا دې چې دلته « إِذِ » په معنې د "اذا" سره دې خو چونکه مستقبل خبر ورکول داسې يقيني دې لکه ماضي ، نو ځکه ترينه تعبير د پاره "اذ" راوړلې شو ، او يا "اذ" په معنې "حين" سره دې چې مطلق زمان د پاره راځي، «وَٱلسَّلَٰسِلُ» دا دويم عذاب دې ،چې زنځيرونه به وي . «وَٱلسَّلَٰسِلُ» جمع "سلسلة" زنځير ته وئيلې کيږي، دا يا عطف دې په «ٱلْأَغْلَٰلُ » باندې ، او مطلب دا دې چې د دوئ په ستونو کښې، طوقونه وي او زنځيرونه به ورته اچولي شوي وي او په جهنم کښې به راښکلې کيږي ، يا « ٱلْأَغْلَٰلُ » مبتدا دې او خبر ورله محذوف دې چې " في ارجلهم " دې ،« يُسْحَبُونَ ﴿٧١﴾ فِى ٱلْحَمِيمِ» دا دريم عذاب ذکر دې ، چې جهنم کښې به دوئ ترلې راښکلې کيږي ، او جمله مستانفه ده ،کما في الروح، يا حاليه ده د ضمير د «يُسْحَبُونَ» نه يا د « فِىٓ أَعْنَٰقِهِمْ » نه ، « ثُمَّ فِى ٱلنَّارِ يُسْجَرُونَ » دَ څلورم عذاب ذکر دې ،يعني صرف دا نه ده چې جهنم کښې به اور وي ،دوئ به پکښې ګرځولې شي او د جسم باهر حصه به ئي سوزي ، بلکه دوئ کښې د ننه به هم اور لګولې کيږي او باطناً به سوزي لکه ظاهراً چې سوزي، "سجر" وئيلې کيږي خس وخاشاک او لرګو نه تنور ډکولو او بيا ډک تنور اور بلولو ته، او دلته تشبيه د دوئ تنورونو سره داسې ده لکه څنګه چې تنور کښې د ننه اور بليږي نو دغه شان به دوئ کښې هم د ننه اور بليږي اللهم اجرنا من النار بفضلک(روح ، التحرير والتنوير)

« ثُمَّ قِيلَ لَهُمْ » دا پنځم عذاب ذکر دې چې روحاني عذاب دې . يعني دې عذابونو سره سره به ورته پيغور ورکولې کيږي چې چرته دې هغه بتان او خدايان چې تاسو دالله جل جلاله سره شريک ګرځولو ؟را اوغواړئ چې مدد خو اوکړي؟ «مِن دُونِ ٱللَّهِ» حال دې ، يعني هغه خدايان چې د الله نه ماسوا دي ، «قَالُوا۟ ضَلُّوا۟ عَنَّا» دوئ به جواب ورکړي چې هغوئ زمونږ نه روک شو ، يا خو به حقيقتاً روک شوي وي او دې موقع کښې به ورسره نه وي موجود ، بلکه د جهنم بلې طبقې کښې به پراته وي ،دا نه چې جهنم کښې به بالکل وي نه ، او يا به حقيقتاً نه وي ورک ، بلکه ورسره به وي خو څه مدد به ئي نشي کولې نو وجود او عدمِ وجود به ئي برابر وي نو ځکه به دا وائي چې هغه ورک دي « بَل لَّمْ نَكُن نَّدْعُوا۟ مِن قَبْلُ شَيْـًٔا » "بل" اضراب انتقالي د پاره دې ، يعني دوئ به وائي چې نن مونږ ته معلومه شوه چې مونږ د چا عبادت کولو هغه په هيڅ کښې نه دي

((شَيْئًا)) نه مراد شيئا يعتد به دې يعني هيڅ دکار څيزونه نه دي .څکه دومره سخت ضرورت په وخت کښې نن زمونږ نه غائب دي او پکار خو رانغلل. يا "بَل" د پاره د اضراب ابطالي دې يعني کله چې دوئ اوګوري چې د دوئ الهه د دوئ هيڅ پکار رانغلل نو دوئ به د عبادت نه انکار اوکړي چې مونږ د چا عبادت نه دې کړې، کما في قوله جل في علاه : (( ثم لم تكن فتنتهم الا ان قالوا والله ربنا ما كنا مشركين ))

((كَذَٰلِكَ يُضِلُّ اللَّهُ الْكَافِرِينَ)) (۱) مشار اليه د "ذلک" مجادلين او دهغوئ اضلال دې . او ((الْكَافِرِينَ)) نه مراد عام کفار دي ،يعني څنګه چې الله جل جلاله دوئ ګمراه کړل دغه شان هر کافر ګمراه کوي، (۲) يا مشار اليه ضلال مذکور دې چې ذکر ئي په لم نكن ندعو من قبل شيئا کښې اوشو ، يعني الله جل جلاله دوئ نن په دنيا کښې داسې ګمراهئ کښې اخته کړي دي چې صبا قيامت په ورځ به دوئ ته په خپله واضحه شي او اقرار به اوکړي چې لم نكن ندعو من قبل شيئا ، (۳) او يا مشار اليه ضلال د الهؤو دې ،يعني څنګه چې د دوئ الهه د دوئ نه غائب شي ،دوئ به هم الله جل جلاله د دوئ آلهه نه غائب کړي او يو بل سره ملاقات به ئي نشي کيدې

﴿ذَٰلِكُم بِمَا كُنتُمْ﴾ علت دَعذاب ذکر کوي،﴿تَفْرَحُونَ فِي الْأَرْضِ﴾فرح خوشحاله کيدل او مسرور کيدلو ته وائي،او"مرح"شدت فى الفرح چې مستلزمه وي تکبر،فخر،غروراوظلم لره،په آيت کريمه کښ دَ مطلق فرح مذمت نه دې مقصود بلکه مذمت صرف په هغې فرح وارد دې چې دَ آخرت فراموشي اوخدافراموشي نتيجه وي نوددې وجه نه ورسره﴿بِغَيْرِ الْحَقِّ﴾ قيد ذکر شو، او "مرح" مطلقًا مذمومه اوحرامه ده نوځکه ورسره قيدذکرنشو.

﴿ادْخُلُوا أَبْوَابَ جَهَنَّمَ﴾دا شپږم عذاب دې چې هغه جهنم کښې د هميشه هميشه اوسيدلو اعلان دې ، په دې سره به د کفارو تکليف کښې نور هم اضافه اوشي ځکه چې د تکليف ختميدو اميد سره سړي ته تسلي او راحت ميلاويږي نو اوس خو به هغه اميد هم قطع شي ، دې تفسير نه واضحه شوه چې دلته ((ادْخُلُوا)) نه داخليدل نه دي مراد ځکه چې دې اعلان په وخت کښې به خو دوئ جهنم کښې وي بلکه دينه مراد خلود دې په جهنم کښې .((أَبْوَابَ جَهَنَّمَ)) کنايه ده داوسيدلونه ځکه چې کور ته راتلل او بيا هلته اوسيدل په دروازې سره کيږي (التحرير والتنوير) يا أبواب خپلې حقيقي معنې کښې دې او دينه مراد دجهنم مختلف طبقاتو

دروازې دي ، چې هر مجرم به د خپل جرم موافق طبقه کښې پاتې کیږي ،یعني خلود اعلان به اوشي او هر مجرم ته به اونیلې شي خپلې خپلې طبقې ته لاړ شئ

« فَاصْبِرْ إِنَّ وَعْدَ اللَّهِ حَقٌّ » دا اعاده ده دَ تسلي . یعني الله جل جلاله وعده حق ده. ضرور به دَ خپلو رسولانو ، دَ هغوئ دین او د هغوئ منونکو مدد به کوي او دهغوئ دشمنان به هلاک کوي خو ته لګ صبر اوکه ، « فَإِمَّا نُرِيَنَّكَ بَعْضَ الَّذِي » یعني ستا په ژوند کښې به پرې عذاب نازل کړم ، ته به ئې اوګورې او سترګې به دې پرې یخې شي «اما»اصل کښې اصل کښې "انْ" او "ما" وو ، "انْ" شرطیه دې او "ما" زائده ده او جوابِ شرط محذوف دې چې " فنقر عیناک " دې «أَوْ نَتَوَفَّيَنَّكَ »دا شرطِ ثاني دې او عطف دې په " نرینک" باندې او جواب شرط ئې «فَإِلَيْنَا يُرْجَعُونَ» دې ، او د دې جملې دوه مطلبه کیدې شي : (۱)یو دا چې کچرته مونږ تا وفات کړو او ته خپل حیات کښې په دوئ باندې عذاب اونه ګورې (بیا عام ده که ستا وفات نه ورستو په دنیا کښې پرې عذاب راغلې وي او که نه) خو آخرت کښ به د دوئ رجوع مونږ ته کیږي هلته به ترینه سخت انتقام اخلو ، (۲) ابن عاشور رحمه الله « فَإِلَيْنَا يُرْجَعُونَ» نه دنیوي عذاب مراد اغستې دې ،یعني ستا نه ورستو به هم په دوئ زمونږ عذاب وقتاً فوقتاً راځي او دوئ زمونږ طرف ته راځي ، خلاصه دا چې دنیوي عذاب به خامخا په دوئ نازلوو، څه ستا په موجودګئ کښې او څه ستا د وفات نه ورستو،

څنې مفسرین « فَإِلَيْنَا يُرْجَعُونَ» دواړو شرطونو دَ پاره جزا ګرځولې ده نو دی تقدیر باندې مطلب دا دې چې کچرته ستا په ژوندکښې مونږ دوئ ته سزا ورکړو او ته ئې او وینې یا ستا په ژوندکښې ورته سزا ورنکړو (برابره خبره ده چې ستا وفات نه ورستو ورله سزا ورکړو او که نه) خو په هر حال کښې به د دوئ رجوع مونږ ته.کیږي او آخرت کښې به ورته سزا میلاویږي

| وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا رُسُلًا مِّن قَبْلِكَ مِنْهُم مَّن قَصَصْنَا عَلَيْكَ |
|---|
| او خامخا په تحقیق سره لیږلي وو مونږه رسولان مخکښ دَستانه بعضِ دَدوئ نه هغه دي چې قصې بیان کړيدي مونږ تاته |
| وَمِنْهُم مَّن لَّمْ نَقْصُصْ عَلَيْكَ وَمَا كَانَ لِرَسُولٍ أَن يَأْتِيَ |
| او بعض دَدوئ نه هغه دي چه ندي بیان کړي مونږ قصې دَهغوئ تاته، او نیشته دې په اختیار دَیو رسول کښ دا چه راوړي |

| بِاٰيَةٍ | اِلَّا | بِاِذْنِ | اللّٰهِ | فَاِذَا | جَآءَ | اَمْرُ | اللّٰهِ | قُضِيَ | بِالْحَقِّ | وَخَسِرَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

يوه معجزه مگر په اجازت دَ الله ﷻ سره ،نوكله چې راشي حكم دَ الله تعالى فيصله به اوكړيشي په حقه سره اونقصان مند به شي

| هُنَالِكَ | الْمُبْطِلُوْنَ ﴿٧٨﴾ | اَللّٰهُ | الَّذِيْ | جَعَلَ | لَكُمُ | الْاَنْعَامَ |
|---|---|---|---|---|---|---|

په دغه وخت كښې منكلي لكونكي په باطل پورې،الله ﷻ هغه ذات دې چه پيداكړيدي ستاسودپاره څاروي

| لِتَرْكَبُوْا | مِنْهَا | وَمِنْهَا | تَاْكُلُوْنَ ﴿٧٩﴾ | وَلَكُمْ | فِيْهَا | مَنَافِعُ | وَلِتَبْلُغُوْا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

چې سوريږئ په څنو اوبعض دَدوئ نه خورئ تاسو.اوستاسودپاره پديكښې فائدې دي،اوددې دپاره چې تاسواورسئ

| عَلَيْهَا | حَاجَةً | فِيْ | صُدُوْرِكُمْ | وَعَلَيْهَا | وَعَلَى | الْفُلْكِ |
|---|---|---|---|---|---|---|

هغې باندې هغې حاجت ته چه ستاسوپه سينوكښې دې اوپه دې څناور باندې ،په اوچه كښې، اوپه بيړوباندې

| تُحْمَلُوْنَ ﴿٨٠﴾ | وَيُرِيْكُمْ | اٰيٰتِهٖ | فَاَيَّ | اٰيٰتِ | اللّٰهِ | تُنْكِرُوْنَ ﴿٨١﴾ |
|---|---|---|---|---|---|---|

تاسوسوره ولې شئ.اوالله تعالى ښائي تاسوته دلائل دَتوحيدخپل،نودَالله په دليلونوكښې دكوم يونه تاسوانكاركولشئ.

﴿وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا رُسُلًا﴾دا اعاده ده دَدليل نقلي او تسلي ده نبي كريم صلي الله عليه وسلم ته ، مشركينو به عناداً په نبي عليه الصلاة والسلام باندې دا سوال كولو چې كچرته دې د الله جل جلاله حقيقي رسول وي نو پكار ده چې مونږ ته زمونږ مطلوبه او فرمائشي معجزې راوړې ، نو الله جل جلاله جواب وركوي چې اې پيغمبره! يواځې ته خو پيغمبر نه يې، بلكه ستا نه مخكښې هم ما ډير پيغمبران راليږلي دي، هغوئ نه قوم دَغه شان سوالات كړي وو لكه دوئ چې ستا نه كوي ، خو چونكه معجزه پيش كول د نبي په اختيار كښې نه وي نو دې وجهې نه. هغوئ د خپلو رسولان تكذيب اوكړو ،نو دغه شان دوئ هم ستا تكذيب كوي ، نو ته دې ته مه پريشانه كيږه كله چې الله عذاب راشي بيا به نقصان او خساره موندونكي صرف اهل باطل وي .

﴿اَللّٰهُ الَّذِيْ جَعَلَ لَكُمُ الْاَنْعَامَ﴾دادَ دليل عقلي اعاده ده چې الله جل جلاله تاسو دپاره څناور پيدا كړي دي چې هغې سره ستاسو ډير منافع وابسته دي لهذا صرف هغه اله اومنئ ، بل څوك ورسره مه شريک کرځوئ ، «لَكُمْ»اي: لمصلحتكم ومنفعتكم ستاسو منفعت دپاره ئې پيدا

کړي دي ، دا اجمال دی ، «الْأَنْعَٰمَ» نه مراد یا صرف اوښان دي او یا هغه اته «۸» قسمه څناور دي چې ذکر ئې په سورهٔ انعام کښې تیر دی : ومن الابل اثنین ومن البقر اثنین الخ «لِتَرْكَبُوا مِنْهَا» دا دماقبل اجمال تفصیل دی او دا ئې اوله فائده ده چې رکوب او سوارې وربانډې کیږي «وَمِنْهَا تَأْكُلُونَ» دا ئې دویمه فائده ذکر دې چې خوراک بندوبست ترینه هم کیږي

«وَلَكُمْ فِيهَا مَنَافِعُ» دا ئې دریمه فائده ذکر دې چې رکوب او خوراک نه علاوه نورې فائدې پکښې هم دي لکه شودې شوې ، څرمن شوه وغیره «وَلِتَبْلُغُوا عَلَيْهَا حَاجَةً» څلورمه فائده ذکر دې ، دینه مراد لرې اوتجارتي سفر او نقل حمل دی «وَعَلَيْهَا وَعَلَى الْفُلْكِ تُحْمَلُونَ» دیکښې د الله جل جلاله یو بل نعمت د کشتئ ذکر دی چې الله جل جلاله درله سمند مسخر کړي دی او دا پکښې روانه وي او تاسو پکښې خپل سامان اچولي روان يئ ، «عَلَيْهَا» ضمیر راجع دی انعام ته او د دې ذکر به طورِ تمهید شوې دی ،اصل مقصود دکشتئ فائدې بیان دی،یعنی لکه څرنګه چې تاسو په څناوربانډی سفر کوئ نو دغه شان ئې ورله کشتئ هم مسخر کړیدی « تُحْمَلُونَ » کښې نسبت انسانانو ته تغلیباً شوې دی ګنې انسانان او د هغوئ سامان او اثقال دواړه مراد دي،

﴿وَيُرِيكُمْ ءَايَٰتِهِۦ﴾ یعني دلائل دَقدرت اودَتوحید،﴿فَأَيَّ ءَايَٰتِ ٱللَّهِ﴾ ایّ منصوب دی په ﴿تُنكِرُونَ﴾ سره،مقدم شویدی په خپل عامل بانډې دَوجه دَتقاضي دَصدارت نه،اوپدې استفهام کښں توبیخ دي.

أَفَلَمْ يَسِيرُوا۟ فِى ٱلْأَرْضِ فَيَنظُرُوا۟ كَيْفَ كَانَ عَٰقِبَةُ ٱلَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ

آیا دوئ نه دی ګرځید لي په زمکه کښں چې لیدلي وې دوئ څنګه وؤانجام دهغه کسانوچې دَدوئ نه مخکښں وؤ،

كَانُوٓا۟ أَكْثَرَ مِنْهُمْ وَأَشَدَّ قُوَّةً وَءَاثَارًا فِى ٱلْأَرْضِ فَمَآ أَغْنَىٰ عَنْهُم

وؤهغوئ زیات دَدوئ نه اوسخت وؤپه قوة کښں اوپه آباد کښې چې زمکه کښې ئې پریخې دي،پس فائده ورنکړه دوئ ته

مَّا كَانُوا۟ يَكْسِبُونَ ﴿٨٢﴾ فَلَمَّا جَآءَتْهُمْ رُسُلُهُم بِٱلْبَيِّنَٰتِ فَرِحُوا۟

هغه عملونوچه دوئ کولو .پس هرکله چه راغلل دوئ ته رسولان دَدوئ په واضحه معجزوسره نوخوشحاله شول دوئ

| بِمَا عِنْدَهُمْ مِّنَ الْعِلْمِ وَحَاقَ بِهِمْ مَّا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ ۝ |
|---|
| په هغه سره چې دوئ سره به کوم علم شرکي وو، اوګير کړل دوئ هغې عذاب چې دوئ به ور پورې استهزاء کوله. |
| فَلَمَّا رَاَوْا بَاْسَنَا قَالُوْٓا اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَحْدَهٗ |
| پس هرکله چې اوليدلو دوئ زمونږ عذاب نواوئي ونيل چه مونږ ايمان راوړې دي په الله ﷻ يو باندې |
| وَكَفَرْنَا بِمَا كُنَّا بِهٖ مُشْرِكِيْنَ ۝ فَلَمْ يَكُ يَنْفَعُهُمْ اِيْمَانُهُمْ |
| او انکار کوؤ مونږ د هغې چه وؤ مونږ چه الله سره موشريک ول، پس بيانه وؤ دا چه نفع ورکړې وې دوئ ته ايمان ددوئ |
| لَمَّا رَاَوْا بَاْسَنَا ؕ سُنَّتَ اللّٰهِ الَّتِيْ قَدْ خَلَتْ فِيْ عِبَادِهٖ |
| کله چې ئې وليدلو عذاب زمونږ، دا طريقه ده د الله تعالى هغه چه په تحقيق سره تيرشويده په بندګانو ددہ کښې |
| وَخَسِرَ هُنَالِكَ الْكٰفِرُوْنَ ۝ |
| او نقصان مند شول په دغه وخت کښې کافران. |

﴿ اَفَلَمْ يَسِيْرُوْا فِى الْاَرْضِ ﴾ دا د تخويف دنيوي اعاده ده چې تفسيرئي مخکښې تير شويدې، ﴿ فَمَآ اَغْنٰى عَنْهُمْ ﴾ "ما" نافيه ده اى لم يغن عنهم، فائده ورنه کړه دوئ ته کسب د دوئ يا استفهاميه ده اى اىُّ شيئٍ اغنىٰ عنهم الذى كسبوه (روح) يعني کوم څيزدوئ ته فائده ورکړه چې دوئ کسب کړی وؤ؟

﴿ فَلَمَّا جَآءَتْهُمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ ﴾ يعني واضحې معجزې او ښکاره دلائل ﴿ فَرِحُوْا بِمَا عِنْدَهُمْ مِّنَ الْعِلْمِ ﴾ د دې په تفسير کښې يو څو اقوال دي:

(۱) "اَلْعِلْمِ" نه مراد دوئ توهمات او باطل عقائد دي، او اطلاق د علم پرې تهکماً او استهزاء شوې دې، او يا د هغوئ اعتقاد مطابق شوې دې، او د «فَرِحُوْا» او «عِنْدَهُمْ» دواړه ضمير راجع دې کفارو ته؛ او مطلب دا دې چې علوم الهيه او نبويه په مقابله کښې دوئ خپلو توهماتو او رسوماتو له ترجيح ورکړه او په هغې راضي شو،

(۲) "ٱلۡعِلۡمِ" نه مراد دنيوي علوم دي ، لکه صنعت ، تجارت وغيره شو . کما في قوله جل و علاه : يعلمون ظاهراً من الحيوة الدنيا (الروم:۷) وقوله جل جلاله : لم يرد الا الحيوة الدنيا . ذلک مبلغهم من العلم (النجم ۳۴، ۳۵) او مطلب دادي چې علوم دينيه باندې ئې علوم دنيويه له ترجيح ورکړه ،او افسوس صد افسوس نن په مسلمانانو کښې د کافرانو دا مزاج ډير په تيزئ سره را روان دې ، اعتقاداً اګر که نه وي خو عملاً او صورتاً نن د اکثر مسلمانانو دا طرزِ عمل دې چې دنيوي علومو او د هغې په ډګرو باندې خوشحاليږي او بل طرف ته ئې دين برباد روان دې هغې ورسره هډو څه غم او پرواه نشته !

(۳) "ٱلۡعِلۡمِ" نه مراد علوم دَ انبياؤو دي او ضمير دَ ﴿فَرِحُوا﴾ راجع دې کافرانو ته او ﴿عِندَهُم﴾ ضمير رسولانو ته راجع دې،او دَ فرحَ نه مراد استهزاء کول دی،نومطلب دادې چه دې کافرانو استهزاء وکړه په هغې علم چې انبياؤ سره وؤ ، ددې نه علاوه نور هم متعدد اقوال پکښې شته دې،

﴿فَلَمَّا رَأَوۡا بَأۡسَنَا﴾ «باس» نه مراد سخت عذاب دې ،ومنه قوله تعالى:عذاب بئيس، ﴿وَكَفَرۡنَا بِمَا كُنَّا﴾ "باء" يا سببيه ده يعني دَ هغوئ دَ عبادت کولو په وجه مونږ مشرکان وؤ ، يا متعلقه ده دَ «مشرکين» سره ، يعني چې مونږ به الله تعالى سره شريك کول،

﴿فَلَمۡ يَكُ يَنفَعُهُمۡ إِيمَٰنُهُمۡ﴾ "يَكُ" اصل کښې "يکن" وؤ او دا د نفي معني کښې دپاره راوړلې شوې دې «إِيمَٰنُهُمۡ» اسم دې د "يَكُ" دپاره او ينفعهم کښې ضمير مستتر فاعل دې او او يا «إِيمَٰنُهُمۡ» فاعل دې د «يَنفَعُهُمۡ» او "يَكُ" فاعل ضمير شان مستتر دې ، «سُنَّتَ ٱللَّهِ» منصوب بنا بر نزع خافض دې ، اي : کسنت الله او يا مفعول مطلق دې د فعلِ محذوف دپاره ، اي: سن سنت الله ، يعني کله چې الله ايمان اوليدلو نو بيا ئې ايمان راوړل غوختل خو دې وخت بيا ايمان چرته قبليږي ، دا خو د الله جل جلاله سنت جاريه دې چې نزول دعذاب په وخت کښې د چا عذاب نه قبلوي.

﴿وَخَسِرَ هُنَالِكَ ٱلۡكَٰفِرُونَ﴾ "هنالك" دَ ظرف زمان دپاره مستعار دې اى وخسروا وقت رؤية البأس (کبير،زجاج رحمه الله) واتې چې کافر په هر وخت کښې خاسروي ليکن په وخت دَ عذاب کښې ورته ښکاره خسران ظاهر شي.

| آياتها (۵۴) | سورة حم سجده مكية | ركوعاتها (۶) |
| --- | --- | --- |
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بيحده مهربان او ډير رحم كونكې دې شروع كوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۴۱) وحسب النزول (۶۱)**

سورة حم سجده مكي سورة دې، دَسورةِ مؤمن نه بعد نازل شويدې،

**ربط**: په حواميم سبعه ؤكښ ربط دادې چې مابعدحم به جواب دَيوسوال كوي چې په ماقبل حم باندې واردوي، داحم سجده هم دَيوسوال جواب كوي چې په ماقبل حم دعوې ﴿فَادْعُوا اللَّهَ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ﴾ باندې وارد دې ، چې مشركان وائي چې ډير كرته ليدلې شويدى چې يوسړې په مصيبت كښې گرفتار وي چې كله دَغير الله ﷻ نه مدد اوغواړى دَهغه په نوم نذر نياز اومنى نونجات ورته ميلاؤشي ياداسې خوبونه اووينى چې دَشرك تائيد ورسره كيږي. نوجواب اوشوچې ﴿وَقَيَّضْنَا لَهُمْ قُرَنَاءَ﴾ چې داشيطانى اثرات او وساوس وى او انسان په دې سره گمراه كوى.

**دعوه دَسورت**

دعوه دَسورت توحيد ده، چې (( أَنَّمَا إِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ ))(آيت:6) كښې ذكر ده

**دَسورة دَمضامينواجمالي خُلاصَه**

تمهيدمع ترغيب، پنځه عقلي دلائل، دَهردليل نه ورستوتخويف دنيوي، أخروي، څلور شكوىٰ هره شكوه على سبيل الترقي، اودَهغې جوابونه، دَطريقودَتبليغ بيان، دَدرې(۳) شبهاتو جوابونه اوضمنًادليل وحي.

**تفصيلي خُلاصه**: ﴿حمٓ ۞ تَنزِيلٌ مِّنَ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ﴾ (۱)آيت نه تر ﴿بَشِيرًا وَنَذِيرًا﴾ آيت(۴) پورې تمهيدمع ترغيب دې، ﴿قُلْ إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ﴾ آيت(۲) دليل وحي دې ضمنًا اوصراحتًا دعوى دَ سورة ذكردي. ﴿وَوَيْلٌ لِّلْمُشْرِكِينَ ۞﴾ نه تر ﴿وَهُم بِالْآخِرَةِ هُمْ كَافِرُونَ ۞﴾ پورې تخويف اخروي دي.

﴿إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا﴾ آيت:۸ بشارت أخروي دي،

**پنځه دلائل عقليه**:

﴿قُلْ أَئِنَّكُمْ لَتَكْفُرُونَ﴾ تر آيت ۱۰ پورې اول دليل عقلي دی،

﴿وَمِنْ آيَاتِهِ اللَّيْلُ وَالنَّهَارُ﴾ آيت ۳۷ دويم دليل عقلي دی،

(وَمِنْ آيَاتِهِ أَنَّكَ تَرَى الْأَرْضَ) آيت نمبر ۳۹، دريم دليل عقلي دی.

﴿إِلَيْهِ يُرَدُّ عِلْمُ السَّاعَةِ﴾ آيت ۴۷ څلورم دليل عقلي دی،

﴿أَوَلَمْ يَكْفِ بِرَبِّكَ أَنَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدٌ﴾ آيت ۵۳ پنځم دليل عقلي دی.

**څلور شکوې**:

﴿فَأَعْرَضَ أَكْثَرُهُمْ فَهُمْ لَا يَسْمَعُونَ﴾ آيت ۴، ۵ اوله شکوه ده،

﴿وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لَا تَسْمَعُوا﴾ آيت ۲۶ دويمه شکوه ده،

﴿مَا يُقَالُ لَكَ إِلَّا مَا قَدْ قِيلَ لِلرُّسُلِ﴾ آيت ۴۳ دريمه شکوه ده،

﴿لَا يَسْأَمُ الْإِنْسَانُ مِنْ دُعَاءِ الْخَيْرِ﴾ آيت ۴۹ نه تر ﴿فَذُو دُعَاءٍ عَرِيضٍ ۞﴾ پورې څلورمه شکوه ده،

**درې شبهاتو جوابونه**:

﴿وَلَوْ جَعَلْنَاهُ قُرْآنًا أَعْجَمِيًّا﴾ آيت ۴۴ د اولې شبهې جواب دی،

﴿وَلَقَدْ آتَيْنَا مُوسَى الْكِتَابَ فَاخْتُلِفَ فِيهِ﴾ آيت ۴۵ دويمې شبهې جواب دی

﴿وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِنْ رَبِّكَ لَقُضِيَ بَيْنَهُمْ﴾ آيت ۴۵ دريمې شبهې جواب دی.

تمت خلاصة السّورة اجمالاً وتفصيلاً.

| كِتٰبٌ ۞ | الرَّحِيْمِ | الرَّحْمٰنِ | مِّنَ | تَنْزِيْلٌ ۞ | حٰمٓ |
|---|---|---|---|---|---|

الله عالم دی په معنیٰ ددې، داقرآن نازل دی د طرفه هغه ذات نه چه بيحده مهربانه رحم کونکی دی، داسې کتاب دی

| بَشِيْرًا ۞ | يَّعْلَمُوْنَ | لِّقَوْمٍ | عَرَبِيًّا | قُرْاٰنًا | اٰيٰتُهٗ | فُصِّلَتْ |
|---|---|---|---|---|---|---|

چه واضح بيان کړې شويدي آياتونه ددې، قرآن دی په عربئ ژبه کښې دپاره دهغې قوم چه پوهيږي، زيرې ورکونکی دی

| فِيْٓ اَكِنَّةٍ | قُلُوْبُنَا | وَقَالُوْا | لَا يَسْمَعُوْنَ ۞ | فَهُمْ | اَكْثَرُهُمْ | فَاَعْرَضَ | وَّنَذِيْرًا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

اويره ونکی دی، نواعراض اوکړو اکثرو د دوئ پس دوئ نه آوري. اووائي دوئ زړونه زمونږ په پردوکښې دی

| مِمَّا تَدْعُونَا إِلَيْهِ وَفِي آذَانِنَا وَقْرٌ وَمِنْ بَيْنِنَا وَبَيْنِكَ حِجَابٌ |
|---|
| دَهغې نه چه ته راغوارې مونږ هغې ته اوپه غوږونوزمونږكښې دروند والې دې اوزمونږاو ستاپه مينځ كښې پرده ده |
| فَاعْمَلْ إِنَّنَا عَامِلُونَ ۝ |
| پس ته په خپل دين عمل كوه بيشكه مونږه په خپل دين عمل كونكي يو. |

﴿حمٓ ۝١ تَنزِيلٌ مِّنَ ٱلرَّحْمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ﴾ تمهيد مع الترغيب دې چې دا قرآن رحيم ذات له طرف نه نازل شوې دې،دې كښې دستاسو دنيوى او اخروى فائدې دى لهذا په دې ايمان راوړئ. ددې تفسير اوتركيب په ابتدا دَسورة زمركښې تيرشويدې،﴿كِتَٰبٌ﴾ تنوين د پاره د تعظيم دې ، او بدل دې د «تَنزِيلٌ» نه خبر بعد خبر دې ،﴿فُصِّلَتْ ءَايَٰتُهُۥ﴾ صفت دې دكتب تفصيل هغه بيان نه وائى چې پكښې ابهام ،التباس او تشنگى نه وى،نو قرآن لفظا هم مفصل دې چې دآيت آيت سره اودَسورت سورت سره هيڅ التباس نشته،آيت دآيت نه جدا اوسورت دَ سورت نه جدا دې،دَسورت ابتدا هم معلومه ده چې دكوم ځائ نه شروع كيږى او انتهائى هم معلومه ده چې په كوم ځائى ختميږى،او معنا هم مفصل دې،چې په دې كښې هر قسم وضاحت موجود دې،عقائدو بيان هم دې او احكاماتو بيان هم،وعد وعيد پكښې هم دې اوبشارات وتخويفات پكښې هم شته.اوداټول په داسې واضح انداز كښې دى كه څوك دَهدايت اوحق طلب گار وى نو هغه ته پكښې هيڅ دشوارى نه راځى،(قُرْءَانًا ) منصوب بنا بر مدح دې. اي:امدح قرآنايا حال دې دَ«كِتَٰبٌ»،دې كښې دكتاب بل وصف بيان دې چې دا هغه كتاب دې چې لوستلې كيږى اولوستل ئې آسان هم دې(عَرَبِيًّا ) صفت دې دَ(قُرْءَانًا ). ﴿لِّقَوْمٍ يَعْلَمُونَ﴾دَقرآن مخاطب خوټول عالم انساني دې،ليكن ددې نه نفع صرف هغه اخلي چې دَعلم اوفهم نه كاراخلي اوڅوك چې ورنه نفع نه اخلي نودَهغه هوش حواس صحيح ندې،نو﴿يَعْلَمُونَ﴾په معنىٰ لازمي كښې مستعمل دې اي لقوم ذي علم،نودې كښې اشاره ده ديته چې كوم خلق دقرآن نه انكار كوى او دې په مضامينو ايمان نه راوړې هغه جاهل دى

ددې سورة دَابتدائي آياتونو په باره كښې راغلي دي چې ابو الوليد (عُتبه بن ربيع)يو خل دَخپل قوم په مشورې سره دَحضورﷺ په خدمت كښې راغې،په عربو كښې اوخاص كرپه قريشو كښې

دانتشاراودتفريق الزام ئې په حضورﷺ باندې عائدکړو ،اوبيائې ورته اووې چې ستادې تحريك څه مقصددې؟ که ستامقصدمال جمع کول وي نومونږبه ستادپاره دومره مال جمع کړوچې ته به په ټول قوم کښې مالداره شې اوکه ستامقصداقتداراوحکومت وي نو مونږ تا د ټولو قريشوسردارتسليمه وو،اوکه په تاجنون ياجنات وي(نعوذبالله) نوددې علاج هم مونږ پخپله خرچه کوو اوکه ته دېوې حسينې جميلې ښځې سره دنکاح خواهشمندئې نومونږبه تاته (۱۰)لس ښځې حاضرې کړو،ابولوليددغه طويل تقريرکولواوحضورﷺ ورته خاموش وو،دې نه بعدورته حضورﷺ اووئيل چې اى ابوالوليد! تاخپله خبره پوره کړه نوهغه اووې، هاؤ،نوحضورﷺ ورته اووې چې اُوس زماخبره واوره،بيائې ورته دجواب ورکولوپه ځائې ددې سورة تلاوت شروع کړو،چې کله حضورﷺدې آيت﴿فَإِنْ أَعْرَضُوا فَقُلْ أَنذَرْتُكُمْ صَاعِقَةً﴾ته اورسيدو نو ابوالوليدراپاسې دلو،اوحضورﷺ په خلې مباركې باندې ئې لاس كيخودلو،وئې ويل: نور بس کړه،نُوربس کړه،اودحضورﷺدمجلس نه لاړواوپه کورکښې خاموشه کيناست، چا ورنه تپوس وکړوچې څه درباندې اوشو،وئې ويل "انّي سمعتُ قولاً والله ماسمعتُ مثله"(ابن كثير) چې ماداسې کلام واورېدلوچه نه سحردې،نه شعردې،نه دکاهنانوکلام دې،نواقرارئې وکړو، ليکن ايمان ئې رانه وړو.

﴿بَشِيرًا وَنَذِيرًا﴾دواړه صفات دى د﴿قُرْآنًا﴾يعنى داقرآن او اعمال صالحه حاملينو لپاره دجنت زيرى ورکونکې دې او مشرکانو لپاره دعذاب دجهنم نه يره ونکې دې﴿فَأَعْرَضَ أَكْثَرُهُمْ﴾دااوله شکوه ده،او(فاء)دپاره دتفريع ده يعنى قرآن دې صفاتوتقاضه خواداده چې دوئ ټولو پرې ايمان راوړې وى خو دوئ د ضد وعناد په بنياد ترينه اعراض اوکړو،﴿فَهُمْ لَا يَسْمَعُونَ﴾ "فاء" دلته هم تفريع دپاره ده،او داتفريع ده په اعراض، يعنى دباربار اعراض اودضدعنادپوجه ورنه دسماع قبول استعداد سلب شويدې،

﴿وَقَالُوا قُلُوبُنَا فِي أَكِنَّةٍ﴾دا دهغوئ اعراض تفصيل دې چې په درې تعبيراتو مشتمل دې:

(۱)مونږ ستاپه خبره هډو سره پوهيږونه.

(۲)مونږ ستاخبره نه اورو

(۳) مونږ اوستا په مينځ کښې حجاب دې،دېوبل نه ډير لرې اوفنا يو.لهذا ليدل کتل پوهيدل او پوهول او اوريدل اورل هيڅ نه کيږى،بس ته خپل عمل کوه مونږ په خپل عمل کوو.

﴿ قُلُوْبُنَا فِيْٓ اَكِنَّةٍ ﴾ دااول تعبير دي "اكنه" جمع دَ كنان ده، پردي ته وائي يعنى په پردو كښې رانغختي شوي دي ستاخبره راته هډو سر ه رسي نه ﴿ مِمَّا تَدْعُوْنَآ اِلَيْهِ ﴾دي نه مراد مسئله توحيد ده ﴿ وَفِيْٓ اٰذَانِنَا وَقْرٌ ﴾دا دويم تعبير دي "وقر" بوج ته وائي او دلته ترينه مراد كوڼ والي دي، يعنى زمونږ غوږونه دحق اوريدلونه كاڼه دي. ﴿وَمِنْۢ بَيْنِنَا وَبَيْنِكَ حِجَابٌ ﴾دا دريم تعبير دي ، حجاب نه مراد نظرياتي بعد او اختلاف دي چې هغه مو يوبل ته نيزدي نه پريگدي.

﴿فَاعْمَلْ اِنَّنَا عٰمِلُوْنَ ﴾اى اعمل على دينك انّاعاملون على ديننا،نوته پخپل دين عمل كوه مونږ به پخپل دين عمل كوؤ.يا دا مطلب دي چى ته زمونږ دَدين په ابطال كښې كوشش كوه،مونږ به ستا دَدين باطلولو كوشش كوؤ.

| قُلْ اِنَّمَآ اَنَا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ يُوْحٰٓى اِلَيَّ اَنَّمَآ اِلٰهُكُمْ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ |
|---|
| ته اوايه بيشكه څه خو بس بشر يم ستاسو په شان وحي كوليشي ماته داچه بيشكه معبود ستاسوصرف معبود يودي |
| فَاسْتَقِيْمُوْٓا اِلَيْهِ وَاسْتَغْفِرُوْهُ وَوَيْلٌ لِّلْمُشْرِكِيْنَ ۙ الَّذِيْنَ لَا يُؤْتُوْنَ |
| پس سيدهاځئ مخ كرئ هغه ته اوبخنه اوغواړئ دَهغه نه،اوهلاكت دي مشركانولره،هغه چه نه وركوي |
| الزَّكٰوةَ وَهُمْ بِالْاٰخِرَةِ هُمْ كٰفِرُوْنَ ۝ اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا |
| زكوة اودوئ په آخرت باندې انكاركونكي دي،بيشكه هغه كسان چه ايمان ئې راوړيدي |
| وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَهُمْ اَجْرٌ غَيْرُ مَمْنُوْنٍ ۝ |
| او كوي نيك عملونه،دوئ دپاره اجردي نه ختميدونكي، |

﴿قُلْ اِنَّمَآ اَنَا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ ﴾دا جواب شكوې او دعوې دَسورت ده چې هركله تاسو ضد اوعناد په وجه ځما خبره ردكوئ او دلائلو ته غوږ نه كيدئ، نو څه خو هم تاسو په شان انسان يم خپل دعوت درباندې خوڅه زبردستى نشم منلې شم ،خودا ده چې منصب رسالت راته راكړې شوې دې،او دَالله ﷻ طرف نه راته وحى كيږي نو دهغې دعوت به دركوم چې خالص الله ﷻ باندې ايمان راوړئ او هغه ته توبه او رجوع اوكړى

﴿ فَاسْتَقِيْمُوْٓا اِلَيْهِ ﴾اى فاستووا اليه تعالى بالتوحيد(روح)﴿وَوَيْلٌ لِّلْمُشْرِكِيْنَ ﴾دا عطف دې په "انما انا

بشر"او تخويف دي يعنى ته اووايه چې هلاکت اوتباهی دې وی مشرکينو دپاره چې ضد وعناد او حسد دَدوئ دې درجی ته رسيدلې دی.

﴿الَّذِينَ لَا يُؤْتُونَ الزَّكٰوةَ﴾ دمشرکينو مذموم وصف بيان دې چې کنجوسان دی، مستحقينو، او نقراؤو له مال نه ورکوی،دَزکات باقاعده فرضيت مقادير ،مصارف او تفصيلات اګر چې مدينه کښې راغليدی خو په مکه کښې هم مطلقا مالی صدقه بغير ددې تفصيلاتونه فرض وه او پدې اطلاق دَزکات کيدلو. ﴿إِنَّ الَّذِينَ ءَامَنُوا﴾ بشارت اخروي دې، ﴿غَيْرُ مَمْنُونٍ﴾ ای غير مقطوع.

| قُلْ | أَئِنَّكُمْ | لَتَكْفُرُونَ | بِالَّذِي | خَلَقَ |
|---|---|---|---|---|
| ته اوايه | آياتاسوکفرکوئ | په | الله ﷻ چه | پيداکړې ئي دا |

الْأَرْضَ فِي يَوْمَيْنِ وَتَجْعَلُونَ لَهُ أَندَادًا ذَٰلِكَ رَبُّ الْعَالَمِينَ ﴿٩﴾

زمکه په مقداردَدوؤورځوکښې،او ګرځوئ تاسوهغه لره شريکان،دغه ذات چه خالق دې، رب العالمين هم دې.

وَجَعَلَ فِيهَا رَوَاسِيَ مِن فَوْقِهَا وَبَارَكَ فِيهَا وَقَدَّرَ فِيهَا

اوپيدا کړی ئي دی پدې زمکه کښې پاخه غرونه دَپاسه دَهغې نه،اوبرکتونه ئي پکښې ايخي دی اوپه اندازه ئي ايخيدي پديکښې

أَقْوَاتَهَا فِي أَرْبَعَةِ أَيَّامٍ سَوَاءً لِّلسَّائِلِينَ ﴿١٠﴾ ثُمَّ اسْتَوَىٰ إِلَى السَّمَاءِ

رزقونه دَدې په څلورو ورځوکښې پوره دَپاره دَسوال کونکو(اهل کتاب)بيائي قصداوکړواسمان ته

وَهِيَ دُخَانٌ فَقَالَ لَهَا وَلِلْأَرْضِ ائْتِيَا طَوْعًا أَوْ كَرْهًا

اوداسمان په شکل دَيولوګي وؤنووې ويل دَه ته اوزمکې ته راشئ دواړه په خوښې سره يا په زبردستئ سره،

قَالَتَا أَتَيْنَا طَائِعِينَ ﴿١١﴾ فَقَضَاهُنَّ سَبْعَ سَمَاوَاتٍ فِي يَوْمَيْنِ وَأَوْحَىٰ

اونيل دواړورازو مونږ په خوښې سره،نوپوره ئي کړل هغه اوه اسمانونه،په دوؤ ورځوکښې او اوئي ليږلو

فِي كُلِّ سَمَاءٍ أَمْرَهَا ۚ وَزَيَّنَّا السَّمَاءَ الدُّنْيَا بِمَصَابِيحَ

په هر يو اسمان کښې د هغې(مناسب)حکم،اوخايسته کړيدې مونږآسمان دَ دُنيا په ستورو سره،

| وَحِفْظًا | ط | ذٰلِكَ | تَقْدِيْرُ | الْعَزِيْزِ | الْعَلِيْمِ | ۝ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوموږ ئي بندوبست کړي دي د حفاظت، | | دا | اندازه | دَ | هغه ذات ده چي غالب دي | پوهه دي |

﴿قُلْ اَئِنَّكُمْ لَتَكْفُرُوْنَ﴾ دا اول دليل عقلي دي په توحيد ،حاصل ئي دا دي چي آيا تاسو په داسي قادرمطلق ذات باندي کفر کوئ اوغيرورسره شريکوئ چه هغه خپل قدرت سره دا ټول کارونه کړيدي،اوڅوك چه تاسومتصرف اوکارسازګڼرئ دَالله ﷻ نه ماسوىٰ نوهغوئ ته پدي کارونوکښ په هيڅ کارباندي قدرت ندي حاصل،نوداڅومره دَتعجب مقام دي چي دَ،ربِّ العالمين،دَوحدانيت نه انکارکوئ.

﴿خَلَقَ الْاَرْضَ فِيْ يَوْمَيْنِ﴾تخليق دارض وسما په **دري مرحلو** او په **شپږ ورځو** کښ شويدي (۱)دوه ورځو کښ دَزمکي ماده پيدا کړي شوه.(۲)بيا دوه ورځو کښ هغه اوغوړلي شوه او زمکي انتظامات ئي مکمل کړي شو.(۳)او نورو دوه ورځو کښ دَ آسمانونو تخليق اوشو.
دا ټول کارونه شپږو روځو مقدار کښ شويدي باقي دي ترتيب متعلق مباحث په تفصيل سره حضرت والدمحترم رحمه الله په جلد اول ثم استوى الى السماء فسوهن سبع سماوات تحت درج کړيدي،هلته ملاحظه کړئ.

﴿فِيْ يَوْمَيْنِ﴾يوم مخصوص دورانيي ته وائي چي په څلوريشت ساعاتو مشتمله وي دآسمان او زمکي تخليق نه مخکښ ورځ اوشپه نه وه،ځکه چي داڅو دزمکي انتظاماتو کښ راځي.اوزمکي انتظامات الله ﷻ دَزمکي تخليق نه ورستو راليږي دي نومراد ترينه دلته اندازه او مقدار دَدوؤ ورځو دي،رواياتوکښ چي راغليدي چي دا د اتوار او پير ورځ وه نو(په تقدير د صحت دَرواياتو)مراد دادي چي موجوده هفته وار ترتيب اعتبار سره دا دَاتوار او پير ورځ راتله،والله اعلم

﴿وَتَجْعَلُوْنَ لَهٗٓ اَنْدَادًا﴾واو تفسيريه دي اوجمله ټوله تفسير ده دَ﴿لَتَكْفُرُوْنَ﴾. ﴿ذٰلِكَ رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ﴾دادويم مظهر دي يعني صرف دَزمکي خالق ندي بلکه دَټولو موجوداتورب دي،

﴿وَجَعَلَ فِيْهَا﴾عطف دي په خلق، او دا **تخليق دويمه مرحله** ده چي هغه انتظامات دَزمکي دي

﴿رَوَاسِيَ﴾ اى جبالاًثوابتَ،يعني دَزمکي **يو انتظام** دادي چي په هغي دَپاسه ئي غرونه ايخي دى چي هغي سره زمکه خوځي راخوځي نه ،بلکه په ځائي ولاړه ده او خلق پري ستوګنه کولي

شی﴿مِن فَوۡقِهَا ﴾ضمیر مجرور "الارض" ته راجع دې او جار مجرور صفت ګرځی دپاره دَ "رواسي" او دې کښې دَغرونو منظر کشی طرف ته اشاره ده چې دازمکې دپاسه وی او هر چاته ښکاری

﴿وَبَٰرَكَ فِيهَا ﴾دائی دویم انتظام ذکر دې چې زمکه ئی دَخیر وبرکت منبع اوګرځوله، د انسان دَنفعې خیزونه ئی پکښې واچول، نهرونه ئی پکښې جاری کړل،فصلونه ترینه راخیژی، معدنیات ترینه رااوځی وغیره وغیره،

﴿ وَقَدَّرَ فِيهَآ أَقۡوَٰتَهَا ﴾ اي القوات اهلهادائی دَبل انتظام ذکر دې چې دزمکې باشندګانو ضروریاتو بندوبست ئی هم ددینه اوکړو.اوداداسې چې (۱) دَکوم مخلوق کوم خوراک او غذا ده هغه ئی ورله په زمکه کښې پیدا کړې ده،(۲) دکومې علاقې او دهغې خلقو دپاره مناسب خوراک دې هغه ئی ورله هلته پیدا کړی دې(۳)هرې علاقې ته یو خصوصیت او امتیاز ورکړې دې چې هغې کښې یو پیداوار داسې وی چې هغه بلې علاقه کښې نه وی ،چې ددې په بنیاد دَتجارت سلسله قائم ده او دَخلقو معاش پرې روان دې(۴) او دهغه شان څومره مخلوقات ترقیامت پورې راروان دی دَهغوئ ټولو ضروریات ئی په زمکه کښې ودیعت ایخیدي،دیته پریشانه کیدلو ضرورت نشته چې آبادی به زیاته شی نو بیا به ورله ضروریات له کومه ځایه او څنګه پوره کیږی،﴿ فِيٓ أَرۡبَعَةِ أَيَّامٖ ﴾مجموعی اعتبار سره څلور روځې مراد دې،یعني دوه ورځو کښې ئی زمکه پیدا کړه او بیائی ورله په دوه ورځو کښې ټول انتظامات مکمل کړو نودا ټولې څلور روځې شوې،دا مراد نه دې چې صرف انتظامات ئی په څلورو ورځو کښې مکمل شو.

﴿سَوَآءٗ ﴾ مفعول مطلق دې فعل محذوف استوتدپاره،او جمله تاکید واقع کیږی اربعة"دپاره یعنی داکارونه مکمل څلورو ورځو مقدار کښې شویدې نه دینه کم کښې شویدې اونه زیات کښې ﴿لِّلسَّآئِلِينَ ﴾ جارمجرور یا خبر واقع کیږی دَمبتدا محذوف دَپاره اي هذا الحصر في اربعة کائن للسائلين او یا جارمجرور سواءسره متعلق کیږی او "سائلین" نه مراد دې دوارو تقدیرونو باندې دَزمکې تخلیق مدت باره کښې تپوس کونکی دی او یاجار مجرور متعلق کیږی دَ"قدر" سره او "سائلین" نه مراد رزق طلب کونکی دی.

﴿ثُمَّ ٱسۡتَوَىٰٓ إِلَى ٱلسَّمَآءِ ﴾دې کښې دریمې مرحلې یعنی دا آسمانو تخلیق بیان دې چې بیائې مزید دو ورځو مقدار کښې اووه آسمانونه پیدا کړل او دهغې ئی مکمل انتظام اوکړو. ﴿ٱسۡتَوَىٰٓ ﴾دلته یا

پمعنى د علو او ارتفاع سره ده كما يليق بشانه او يا پمعنى دَ قصد او توجه سره دي او تفصيل ددي په سورت البقره كښ ثم استوي الي السماء آيت نمبر ٢٩ كښ تير شويدي. نوكه څوك سوال اوكړي چې آسمان خوموجود نه وؤنوهغه ته ئي څنګه استوىٰ اوكړه؟نوددې جواب اوشوچې ماده دآسمان موجوده وه په شكل دَ بُخاركښ،چې په﴿ وَهِيَ دُخَانٌ ﴾ كښ دهغې ذكر راغليدې او "دخان"نه مراد دلته حقيقي لوګې نه دې،چې اور نه پيدا كيږي،بلكه بخارات اوګيس دي يعنى آسمانونوتخليق نه مخكښ هيڅ نه وؤ محض يو خلا وه،تياره وه اوګيس وؤ نو الله ﷻ ترينه آسمانونه پيدا كړل.

﴿ فَقَالَ لَهَا وَلِلْأَرْضِ ﴾دا عهد دې دا آسمانونو او زمكې نه دَتكويني احكاماتو منلو او اطاعت كولو،چې څه تاسو خپل تكويني احكاماتو محل ګرځوم نو تاسو به هغه منئ او كنه،او په خپلې رضا سره دَهغې منلوته آماده كيږئ او كه زبردستئ سره؟ نو هغوئ اووئيل چې مونږ په خپلې رضا سره اوخوشحالئ سره دا احكامات منو او قبلوؤ﴿ اِئْتِيَا ﴾ امر دې دَ "اتيان" نه راتلوته وائي،او دلته حقيقي معنى اغستل ممكنه دى بلكه مراد ترينه مجازى معنى اطاعت او قبولول دَاحكاماتو ده ﴿ طَوْعًا أَوْ كَرْهًا ﴾داكنايه ده دَلزوم نه،چې تاسو به ضرور څما دَتكويني احكاماتو محل ګرځئ حقيقتا طوع او كراهت اثبات ندې مقصود،بلكه تمثيلا ذكر شوې دې،لكه څنګه چې دلزوم په موقع باندې داسې وئيلې كيږي،چې خامخا به داكار كوئ،كه زړه دې غواړي او كه نه غواړى ﴿قَالَتَا أَتَيْنَا طَائِعِينَ ﴾ د « قالتا » دوه مطلبه كيدې شى(١) يوداچى دائى بلسان حال وئيلي وى يعنى فورا ئى سر تسليم خم كړو او دَ الله ﷻ احكامات ئى قبول كړو.(٢)دويم داچى كيدې شى بلسان قال ئى وئيلى وى .ځكه چى الله ﷻ هر مخلوق له څه نه څه شعور او ادراک وركړې دې،او دهغه تخليق مطابق ئى ورله قوت ګويائى وركړې ده،چې هغه پرې دَ الله ﷻ تسبيح كوى او هغه سره همكلامى كوى.

﴿فَقَضَاهُنَّ سَبْعَ سَمَاوَاتٍ فِي يَوْمَيْنِ ﴾ دې كښې دآسمانونه تخليق او دهغې انتظاماتو كيفيت بيانيږى چې الله ﷻ صرف په دوه ورځوكښ مكمل اووه (٧)آسمانونه پيدا كړل او دَهغې ټول انتظامات ئى مكمل كړل ﴿فَقَضَاهُنَّ ﴾قضاء معنى دلته اتمام اوفارغيدل دى يعنى صرف دوه ورځو مقدار كښ ئى اووه اسمانونونه پوره كړل.﴿سَبْعَ سَمَاوَاتٍ ﴾تميز دې دَ "هن"ضمير مبهم

نه،دی تقدير باندي "هن"ضمير مرجع نشته.

﴿وَأَوْحَىٰ فِي كُلِّ سَمَاءٍ أَمْرَهَا﴾دې کښې دانتظاماتو بيان دې چې آسمانونه ئې پيدا کړل او هر آسمان ته ئې حکم اوسپارلو ،او هغه داسې چې فرشتې ئې پکښې پيدا کړې او هغه ئې په مختلف کارونه اولګولې،نور،ستورې ئې پيدا کړل،او هغه ئې په خپل کار مامور کړل. وغيره وغيره ﴿وَحِفْظًا﴾اى حفظناها حفظاً،يعني اسمانِ دنيامونږه دَهرقسمه حادثاتو او دَ شياطينو دَ شر نه محفوظ کړيدې. ﴿ ذَٰلِكَ تَقْدِيرُ الْعَزِيزِ الْعَلِيمِ ﴾دا هغه ذات کاريګرى ده چې هغه سره يو طرف ته کمال قدرت دې او بل طرف ته ورسره کمال علم دې.

فَإِنْ أَعْرَضُوا فَقُلْ أَنذَرْتُكُمْ صَاعِقَةً مِّثْلَ صَاعِقَةِ عَادٍ وَثَمُودَ ﴿١٣﴾

پس که دوئ اعراض اوکړي دَتوحيد نه نوته ورته اُوايه چې ما يرولي يئ تاسو دَ سخت عذاب نه چې پشان د عذاب د عاديانو او ثموديانو دې .

إِذْ جَاءَتْهُمُ الرُّسُلُ مِن بَيْنِ أَيْدِيهِمْ وَمِنْ خَلْفِهِمْ أَلَّا تَعْبُدُوا إِلَّا اللَّهَ ۖ

کله چه راغلل دوئ ته رسولان دَمخکې دَدوئ نه اودورستودَدوئ نه،او ورته ئې اوئيل چه عبادت مه کوئ تاسومګردَيوالله ﷻ،کوئ

قَالُوا لَوْ شَاءَ رَبُّنَا لَأَنزَلَ مَلَائِكَةً فَإِنَّا بِمَا

دوئ اُوې که چرې غوښتلې رب زمونږ رسولان رالیږل نورالیږلي به ئې وې فرشتې پس بيشکه مونږه په هغه څيز

أُرْسِلْتُم بِهِ كَافِرُونَ ﴿١٤﴾ فَأَمَّا عَادٌ فَاسْتَكْبَرُوا فِي الْأَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ وَقَالُوا

چه تاسو ورسره رالیږلې شوي يئ،انکارکوو،هرچه عاديان وونودوئ تکبراوکړو په زمکه کښې په ناحقه سره،اودوئ اُويل

مَنْ أَشَدُّ مِنَّا قُوَّةً ۖ أَوَلَمْ يَرَوْا أَنَّ اللَّهَ الَّذِي خَلَقَهُمْ هُوَ

چې څوك دې زيات سخت زمونږنه په طاقت کښې،آيادوئ نه ګوري،نه پوهيږي،چه بيشکه هغه الله چې پيداکړي ئې دي دوئ هغه

أَشَدُّ مِنْهُمْ قُوَّةً ۖ وَكَانُوا بِآيَاتِنَا يَجْحَدُونَ ﴿١٥﴾ فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِيحًا صَرْصَرًا

زيات دې دَدوئ نه په طاقت کښې،اووؤدوئ چه زمونږدآياتونونه ئې انکارکوؤ.نورااوليږله مونږ په دوئ هوا تيزه

| |
|---|
| فِيٓ أَيَّامٖ نَّحِسَاتٖ لِّنُذِيقَهُمۡ عَذَابَ ٱلۡخِزۡيِ فِي ٱلۡحَيَوٰةِ ٱلدُّنۡيَا |
| په هغه ورځوکښې چه سپيرې وې په حق ددوئ کښې چه وڅکوو په دوئ عذاب درسوائي په ژوندددنياکښې |
| وَلَعَذَابُ ٱلۡأٓخِرَةِ أَخۡزَىٰۖ وَهُمۡ لَا يُنصَرُونَ ۝ وَأَمَّا ثَمُودُ فَهَدَيۡنَٰهُمۡ |
| اوخامخاعذاب دآخرت ډيررسواكونكې دې اودوئ سره به مدداونكړېشي.اوهرچې ثموديان وو نو سمه لار اوښودله مونږهغوئ ته |
| فَٱسۡتَحَبُّواْ ٱلۡعَمَىٰ عَلَى ٱلۡهُدَىٰ فَأَخَذَتۡهُمۡ صَٰعِقَةُ ٱلۡعَذَابِ ٱلۡهُونِ بِمَا |
| نوغوره كړودوئ ړندوالي(گمراهي)په هدايت باندې نونيول دوئ تندردذلت آميزعذاب په سبب دهغې عملونو |
| كَانُواْ يَكۡسِبُونَ ۝ وَنَجَّيۡنَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَكَانُواْ يَتَّقُونَ ۝ |
| چه وودوئ چې كول به ئې اونجات موږكړوهغه كسانوته چه ايمان ئې راوړې ووااوووپرهيزگاره |

﴿فَإِنۡ أَعۡرَضُواْ فَقُلۡ أَنذَرۡتُكُمۡ﴾دا تخويف دنيوى دې يعني دومره واضحه بيان او دلائلو نه بعد هم كه دوئ ايمان نه راوړى او په كفر باندې قائم پاتې كيږي نو په دوئ هم داسې سخت عذاب راتلو خطره ده لكه څنگه چې په عاديانو او ثمود يانو راغلې وو.(صَٰعِقَةً)تندر ته وئيلې كيږي،خو كله ئې اطلاق بطور عموم مجاز په سخت عذاب باندې هم كيږي،خواه تندر پكښې وي او كه نه وي او دلته ترينه مراد عموم مجاز دى،ځكه چې په عاديانو دَ تندر عذاب نه وو راغلې او په ثمود يانو راغلې وو.

﴿إِذۡ جَآءَتۡهُمُ ٱلرُّسُلُ﴾اطلاق دَجمع(الرُّسُلُ) په تثنيه باندې شويدې ځكه چې دوئ ته دوه پيغمبران،هود عليه السلام اوصالح عليه السلام مبعوث وو(روح).يادا هم محتمله ده چې دوئ ته ډيرپيغمبران مبعوث دى خو په لم نقصص عليك كښې داخل دى نو ځكه ئې﴿ٱلرُّسُلُ﴾جمع راوړه.﴿مِنۢ بَيۡنِ أَيۡدِيهِمۡ وَمِنۡ خَلۡفِهِمۡ﴾ دا يا كنايه ده دَډيركوشش نه په دعوت وركولوكښې،چې دَطرفو دَدعوت نه ئې هيڅ طريقه ترك نه كړه بلكه دَافهام تفهيم تولې طريقې ئې استعمال كړې،يادَ﴿مِنۢ بَيۡنِ أَيۡدِيهِمۡ﴾نه مراددادې چې دې پيغمبرانوورته تيرشوى واقعات بيان كړل،اودَ﴿وَمِنۡ خَلۡفِهِمۡ﴾نه مراددادې چه ورستو راتلونكى عذابونه،اودغه شان دَقبر،حشر،نشرحالات ئې ورته بيان كړل نوتقديردَعبارت دارنگه دې،ناصحين من بين ايديهم ومن خلفهم.اودائې ورته اووې چې﴿أَلَّا

تَعْبُدُوٓا۟ إِلَّا ٱللَّهَ﴾

﴿قَالُوا۟ لَوْ شَآءَ رَبُّنَا﴾ مفعول دَ﴿شَآءَ﴾ محذوف دي اى لوشاء ربُنا ارسالَ الرّسلِ، ﴿لَأَنزَلَ مَلَٰٓئِكَةً﴾ يعني کچرې الله تعالی رسولان رالیږل غوښتلې نوفرشتې به ئي رالیږلې وې، نوګویاکه دَدوئ په نیزبشریت دَرسالت سره منافي دې، ﴿فَإِنَّا بِمَآ أُرْسِلْتُم بِهِۦ﴾ مسئله دَتوحیدورنه مرادده.

﴿فَأَمَّا عَادٌ فَٱسْتَكْبَرُوا۟ فِى ٱلْأَرْضِ﴾ اجمالا د دواړو قومونو تکذیب اوعذاب ذکر کولو نه بعد اوس دَهر یوقوم جداجدا تفصیلی تذکره کیږی، او دا دَ قوم عاد تکذیب تفصیل دې چې قوم عاد ته چې حضرت هود ﷺ دَایمان دعوت ورکړو، نودوئ انکاروکړواودَهغه تکذیب ئې وکړو: وانالَنظنُك منَ الكذبين(اعراف: ۶۶) کله چې دوئ دَعذاب الهي نه ویره ولې شول کقوله تعالی: قال قدوقع علیکم مّن ربّکم رجسٌ وّغضب(اعراف: ۷۱) نودوئ په خپل قوت اوشوکت باندې ناز اوتکبرشروع کړواووئ ویل: ﴿وَقَالُوا۟ مَنْ أَشَدُّ مِنَّا قُوَّةً﴾ زمونږ نه سخت قوة اوطاقت والابل څوک دې؟ مطلب ئي داؤچې مونږدعذاب په دفع کولوباندې قادریو. ﴿أَوَلَمْ يَرَوْا۟ أَنَّ ٱللَّهَ ٱلَّذِى﴾ دارددې دَدوئ دقول اواستفهام دَتوبیخ دپاره دې، یعني آیادوئ پدې نه پوهیږي چه کوم ذات چې دوئ پیداکړیدي هغه زیات قوة اوطاقت والادې.

﴿فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِيحًا صَرْصَرًا﴾ دیکښې عذاب تفصیل بیانیږی چې الله ﷻ پرې تیزه هوا راوسته او ټول ئې هلاک کړل. «صَرْصَرًا» (۱) دَ صرةٌ نه مشتق دې، صیحة(اواز) ته وائې کقوله تعالی: فاقبلتِ امرته فی صرّةٍ، یعني داسې هواوه چې پکښې سخت آوازوو.

(۲) بعضِ وائي چې صرصر تیزې هواته وائي چې دَډیرې تیزوالي دَوجه نه صرصر اوازونه کوي،

(۳) او څنې حضرات فرمائي چې صِر بکسر الصاد نه ماخوذ دې ،او دا یخې هوا ته وائي ، یعني دیخ والي په وجه ئي دوئ هلاک کړل ، امام ابن کثیر رحمه الله فرمائي: والحقّ الهامتّصفةٌ بجمیع ذلك یعنی حقه داده چې دا هواپدې ټولو صفتونوسره موصوفه وه. ترمذی شریف روایت(رقم: ۳۲۷۳) کښې دی چې الله ﷻ پرې صرف دَخاتم (ګوتې)حلقې قدر هوا کهلاؤ کړې وه.

﴿فِىٓ أَيَّامٍ نَّحِسَاتٍ﴾ جمع دَنحِسة(بکسرالحاء) ده(۱) مشؤومات یعني سپرې ورځې، ورځې خوسهیرې

نري خوسپيرې ورته پدې اعتبارسره اوويلې شوې چې داورځې سپيرې وې،ف حقهم نه فی ذاته.یعني دَدوئ دَشامت اعمال دَوجې نه پدوئ سپيرې شوې(۲)چاويلي دي متابعات یعني پرله پسې وې،ځکه داهواوه(۷)شپې اواته(۸)ورځې مسلسل په دوئ مسلطه وه،کقوله تعالى سخرهاعليهم سبعَ ليالٍ وثمانية ايّام حسومًا(الحاقة:۷).
(۳)بعضِ وائي ذواتِ غبارِ،یعني غُباراودوړو والاورځې وې (۴)یوه معنی ئی په ذوات برد سره هم شوی ده چې یخې ورځې وې.

(لِنُذِيقَهُمْ عَذَابَ الْخِزْيِ )ده تکبر انجام ئی دا شو چې الله ﷻ رسوا کړل او کمزوری مخلوق سره ئی هلاک کړل(کذا في تفسير العثمانی نقلا عن الشاه عبد القادر

﴿ وَأَمَّا ثَمُودُ فَهَدَيْنَاهُمْ ﴾دي کښ دثموديانو تکذيب او عذاب تفصيل بيان دې.او دائی دَ تکذيب تفصيل دې چې اسباب دَهدايت موورته ورکړل،ليکن دوئ هغه اختيارنکړل بلکه دَ ګمراهئ لاره ئي خوښه کړه،﴿ فَأَخَذَتْهُمْ صَاعِقَةُ الْعَذَابِ الْهُونِ ﴾دائی دَ عذاب تفصيل دې صعقة نه مراد دلته حقيقی معنی يعنی تندر ده چې الله ﷻ پرې تندر نازل کړو،او اضافت د((صَاعِقَةُ)) ، ((الْعَذَابِ الْهُونِ)) طرف ته ځکه شوی دې چې معلومه شی دا عام او معتاد تندر نه وؤ بلکه خارق عادت تندر وؤ چې الله ﷻ په دوئ باندې بطور عذاب نازل کړې وؤ( الْهُونِ )بدل یا صفت دې دَ العذاب دپاره .

**فائده**:قوم ثمود باندې درې قسم عذابونه نازل شوي دی: (۱)صاعقة(تندر)لکه دې آياتونو کښ ئی ذکر اوشو.(۲) رجفة(زلزله)لکه سورت اعراف کښ دی: **فاخذتهم الرجفة(الاعراف :۷۸)** (۰) الصيحة:دجبرئيل ﷺ چغه،لکه سورت هود کښ دی: **واخذ الذين ظلموا الصيحة (هود:۶۷)**

﴿ وَنَجَّيْنَا الَّذِينَ آمَنُوا ﴾حضرت صالح ﷺ اوچاچه وربانديې ايمان راوړې وؤ،هغه ورنه مراددي.
**تنبيه** : دَقوم عاداودَثمودَدهلاکت تفصيل حضرت والد محترم نوّرالله مرقده،په دويم جلد سورة اعراف کښ کړيدې

| وَيَوْمَ يُحْشَرُ أَعْدَآءُ اللَّهِ إِلَى النَّارِ فَهُمْ يُوزَعُونَ ۝ حَتَّىٰٓ إِذَا مَا جَآءُوهَا |
|---|
| اوبه هغه ورځ چه جمع کولې به شي دُشمنان دَالله اورته نودوئ به راحصار کړېشي، تردې چه کله راشي دوئ دوزخ ته |
| شَهِدَ عَلَيْهِمْ سَمْعُهُمْ وَأَبْصَارُهُمْ وَجُلُودُهُم بِمَا كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ۝ وَقَالُوا۟ |
| گواهي به اوکړي په دوئ غوږونه دَدوئ اوسترګې دَدوئ اوخرمني دَدوئ په سبب هغه عملونو چه دوئ کول اواوبه وائي دوئ |
| لِجُلُودِهِمْ لِمَ شَهِدتُّمْ عَلَيْنَا ۖ قَالُوٓا۟ أَنطَقَنَا اللَّهُ الَّذِىٓ أَنطَقَ |
| خرمنوخپلوته ولې ګواهي اوکړه تاسوپه مونږباندې،اوبه وايئ اندامونه دَدوئ ګوياکړي يو مونږهغه الله چه ګويائي ورکړې ده |
| كُلَّ شَىْءٍ وَهُوَ خَلَقَكُمْ أَوَّلَ مَرَّةٍ وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ۝ وَمَا كُنتُمْ تَسْتَتِرُونَ |
| هرځيزته اوهغه پيداکړي يئ تاسواول ځل اوهغه ته به تاسودَوباره واپس کوليشئ اوتاسونه شوئ پټيدلې |
| أَن يَشْهَدَ عَلَيْكُمْ سَمْعُكُمْ وَلَآ أَبْصَارُكُمْ وَلَا جُلُودُكُمْ |
| دَدې نه چه ګواهي ورکړي په تاسو(په قيامت کښ)غوږونه ستاسواونه سترګې ستاسواونه خرمني ستاسو |
| وَلَٰكِن ظَنَنتُمْ أَنَّ اللَّهَ لَا يَعْلَمُ كَثِيرًا مِّمَّا تَعْمَلُونَ ۝ وَذَٰلِكُمْ ظَنُّكُمُ الَّذِى |
| ليکن تاسوګناهونه ځکه کول چه) ستاسوداګمان ووچه الله ﷻ ندې عالم په ډيرودَهغې چه کولوبه تاسو.اودغه ووګمان ستاسو |
| ظَنَنتُم بِرَبِّكُمْ أَرْدَىٰكُمْ فَأَصْبَحْتُم مِّنَ الْخَٰسِرِينَ ۝ فَإِن يَصْبِرُوا۟ |
| چه ګمان موکړې ووپه رب خپل باندې نو تاسوئي هلاك کړئ نواوګرځيدئ تاسودَتاوانيانونه نوکه دوئ صبرکوي(اوکه نه کوي) |
| فَالنَّارُ مَثْوًى لَّهُمْ ۖ وَإِن يَسْتَعْتِبُوا۟ فَمَا هُم مِّنَ الْمُعْتَبِينَ ۝ |
| بس أورتهکانه ده دَدوئ،اوکه دوئ عذرکول غواړي نونه دي دوئ چه عذر ئې قبول شي. |

﴿ وَيَوْمَ يُحْشَرُ أَعْدَآءُ اللَّهِ إِلَى النَّارِ ﴾ تخويف دنيوي نه بعد تخويف اخروي ذکر کيږي او دَ محشر منظر کشي ده، چې الله ﷻ دشمنان به تول قيامت په ورځ جمع کړې شي او جهنم طرف ته به روان کړې شي ﴿ فَهُمْ يُوزَعُونَ ﴾ "وزع" حصارولو ته وائي، خو هغه حصارول چې دَپاره دَ صف بندئ او. ترتيب وي يعنې به په ترتيب سره ډلو ډلو کښ تقسيم کړيشي او جهنم ته به اوغورځولې

شی.او داکنایه ده کثرت عدد نه څکه چې لګ عدد کښې ددې ضرورت نه رازی،

﴿ حَتَّىٰٓ إِذَا مَا جَآءُوهَا ﴾ ضمیر منصوب نار ته راجع دې یعنی کله چې جهنم ته او غورځولې شی نو دوئ نه به جرم تپوس اوکړې شی چه کوم جرم په وجه تاسو دلته حاضر کړې شوئ؟دوئ به جرم نه انکار اوکړی،نو دَدوئ اندامونه به دَدوئ خلاف ګواهی شروع کړی.ګواهی به ټول اندامونه دَخپلو ګناهونو ورکوی، خو ددې درې اعضاؤ(غوګونه، سترګې او څرمن) تخصیص څکه اوشو چې دلته ئې مقام سره خصوصی مناسبت دې څکه چې غوږونو قرآن او نبی دعوت اوریدلې وو خو قبول کړې ئې نه وو،او سترګو دَ الله ﷻ دالوهیت او وحدانیت دلائلو مشاهده کړې وه خو انکارئې ترینه کړې وو او څرمنه چونکه ټول بدن باندې حاوی وه نو دا دَ نور اعضاؤ قائم مقام اوګرځولې شوه. په حدیث دَمسلم کښې(رقم الروایه:۲۹۲۹) دَانس رضی الله عنه نه روایت دې،دې فرمائي چه مونږه دَحضور ﷺ سره ناست وو،نوحضور ﷺ مُسکې شواوبیائي او فرمایل:هل تدرونَ ممّ اضحكُ،آیاتاسو پوهه شوئ چه ماولې اوخاندل،قُلنا الله ورسوله اعلم، حضور ﷺ اوفرمایل: چې بنده د خپل رب سره هم کلامئ د وجهې نه مې او خاندل،چه بنده به دَ خپلوګناهونونه انکارکوي اووائي به اې ربه! تاماته دَظلم نه پناه نه وه راکړې؟ الله ﷻ به فرمائي بیشکه درکړې مې وه،نودې به عرض کوي چې نن ورځ څه پخپل ځان باندې بل څوک ګواه نه تسلیمه وم ماسوادَخپل ذات نه،الله ﷻ به ورته اوفرمائي:كفىٰ بنفسكَ اليومَ عليك حسيبًا، وبالكرام الكاتبين عليكَ شهوداً،دې نه بعدبه دَهغه په خوله مهراولګولې شي اودَده اندامونوته به أوویلې شي،چې تاسودَده عملونه اوښایئ،نوهریواندام به خبرې شروع کړي اوده چه څه کړي وي دَهغې ګواهي به شروع کړي،نوبیابه دې خپلو اندامونوته اووائي:بُعداً لكُنّ و سُحقًا فعنكنّ اُضِلُ،یعني تاسوبربادشئ ماخوبه ستاسودَخاطره جدال اومدافعت کولو،اوأس تاسوزماخلاف ګواهي ورکوئ،

﴿وَقَالُوا لِجُلُودِهِمْ ﴾کله چې اندامونه دَدوئ خلاف ګواهی اوکړی نو دوئ به خپل اندامونه ملامته کول شروع کړی،چې مونږ تاسو بچ کولو خاطر دَجرم نه انکار اوکړو،اور دروغ خو اوئیل،تاسو خودیر عجیبه یئ چې زمونږ خلاف ګواهی ورکړه،جلود نه مراد دلته ټول اعضاء دې خو څرمن چونکه دوئ ټولو باندې حاوی ده نو څکه ئې دا دَ هغوئ قائم مقام اوګرځوله، او یا ترینه صرف څرمن مراد ده څکه چې دوئ دا قول ملامتیا او توبیخ باندې مبنی دې اور دې د پاره مواجهه ضروری وی او دا صرف څرمنې کښې کیدې شی نو څکه دَدې تخصیص اوشو.

﴿قَالُوٓا أَنطَقَنَا ٱللَّهُ﴾ دا داعضاوؤ عذربيان دې،چې مونږ خپل اختيار سره داسې ندي کړی او نه مونږ کښې دَدې استعداد وؤ بلکه الله ﷻ خرق عادت مونږ گويا کړو،

﴿وَهُوَ خَلَقَكُمْ أَوَّلَ مَرَّةٍ﴾ راجحه خبره دا ده چې داهم داعضاوؤ قول دې چې دوئ په خپلې غلطئ باندې متنبه کولو اودَندامت وحسرت اضافي دپاره به ورته اوائی چې دَقيامت انکار تاسو ډيره لويه غلطی وه ،هغه الله ﷻ تاسو اول ځل پيدا کړی وئ او نن ورته بيا تاسو حاضر يئ.

﴿وَمَا كُنتُمْ تَسْتَتِرُونَ﴾ اصح قول دادې چې دا دَ الله ﷻ قول دې او ديکښې کفاروته توبيخ دې چې تاسو خپل اعضاء ولې ملامته کوئ ؛ دنيا کښې مودې رسوايئ نه ځان بچ کولو او پټ ساتلو کوشش ولې نه کوؤ چې حق خو اختيار کړې وې.هلته خو تاسو کفر کولو؟دنيا کښې خو تاسو دَخلقو دَشرمه پټه پټه گناهونه کول،خودا سوچ خو نه وؤ چې اندامونه موجود دی صبا به دازمونږ خلاف گواهی ورکوی﴿أَن يَشْهَدَ عَلَيْكُمْ﴾ اي مِن ان يشهد، اويا كراهيةَ ان يشهد ﴿وَلَٰكِن ظَنَنتُمْ﴾ اصل خبره دا ده چې خوف خدا ستاسو په زړه کښې نه وؤ،ستاسو گمان داوؤ چې ستاسو ډيرو کرتوتونو نه الله ﷻ بې خبره دې.

﴿وَذَٰلِكُمْ﴾ مبتداده او«ظَنُّكُمُ» ورنه بدل دې او﴿أَرْدَاكُمْ﴾ ئي خبردې،يعني ستاسودې ظنَ فاسد تاسو په هلاکت کښې واچولئ.

﴿فَإِن يَصْبِرُوا﴾ په کلام کښې حذف دې تقديردارنگه دې اولايصبروا يعني که دوئ اُوس صبر کوي اوکه نه کوي خوداُورنه ورته خلاصيدې نشته دې،کقوله تعالى: اصبروا او لاتصبروا سواءٌ عليكم.﴿وَإِن يَسْتَعْتِبُوا﴾ دَعتبیٰ نه مأخوذدې،په معنی دَرجوع سره،يعين که دوئ دنياته رجوع او واپسي طلب کوي نونه به واَپس کيږي،ياعتبیٰ پمعنیٰ دَرضاء سره دې يعني که دوئ دالله ﷻ رضاطلب کوي اوعذرکوي دَخپلوجرمونه،نوعذربه ئي نه قبليږي.

| وَقَيَّضْنَا | لَهُمْ | قُرَنَاءَ | فَزَيَّنُوا | لَهُم | مَّا | بَيْنَ | أَيْدِيهِمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

اومسلط کړيدي مونږپيدوئ ملگري(شيطانان)نوهغوئ ښائسته کړيدي ډوئ ته هغه عملونه چه دَدوئ مخکښې دی

وَمَا خَلْفَهُمْ وَحَقَّ عَلَيْهِمُ الْقَوْلُ فِيْٓ اُمَمٍ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِمْ

او هغه چه د دوئ نه ورستو دی او ثابت شویدې په دوئ تول فیصله دعذاب سره دهغه ډلونه چه تیرشویدی مخکښ د دوئ نه

مِّنَ الْجِنِّ وَالْاِنْسِ ۚ اِنَّهُمْ كَانُوْا خٰسِرِيْنَ ۝ وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَا تَسْمَعُوْا لِهٰذَا الْقُرْاٰنِ

دپیریانو او دانسانانونه،بیشکه دوئ وؤ دتاوان والا .او وائی کافران غوږمه نیسئ دې قرآن ته

وَالْغَوْا فِيْهِ لَعَلَّكُمْ تَغْلِبُوْنَ ۝ فَلَنُذِيْقَنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا عَذَابًا شَدِيْدًا

او شور کوئ په وخت دتلاوت دده کښ دې دپاره چې تاسو غالب شئ.نو خامخا او به څکوؤ مونږ کافرانو ته عذاب سخت،

وَّلَنَجْزِيَنَّهُمْ اَسْوَاَ الَّذِيْ كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ۝ ذٰلِكَ جَزَآءُ اَعْدَآءِ اللّٰهِ النَّارُ

او خامخا به سزاور کړو مونږ دوئ ته ډیره بده سزا دهغه عملونو چه دوئ کولو ، دا سزا بدله د دشمنانو دالله ده چې اُور دې،

لَهُمْ فِيْهَا دَارُ الْخُلْدِ ۭ جَزَآءًۢ بِمَا كَانُوْا بِاٰيٰتِنَا يَجْحَدُوْنَ ۝

دوئ لره په هغې کښ کور دهمیش والی دې،بدله ورکیدیشي په سبب ددې چه دوئ په آیاتونو زمونږ انکار کولو.

وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا رَبَّنَآ اَرِنَا الَّذَيْنِ اَضَلّٰنَا مِنَ الْجِنِّ

او اوبه وائي کافران (اتباع) اې ربه زمونږه! اوښایه مونږته هغه دوه فرقې چه گمراه کړي ئي وؤ مونږه،دپیریانونه

وَالْاِنْسِ نَجْعَلْهُمَا تَحْتَ اَقْدَامِنَا لِيَكُوْنَا مِنَ الْاَسْفَلِيْنَ ۝

او دانسانانونه چه او گرځوؤ مونږ هغوئ لاندې دقدمونو خپلوچه شي دوئ دذلیلانونه

﴿وَقَيَّضْنَا لَهُمْ﴾ ای سلطنا علیهم،دا جواب دشبهې دې چې دسورة مومن په دعوې باندې وارد ده، حاصل ئي دا دې چې مشرکان وائی چې ډیر خله مونږ لیدلي دی چې څوک په څه مصیبت کښ گرفتاره شی ، کله چې هغه دغیر الله نه مدد اوغواړی او دهغه په نوم نذراومنی نو هغه ته نجات حاصل شی.حاصل دجواب دادې چې الله ﷻ په دوئ شیطانان مسلط کړی دې او هغوئ هر ممکنه ذریعه ددوئ گمراه کولو دپاره اختیاره وی کله ئی مدد اوکړی، کله ورله حاجتونه پوره کړی ، کله ورته دبزرگ په شکل کښ راځی وغیره،نو داشیطان دوئ ته دوئ اعمال دغه شان مزین کړی او ددوئ گمان دا وی چې مونږ په حق یو ،حالانکه په غټه خساره

کښې پراته وی، ﴿قُرَنَاءَ﴾جمع دَقرين ده،شياطين ورنه مراددي،چې مشرکانو ته ئې شرک او معاصي مزين کړي وي﴿فَزَيَّنُوا لَهُم مَّا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ﴾دایاکنایه ده د"کلّ جانب"نه يعني شياطين دامشرکان په هرې ممکنې طريقې سره گمراه کوي،یا﴿مَّا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ﴾نه مرادمشغوله کول دی په دنیاکښې او ﴿وَمَا خَلْفَهُمْ﴾نه مرادانکاردي دَقيامت نه،یا ﴿مَّا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ﴾نه مراد آخرت دې چه دا خبره ئې ورته مزينه کړې ده چې نه جنت شته او نه جهنم اوبعث شته .او ﴿وَمَا خَلْفَهُمْ﴾ نه مراد دنیاده چې په ضلات اور کفر او اتباع دَخواهشاتو په دلدل کښې ئې انخولي دي.

﴿وَحَقَّ عَلَيْهِمُ الْقَوْلُ فِي أُمَمٍ﴾ في بمعنیٰ دَ"مع" دې ای مع امم،یاحال دي دَضمير مجرور نه اي کائنين فی جملةِ امم، يعني په دې مشرکين مکه ؤباندې اودغه شان په تيرشوي امم کافرؤباندې دَالله تعالی دافيصله شوه چې"لاملئنّ جهنمّ منك"

﴿وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لَا تَسْمَعُوا﴾دادويمه شکوه ده،داولې نه علی سبيل الترقي ده،چې دا مشرکان قرآن منل خو درکناربلکه نورخلق هم ددې منع کوي چې قرآن واوري،اویوبل ته وائي چې کله داپيغمبردَقرآن تلاوت کوي نوغورږوزته مه نيسئ اوپدغه وخت کښې شور کوئ، چغې، شپيلئ وهئ،چه دَحاضرينو په زړونوباندې اثراونکړي، ﴿لِهَٰذَا الْقُرْآنِ﴾ مقصدئې په اشارې سره تحقير دې دَقرآن"قاتلهم الله"

﴿فَلَنُذِيقَنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا﴾تخويف أخروي دې ﴿عَذَابًا شَدِيدًا﴾دُنیوي عذاب ورنه مراددي،چې په غزوهٔ بدرکښې ورته ملاؤشو،اودَ﴿أَسْوَأَ الَّذِي كَانُوا﴾نه مرادآخرت عذاب دي،«أَسْوَأَ»اسم تفضيل په معنی "سیئ"دې ، يعنی مطلقا دَ بدو اعمالو بدله به ورله الله ﷻ ورکوی. حاصل دادي چې دوئ ته به په دنیااوآخرت دواړوکښې دَخپلوجرمونوسزاملاویږي،

﴿ذَٰلِكَ﴾مبتدادي،﴿جَزَاءُ أَعْدَاءِ اللَّهِ﴾ئې خبردي،او﴿النَّارُ﴾یابدل دې یاعطف بیان دي،داهم متحمله ده چې﴿النَّارُ﴾مبتدادي او﴿لَهُمْ فِيهَا دَارُ الْخُلْدِ﴾ئې خبردي،يعني داجهنم به دوئ به دوئ دپاره داراقامت وي،﴿جَزَاءً﴾ای يُجزونَ جزاءً.

﴿وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا رَبَّنَا﴾هغه أتباع چې دګمراه خلقواتباع ئې کړې وي چې دَهغوئ دَوجهې نه دوئ جهنم ته تلې وي نودخپلې غصې يخولو دپاره به اللهﷻ ته أووائي چې کومو خلقو

چې مونږه ګمراه کړي يو او دَهغوئ په وجه مونږ په دې عذاب کښې مبتلا يو. هغه مونږ ته اوښايه چه مونږه ئې دَخپولاندې کړو.او خپل انتقام ورنه واخلو

﴿مِنَ الْجِنِّ وَالْإِنسِ﴾ مراد ورنه هغه دو فرقې دَ مطلق جن،انس دي،چې دَدوئ دګمراه کيدوسبب ګرځيدلي وؤ.

| |
|---|
| إِنَّ الَّذِينَ قَالُوا رَبُّنَا اللَّهُ ثُمَّ اسْتَقَامُوا تَتَنَزَّلُ عَلَيْهِمُ الْمَلَٰئِكَةُ |
| بيشکه هغه کسان چه وائي رب زمونږ الله ﷻ دې بياکلك ولاړ وي پدې خبره،راکوزيږي به په دوئ په وخت دَمرګ کښې فرښتې |
| أَلَّا تَخَافُوا وَلَا تَحْزَنُوا وَأَبْشِرُوا بِالْجَنَّةِ الَّتِي كُنتُمْ تُوعَدُونَ ۝ |
| «ورته وائي به»چه مه يريږئ اومه خفه کيږئ اوزيرې قبول کړئ دَهغې جنت چه تاسوسره به ئي وعده کولې شوه |
| نَحْنُ أَوْلِيَاؤُكُمْ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَفِي الْآخِرَةِ ۖ وَلَكُمْ فِيهَا مَا |
| مونږستاسودوستان وؤپه ژوندَ دنياکښې هم«او»س په آخرت کښې هم يو،اوستاسودَپاره پدې جنت کښې هغه څيزونه دى |
| تَشْتَهِي أَنفُسُكُمْ وَلَكُمْ فِيهَا مَا تَدَّعُونَ ۝ نُزُلًا مِّنْ |
| چه ستاسوزړونه ئي غواړي اوستاسودَپاره دي په دې کښې هغه څه چې غواړئ تاسو«په ژبو» ، ميلمستياده دَهغه ذات طرف نه |
| غَفُورٍ رَّحِيمٍ ۝ |
| چه بخونکې رحم کونکې دې. |

﴿إِنَّ الَّذِينَ قَالُوا رَبُّنَا اللَّهُ﴾مخکښې آياتونو کښې اعداالله ﷻ ته تخويف اخروي وؤ، دې اياتونو کښې مؤمنانوته بشارت اخروي دي،﴿ثُمَّ اسْتَقَامُوا﴾اى ثم ثبتوا على الاقرارولم يرجعوا الى الشرك «روح» يعني هغه کسان چې ربنا الله ئي ويلي وي اوبيا په خپل اقرار باندې کلك وي اوشرك ته نه وي واپس شوي.داتفسيردَابوبکر ؓ نه منقول دي،اوحضرت عمر ؓ نه نقل دي چې "استقاموا لله تعالى بطاعته لم يروغوا روغان الثعالب" دَالله تعالى په اطاعت باندې کلك وي او دَ لومبرو په شان يوخوا بل خوانه تختي،دَحضرت عثمان ؓ نه نقل دي چې "اخلصوا العمل" دَ حضرت علي ؓ نه نقل دي چې"ادوا الفرائض" ددې نه علاوه نوراقوال هم دَ تابعينو او دَ سلفو صالحينو پديکښې ذکردى چې تولو حاصل دا دي چې بيا ئې په عقائد او اعمالو کښې تزلزل

اخلاص وللهيت كښې فرق او جذبه وهمت كښې ئې ضعف رانشي.(روح).

﴿تَتَنَزَّلُ عَلَيۡهِمُ ٱلۡمَلَـٰٓئِكَةُ﴾ دادَبشارت تفصيل دې، چې په دوئ به فرشتې نازليږلې او بشارتونه به ورته وركوي چې تاسوخوف اوغم مه كوئ اوچې دكوم جنت وعده چې تاسوسره دَ الله ﷺ نبي اودَالله تعالى كتاب كړې وه، دَهغې دَملاويدوخوشخبري واورئ. اهل استقامت باندې دَفرشتونزول اوبشارت(كوم چې پدې آيت كښې ذكردې)دَدې وقوع كله كيږي؟ (۱)بعضِ وائي چې دانزول به په وخت دَمرګ كښې وي(۲)بعضِ وائي چې په وخت دَبعث كښې وي(۳)بعضِ وائي چې په وخت دَمرګ اوپه قبراوپه وخت دَبعث كښې به وي(۴)بعض حضرات فرمائي چې دامذكوره بشارت، مذكوره درې واړوحالتونوسره خاص ندې بلكه عام حالات كښې هم دَالله تعالى دَنيك بندګانوسره داسې معامله كيږي چې فرشتې په طريقې دَالهام دَدوئ په زړونوكښې دَسكون اواطمينان القاء كوي، چې په هغې سره دوئ نورهم خيركارونوطرف ته سبقيت كوي لكه څنګه چې كافرانو باندې شياطين مسلط دي او قبائح ورته مزين كوي(روح).

﴿أَلَّا تَخَافُواْ﴾ دَآئنده حالاتو دَقبرحشرنشروغيره نه خوف مه كوئ﴿وَلَا تَحۡزَنُواْ﴾ اوغم، اوخفه كيږئ مه په اهلُ عيال وغيره پسې، بعضِ وائي چې﴿أَلَّا تَخَافُواْ﴾ مطلب دادې چې په رد دَحسناتو باندې خوف مه كوئ څكه ستاسوحسنات مقبول عندالله دي او﴿وَلَا تَحۡزَنُواْ﴾ على ذنوبكم، خپلو ګناهونو باره كښې غم مه كوئ څكه چه هغه مغفوردي، بعضِ وائي چې مراد نهي ده دَمطلقِ غموم نه، چې الله تعالى تاسوته دَهرغم نه امن دركړيدې. هيڅ كله به هم تاسو ته غم نه رسيږي

﴿نَحۡنُ أَوۡلِيَآؤُكُمۡ فِي ٱلۡحَيَوٰةِ ٱلدُّنۡيَا﴾ دابل بشارت دې او د فرشتو قول دې، چې مونږه دنيا كښې هم ستاسو اعوان اومددګاران ووچې تاسوته به مو دَ خيراو دَ حق الهام كولو، ﴿وَفِي ٱلۡأٓخِرَةِ﴾ اوپه آخرت كښې به هم ستاسورفيقان يو چې ستاسو شفاعت او دَ اعزاز اكرام انتظام كوؤ.

﴿وَلَكُمۡ فِيهَا﴾ اى في الآخرة، ﴿مَا تَشۡتَهِيٓ أَنفُسُكُمۡ﴾ يعني دكوم څيزونوخواهش چې ستاسو په زړونوكښې راشي اودغه رنګه ﴿وَلَكُمۡ فِيهَا مَا تَدَّعُونَ﴾ چه كوم څيزونه تاسوپه ژبه طلب كوئ تول به ملاويږي، يعني ستاسوهرخواهش به پوره كيږي، خواه كه تاسوئې غواړئ اوكنه غواړئ، لكه دَيوحديث مفهوم دې چې په جنت كښې به تاسويوه مرغئ په الوتلواووينئ نوستاسوزړونوكښې به دَهغې دَخوراك خواهش پيداشي، نوپدغه وخت كښې به هغه وريته شوې ستاسومخكښې رااوغورزيږي﴿نُزُلٗا﴾ منصوب دې، حال دې دَعائدمحذوفه نه چې راجع

دي «مَا تَدَّعُوْنَ » اى تدعونه نزلاً،یاحال دي دَضمیرفاعل دَ﴿مَا تَدَّعُوْنَ ﴾ نه،نُزل هغه خوراك، څکاك، مکان ته ویلې کیږي چه دَمیلمه دَاکرام دپاره تیارشوي وي،نوپدې کښې اشاره ده دَدیته چه په جنت کښې به ډیرهغه نعمتونه هم وي چه دَهغې تمنااوتصوردَجنتي په زړه کښې نه وي لکه څرنګه چه دَمیلمه مخې ته ډیرهغه څیزونه هم راوړې شي چې هغه ئي تصورنه وي کړې.

| وَمَنْ اَحْسَنُ قَوْلًا مِّمَّنْ دَعَآ اِلَى اللّٰهِ وَعَمِلَ صَالِحًا وَّقَالَ اِنَّنِيْ |
|---|
| اوخوك دې ډیرښائسته په خبروکښې دَهغه چانه چه راغواړي خلق الله ته اوعمل کوي نیك اووایی چه بیشکه څه |
| مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ ۝ وَلَا تَسْتَوِى الْحَسَنَةُ وَلَا السَّيِّئَةُ ۚ اِدْفَعْ بِالَّتِيْ هِيَ اَحْسَنُ |
| دَمسلمانانونه یم،اوندی برابرښه خصلت اوبدخصلت دفع کوه ته بدولره په هغې سره چه ډیرښه دې |
| فَاِذَا الَّذِيْ بَيْنَكَ وَبَيْنَهٗ عَدَاوَةٌ كَاَنَّهٗ وَلِيٌّ حَمِيْمٌ ۝ |
| نوبیابه هغه سړې چه په مینځ ستااوپه مینځ دَهغه کښې دشمن وي «داسې به شي»ګویاکه دې دوست غم خواردې، |
| وَمَا يُلَقّٰىهَآ اِلَّا الَّذِيْنَ صَبَرُوْا ۚ وَمَا يُلَقّٰىهَآ اِلَّا ذُوْ حَظٍّ عَظِيْمٍ ۝ |
| اونشي ورکیدلې داخه خصلت مګرهغه کسانو نه چه صبر کوي،اونشي ورکیدلې داخه خصلت مګرخاوند دَلوئی برخې ته |
| وَاِمَّا يَنْزَغَنَّكَ مِنَ الشَّيْطٰنِ نَزْغٌ فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ ۭ اِنَّهٗ هُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ۝ |
| اوکه چرې اوروسیږي تاته دَطرفه دَشیطان نه وسوسه نوپناه نیسه په الله ﷻ سره ،بیشکه هغه صرف هغه اوریدونکې دې عالم دې. |

﴿وَمَنْ اَحْسَنُ قَوْلًا ﴾دَ دي تعلق "وقال الذین کفرو لاتسمعوا"سره دې یعنی کفارودَ دې حرکت په مقابله کښې تاسو مه همت غورزوئ چې دعوت نه منع شئ ځکه چې دعوت الی الله نه بله غوره خبره نشته،اومه په اشتعال کښې راځئ چې تاسو ورته هم بدی ردی شروع کړئ بلکه سنجیده اوسئ اوخه انداز کښې جواب ورکوئ.

**فائده نمبر۱**: امام جصاص اوامام رازی رحمه الله تعالی فرمائی چې دې آیت نه ثابتیږی چې دعوت الی الله فرض دې،ځکه چې دیته"احسن الاقوال"ونیلی شوی دی،او احسن الاقوال کیدلو دَپاره داضروری ده چې دا فرض اوواجب وی که چرته دا فرض اوواجب نوی نو بیا.

احسن الاقوال هم نشی کیدی،ځکه چې کوم قول واجب وی هغه به احسن وی دینه، ځکه چې دا خو کیدي نشی چې نفل افضل شی دَ واجباتو اوفرائضو نه، نوصریح مخالفت راځی دَ قرآن سره، لهذا ثابته شو چې دعوت الی الله فرض دي،اګر چې په کومې طریقې سره هم وی(احکام القرآن،تفسیرکبیر)

**فائده نمبر۲**:دَدې آیت نه دَدعوت درې اصول او آداب معلومیږی:

(۱)(( مِّمَّن دَعَآ إِلَى ٱللَّهِ )) نه دا معلومیږی چې دَ دعوت مرکز او محور داسلام بنیادي او اصولي مسائل ګرځول پکار دی ، فروعی مسائل او مسلک دَدعوت بنیاد نه دي ګرځول پکار.

(۲) ((وَعَمِلَ صَٰلِحًا)) نه دااصل معلومیږی چې داعی باعمله کس پکار دي، چې دې څومره عامل بالشریعت او متقی وي نو دومره به دده په خبره کښې اثر اوقوت وی،

(۳)او (( وَقَالَ إِنَّنِى مِنَ ٱلْمُسْلِمِينَ )) نه دا ادب او اصل معلومیږی چې دادعی دې په خپل اسلام او د هغې په شعائرو او مظاهرو باندې عار نه محسوسه وی بلکه په هغې دې فخر کوی او په ډاکه دې دا اعلان کوی چې مسلمان یم.

﴿وَلَا تَسْتَوِى﴾ پدې کښې بل اصول اوادب دَتبلیغ ذکرکیږي اوتلقین دَصبردې نبي اکرمﷺ ته،حاصل دادې چه ای پیغمبره!کله چه ته خلقوته قرآن اوروې،اومشرکان شور او شرارتونه کوي نوته دَدوئ دَشرارتونوجواب په سختئ سره مه ورکوه بلکه نرمي ورسره کوه ځکه چه بدی دَ نیکی سره اونیکی دَ بدئ سره قطعا نشی برابریدئ، دَ دوارو تاثیر جدا دې نو دَ بدی بدله په نیکی سره ورکولو سره به ستا دشمنانان ستا کلك ملګري اوګرځي،مراد دَ ﴿ٱلْحَسَنَةُ﴾ نه خصلت حسنه دي او﴿ٱلسَّيِّئَةُ﴾ نه مراد خصلتِ سیئه دي'لا'ثانیه زائددي دَتاکیددَنفي دپاره،

﴿ٱدْفَعْ بِٱلَّتِى هِىَ أَحْسَنُ﴾ای اِدفع السیئة بالّتي هي احسن، یعني دَبدخصلت بدله په ښه خصلت سره ورکوه،دَغضب بدله په صبرسره، اودَ مکروهاتوبدله په حِلم سره ورکوه،نوددې ثمره اونتیجه به داشي چې﴿فَإِذَا ٱلَّذِى بَيْنَكَ وَبَيْنَهُ﴾ چه ستاجاني دشمنان به ستادَزړه ملګري اوګرځي،لکه څرنګه چې دَحضورﷺ په دې تعامل مسلسل سره ابوسفیان په شان سخت دشمن حلقه بګوش شولو.

﴿ وَمَا يُلَقّٰىهَآ ﴾ضمير راجع دې خصلتِ حسنه ته.يعني ددې سلوك توفيق هرچانه ملاويږي بلكه صبركونكي ته ددې توفيق ملاويږي، او دَ دويم﴿ وَمَا يُلَقّٰىهَآ ﴾ هاضمير هم راجع دې خصلت حسنه ته،﴿ ذُوْ حَظٍّ عَظِيْمٍ ﴾ حظ عربئ كښ بخت او قسمت ته وائي حظ عظيم نه مراد عظيم صفات كمال ،خير وبركت او ثواب او اجر دې يعني داسې لوئ بخت والا كس ته الله ﷻ ددې توفيق وركوى،

﴿ وَاِمَّا يَنْزَغَنَّكَ مِنَ الشَّيْطٰنِ ﴾دا دبل هدايت تلقين دې يعنى دَدعوت په لار كښ كه تاسو ته بتقضائى بشريت دَمخالفت په څه خبره غصه دزشى نو پوهه شئ چې دا دَشيطان دخل اندازى ده ، هغه نه غواړي چې تاسو په خه اخلاقوسره متصف او په دعوت الى الله كښ كامياب شئ نو په دغه وخت كښ فورا الله ﷻ ته متوجه كيږئ،او اعوذ بالله سره دَ الله ﷻ پناه طلب كوئ، الله ﷻ به درله ضرور دَ شيطان او د هغه وسوسو نه پناه در كړي. ﴿نَزْغٌ﴾په كوته سره سكونډل يا څه تيره شى داخلولو ته وائى چې هغې سره بل كس رابيدار شى،او دلته مراد ترينه دَشيطان وسوسه ده ،چې هغه انسان په شر اوګناه باندى آماده كړي. پيغمبران دَشيطاني تسلط نه مُبرااومعصوم وي نوپدې وجه علماء وائي چه داداَباب دَلئن اشركتَ ليحبطنّ عملك دَقبيلي نه دې،يعني خطاب رسول پاكﷺ دې اومرادورنه غيردى،ياداچه داتعليق بالشرط دې نوپه وقوع باندې دلالت نه كوي.﴿اِنَّهٗ هُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ﴾دادَماقبل علت دې،چې دَالله ﷻ نه پناه څكه غواړه چه هغه سميع دې په قول دَهغه چاچه تاته تكليف رسَوي او په استعاذى ستا، اوعَليم دې په فعل دَهغه او په نيت او مقصد ستا نوانتقام به ورنه اخلي.

| وَمِنْ اٰيٰتِهِ الَّيْلُ وَالنَّهَارُ وَالشَّمْسُ وَالْقَمَرُ لَا تَسْجُدُوْا لِلشَّمْسِ وَلَا لِلْقَمَرِ |
|---|
| اوبعضِ دَدلائلو دَتوحيددَالله نه شپه اوورځ اونوَراوسپوږمئ دى،سجده مه كوئ تاسو نوَر ته اونه سپوږمئ ته |
| وَاسْجُدُوْا لِلّٰهِ الَّذِيْ خَلَقَهُنَّ اِنْ كُنْتُمْ اِيَّاهُ تَعْبُدُوْنَ ۝ فَاِنِ اسْتَكْبَرُوْا فَالَّذِيْنَ |
| اوسجده كوئ هغه الله ﷻ ته چه پيداكړي ئي دى دا،كه يئ تاسوچه خاص دَهغه عبادت كوئ،نوكچرې دوئ تكبراوكړي، |
| عِنْدَ رَبِّكَ يُسَبِّحُوْنَ لَهٗ بِالَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَهُمْ لَا يَسْـَٔمُوْنَ ۝ |
| نو هغه فرښتې چه دَستارب سره دى،تسبيح وايئ الله ﷻ لره دَشپې اودَورځې اوهغوئ نه ستړي كيږي |

| |
|---|
| وَمِنْ اٰيٰتِهٖٓ اَنَّكَ تَرَى الْاَرْضَ خَاشِعَةً فَاِذَآ اَنْزَلْنَا عَلَيْهَا الْمَآءَ اهْتَزَّتْ |
| وبعض دَدلائلو دَتوحيد دَالله نه داده چه ته وينې زمکه وچه کلکه نوچه کله مونږراوورَوپه هغې باندې اوبه باران تازه شي |
| وَرَبَتْ اِنَّ الَّذِيْٓ اَحْيَاهَا لَمُحْيِ الْمَوْتٰى اِنَّهٗ |
| اوپړسيږي زياته شي بيشکه هغه ذات چه دازمکه ئې ژوندئ کړيده خامخا ژوندي کونکې دَمړوهم دې، بيشکه هغه |
| عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ۞ اِنَّ الَّذِيْنَ يُلْحِدُوْنَ فِيْٓ اٰيٰتِنَا لَا يَخْفَوْنَ عَلَيْنَا ؕ |
| په هرڅيزباندې قادردې بيشکه هغه خلق چه هغوئ الحاد کوي په آياتونوزمونږکښې ندي پټ په مونږباندې، |
| اَفَمَنْ يُّلْقٰى فِي النَّارِ خَيْرٌ اَمْ مَّنْ يَّاْتِيْٓ اٰمِنًا يَّوْمَ الْقِيٰمَةِ |
| آياهغه سړې چه غورزولې به شي په اُورکښې غوره دې ياهغه چه رابه شي الله ﷻ ته په امن کښې په ورځ دَقيامت، |
| اِعْمَلُوْا مَا شِئْتُمْ اِنَّهٗ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ۞ |
| کوئ هغه څه چه خوښ وي ستاسو، بيشکه الله ﷻ په هغه عملونوچه تاسوئې کوئ ليدونکې دې |

﴿وَمِنْ اٰيٰتِهِ الَّيْلُ وَالنَّهَارُ﴾ دادويم دليل عقلي دې په توحيد، على سبيل الترقي دَاوّل نه، او «وَمَنْ اَحْسَنُ قَوْلًا» نه بعد راوړلو سره ئې لطيف مناسبت دا هم دې چې پديکښې تنبيه ده په دې خبرې چې لکه څرنګه چه يوطرف ته دَالله تعالى مخصوص بندګان خلق الله تعالى طرف ته رابلي نودغه شان نوَر، سپوږمئ، اودَاسمان عظيم الشان نظم ونسق دَالله ﷻ دَواحدانيت طرف ته دعوت ورکوي لکه شپه اوورځ، سپوږمئ اونورَداتول دَالله تعالى په توحيدباندې دلائل دى نولهذامعبودِ برحق صرف يوالله تعالى اوګڼړئ اودې نوروڅيزونوته معبودان مه وايئ، ﴿لَا تَسْجُدُوْا لِلشَّمْسِ وَلَا لِلْقَمَرِ﴾ يعني نوراوسپوږمئ ته سجده مه کوئ ځکه داخومخلوقات دى بلکه سجده هغه ذات کوئ چې دَدې خالق دې، ﴿خَلَقَهُنَّ﴾ (١) ضمير دَجمع مؤنث ورستو څلورو څيزونو ته راجع دې، نوهغه غيرعاقل دى نوځکه ورته دَجمع مؤنث ضميرراجع دې، (٢) يا شمس وقمرته راجع دې خواطلاق دَجمع په تثنيه باندې هم کيږي (٣) ياآياتوته راجع دې، چې په ﴿وَمِنْ اٰيٰتِهِ﴾ کښې ذکردى، ﴿اِنْ كُنْتُمْ اِيَّاهُ تَعْبُدُوْنَ﴾ رَد دې په بعضِ قومونودَمشرکانو چه کله

به دوئ ته اوویلې شوچه دَشمس وقمرعبادت مه کوئ نودوئ به ویل چه په دې واسطې سره مونږدَالله تعالی عبادت کوؤ،نو الله ﷻ ددې واسطې نه منع کړل،

﴿ فَإِنِ ٱسْتَكْبَرُوا ﴾ زجردې معاندینوته،چې کچرې دوئ دَالله ﷻ دَعبادت نه تکبر کوي، اودَغیرالله دَعبادت اودَسجدې نه نه منع کیږي نوپدې کښې دَدوئ خپل تاوان دې ځکه چې دَالله ﷻ دَعبادت دپاره داسې فرشتې دی چه شپه اوورځ دَالله تعالی عبادت کوي اوستړې کیږي نه، جواب دَشرط محذوف دې چه فلا یعبأ بهم یا فلا یخل ذالک بعظمه ربک یعنی که دوئ تکبر کوی نو ستاد رب عظمت ته دا ضرر نه رسوي او ﴿ فَٱلَّذِينَ ﴾ دَ محذوفی جزاء قائم مقام دې.

**فائده**: پدې کښې اتفاق دې دَعلماؤچې داآیت دَسجدې دې،لیکن په مقام دَسجدې کښې اختلاف دې حضرت علي رضي الله عنه اوابن مسعود رضي الله عنه به داوَلني آیت په اختتام باندې یعني، ﴿ إِن كُنتُمْ إِيَّاهُ تَعْبُدُونَ ﴾ باندې سجده کوله،اوابنِ عباس رضي الله عنه اوجمهورفقهاء دَدویم آیت ﴿ وَهُمْ لَا يَسْـَٔمُونَ ﴾ په اختتام باندې سجده کوي،اودامذهب دَاحنافوهم دې،اوپدیکښې احتیاط هم دې (احکام القرآن).

﴿ وَمِنْ ءَايَٰتِهِۦٓ أَنَّكَ تَرَى ٱلْأَرْضَ ﴾دا دریم دلیل عقلي دې په توحید ،چې الله ﷻ دَ الوهیت دلیل دا هم دې،چې زمکه بالکل خشکه پرته وی کله چې الله ﷻ پرې باران اووروی نو هغه تروتازه او را ژوندئ شی او فصلونه پرې زرغون شی. ﴿ أَنَّكَ ﴾خطاب عام دې هر مخاطب ته ﴿ خَٰشِعَةً ﴾ دَ خشوع نه دې ذلت او عاجزئ ته وائی،دلته ترینه مراد خشک والې دې ، ﴿ ٱهْتَزَّتْ ﴾اهتزاز حرکت ته وائی،یعنی باران چې اووریږی نو بوټې پرې رازغون شی،او په هواګانو سره یوطرف ته بل طرف نه اوړی رااوړی﴿ وَرَبَتْ ﴾ربو نه دی ارتفاع او اچتوالی ته وائی کله چې بوټې راخیژی نو زمکه اوپړسیږی او عامې زمکې نه اوچته شی ،او دیکښې تمثیل دې دزمکی دَ باران وریدلو نه مخکښې حالت او باران وریدلو نه ورستو حالت دَهغه سړی حالت سره چې غریب اوپراګنده حال وی عاجزه عاجزه ګرځی بیاورله الله ﷻ مال ودولت ورکړی زندګئ فراخه شی نو بیا اوچت سر او اوګې وهی ګرځی. ﴿ إِنَّ ٱلَّذِىٓ أَحْيَاهَا ﴾داجمله معترضه ده او استدلال دې په بعث بعدالموت ،چې کوم ذات پدې قادر دې چې وچه زمکه ژوندئ کړی هغه پدې هم قادر دې چې قیامت په روځ ټول مړی بیا راژوندی کړی.

﴿ إِنَّ الَّذِينَ يُلْحِدُونَ فِيٓ ءَايَٰتِنَا ﴾ ددې تعلق هم لاتسمعوا لهذا القرآن سره دې او تخويف اخروى دې دقرآن په لار کښې رکاوټ اچونکوته،چې مشتمل دې په **درې مقدماتو** باندې،او دا **اوله مقدمه** ده ،چې کوم کسان الحاد کوی دَ الله ﷻ دَ آياتونو تکذيب او دَهغې په لار کښې رکاوټونه پيدا کوی دا الله ﷻ ته معلوم دی پټې دې ترينه نشی قيامت په ورځ به ورله سزاورکوی.«الحاد» الميل عن الجادة المستقيمة ته وائی،يعنی سمه لارپريخودل او په غلطه روانيدل،دې په ضمن کښې (۱) تکذيب دَ قرآن هم راځی(۲)دقرآن دعوت په لار کښې رکاوټونه اچول (چې کومې طريقې سره هم وی )پکښې راځی(۳)او قرآن کښې تحريف کول هم راځی

﴿أَفَمَن يُلْقَىٰ فِي ٱلنَّارِ﴾ دا **دويمه مقدمه** ده او استفهام دَپاره دَتقرير دې چې دا خوتاسو په خپله هم تسليمه وی چې کوم سړې دَ الله ﷻ په عذاب کښې گرفتار وی دَهغه نه هغه سړې غوره دې چې هغه دَ دې نه په امن کښې وی.

﴿ٱعْمَلُوا۟ مَا شِئْتُمْ﴾ **دريمه مقدمه** ده او امر دپاره دَتهديد دې چې اوس خو خپله مرضی ده که تکذيب کوئ او ځان دَ فی النار والو نه گرځوئ يا تصديق کوئ او ځان دامن والوْ نه گرځوئ، الله ﷻ درته گوری.

| |
|---|
| إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ بِٱلذِّكْرِ لَمَّا جَآءَهُمْ ۖ وَإِنَّهُۥ لَكِتَٰبٌ عَزِيزٌ ﴿٤١﴾ |
| بيشکه هغه کسان چه کفرئې کړيدلې په قرآن کله چه راغې دوئ ته او حال دا چه بيشکه داخامخاکتاب عزت منددې |
| لَّا يَأْتِيهِ ٱلْبَٰطِلُ مِنۢ بَيْنِ يَدَيْهِ وَلَا مِنْ خَلْفِهِۦ ۖ تَنزِيلٌ مِّنْ حَكِيمٍ حَمِيدٍ ﴿٤٢﴾ |
| نه شي راتلې ده ته باطل دَمخکښې دَده نه اونه ورستودَده نه،نازل دې(دا قرآن)دَهغه ذات د طرف نه چه حکيم،ستائيلې شويدې، |
| مَّا يُقَالُ لَكَ إِلَّا مَا قَدْ قِيلَ لِلرُّسُلِ مِن قَبْلِكَ ۚ إِنَّ رَبَّكَ لَذُو مَغْفِرَةٍ |
| نه ويلې کيږې تاته مگرهغه چه وئيلې شوې وؤرسولانوته مخکښې دَستانه،بيشکه رب ستاخامخاخاونددَبخښنې دې |
| وَذُو عِقَابٍ أَلِيمٍ ﴿٤٣﴾ وَلَوْ جَعَلْنَٰهُ قُرْءَانًا أَعْجَمِيًّا لَّقَالُوا۟ |
| اوخاونددَعذاب دردناك دې،اوکچرې گرځولې وې مونږده لره قرآن په عجمي ژبه کښې،خامخاوئ به ويل، |

| لَوْلَا | فُصِّلَتْ | اٰيٰتُهٗ | ءَاَعْجَمِيٌّ | وَّعَرَبِيٌّ | قُلْ | هُوَ | لِلَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

ولې ندې واضح بيان شوي آياتونه ددې،آياعجمي (قرآن) او عربي (پيغمبر) !؟ ته اُوايه داقرآن دمؤمنانودپاره

| هُدًى | وَّشِفَآءٌ | وَالَّذِيْنَ | لَا | يُؤْمِنُوْنَ | فِيْٓ | اٰذَانِهِمْ | وَقْرٌ | وَّهُوَ | عَلَيْهِمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

هدايت اوشفاء دې،اوهغه كسان چه ايمان نه راوړي په غوږونه ددوئ كښ درُندوالي دې،اوداقرآن په دوئ باندې

| عَمًى | اُولٰٓئِكَ | يُنَادَوْنَ | مِنْ | مَّكَانٍۢ | بَعِيْدٍ ۝ |
|---|---|---|---|---|---|

سبب دې دړوندوالي،دغه كسان (په شان دهغه چادې چه) اوازورته كيديشي دځائ لرې نه،

﴿إِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِالذِّكْرِ لَمَّا جَآءَهُمْ﴾دا منكرين قرآن ته زجر وتوبيخ دې چې دوئ ډير ضديان او عناديان خلق دی چې دومره عظيم الشان صفاتو والا قرآن دوئ ته راغې اودوئ ترينه اعراض اوكړو،« اَلَّذِيْنَ» اسم موصول اسم دې دپاره«إِنَّ» او خبرئې محذوف دې چې "هم في عناد" دې.او الله ﷻ د قرآن پنځوو صفاتو سره د مشركينو دا عدوات اوعناد ظاهر كړيدی:

(1) ﴿بِالذِّكْرِ﴾چې دا قرآن مجسم نصيحت دې او دوئ دپاره سراسر خير خواهی ده دوئ ئې دضد وعنا په وجه نه منی

(2) ﴿وَاِنَّهٗ لَكِتٰبٌ﴾داقرآن داسې كتاب دې چې جامع دې هر صفت كمال لره خودوئ صرف دخپلې كج روی او ضد د وجهی نه پرې ايمان نه رواوړی

(3) ﴿عَزِيْزٌ﴾دعزيز ډيرې معنې بيان كړې شوي دی(١)غالب:چې په ټولوكتابونه غالب دې، هغه ئې منسوخ كړی دی، دغه شان دلائلو اعتبار سره هم غالب دې ددې دلائلو په مقابله كښ بل دليل نشې راتلې (٢)عديم النظير:داسی كتاب دې چې ددې نظير هم نشته (٣)كريم: يعنی ډير عزت مند كتاب دې، دلته دا ټولې معنې مراد دی چې دا بی نظير،عزت مند او غالب كتاب دې،خو دوئ ئې د ضد وعناد دوجهی احكامات نه قبولی،

(4) ﴿لَا يَاْتِيْهِ الْبَاطِلُ﴾داخلورم صفت دې د قرآن،چې تحريف او باطل نه پاک او محفوظ كلام دې،خودوئ ضد وعنا د وجهې نه په باطل ايمان راوړی او حق پريږدی، ﴿مِنْ بَيْنِ يَدَيْهِ وَلَا مِنْ خَلْفِهٖ﴾ (١)ياكنايه ده د"من كلّ جانبٍ"نه يعني باطل پديكښ دهيڅ جهت نه تلبيس اوتحريف

نشي کولي، (۲) دَ ﴿ بَيْنِ يَدَيْهِ ﴾ نه مراد نقصان او کمي کول دي او ﴿مِنْ خَلْفِهِ﴾ نه مراد زيات کول دي يعني باطل پکښې هيڅ قسمه کمې يا زياتې نشي کولي (۳) ﴿بَيْنِ يَدَيْهِ﴾ نه مراد ښکاره راتلل دی او ﴿مِنْ خَلْفِهِ ﴾ نه مراد په پټه راتلل دی، يعني پدې قرآن کښې باطل نه په ښکاره تحريف کوليشي او نه په پټه (بحر) يؤيده هذا القول، انّا نحن نزلنا الذکر وانّا له لحافظون،

(5) ﴿ تَنْزِيلٌ مِنْ حَكِيمٍ حَمِيدٍ ﴾ دا پنځم صفت دې دقرآن چې دا دَحکيم او حميد ذات کلام دې نو ځرنګه چې الله ﷻ حکيم دې دغه شان کلام ئې هم دَ حکمت نه ډک او محکم دې او ځرنګه چې هغه حميد دې دغه شان کلام ئی هم مستحق دَحمد دې خو دوئ ترينه ضد وعناد پوجه اعراض کوی

﴿ مَا يُقَالُ لَكَ إِلَّا مَا قَدْ قِيلَ لِلرُّسُلِ ﴾ دا دريمه شکوه ده او ضمناً پکښې حضور ﷺ ته تسلي ده، چې کله ته دوئ سره نرمي کوې او په حسنِ اخلاق سره ورته قرآن اوروې نو په خائې دَمتاثر کيدو، دوئ الحاد کوی په قرآن اعتراضونه کوي، او تاته نسبت دَساحر، مجنون، کاذب کوي، نو دا نوې خبره نده بلکه ستانه مخکښې دَهر پيغمبر سره داسې سلوک شويدې، لهذا ته پدې باندې مه غمژن کيږه، بعضِ مفسرينو ددې بل مطلب بيان کړې چې ﴿ مَا يُقَالُ لَكَ ﴾ پمعنیٰ دَما اقولُ لك الاّ ما قد قلتُ، دې يعني ای پيغمبره! څه چې تاته چې کوم هدايات دَتبليغ بيانوم نو داهغه دی چې ستانه مخکښې رسولانو ته مې هم بيان کړي وو، ﴿إِنَّ رَبَّكَ لَذُو مَغْفِرَةٍ ﴾ دا تعليل دې دَماقبل امر بالصّبر، چې ته صبر کوه ځکه چې رب ستا خاوند دَلوئ مغفرت دې مؤمنانو دپاره، او کافرانو او معاندانو ته سخت عذاب ورکونکې، نو هغه به ورنه انتقام اخلي، دې نه بعد دَمشرکانو دَ درې شبهاتو جوابونه ذکر کيږي.

﴿وَلَوْ جَعَلْنَاهُ قُرْآنًا أَعْجَمِيًّا ﴾ دا جواب دَاولې شبهې دې، شبهه دا ده چې دوئ وائي چې دا قرآن کچرې په عجمي ژبه کښې وې نو مونږته به دا يقين وې چې دا کلام حق دې ځکه دا نبي عربي دې په ژبه باندې ئې قدرت نشته دې، نو لامحاله دا وحې غيب ده، ليکن دا خو دې (حضور ﷺ) پخپله په عربي ژبه کښې جوړه وې او مونږته ئې اوروې، الله ﷻ جواب ارشاد فرمائي چه کچرته مونږ دا قرآن په عجمي ژبه کښې نازل کړې وې، نو بيابه هم دوئ دا اعتراض کولو چې (۱) ددې قرآن آياتونه واضح او په عربئ ژبه کښې ولې ندي نازل؟ چې مونږ ورباندې پوهه شو. (۲) او دا

خنګه چل دې چې نبي عربي دې او کتاب ئې په عجمي ژبه کښې دې ﴿أَعْجَمِيٌّ﴾ نسبت دې دَ "اعجم" او ديکښې زيادت دې په نسبت دَ "عجم" نه ځکه "عجم" هغه چاته وائي چې ژبه ئې عربي نه وی، او دا کيديشي چې ژبه ئې عربي نه وی خو فصيح وی او "اعجم" هغه چاته وائي چې په خبروئی بالکل ځوک نه پوهيږی ((قرطبي))

﴿قُلْ هُوَ لِلَّذِينَ آمَنُوا هُدًى﴾ دا په دوئ رد دې چې قرآن هدايت دې دحق طلب ګارانو ته سيدها لار خائي، شفا ده جسماني وروحاني، ظاهري اوباطني امراضو او دهر قسم شکوکو او شبهاتو دفعيه کوی خودا تاسوته چې ترينه هدايت او شفا نه ميلاويږی نو هغه دَدې څه نقص نه دې تاسو دَضد وعناد نتيجه ده تاسو په غوږونو کښې دَضد بوجونه پراته دې څنګه به قرآن واورئ، په سترګو مو دَ عناد پردې پرتې دی څنګه به درته دَدې حقانيت ښکاره شئ او په تعصب کښې دومره انتها ته راسيدلی يئ چې اوس تاسو پوهه کولو څه ذريعه نشته.

﴿أُولَٰئِكَ يُنَادَوْنَ مِن مَّكَانٍ بَعِيدٍ﴾ دا ده دوئ عدم فهم تمثيل دې يعنی دوئ پشان دَهغه سړی دی چې دَلرې نه ورته ځوک آوازونه کوی، نو هغه اول آوانه آوری، او که څه آوازئی په غوږونو کښې پريوځی نو پوهيږی پرې نه، چې څه وائی او څه غواړی.

| وَلَقَدْ آتَيْنَا مُوسَى الْكِتَابَ فَاخْتُلِفَ فِيهِ وَلَوْلَا كَلِمَةٌ |
| --- |
| اوپه تحقيق سره ورکړې وۀ مونږ موسیٰ ﷺ ته کتاب (توراة) نو اختلاف اوکړې شو په هغې کښې، او کچرته نه وې خبره |
| سَبَقَتْ مِن رَّبِّكَ لَقُضِيَ بَيْنَهُمْ وَإِنَّهُمْ |
| چه مخکښې ليکلې شويده دَرب ستا (نه په تاخير دَعذاب کښې) نو (في الحال به) فيصله شوې وې په مينځ دَدوئ کښې، اوبيشکه دوئ |
| لَفِي شَكٍّ مِّنْهُ مُرِيبٍ ﴿٤٥﴾ مَّنْ عَمِلَ صَالِحًا فَلِنَفْسِهِ وَمَنْ |
| خامخا په داسې شک کښې دي دَدې قرآن نه چې په تردد کښې اچونکې دې، چاچه عمل اوکړو نيک نو دَپاره دَخپل خان ئې دې اوچاچه |
| أَسَاءَ فَعَلَيْهَا ۗ وَمَا رَبُّكَ بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِيدِ ﴿٤٦﴾ |
| بدعمل اوکړو نوتاوان په هغه دې، اوندې رب ستاظلم کونکې په بندګانو باندې |

إِلَيْهِ يُرَدُّ عِلْمُ السَّاعَةِ ۚ وَمَا تَخْرُجُ مِنْ ثَمَرَاتٍ مِّنْ أَكْمَامِهَا وَمَا تَحْمِلُ مِنْ أُنثَىٰ

صرف الله ته حواله کولیشي علم دقیامت، اونه رااوځي.هیڅ میوې دغلافونوخپلونه اونه حامله کیږي هیڅ ښځه

وَلَا تَضَعُ إِلَّا بِعِلْمِهِ ۚ وَيَوْمَ يُنَادِيهِمْ أَيْنَ شُرَكَائِي

اونه زیږوي بچې مګرپه علم دالله ﷻ کښې وي،اوپه هغه ورځ چه اوازبه اوکړي دوئ ته الله ﷻ.چه څه شول شریکان څما،

قَالُوا آذَنَّاكَ مَا مِنَّا مِن شَهِيدٍ ﴿٤٧﴾ وَضَلَّ عَنْهُم مَّا

دوئ به وائي مونږ خبردرکوؤتاته.چه نشته دې په مونږکښې هیڅ اقرارکونکې په شریک اوورک به شي ددوئ نه هغه معبودان

كَانُوا يَدْعُونَ مِن قَبْلُ ۖ وَظَنُّوا مَا لَهُم مِّن مَّحِيصٍ ﴿٤٨﴾

چه دوئ ئي عبادت کولومخکښې ددینه(په دنیاکښې)اودوئ به یقین اوکړي چه نشته دې دوئ لره هیڅ ځائ د خلاصی،

لَّا يَسْأَمُ الْإِنسَانُ مِن دُعَاءِ الْخَيْرِ وَإِن مَّسَّهُ الشَّرُّ فَيَئُوسٌ قَنُوطٌ ﴿٤٩﴾

نه ستړې کیږي انسان دغوښتلودخیرنه .اوکه ورسیږي ده ته څه تکلیف نوبیا ډیر مایوسه ناامیده وي ،

وَلَئِنْ أَذَقْنَاهُ رَحْمَةً مِّنَّا مِن بَعْدِ ضَرَّاءَ مَسَّتْهُ لَيَقُولَنَّ هَٰذَا لِي

اوکه وڅکوؤمونږده ته رحمت دځپل طرف نه ورستو دهغه تکلیف نه چه رسیدلې وؤده ته،خامخادې داوائي چې داځماحق وؤ.

وَمَا أَظُنُّ السَّاعَةَ قَائِمَةً وَلَئِن رُّجِعْتُ إِلَىٰ رَبِّي إِنَّ لِي عِندَهُ

اونه کوم څه ګمان چه قیامت راتلونکې دې اوکچرې څه واپس کړې شوم خپل رب ته نوبیشکه ماله پاره هغه سره

لَلْحُسْنَىٰ ۚ فَلَنُنَبِّئَنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا بِمَا عَمِلُوا

خیر(جنت)دې ، نوخامخاخبربه ورکړومونږهغه کسانو ته چه کفرئي کړیدې په عملونودهغوئ،

وَلَنُذِيقَنَّهُم مِّنْ عَذَابٍ غَلِيظٍ ﴿٥٠﴾ وَإِذَا أَنْعَمْنَا عَلَى الْإِنسَانِ

اوخامخا به وڅکوؤ مونږ په دوئ سخت قسم عذاب ، اوکله چې انعام اوکړومونږپه انسان باندې

| اَعْرَضَ | وَنَاَ | بِجَانِبِهٖ | وَاِذَا | مَسَّهُ | الشَّرُّ | فَذُوْ | دُعَآءٍ | عَرِيْضٍ ۝ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اعراض اوکړی | دې | اوتاؤکړي دده | خپله.اوکله | چه ورسیږي | ده ته | بد | نوخاونددعاء | اوږدې وي |

﴿وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ﴾ **دادویمې شبهې جواب** دي،شبهه داده چې مشرکین وائي چې داقرآن کچرته حق وې نودفعةً واحدةً به نازل شوې وؤداچه لږلږئې مونږته محمدﷺ بیانوي نودې نه معلومیږي چې دادې پخپله جوړه وي،جواب اوشوچې مونږموسیٰ عليه السلام ته توراة دفعةً واحدةً ورکړې وؤ،بیاهم په هغې کښې اختلاف شوې وؤ بعضُ ئې تصدیق کړې وؤبعضُ تکذیب کړې وؤ،نوستاسوداانکارمحضِ عناداً دي.

﴿وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ﴾ **دادریمې شبهې جواب** دې چې داقرآن که چرته حق وې نوزمونږ دَ انکار پوجه به په مونږعذاب نازل شوې وؤ،جواب اوشوچې دَعذاب دَپاره وخت مقرر دي،ورنه دوئ ته به اوس رسیدلې وؤ ﴿وَاِنَّهُمْ لَفِيْ شَكٍّ مِّنْهُ مُرِيْبٍ﴾دویم ضمیرراجع دې قرآن ته اواول ضمیر دَجمع کفارِمکه ؤته،يااول ضمیریهودوته اودویم توراة ته په قرینې دَسیاق سره،

﴿مَنْ عَمِلَ صَالِحًا فَلِنَفْسِهٖ﴾بشارت دي،﴿وَمَنْ اَسَآءَ فَعَلَيْهَا﴾تخویف دي،﴿وَمَا رَبُّكَ بِظَلَّامٍ﴾ ددې پوره تشریح ئې په اول جلددې تفسیرکښې په سورة آل عمران کښې تیره شویده نوهغه ځائ ته رجوع وکړئ.

﴿اِلَيْهِ يُرَدُّ عِلْمُ السَّاعَةِ﴾دا څلورم دلیل عقلي دې په توحید ، او دا دلیل د الله ﷻ عموم علم باندې مبني دې چې قیامت علم صرف الله سره دې،بل چاسره نشته ،عالم نباتات کښې څومره تصرفات کیږی هغه ټول دَ الله ﷻ په علم کښې دی ، عالم انسانیت ټولو احوالو نه هغه خبر دې، بل چاسره داسې علم نشته لهذا مستحق دَالوهیت هم صرف الله ﷻ دې بل څوک نشته،

تقدیم دَ﴿اِلَيْهِ﴾دحصردَپاره دې او﴿يُرَدُّ﴾ صیغه د مجهول راوړلو کښې تعمیم طرف ته اشاره ده چې دَهرچانه چه تپوس وکړې شي چې قیامت به کله راځي،نوهغه به وایئ چې ددې علم الله ﷻ ته حواله دې،لکه په حدیث دَجبرئیل کښې حضورﷺاوفرمایل چې"ماالمسؤل عنهاباعلم من السّائل"﴿وَمَا تَخْرُجُ﴾"ما"نافیه ده،﴿مِنْ ثَمَرٰتٍ﴾"من"زائده دې،دَ تاکید دَاستغراق دپاره،﴿مِّنْ اَكْمَامِهَا﴾ "من"دَابتداء دَغایه دپاره دې،اکمام جمع دَ"کم"بکسرالکاف ده، دَ میوۇ غلافونو او پوستکو ته وائي چې میوې ورنه راأوزي،یعني په ونه کښې چې کله میوه راځي نو اوکلا دَ بو

غلاف صورت وی،بیاپکښې میوه پیداشي او رُو رُو غټیږي غټیږي دَخپل غلافونونه بهر را اُوځي،نوپدې ټولو مراحلو باندې الله ﷻ خبر دې اودغه رنګه دَیوې زنانه په رحم کښې نطفه قرار اخلی بیاپه هغې مختلف مراحل تیریږی،بیادَهغې نه یوروغ انسان جوړیږی،او بیا ددې حمل وضع کیږی دې ټولو مراحلو باندې الله ﷻ عالم دې

﴿ وَيَوْمَ يُنَادِيهِمْ ﴾تخویف أُخروي دې،چې کوم خلق شرک کوي،اودَدلائلودَتوحیداوقدرت لیدلوباوجود دَتوحید قائله کیږي نه،نودَقیامت په ورځ به ورنه الله ﷻ تپوس کوي چې﴿أَيْنَ شُرَكَآءِى ﴾پدیکښې دوئ ته زورنه اوتهکم دې،چې ستاسودَزعم مطابق چه ځماشریکان وؤ نو اوس هغه کم دي؟﴿قَالُوٓا۟ ءَاذَنَّـٰكَ ﴾اي اعلمناک"اعلام پمعنی دَ اخبار دې یعنی دوئ به ورته أُووائي چې اې الله ﷻ مونږتاته خبردرکوؤچې په مونږکښې هیڅ څوک هم دَشرک مدَعي اوګواهي کونکې نشته دې،﴿مَا مِنَّا مِن شَهِيدٍ ﴾شهید په وزن دَ فعیل دَ شهادت نه مشتق دې پمعنی دَ مدَعي اوګواهي کونکې.اونفی شهادت کنایه ده دَبرات نه یعني دوئ به پدغه وخت کښې دَاثبات دَشریك نه براءت وکړي،یاشهید دَ شهود نه مشتق دې پمعنی دَ حضور اي"مامنّااحدهم یُشاهدهم لانّهم ضلّوا"یعني مونږدَهغوئ مشاهده نشوکولې(قرطبي)ځکه چه ورک شول زمونږنه ،داځکه چې دَ دوئ مواقف به جدا وی،بعض وائی داکنایه ده دَ نفی دَشریک نه الله ﷻ لره

﴿ وَضَلَّ عَنْهُم مَّا كَانُوا۟ يَدْعُونَ مِن قَبْلُ ﴾"ما"موصوله عبارت دې دَشرکاءُ نه،او«ضلال» مجاز دې، دَعدم نفع نه یعني دَدوئ شرکاء به دوئ ته هیڅ نفع ورنکړي،یا «ضلال» پمعني د نسیان سره دې ،یعني دوئ نه به خپل معبودان باطله او هغوئ ته نداکول هیر شي ، یا ضلال پخپله حقیقی معنی دې یعنی دوئ چی دکومو خدایانو عبادت کولو هغه به ورنه ورک او غائب شی

﴿وَظَنُّوا۟ ﴾ظن دلته پمعنیٰ دَیقین سره دې ای ایقنوا،دوئ ته به یقین اوشي چې مونږلره ځائ دَ خلاصیدو او دَ تیختې نشته دې،

﴿ لَّا يَسْـَٔمُ ٱلْإِنسَـٰنُ مِن دُعَآءِ ﴾داځلورمه شکوه ده دکافرانونه او دَهغوئ طرزعمل نه چې الله ﷻ پرې مختلف حالات راولی دپاره دَدې چې دوئ الله ﷻ ته متوجه شی خودوئ په هیڅ حال کښې الله ﷻ طرف ته نه متوجه کیږی،

ددې درې آیتونومشهور دوه۲ توجیهات بیان شوی دی چې بنیاد ئې"دعا"په تفسیر

باندې دي:

(۱)اول دا چې دعا نه مراد دلته معبودان باطلۇ نه غوختل دي ، او په ديکښې دمشرک حالت بيانيږي چې مشرک انسان خپلو معبودان باطلۇ نه په غوختلو نه ستړې کيږی، مسلسل ترينه غواړی خو کله چې ترينه مراد پوره نشی نو بيا ﴿فَيَـُٔوسٌ قَنُوطٌ﴾حالت ئی شی او بالکل نااميده ترينه شی ،او الله ﷻ نه غوختل شروع کړی﴿ وَلَئِنْ أَذَقْنَاهُ رَحْمَةً ﴾خو کله چې الله ﷻ رحم ورباندې اوکړی نو دې شکر اوايمان راوړلو په ځائ ناشکری او کفر اوکړی او درې غلطو عقيدو شکار شی:

(۱)چې دانعمت ماته ځما صلاحيت دوجهې نه ميلاؤ شوې دې او څه ددې مستحق وم.

(۲)قيامت او آخرت نه انکار اوکړی چې وما اظن الساعة قائمة

(۳)کچرته بالفرض قيامت راهم شی نو هلته به هم ځما يوشان وی اوځمادپاره يو بهترينه ټهکانه وی لکه څنګه دنيوی حالت مې دې﴿وَإِذَآ أَنْعَمْنَا عَلَى ٱلْإِنسَـٰنِ ﴾ ديکښ هم دمشرک حالت بيان دې چې "نعمت" په حالت کښ دې دالله ﷻ احکاماتو پروانکوی،او حق نه اعراض کوی،خوکله چې دنقمت حالت پرې راشی نو﴿فَذُو دُعَآءٍ عَرِيضٍ ﴾ بياورته الله ﷻ يادشی او الله ﷻ نه دعاګانی غوختل شروع کړی، کمافي قوله تعالى، و اذا غشيهم موج كالظلل عواالله مخلصين له الدين(لقمان ۳۲)(جواهر القرآن)

(۲)دويم قول دادې چې «دعاء»نه مرا دالله ﷻ نه غوختل دی او«لَّا يَسْـَٔمُ ٱلْإِنسَـٰنُ » کښ د مشرک انسان عام خرابئ ذکر دې چې هغه کمال حرص دې چې دې ډير حريص وی ،نعمت او نقمت دواړو حالاتو کښ دده حرص نه ختميږی ،او په څه نعمت باندې ورته قناعت نه نصيب کيږی او هروخت ئی هل من مزيدکيفيت وی.دينه ورستو اوس دوه خرابيانی خاص دحالت نقمت سره او دوه خرابيانې خاص دحالت نعمت سره ذکر کيږی﴿ وَإِن مَّسَّهُ ٱلشَّرُّ ﴾ديکښ د مشرک نقمت اوله خرابی بيانيږی چې ددې تعلق احوالو سره دې چې دنعمت او سختئ حالت کښ دې مايوسه اونااميده وی "يؤس"او"قنوط"کښ فرق دادې چې يؤس دزړه کيفيت ته وائی او د دې کوم آثار په جسم باندې ظاهريږی قنوط هغې ته وائی ﴿وَلَئِنْ أَذَقْنَاهُ ﴾ديکښ د مشرک حالت نعمت اوله خرابی بيانيږی چې دې تعلق اعتقاد سره چې تفصيل ئی مخکښ تير شوچې

دومره تکبر کښې مبتلا شي چې آخرت نه انکار هم او کړي ﴿وَإِذَآ أَنْعَمْنَا عَلَى ٱلْإِنسَٰنِ﴾ دیکښې ئې دَحالت نعمت دویمه خرابي ذکر کیږي چې تعلق اعمالو سره دې چې دې په داسې حالت کښې دَ الله ﷻ احکاماتو هډو سره پرواه هم نه کوي. ﴿وَإِذَا مَسَّهُ ٱلشَّرُّ فَذُو دُعَآءٍ﴾ دیکښې دَ مشرک حالت نقمت دویمه خرابي بیانیږي چې دې تعلق اقوالو سره دې چې کله ورته تکلیف اورسي نو بیا چغې اوجزع فزع شروع کړي، ﴿فَذُو دُعَآءٍ عَرِيضٍ﴾ نه مراد دې تفسیر مطابق جزع فزع ده (بیان القرآن)

خلاصه دا چې ټول څلور احوال بیان شو: دوه د نعمت اودوه دنقمت ، احوال نعمت دَ مشرک دادي چې (۱) عقیده ئې خرابه شي (۲) اواعمال ئې هم خراب شي ، احوال نقمت دَ مشرک دادي چې (۱) چې زړه کښې پریشانه نا امیدئ شکار وي (۲) او په ژبه ئې هم چغې فریادونه جوړ وي.

| |
|---|
| قُلْ أَرَءَيْتُمْ إِن كَانَ مِنْ عِندِ ٱللَّهِ ثُمَّ كَفَرْتُم بِهِۦ |
| نه اوایه خبراکړئ ماته کچرې وي داقرآن دَطرفه دَالله ﷻ نه بیاهم کفرکوئ تاسوپدې، |
| مَنْ أَضَلُّ مِمَّنْ هُوَ فِى شِقَاقٍۭ بَعِيدٍ ۞ سَنُرِيهِمْ ءَايَٰتِنَا فِى ٱلْءَافَاقِ |
| نوخوک زیات گمراه دې دَهغه چانه چه وي هغه په مخالفت لرې کښې، زرده چه اوبه ښایو مونږدوئ ته دلیلونه خپل په اطرافو کښې |
| وَفِىٓ أَنفُسِهِمْ حَتَّىٰ يَتَبَيَّنَ لَهُمْ أَنَّهُ ٱلْحَقُّ أَوَلَمْ يَكْفِ بِرَبِّكَ |
| او په نفسونو دَدوئ کښې تردې چې ښکاره شي دوئ ته چه بیشکه داقرآن حق دې، آیاکافي نه دې په توحید دَرب ستاکښې، |
| أَنَّهُۥ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ شَهِيدٌ ۞ أَلَآ إِنَّهُمْ فِى مِرْيَةٍ مِّن لِّقَآءِ رَبِّهِمْ |
| داخبره چه بیشکه هغه په هرڅیز باندې حاضرناظردې، خبردارچه بیشکه دوئ په شك کښې دی دَملاقات دَرب خپل نه، |
| أَلَآ إِنَّهُۥ بِكُلِّ شَىْءٍ مُّحِيطٌۢ ۞ |
| خبردار بیشکه الله ﷻ هرڅیزلره گیره ونکې دې په اعتباردَعلم اوقدرت سره. |

﴿قُلْ أَرَءَيْتُمْ إِن كَانَ﴾ دا زجر دې او څلور و واړو شکوو باندې مرتب دې چې تاسو په خپله هم قرآن نه آورئ بل هم اوریدلوته نه پریګدئ، التبا پدی قرآن اونبي باندې اعتراضونو هم

کوئ او دالله ﷻ دَ وحدانیت اودَقرآن حقانیت باندې دومره دلائلو باجود تاسو شرک او کفر هم کوئ نو په درجه دَاحتمال کښې خو دیته لګ سوچ اوکړئ چې کچرته دا قرآن دَ الله ﷻ طرف نه وی اوتاسو ورسره دا معامله وی نو دا څومره لوئی درجې ګمراهی او بدبختی ده. ﴿إِن كَانَ﴾ جمله شرط ده اوجواب شرط محذوف دې چې فاخبروني من اضل منكم دې﴿مَنْ أَضَلُّ﴾ دا جدا جمله ده جواب شرط محذوف قائم مقام ده.

﴿سَنُرِيهِمْ آيَاتِنَا فِي الْآفَاقِ وَفِي أَنفُسِهِمْ﴾ تخویف دنیوي دې ، یعني زر ده چې الله ﷻ به دوئ ته خپل قدرتْ نشانیانې اوخائی په عرب کښې هم اودعربو نه باهر هم او هغه داسې چې اسلام له به فتحه ورکړی اوکفر او انصار دَ کفر به ذلیل او رسوا اوهلاک کړی﴿فِي الْآفَاقِ﴾آفاق نه مراد غیر عرب بلا د اوعلاقې دی او ﴿وَفِي أَنفُسِهِمْ﴾نه بلاد عرب مراد دي،او﴿آيَاتِنَا﴾ نه دَقدرت نشانیانې مراد دي چې هغه دلته فتح دَ مسلمانانو او شکست د کفارو دې،

څنی مفسرینو دَ﴿آيَاتِنَا﴾ مراد مطلقا نشانیانې اغستې دی چې دَ الله ﷻ په الوهیت باندې دلالت کوی، ﴿وَفِي أَنفُسِهِمْ﴾نه مراد دلائل انفسیه دی چې په ذات دانسان کښې وی او ﴿فِي الْآفَاقِ﴾ نه مراد دلائل آفاقیه دی چې ذات دَانسان نه خارج عالم کښې به وي، مطلب داآیت دا دې چې الله ﷻ به ورو ورو دَ دوئ ذات اودَعالم اوآفاق متعلق دوئ ته داسې حقائق څرګند وی چې دوئ ته به خپله پته اولګی چې هغه برحق ذات دې اونن صبا تجرباتی سائنس کوم تحقیقات راروان دی هغه بزبان حال دا ګویان دي:

| | |
|---|---|
| فيا عجبا كيف يعصى الإله | ام كيف يجحده الجاحد |
| وفي كــــل شئ له آية | تــــدل علي انه واحد |

﴿أَوَلَمْ يَكْفِ بِرَبِّكَ﴾داپنځم دلیل عقلي دې په توحید،چې الله تعالی اوپه هرځائ کښې حاضر ناظر دې،لهذا خپل حاجتونه صرف دَهغه نه غواړئ،

﴿بِرَبِّكَ﴾کښې باء یازائده ده څکه چې په فاعل دکفی باندې باء زائده وي لکه كفى الله ای كفى الله یاپمعنیٰ دَ في سره ده ای اولم يكف في توحيدربك یعنی ستا درب وحدانیت په

باره کښې صرف دا دليل کافی نه دی چې هغه په هر څه حاضر ناظر دې.

﴿أَلَا إِنَّهُمْ فِي مِرْيَةٍ مِّن لِّقَاءِ رَبِّهِمْ﴾ تخويف أخروي دې، ﴿أَلَا إِنَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ مُّحِيطٌ﴾ ـــــ او قدرت دَالله تعالى هرڅيزلره مُحيط دې.

| ركوعاتها (۵) | سورة الشورى مكية | آياتها (۵۳) |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان او ډیر رحم کونکې دې شروع کوم | | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۴۲) وحسب النزول (۶۲)**

نزلت بعد حمٓ السجدة وقبل سورة الزخرف

**ربط** : دیکښې دَدویم اعتراض جواب دې، چې په سابقه کتابونوکښې لیکلی دي چې منسوب دي انبیاؤته، چې دَغیرالله بلنه کوئ خپل حاجتونه ورنه غواړئ.
جواب داد باغیانو اودګمراه مشرانو تحریف دې اودهغوئ خودساخته کتابونه دي ځکه چې ټولو انبیاؤ ته صرف دَتوحیدوحی شوې وه، کقوله: ﴿شَرَعَ لَكُم مِّنَ الدِّينِ مَا وَصَّىٰ بِهِ نُوحًا﴾ آیت (۱۳).

**دسورة دَمضامینواجمالی خلاصه:**

دې سورت دوه حصې دي: اوله حصه تر آیت ۱۹ پورې ده، او دیکښې سورت دوه دعوې او دَ هغې سره متعلقه امورو بیان دې، اوله دعوه دا ده چې دَتوحیدوحی تماموانبیاؤته شویده چې صرف دَیوالله ﷻ عبادت کوئ، ﴿كَذَٰلِكَ يُوحِي إِلَيْكَ وَإِلَى الَّذِينَ...﴾ آیت (۳). او دویمه دعوه دا ده چې دَ دې خلاف دَباغیانو کاردې، ﴿وَمَا تَفَرَّقُوا إِلَّا مِن بَعْدِ مَا﴾
او دویمه حصه آیت ۲۰ نه تر آخره پورې ده، او دیکښې ماقبل دواړو دعوو باندې تنویرات ذکر کیږي، او په منیځ مینځ کښې تخویفات، بشارات او زجرونه هم ذکر کیږي.

**دسورة دَمضامینو تفصیلي خلاصه:**

**د اولې حصې تفصیلي خلاصه:**

آیت (۳، ۴) کښې اوله دعوه ده،
آیت (۵) دَالله ﷻ دَعظمت او دَ فرشتو د حالت بیان دې
آیت (۶) زجراوتخویف دې مشرکانو ته.
آیت (۷) ترغیب دې قرآن ته اوبشارت اوتخویف اخروی دې.

آیت(۱۳)دَاولې دعوی تفصیل دي.

آیت(۱۴)دویمه دعوه ده، ﴿وَلَوۡلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتۡ مِن رَّبِّكَ﴾

آیت(۱۵) کښې په دویمې دعوې شپږ تفریعات دي

آیت (۱۷، ۱۶) د دویمې دعوې متعلق یوې شبهې جواب دې، او تخویف اخروي دي

آیت(۱۸) زجر دي

**د سورت دویمې حصې تفصیلي خلاصه :**

اولې دَعوې باندې **شپږ تنویرات** ذکر کیږي:

(۱) آیت نمبر ۱۹ اول تنویر دې.

(۲) آیت نمبر ۲۵ دویم تنویر دې .

(۳) آیت نمبر ۲۸ دریم تنویر دې .

(۴) آیت نمبر ۲۹ څلورم تنویر دې.

(۵) آیت نمبر ۳۲ پنځم تنویر دې .

(۶) آیت نمبر ۴۹ ، ۵۰ شپږم تنویر دې.

**څلور تنویرات** په دویمې دعوې باندې ذکر کیږي:

(۱) آیت نمبر ۲۱ اول تنویر دې.

(۲) آیت نمبر ۴۴ دویم تنویر دې .

(۳) آیت نمبر ۴۷ دریم تنویر دې .

(۴) آیت نمبر ۵۱ څلورم تنویر دې.

دینه علاوه په مینځ مینځ کښې تخویفات، بشارات ، شبهاتو جوابات او زجرونه هم ذکر کیږي .

| حٰمٓ | عٓسٓقٓ ① | كَذٰلِكَ ② | يُوۡحِىۡۤ | اِلَيۡكَ | وَاِلَى | الَّذِيۡنَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| الله ﷻ عالم دی په معنی دَدې،دغه شان وحی کوی تاته الله تعالی اووحی کړی وه الله ﷻ هغه پیغمبرانوته | | | | | | |
| مِنۡ | قَبۡلِكَ | اللّٰهُ | الۡعَزِيۡزُ | الۡحَكِيۡمُ ③ | لَهٗ | مَا |
| چه ستانه مخکښې وو الله ﷻ چه غالب دی خاونددَحکمت دی، الله ﷻ لره دی اختیاردَهغه څیزونو | | | | | | |

| فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ وَهُوَ الْعَلِيُّ الْعَظِيْمُ ④ تَكَادُ السَّمٰوٰتُ |
|---|
| چه په اسمانونوکښ دی اوڅه چه په زمکه کښ دی.اوهغه لوئ دی ذات دده لوئ دی صفات دده،نزدی دی اسمانونه |
| يَتَفَطَّرْنَ مِنْ فَوْقِهِنَّ وَالْمَلٰٓئِكَةُ يُسَبِّحُوْنَ بِحَمْدِ رَبِّهِمْ وَيَسْتَغْفِرُوْنَ لِمَنْ |
| چه اوچوی دپاسه ددوئ نه اوفرشتی تسبيح کوی سره دحمددرب خپل اوبخنه غواړی دپاره دهغه چا |
| فِي الْاَرْضِ اَلَآ اِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ ⑤ |
| چه زمکه کښ دی،خبردار بیشکه الله صرف هغه بخنه کونکی رحم کونکی دی |

﴿حٰمٓ ① عٓسٓقٓ﴾داحروف مقطعات دي چې جزمي اوحقيقي معنی ئی الله ﷻ ته معلومه ده،دادواړه ياجداجدانومونه دی ددی سورة نوځکه جداجداليکلی شويدي،يادواړه يونوم دی ليکن جداجداځکه ليکلی شويدي چې دنوروحواميموسره ئی مطابقت راشي.

﴿كَذٰلِكَ يُوْحِيْٓ اِلَيْكَ﴾دا د دي سورة اوله دعوه اومرکزی مضمون دې چې تمام جهان مالک او متصرف الله ﷻ دي، اوهم د دې خبرې وحي تمام انبياؤوته شوې، کاف په﴿كَذٰلِكَ﴾کښ اوبه محل ده نصب کښ دی،پمعنی ده((مثل)) دې،((ذلک)) دپاره مشاراليه مضامين دسورت دی، ياوحي او ايحاء دي چې د ((يوحي)) په ضمن کښې دې ،﴿اللّٰهُ﴾ لفظ جلاله فاعل ده ((يوحي)) ﴿الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ﴾ دواړه صفات دي د لفظ جلاله، معني دايت داده چي څنگه چه مضامين د دې سورت دی، دغه شان مضامنيو وحي الله ﷻ تاته د دينه مخکښ سورتونو،کښ او ستانه علاوه نورو پيغمبرانوته کړيده ،يا څنگه چه وحي پدې سورت کښ تاته کوی هم دغه شان تاته دينه مخکښ سورتونو او نورو پيغمبرانو ته هم الله ﷻ کړيده،هغه الله چه په هر څه غالب او هر کار ده حکمت نه ډک دي.

﴿لَهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ﴾عام مفسرينون په نيز د ﴿الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ﴾ بيان دې ، او دحضرت حسين علي رحمه الله په نيز دا د وحي بيان دې،يعني هغه وحي داده چه:له مافي ......، نو دلته﴿لَهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ﴾نه مخکښ ((قولوا)) مقدر دې.

﴿تَكَادُ السَّمٰوٰتُ يَتَفَطَّرْنَ﴾د دې ايت دوه تفسيرونه شوي دي:

(۱) دیکښ د ﴿ وَهُوَ الْعَلِيُّ الْعَظِيمُ ﴾ یعني دَ الله ﷻ دَعظمت شان اودَهیبت بیان دې، چې الله ﷻ دومره عظیم ذات دې چې قریبه ده چې اسمان به دَالله ﷻ دَعظمت او جلال دَ زوره وچوی، تکړې شی،لکه یو حدیث کښ راځي :أطت السماء،وحق لها أن تئط، ما فيها موضع أربعة أصابع إلا وملك واضع جبهة ساجدا لله(رواه الترمذي) یعني آسمان نه د کرچي کرچې کیدلو آواز راغې او پکار هم دا وه چې د ینه داسي آوازونه رااوزي،(ځکه) چه څلور ګوتوبرابر ځائ په کښ هم داسې نشته چه هلته فرشتې تندې نه وي تیټ کړې، او الله ﷻ ته په سجده کښ نوي پرته.

او دې صورت کښې د ﴿وَالْمَلَـٰٓئِكَةُ يُسَبِّحُونَ ﴾ مناسبت دَ ماقبل سره داسې دې چې صرف آسمان د الله ﷻ هیبت نه لرزان او ترسان نه دې ، بلکه آسمان کښې اوسیدونکې فرشتې هم د هغه نه ریږیږي ، او خوف دَ وجهې د الله ﷻ تسبیح وائي (کما في قوله تعالى: يسبح الرعد بحمده والملائكة من خيفته)، او صرف خپل ذات باره کښې نه ریږیږي بلکه زمکه والؤو باندې هم ریږیږي، نو دې وجهې نه د هغوئ د پاره هم د استغفار د عاګانې کوي.

(۲) بعضِ وائی آیت مطلب دادې چی کله مشرکین الله ﷻ ته نسبت دَ شریک اوولدکوی نو داوینادومره بې ادبی اوګستاخي ده چی قریبه ده چی اسمان دَدې به وجه تکړې تکړې شی لکه سورة مریم کښ دي:تكاد السموات يتفطرن منه وتنشق الارض وتخرّ الجبال هداً، ان دعوا للرحمن ولدا. ﴿وَالْمَلَـٰٓئِكَةُ يُسَبِّحُونَ ﴾دې کښ دَفرشتوحال بیانیږی چې کافران خونسبت دَولد او شریک کوي الله ﷻ ته لیکن فرشتی ئی دَهرقسمه شریک نه پاکی بیانوي،

﴿مِن فَوْقِهِنَّ ﴾ضمیرپااسمانونوته راجع دی او مِن ابتدائیه دی،یعنی داانفطاریه دَتولونه اوچت اسمان نه شروع شی،یاراجع دې فرقواوجماعتونودَمشرکانوته چي دوئ دا پاسه را اوغورزیګي

﴿وَيَسْتَغْفِرُونَ لِمَن فِي الْأَرْضِ ﴾دلته سوال کیږي چه من في الارض خو عام دي ،مسلمانانو او کفارو دواړوته شامل دي،تو دوی کفارودپاره استغفار څنګه کوي؟ دینه دوه جوابونه شویدي:

(۱) من في الارض اګر چه عام دی لیکن دلته یې معنی خاص ده ،او صرف مؤمنان مراد دي لکه پدې آیت کښ دي فاغفر للذين أمنوا

(۲)من في الارض عام دی خو دلته استغفار نه خپله معنی "طلب د مغفرت" نده مراده، بلکه، دینه مراد خه کارونه مثلا رفاهي او سماجي خدماتو الهام او تاخیر دعذاب طلب دي. او دا باعث دا ایمان او ایمان سبب ده مغفرت گرځي

﴿اَلَاۤ اِنَّ اللّٰهَ هُوَ الۡغَفُوۡرُ الرَّحِيۡمُ﴾ اول تفسیر مطابق دی کښ دالله ﷻ مزید عظمت بیان دی او اشاره ده قبولیت د استغفار د ملائکوته. او دویم تفسیر مطابق یه دې کښ اشاره ده په دنیا کښ په مشرکینو عذاب نه راتلو ته، چې مشرکان پدې وبناسره مستحق دعذاب دي، لیکن چونکه الله ﷻ غفور رحیم ذات دی سبقیت درحمت پوجه دعذاب نه بچ دي.

وَالَّذِيۡنَ اتَّخَذُوۡا مِنۡ دُوۡنِهٖۤ اَوۡلِيَآءَ اللّٰهُ حَفِيۡظٌ عَلَيۡهِمۡ ۖ وَمَاۤ اَنۡتَ

اوهغه کسان چه نیولی ئی دی ماسوئ دالله نه نورخدایان، الله ﷻ ساتونکې دی په دوئ. اونه ئی ته

عَلَيۡهِمۡ بِوَكِيۡلٍ ۞ وَكَذٰلِكَ اَوۡحَيۡنَاۤ اِلَيۡكَ قُرۡاٰنًا عَرَبِيًّا لِّتُنۡذِرَ اُمَّ الۡقُرٰى

پدوئ باندې نگهبان. اودغه شان مونږه وحی کړیده تاته قرآن په عربئ ژبه کښ دپاره ددی چه ته اویره وی خلق دمکې

وَمَنۡ حَوۡلَهَا وَتُنۡذِرَ يَوۡمَ الۡجَمۡعِ لَا رَيۡبَ فِيۡهِ ؕ فَرِيۡقٌ

اوهغه چه چاپیره دی ورنه، اوته ویره وی خلق دوځی دقیامت نه چه نشتی هیڅ شک په هغې کښ، یوه ډله به

فِى الۡجَنَّةِ وَفَرِيۡقٌ فِى السَّعِيۡرِ ۞ وَلَوۡ شَآءَ اللّٰهُ لَجَعَلَهُمۡ

په جنت کښ وی اوبله ډله په جهنم کښ، اوکچرې(جبراً مسلمانول)اراده وې دالله ﷻ نوخامخاگرخولی به ئی وی ټول مخلوق

اُمَّةً وَّاحِدَةً وَّلٰكِنۡ يُّدۡخِلُ مَنۡ يَّشَآءُ فِىۡ رَحۡمَتِهٖ ؕ وَالظّٰلِمُوۡنَ مَا لَهُمۡ

یوامت لیکن داخلوی الله ﷻ چاته ئی چه خوښه شی په خپل رحمت کښ، اوظالمان چه دی. نشته دوئ لره

مِّنۡ وَّلِىٍّ وَّلَا نَصِيۡرٍ ۞ اَمِ اتَّخَذُوۡا مِنۡ دُوۡنِهٖۤ اَوۡلِيَآءَ ۚ فَاللّٰهُ هُوَ الۡوَلِىُّ

هیڅ خوک دوست اونه مددگار. آیانیولی دی دوئ ماسوئ دالله ﷻ نه نورخدایان، پس الله صرف هغه دوست دی

وَهُوَ يُحۡىِ الۡمَوۡتٰى وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَىۡءٍ قَدِيۡرٌ ۞

اوهغه ژوندی کوی مړی، اوهغه په هرڅیز باندې قادردی

﴿ وَالَّذِينَ اتَّخَذُوا مِن دُونِهِ أَوْلِيَاءَ ﴾دازجراوتخويف دی مشرکانوته،يعني الله ﷻ وحدانيت په واضحه دلائلو سره ښکاره شوې دې ، اوس د دې باوجود چې کوموخلقودالله ﷻ نه ما سِوىٰ نورخدايان نيولي دي،الله ﷻ ته دَ دوئ عملونه معلوم دی دَدی شرک به ورته سزا ورکوی،ته په دوئ نگهبان او نگران نه ئې،ستا فريضه تبليغ وه او هغه تا پوره کړه.﴿ وَالَّذِينَ اتَّخَذُوا ﴾ مبتداء دی او﴿اللَّهُ حَفِيظٌ عَلَيْهِمْ﴾ئې خبردی

﴿ وَكَذَٰلِكَ أَوْحَيْنَا ﴾ ديکښې ترغيب دې قرآن باندې ايمان راوړلوته ، او د قرآن نزول مقاصد بيانيږي ، کاف د پاره د کمال دې ، او مشار اليه داسم اشاره مضامين د توحيد دي ،يعنی مونږ دا مضمون په قرآن کښې ډير په وضاحت سره په عربئ ژبه کښې بيان کړې ،چې دوئ پرې پوهه شي او ايمان پرې راوړي او د جهنم عذاب نه بچ شي.

﴿لِّتُنذِرَ أُمَّ الْقُرَىٰ ﴾مقصد د وحي بيانيږي چې هغه انذار دې، دلته مجاز في النسبه دې او مراد د ام القرى نه اهل دام القرى دي ، او «امّ القرى» نه مرادمکه ده، "ام" مورته وائي او دلته ترينه مراد اصل دې،القرى جمع ده او مراد ترينه ټوله دنياده،مکي ته ام ام القرى ځکه وائي(١) چه ټوله دنيادډينه لاندې غوړولي شويده،(٢)ياد شرافت او فضيلت د دجهې نه ورته وائي.(٣)يا القري نه مراد مکې ته نيزدې علاقې دی،چونکه دی ځائيونه په اعتبار سره مکه ټوله نه زره خاريه ده نو ځکه ورته ام القرى اوئيلې شو. ام القرى مفعول اول دې د "تنذر" فعل د پاره او مفعول ثاني ئې حذف دې ،چې هغه "العذاب" دې ، ﴿وَمَنْ حَوْلَهَا﴾مکی نه علاوه نورعرب ورنه مراد دې، يا دَ ټولی دنياخلق ورنه مراددې،

﴿وَتُنذِرَ يَوْمَ الْجَمْعِ﴾ دا تخصيص بعد التعميم دې ، ﴿يَوْمَ الْجَمْعِ﴾ قيامت ورځی ته وائی، او دا مفعول به ثانی دې د پاره د «وَتُنذِرَ»،اول مفعول ئې حذف دې چه "الناس" دې، يعني مقصد د نزول د قرآن دا دې چې ته په دې سره اهل مکه د الله ﷻ د عذاب نه اويروې، او خاص کر عذاب د قيامت او آخرت نه.

"جمع"يوځائي ته راټولولوته وائي چونکه پدی ورځ به الله ﷻ ټول مخلوقات زميني او او اسماني يو ميدان ته را ټولوی روحونه او دهغوئي جسمونه به جمع کوئی او عمل کونکی او دهغوئي عملونه به جمع کوی نو ځکه ورته يو الجمع ويلې کيږی.

﴿فَرِيقٌ فِي الْجَنَّةِ ﴾ دا نتيجه د انذار بيانيږي ، چې کومو خلقو انذار قبول کړو نو د هغوئ دپاره

جنت دي،او کومو ترینه انکار اوکړو نو د هغوئ دپاره جهنم دي،﴿فَرِيقٌ﴾په دواړه ځائیونو کښ مبتدا دې ، « فِي الْجَنَّةِ » او « فِي السَّعِيرِ » جار مجرور سره دمتعلق نه ورله خبر دې ،او محقیقینو په نیز نکره بغیر د تخصیص نه هم مبتدا واقع کیدیشي چي کله فائده ورکوی، یا في الجنة أو في السعير جار مجرور سره متعلق نه صفت دي فريق دپاره او خبر محذوف دې،چه "منهم"دي ،یعنی ورستو دَ جمع کیدلونه په موقف دَحساب کښ بعضِ به جنت لاړشی او بعض جهنم ته،

﴿وَلَوْ شَآءَ اللَّهُ﴾ دا نبي کريم ﷺ ته تسلي ده، چې کوم خلق انذار نه قبلوي ، نو ته هغوئ ته پریشانه کیږه مه ، ځکه چې مقصد د تخلیق د انسانیت ابتلاء ده ، څوک به ایمان راوړي او څوک به نه ، کنې الله ﷻ په دې هم قادر دې چې ټول خلق ئي په ایمان مجبوره کړې وې ، او ټول به جنتیان وې، لیکن جبري ایمان مطلوب نه دې ، ځکه چې دا د ابتلاء مقصد سره منافي دې، او سزا او جزا حکمت بیا نه پاتې کیږي .

﴿ وَلَكِن يُدْخِلُ مَن يَشَآءُ﴾ استدراک دې د ماقبل نه ، یعني د الله ﷻ مشیئت تقاضه ایمان او هدایت باندې مجبوره کول نه دي ، بلکه ابتلا ده ، لهذا اوس به څوک ایمان راوړي او الله ﷻ به ئي جنت کښې داخل کړي او څوک به ایمان نه راوړي ، نو الله ﷻ به ئي جهنم ته داخل کړي،او د ودئ به بیا هلته څوک مددګار نه وي، چې جهنم ئي رااوباسي او عذاب نه ئي بچ کړي .

﴿أَمِ اتَّخَذُوا مِن دُونِهِ﴾دَمخکنی زجراعاده ده،یعني دوئ د الله ﷻ نه ما سوی نور معبودان نیولی دي د دې دپاره په سخته کښ ددوئ پکار راشی او مدد به اوکړي؟هرګز داسي نشې کیدې، دالله ﷻ نه ماسوی هیڅ څوک هم دَدوئ مدد نشی کولی او نه ئي پکار راتلې شی، ځکه چه کارساز، مړه ژوندي کونکې او په څه قادر الله ﷻ دي.

﴿فَاللَّهُ هُوَ الْوَلِيُّ﴾تعلیل دی د ماقبل ،چې الله ﷻ نه ماسوا څوک دَ دوئ پکار نشي راتلې ، ځکه چې ولی اوکارسازصرف الله ﷻ دی اوهغه په هرڅه باندی قادردی.

وَمَا اخْتَلَفْتُمْ فِيهِ مِن شَيْءٍ فَحُكْمُهُ إِلَى اللَّهِ ۚ ذَٰلِكُمُ اللَّهُ

اوهغه چه اختلاف کوئ تاسوپه هغې کښ هرشې چه وی نوحکم دَهغې حواله دی الله ته،دغه ذات الله دی

| |
|---|
| رَبِّيْ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ ۖ وَإِلَيْهِ أُنِيبُ ﴿١٠﴾ فَاطِرُ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ |
| رب خمادی صرف په هغه ماتوکل کړیدی،اوهغه ته به څه واپس کیږم.پیداکونکې دې دآسمانونواودزمکې، |
| جَعَلَ لَكُمْ مِّنْ أَنفُسِكُمْ أَزْوَاجًا وَّمِنَ الْأَنْعَامِ أَزْوَاجًا ۖ يَذْرَؤُكُمْ فِيهِ ۚ |
| گرځولي ئې دي ستاسو دپاره ستاسو دجنس نه،ببیانې،اوګرځولي ئې دي دڅاروونه هم جوړې،خوره وي تاسولره پدغه طريقه، |
| لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ ۖ وَهُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ ﴿١١﴾ لَهُ مَقَالِيدُ |
| نشتی په شان دهغه هيڅ څيز،اوهغه اوريدونکی دی ليدونکې دې،صرف الله سره دی کنجیانې |
| السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ ۚ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَن يَشَاءُ وَيَقْدِرُ ۚ إِنَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ﴿١٢﴾ |
| دآسمانونواودزمکې،زياتوی رزق هغه چالره چه ئې خوښه شي اوکمه وي،بيشکه هغه په هرڅه باندې ښه پوهه دی. |

﴿ وَمَا اخْتَلَفْتُمْ فِيهِ مِن شَيْءٍ ﴾ داتسلي ده نبي كريم ﷺ ته ، چې دومره دلائلو باوجود دوئ تا سره اختلاف کوي نو ورته اوايه چې زمونږ او ستاسو اختلاف فيصله به الله ﷻ کوي ، چې څوک په حقه دې او څوک په باطله ، په دنيا کښې هم، خاص کر معجزات، دلائلو او حجت او برهان اعتبار سره ، او په آخرت کښې هم ، چې مونږ به جنت داخل کړې او تاسو به جهنم ته ، دلته د ((وما اختلفتم فيه )) نه مخکښې "قل" فعل امر مقدر دې. او خطاب په ((اختلفتم)) کښې عام دې ، مؤمنانو او کافرانو دواړو ته ،

﴿ ذَٰلِكُمُ اللَّهُ ﴾علت دې دماقبل چه هره فيصله څکه الله ﷻ ته حواله ده چه هغه څمارب دې، ((عليه توكلت)) په هغه باندې څمابهروسه ده،تاسو چې څومره سازشونه کوئ ، هغه به ئې درله ناکامه کوي ، ((واليه انيب)) اوپه هره معامله کښې څه هغه طرف ته رجوع کوم.

څنو مفسرينو دا آيت د تقليد او قياس په مذمت کښې پيش کړې دې ، ليکن دا آيت دې تفسير نه معلومه شوه چې د دې تعلق د تقليد او قياس سره هيڅ نشته دې ، ابن عاشور رحمه الله ليکي: وَلَا عَلَاقَةَ لِهَذِهِ الْآيَةِ بِاخْتِلَافِ عُلَمَاءِ الْأُمَّةِ فِي أُصُولِ الدِّينِ وَفُرُوعِهِ لِأَنَّ ذَلِكَ الِاخْتِلَافَ حُكْمُهُ مَنُوطٌ بِالنَّظَرِ فِي الْأَدِلَّةِ وَالْأَقْيِسَةِ صِحَّةً وَفَسَادًا فَإِصْدَارُ الْحُكْمِ بَيْنَ الْمُصِيبِ وَالْمُخْطِئِ فِيهَا يَسِيرٌ إِنْ شَاءَ النَّاسُ التَّدَاوُلَ وَالْإِنْصَافَ. وَبِذَلِكَ تَوَصَّلَ أَهْلُ الْحَقِّ إِلَى التَّمْيِيزِ بَيْنَ الْمُصِيبِ وَالْمُخْطِئِ، وَمَرَاتِبُ الْخَطَإِ فِي ذَلِكَ،

عَلَى أَنَّهُ لَا يُنَاسِبُ سِيَاقَ الْآيَاتِ سَابِقَهَا وَتَالِيَهَا وَلَا أَغْرَاضَ السُّوَرِ الْمَكِّيَّةِ. وَقَدِ احْتَجَّ بِهَذِهِ الْآيَةِ نُفَاةُ الْقِيَاسِ، وَهُوَ احْتِجَاجٌ لَا يَرْتَضِيهِ نَطَّاسٌ.

او که بالفرض دلته د امت اجتهادي اختلاف شي هم ، نو بيا هم دينه د تقليد نفي نشي کيدي : (۱) يو خو د دې وجهې نه چې دلته زيات نه زيات د تقليد حکم نه سکوت راغلې دې ، نفي نه ده راغلې ، (لکه د رسول متعلق حکم باره کښې سکوت دې ) او سکوت په نفي د حکم باندې دلالت نه کوي .

(۲) او دويم دا چې ((حکمه الى الله)) داعنوان دې، او دې تحت الله ﷻ اتباع ، رسول ﷺ اتباع او مجتهدينو اتباع تول راځي ،ځکه چه رسول ﷺ کومه فيصله کوی نو هغه هم دَالله ﷻ فيصله وی،دغه شان چه مجتهد په خپل اجتهادسره يوفيصله کوی نوچونکه دَ اجتهاد دارو مدار هم په نصوصودَقرآن اوسنت وی، نوهغه هم په يوحيثيت سره دَ الله ﷻ حکم دې، نودَائمه مجتهدينواجتهاد هم په دې حيثيت سره په احکامِ الهيه کښې داخل دې، نودَدې وجهې نه علما فرمائي چه عام سړې چې دَقرآن اودَسنت دَفهم صلاحيت نه لرى، نو دَ هغه په حق کښې دَمفتى اودَخيرالقرون دَ زمانې دَمجتهدتقليداوفيصله حکم شرعى دې، په دومره قدرې حقيقت باندې پوهه کيدوسره دَتقليددَمنکرينواودَهغوئ دَضداوتعصب دَمرض دَ ازالې دَپاره ډيره لويه شفاءده،داسې مضمون په تفصيل سره دَسورة نساء آيت(فان تنازعتم فى شئ فردوه الى الله ورسوله)کښې تيرشويدې.

﴿فَاطِرُ السَّمَٰوَٰتِ وَالْأَرْضِ﴾دامتعلق دې دَ﴿لَهُۥ مَا فِي السَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ﴾ سره، عام مفسرينو په نيز د((العزيز الحکيم)) بيان دې يعني دَ زمکې او اسمانونه پيدا کول ،انسانان اوخاروی جوړه جوړه پيدا کول اوجوړو نه د دوئ نسل خورول دَ الله ﷻ د قوت او حکمت مظاهر دی،او د حضرت حسين علي رحمه الله په نيز د﴿يَذْرَؤُكُمْ﴾بيان دې،يعني ده دې خبرې وحی شوي وه چې اسمانونه او زمکې ،انسانان او خارو جوړه جوړه پيدا کولو او بيا پدې طريقې سره دنيا کښې د هغوئ نسل خورولو والا ذات صرف الله ﷻ دې ، نو کارساز او اله هم هغه دې ، نو دَ مضمون په اعتبارسره دَ ﴿يَذْرَؤُكُمْ﴾ دَ پاره مفعول به دې،

﴿وَمِنَ الْأَنْعَٰمِ أَزْوَٰجًا﴾يعنى په خاروکښې ئې جوړى جوړى پيدا کړيدى،مرادورنه هغه اته(۸) قسمه دى چه په سورة انعام کښې ذکردی،

﴿يَذْرَؤُكُمْ فِيهِ﴾ ضمير په "فيه" کښ راجع دی "جعل" ته، چه مفهوم دې دَجعل لکم من انفسکم نه، او "في" پمعنی د "باء" سببيه سره دې ،يعني الله تعالى دا زوجيت سبب دَنسل او دَ خورولو ستاسو، گرځولې دې (ابن کثير).

﴿لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ﴾ دابل صفت دې دَالله ﷻ چه الله ﷻ په تصرفاتو مذکوره ؤکښ پشان دَ مخلوق اسبابو ته محتاج نه دې،اوپه ذات اوپه صفاتو کښ ورسره څوک مماثل نشته،پدې آيت کښ دَالله ﷻ نه دَمماثلت نفی مبالغةً شويده په **دوؤ وجهوسره**:

**يو دا** چې دَ مثل لفظ دَ مشابهت دَپاره استعماليدو تولو الفاظونه عام دې،ځکه چه "**ند**" **مشارک فی الجوهر** يعني ذات کښ شريک ته ويلی کيږی او "**شبه**" **مشارک فی الکيفية** يعني صفاتو کښ شريک ته ويلې کيږی او "**مساوی**" **مشابه فی الکمية** يعني مقدار کښ برابروالی ته ويلې کيږی او "**شکل**" **مشارک فی القدر و المساحة** ته ويلې شی او "**مثل**" **عام دې** دَدې تولو دپاره استعماليږی، نو مطلب دا دې چه دَالله تعالى هيڅ مماثل نشته دی،نه ذاتاًاونه صفتاًاگرچه مخلوق سره په بعضو صفاتو کښ صرف لفظی اشتراک دې( مفردات القرآن).

**دويم دا** چه دلته کاف حرف جر زائد دې دپاره د تاکيد . اودا په کلام د نفي تکرار فائده ورکوي ،نو گويا داسې شو چې دلته دوه ځله د حکم نفي شوې وي.(التحرير والتنوير)

او بعض مفسرينو دا هم وئيلي دي چې ﴿لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ﴾ دَ (مثلک لايبخل) دَقبيلې نه دې،اودا دَ مبالغې دَپاره استعماليږی،نو داپه شان دَليس کالله شئ دې، خوفرق صرف دادې چه دلته دَمماثلت نفی په طريقې دَمبالغې سره شويده،

البته دلته اشکال دی چه دلته کاف اودَمثل جمع راغلی ده نوداخونفی دَمماثل المماثل راغله،(يعنی دَالله تعالى دَمثل مثل نشته دی)اونفی دَمماثل رانغله،حالانکه مقصودنفی دَمماثل ده؟

جواب دادې چه په کلام عرب کښ داسې ډيرتعبيرات واقع دی چه په هغې کښ غور اوکړيشی نو داترينه معلوميږی چه واقعةً دې کښ نفی دَمماثل المماثل ده،اوهرچه مماثل دې نودَهغه وجودفقط دَمفروض په درجه کښ دې.اودَ دې نه دانه لازميږی چه حقيقةً دې مماثل وجودهم وی.

اوکه څوک سوال اوکړی چه دَمماثل ثبوت په فرض درجی ته څه ضرورت وؤ؟ نوجواب دادی چه کلام کښ مبالغه راوړودَپاره لکه شاعروائی:

ليس كمثل الفتى زُهير    خلق يوازيه في الفضائل

دلته پدی شعرکښې اول دَزهيردَپاره فرضاڈیو مماثل ثبوت اوشو ،بیادَهغې مماثل مماثل نفی اوشوه، دَدی دَپاره چه دَزهيردَمماثل نفی مبالغة اوشی يعنی دزهيرمماثل بالكل نشته دی، نودلته په آیت کښې هم پدی تعبیرسره نفی دَمماثل اوشوه مبالغة چه دَالله تعالى مماثل بالكل نشته دی(والله اعلم).

**تنبيه**:پدی آیت کښې لکه څرنګه چه صریح رددی په مشبهؤاومجسمؤباندی چه دَالله تعالى دَ پاره استواعلى العرش،نزول،يد وغيره صفتونه بالكل دَمخلوق دَصفتونوپه شان ثابتوی او دَ تشبيه او دَ تجسيم قائل دی،نوهمدارنګه پدی آیت کښې دَموجوده زمانی په غیرمقلدینو باندې هم رد دې چې دَاستواء على العرش،نزول،يد اوساق وغیره نه متعارفه اوحقیقی معنی مرادکوی څکه چه داهم تشبيه اوتجسيم دی.

دجمهورومحدثينواودَسلفوصالحينو مذهب په صفاتودَالله تعالى کښې دا دې چې نزول، استواء، يد وغيره ثبوت الله تعالى لره حق اوثابت دې کمايليق بشانه اوداتشريع ئی بالکل نه کوی چه حقيقی معنی مرادده يامجازی،کنائی معنی مرادده اوکه حقیقی ، او هم دا مقصد دې دَ قول دَامام مالک رحمه الله چه الاستواء معلوم ای معلوم اطلاقه على الله،وكونه صفةً لله... دَ دی مضمون تفصیل اودَجمهورومحدثينواودَسلفومذهب په باره دَ متشابهاتو او صفاتو کښې،حضرت والدمحترم نوّرالله مرقده وبرّدمضجعه په اول جلد صفحه(۴۴۲)کښې دَ"اُخَرُ مُتَشَابِهَاتٌ" په تفسيرکښې کړيدې نورجوع ورته اوکړئ.﴿وَهُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ﴾رد دې په جهميؤ باندې چه اهل تعطیل دی.

﴿لَهُ مَقَالِيدُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ﴾داهم متعلق دی د﴿لَهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ﴾ سره،عام مفسرين په نيز دَ«العزيز الحكيم» بيان دې او حضرت حسين على رحمه الله په نيز دَ﴿يُوحِي﴾بيان دې،"مقاليد"کنجيانو ته وائی، دا لفظ عربی دې اوجمع دَ"مقليد"ده،او يا معرب دې او جمع دَ "اقليد" ده، چې معرب دې دَ کليد نه ،په فارسئ کښې کنجی ته وائی. يعنی دَټولوخزانو چابيانې صرف دَالله تعالى په قبضه قدرت کښې دې، ټولوذوی الارواحوته هم دې رزق ورکوی، چاته کم چاته زيات چاته نه ورکول دَخپل حکمت مطابق کوي.

| شَرَعَ لَكُمْ مِّنَ الدِّيْنِ مَا وَصّٰى بِهٖ نُوْحًا وَّالَّذِيْٓ |
|---|
| مقرركړي ئى دي ستاسودپاره دين هغه چه وصيت ئى كړي وؤ د هغې نوح عليه السلام ته او هغه |
| اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ وَمَا وَصَّيْنَا بِهٖٓ اِبْرٰهِيْمَ وَمُوْسٰى وَعِيْسٰٓى |
| چه مونږوحی كړيدی تاته او هغه چې وصيت كړي وؤ مونږ د هغې ابراهيم عليه السلام ته اوموسى عليه السلام ته اوعيسى عليه السلام ته |
| اَنْ اَقِيْمُوا الدِّيْنَ وَلَا تَتَفَرَّقُوْا فِيْهِ ۭ كَبُرَ عَلَى الْمُشْرِكِيْنَ مَا |
| چه كلک شئ په دين اسلام(توحيد) اوجدا جدا مه كيږئ په دې دين كښ، گران دې په مشركانوباندې هغه دين(توحيد) |
| تَدْعُوْهُمْ اِلَيْهِ ۭ اَللّٰهُ يَجْتَبِيْٓ اِلَيْهِ مَنْ يَّشَاۗءُ وَيَهْدِيْٓ اِلَيْهِ مَنْ يُّنِيْبُ ⑬ |
| چه تاسوئى ورته راغواړئ، الله جل جلاله راكاږي خان ته هغه خوک چه ئى اوغواړي اوراسوى خان ته هغه خوک چه رجوع كوى |

﴿شَرَعَ لَكُمْ مِّنَ الدِّيْنِ﴾ دا اعاده ده دَ دعوې اودَهغې تفصيل دې، چه دتماموانبياؤو دين يو دې چه دا امر ورته شوې وؤ چې دين قائم كړئ، اوپه توحيدباندې متفق شئ، پدې كښ اختلاف مه كوئ، ﴿شَرَعَ﴾ پمعنى دَمقرركولواوبيانولوسره دې، اوپه﴿لَكُمْ﴾كښ خطاب دَنبى اكرم ﷺ أمت ته دې، يعنى الله پاک ستاسودپاره هغه دين مقرركړيدې چه دكوم حكم ئى دې مذكوره اولوالعزم انبياؤته كړې وؤ، ﴿مِّنَ الدِّيْنِ﴾بيان مقدم دې او﴿مَا وَصّٰى بِهٖ نُوْحًا﴾مبين مؤخر دې اى شرع لكم ماوصّى به اى بالدين، اوتخصيص دَدې پنځه ؤانبياؤاوشو، اگرچه هرنبى ته دغه مذكوره حكم شوې وؤ، ځكه چه داپنځه اولوالعزم انبياء دی لکه په سورة احزاب "واذاخذنامن النبيّن ميثاقهم ومنک ومن نوح وابراهيم..."آيت كښ ذكرشوى وؤ، او بله داچه نوح عليه السلام هغه نبى دې چه بُت پرستى اوشرک دَده وخت نه شروع شوې وؤ، اودَابراهيم عليه السلام ذكرئى ځكه اوكړوچه هغه ابوالانبياء دې، اودَموسى عليه السلام اودَعيسى عليه السلام ذكرئى پدې وجه اوكړو چه دَ نزول قرآن په زمانه كښ دَ دې دواړومنونكى يهوداونصارىٰ موجود وؤ «روح» نوهغوئ ته توبيخ دې چه ستاسوانبياؤته خوهم دَتوحيدحكم شوې وؤنوتاسولې شرک كوئ؟

﴿وَالَّذِيْٓ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ﴾ خطاب دې رسول ﷺ ته دی، او دا وحي نبي ﷺ ته دَ دې سورت په ابتدا كښ هم شويده او په نورو سوتونو كښ هم شويده.«روح»

**فائده**: دلته اسلوب ده کلام ماقبل او مابعد نه بدل دي:

(۱) یو داچې ماقبل او مابعد کښې وصیت لفظ راوړلې شوي دي، او دلته لفظ وحي راوړلې شوي دي، یوه نکته په دیکښې دا ده چه د دې مضمون نورو الفاظو سره مطابقت راشی ،لکه دې سورت په ابتدا کښې تیر شو، «کذلک یوحي الیک...»او په سورة النحل کښې دي: «ثم اوحینا الیک ان اتبع...» بلکه دا چې مشرکینو باندې رد کښې تاکید راشې چه نبي کریم ﷺ دالله ﷻ نبی دې او الله ﷻ وحي مطابق توحید طرف ته دعوت ورکوی.

(۲) دویم داچه ماقبل او مابعد کښې اسم موصول "ما" راوړلې شوې دي ،او دلته «الذي» راوړلې شویدې چه اصل الموصولات دې ،نو دیکښې اشاره ده دې طرف ته چه اصل او غوره مذهب الله ﷻ ته اسلام دې اګرچې زمانې اعتبار سره تولو کښې ورستې دې.

(۳) ماقبل کښې صیغه د واحد ،او دلته صیغه د جمع راوړې شوه،دیکښې نبی ﷺ او د اسلام عظمت او شرف ته اشاره ده

﴿أَنْ أَقِيمُوا الدِّينَ﴾ "ان" یامصدریه یا مخففه من المثقله دې،بهر دواړو صورتونو کښې ان سره د «اقیمو» بدل دې د «ما وصی» نه،او دا هم کیدیشي چې "ان" تفسیریه وي پمعنی د "ای" سره، تفسیر کوی د﴿مَا وَصَّىٰ بِهِ﴾ (البحرالمحیط)

د "دین" نه مراد اصول دَدین دی، یعنی توحید، رسالت، بعث بعدالموت وغیره،اوقائم ساتلو مطلب دادې چه دې احکاماتو باندې دوام اوکړئ اوترک کوئ ئې مه، اومه ورکښې څه تبدیلي وتغیر کوئ.

﴿وَلَا تَتَفَرَّقُوا فِيهِ﴾ضمیر دَ "فیه" راجع دې دین ته ای ولاتتفرقوا في الدین(روح) اومراد دَتفریق نه دادې چه په څنو احکاماتو عمل اوکړي او کوم چې د خواهشاتو خلاف وي هغه پریګدي ، او دغه شان څنې کسان خو پرې ایمان راوړي او څنې نه ،او تفرقه بازي جوړه شي.

﴿كَبُرَ عَلَى الْمُشْرِكِينَ﴾ کبر په معنی عظم او اشتد دی،﴿مَا تَدْعُوهُمْ إِلَيْهِ﴾ الیه ها ضمیر "ما" ته راجع دی او "ما" مصداق دین اسلام او د وحي اتباع دعوت دې،یعني مشرکینو ته ستا دعوت ډیر عجیبه لګی او ډیر سخت او ګران ورباندې تیریږی،او د ددې څو وجوهات دي:

(۱) الله ﷻ نبی ﷺ ته رسالت منصب ولی ورکړیدې،بل چاله یې ولي نه ورکوو،لکه سورت الزخرف کښې دي. لولانزل القران علي رجل من القریتین عظیم

(۲)د دوئ خیال وو چه نبي ﷺ ته تیار کتاب میلاویدل ضروري دی،او قران خو وقفه

وقفه سره نازلیږي لکه سورت الاسرا کښې دي لن نؤمن لرقیک حتی تنزل علینا کتابا نقرأه او په سورت الفرقان کښې دی. لولا نزل هذا القران جملة واحدة

(۳) دریم سبب هغه احکامات وو چې هغه د دوئ خودساخته عقائد خلاف وو. لکه توحید شو، دې باره کښې به ئې وئیل: اجعل الالهة الها واحدا قیامت او بعث بعد الموت باره کښې به ئې وې: هل ننبئکم اذا فرقتم کل ممزق انکم لفي خلق جدید بهر حال دا ټول هغه وجوهات وو چې دې وجهې به د دین او وحي دعوت دوئ ته عجیبه لګیدو او دې لارکښې رکاوټونه پیدا کول.

﴿اللَّهُ يَجْتَبِي إِلَيْهِ مَن يَشَاءُ وَيَهْدِي إِلَيْهِ﴾ دیکښې نبي ﷺ ته تسلي ده چه دې هر قسم رکاوټونو باوجود الله ﷻ دې دین متبعین پیدا کوی، او چې چاله ئې خوخه شي دین طرف به ئې راخکي او هدایت به ورله ورکړی. «یجتبي» د اجتباء نه ماخوذ دې. اجتباء دلته بمعنی جلب او جذب یعني راخلو سره دی، اجتباء او هدایت کښې مفسرینو څو فرقونه ذکر کړی دی:

(۱) اجتباء نه مراد غیر ارادي او غیر اختیاري طور باندې ایمان توفیق ورکول دی او هدایت کسبي دې، دې د پاره انابت شرط دې، یعني څنې کسان به ایمان راوړل نه غواړی هغې باوجود به یې الله ﷻ دین طرف ته راولي، او څنې کسان به لګیاوی ایمان ته به لاره همواره وی، نو الله ﷻ به ورله ایمان توفیق ورکړی.

(۲) اجتباء نه مراد تصدیق بالقلب دې او هدایت نه عمل توفیق مراد دې.

(۳) اجتباء نه مراد پیدائشي مسلمان کیدل دی او هدایت نه مراد کفر نه بعد ایمان راوړلو توفیق ورکول دی.

| وَمَا تَفَرَّقُوٓا إِلَّا مِنۢ بَعۡدِ مَا جَآءَهُمُ ٱلۡعِلۡمُ بَغۡيَۢا بَيۡنَهُمۡ |
|---|
| اواختلاف ندې کړې اهلِ کتابو مګر وروسته دهغې نه چه راغلې وؤهغوئ ته علم دوجه دحسدنه په خپل مینځ کښې، |
| وَلَوۡلَا كَلِمَةٞ سَبَقَتۡ مِن رَّبِّكَ إِلَىٰٓ أَجَلٖ مُّسَمّٗى لَّقُضِيَ |
| اوکچرته نه وې خبره چه مخکښې لیکلې شویده درب ستاندتاخیر دعذاب تریوې نیتې مقررې پورې نواُوس به فیصله شوی وه |
| بَيۡنَهُمۡۚ وَإِنَّ ٱلَّذِينَ أُورِثُواْ ٱلۡكِتَٰبَ مِنۢ بَعۡدِهِمۡ لَفِي شَكّٖ |
| په مینځ دَدوئ کښې، اوبیشکه هغه کسان چه په میراث کښې ورکړې شویدې ورته کتاب، وروستودَدوئ خامخاپه شک کښې دی |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مِّنْهُ | مُرِيْبٍ ﴿١٤﴾ | فَلِذٰلِكَ | فَادْعُ ۚ | وَاسْتَقِمْ | كَمَآ | اُمِرْتَ ۚ | |

دَدې قرآن نه ډيرشک کښې نو هم دې طرف ته ، ته بار بار رابله اوقائم شه څنګه چه حکم کړې شويدې تاته،

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلَا | تَتَّبِعْ | اَهْوَآءَهُمْ ۚ | وَقُلْ | اٰمَنْتُ | بِمَآ | اَنْزَلَ | اللّٰهُ |

اومه کوه اتباع دَهغوئ مشرکانو دَخواهشاتو،اووايه چه ايمان راوړی دې ماپه هغې چه نازل کړې وی الله جَلّ جَلَالُهٗ

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مِنْ | كِتٰبٍ ۚ | وَاُمِرْتُ | لِاَعْدِلَ | بَيْنَكُمْ ۚ | اَللّٰهُ | رَبُّنَا | وَرَبُّكُمْ ۚ |

هرکتاب چه وی،اوماته حکم شويدی چه انصاف اوکړم ستاسوپه مينځ کښې،الله رب زمونږدی اورب ستاسودی،

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| لَنَآ | اَعْمَالُنَا | وَلَكُمْ | اَعْمَالُكُمْ ۚ لَا | حُجَّةَ | بَيْنَنَا | |

زمونږدپاره زمونږعملونه دی اوستاسودپاره ستاسوعملونه دی،نشته دی هيڅ جګړه په مينځ زمونږکښې

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَبَيْنَكُمْ ۚ | اَللّٰهُ | يَجْمَعُ | بَيْنَنَا ۚ | وَاِلَيْهِ | الْمَصِيْرُ ﴿١٥﴾ | وَالَّذِيْنَ | يُحَآجُّوْنَ |

اوپه مينځ ستاسوکښې،الله به جمع کوی مونږټول اوصرف هغه ته واپس کيدل دی،اوهغه کسان چه جګړه کوی

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فِي اللّٰهِ | مِنْ بَعْدِ | مَا | اسْتُجِيْبَ | لَهٗ | حُجَّتُهُمْ | دَاحِضَةٌ | عِنْدَ | رَبِّهِمْ | وَعَلَيْهِمْ |

په توحيددَالله کښې روستودَ دينه چه اومنلې شو حکم دَالله،دليل ددوئ باطل دې په نزدرب دَدوئ اوپدوئ باندې

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| غَضَبٌ | وَّلَهُمْ | عَذَابٌ | شَدِيْدٌ ﴿١٦﴾ | اَللّٰهُ | الَّذِيْٓ | اَنْزَلَ | الْكِتٰبَ | بِالْحَقِّ |

غضب دی اودوئ دپاره عذاب سخت دی،الله تعالی هغه ذات دی چه نازل کړې ئی دی کتاب په حقه سره

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَالْمِيْزَانَ ۭ | وَمَا | يُدْرِيْكَ | لَعَلَّ | السَّاعَةَ | قَرِيْبٌ | ﴿١٧﴾ |
| اوميزان | هم | اوخه | خبرئی | ته | چه | کيديشی قيامت نزدی وی |

﴿وَمَا تَفَرَّقُوٓا﴾ دا دَسورت دويمه دعوه ده او د يوې شبه جواب دې چه په ماقبل باندې وارديږی، چه هرکله دَ تمامو انبياؤ دين يووډاوټول په مسئله توحيدباندې متفق وو،نوپه مخکښنی صحيفو اوکتابونوکښې دَ توحيدخلاف مضمون ولې ليکلې شويدې؟ حاصل دَ جواب دا دې چه بيشکه سابقه انبياء ټول په توحيدمتفق وو، ليکن ورستوبعض دنيا پرستو،

باغیانو په کتب سابقو کښې تحریف اوکړو او دخپل طرف نه ئې پکښې دتوحید خلاف عبارتونه درج کړل،نودلته درې اموردی:(۱)اختلاف چا اوکړو؟ **جواب:** باغیانو اوگمراه علماؤ،(۲)کله ئې اوکړو؟ **جواب**﴿مِنۢ بَعۡدِ مَا جَآءَهُمُ ٱلۡعِلۡمُ﴾ بعد دَ علم نه ئې اوکړو یعنی دیده ودانسته،(۳)ولې ئې اوکړو؟**جواب:**﴿بَغۡيَۢا بَيۡنَهُمۡۚ﴾دَضد اودَحسد دَوجه نه ئې اوکړو. **بیا شبه وه** چه پدې باغیانو باندې فوراً عذاب ولې رانه راغې،نو**جواب** اوشو چه﴿وَلَوۡلَا كَلِمَةٞ سَبَقَتۡ مِن رَّبِّكَ﴾چه کچرته ستارب دافیصله نه وه کړی چې دوئ ته به زر عذاب نه ورکوم نوعذاب به وربانذی راغلی وؤ،لیکن دَدوئ دَعذاب دَپاره یو وخت مقرردې چه وخت دَمرگ دې یاقیامت دې.

﴿وَإِنَّ ٱلَّذِينَ أُورِثُواْ ٱلۡكِتَٰبَ﴾یعني دنیا ترست او باغیانو علماء تحریفات ورستونو خلقو ته هم منتقل شو او دوئ هم توحید متعلق په شکوک وشبهاتو کښې پریوتل.«وَإِنَّ ٱلَّذِينَ أُورِثُواْ ٱلۡكِتَٰبَ» نه مراد نبي کریم ﷺ زمانې یهود نصاری دی ،«بَعۡدِهِمۡ» ضمیر سابقه اهل کتابو ته راجع دې

﴿فَلِذَٰلِكَ فَٱدۡعُۖ﴾دلته شپږ اموره په ماقبل شرع لکم من الدین باندی متفرع کیږی، یعني کله چې تاسو له الله ﷻ دین مقرر کړې دې ، او هغې باندې د قائم اوسیدلو حکم ئې درکړې دې او تفرقه بازي نه ئې پکښې منع کړې ئ نو اوس دا دا کارونه اوکړئ ، ذا **اوله تفریع ده** ، یعني هر کله چه ټولو انبیاؤ وته د توحید وحې شوی وه نو ته هم دی طرف ته دری رابله.

«لذلک» کښې لام جاره کښې دوه احتماله دی: (۱) لا م اجلیه دې،دې صورت کښې مطلب به داسې وی :هر کله چه ټولو انبیاؤو ته وحي صرف د توحید شویده اوتفرق د دنیا پرست علماؤو نتیجه ده، نو د دې دجهې نه ته خلق توحیدته رابله.

(۲)لا م صله ده دَ«ادع » شي او«ذلک» ورله مدعو شی ،پدې صورت کښې به معني داسې ده : دی توحید طرف خلق رابله . بهر دوړو صورتونو کښې جار مجرور دپاره متعلق محذوف دې،او هغه "ادع" دې، او دَ«ادع » مذکور دَپاره متعلق (جار مجرور) محذوف دی چه هغه "لذلک" دې ، نو تقدیر عبارت داسې شو : فلذلک ادع فادع لذلک ، یعني باربار توحید طرف خلق رابله ،نو تکرار د معنې راغې بغیر د تکرار د لفظ نه.

﴿وَٱسۡتَقِمۡ كَمَآ أُمِرۡتَۖ﴾دا **دویمه تفریع** ده، کله چه ټولو انبیاؤو ته وحي د توحید شوې ده نو ته پدی باندې داسې مستقیم اوسه څنگه چه ئې تا ته حکم شوې دې، ای واستقم استقامة

مثل الاستقامة التى امرتَ،مراد دَ دي نه ثابت والي، دي په دعوت باندي،يعني تاته چه دکوم دعوت ورکولو حکم شویدي نوپه هغي باندي ثابت اودائم اوسيږه، دا الفاظ په سورة هود (۱۱۲) کښ هم تير شويدی،هلته دَدي په تفسيرکښ دَاستقامت معنی اواهميت باندی حضرت والد محترم رحمه الله تفصيل کړيدي هلته ئی اوګورئ.

﴿وَلَا تَتَّبِعۡ أَهۡوَآءَهُمۡ﴾ دا دريمه تفريع ده، يعني کله چه ټولو انبياؤ ته وحي د صرف توحيد شوي ده ، نو ته د محرف احکاماتو اتباع مه کوه ځکه چه دا خواهشاتو باندی مبني دي اهواء نه محرف احکامات دي، ځکه چې د واقعي احکامات نه دي ، بلکه د دوئ خواهشات دي .

﴿وَقُلۡ ءَامَنتُ بِمَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ﴾دا څلورمه تفريع ده، يعني کله چې ټولو انبياؤو ته وحي صرف د توحيد شويده او دينه برعکس احکامات د دنيا پرست علماؤو تحريفات دي، نو ته اعلان اوکړه چه څه ايمان راوړم د الله تعالىٰ نازل کړي کتابونه باندي ،دا محرف احکامات نشم منلې.

په«من كِتَٰبٍ» کښ "من"دَاستغراق دَپاره دي،يعنی ته دااعلان وکړه چه الله تعالى څومره اسمان کتابونه نازل کړيدی په هغوټولوباندي ځما ايمان دې،مراددايمان نه ايمان دې پدې چه دامنزل من الله دی،هرچه اتباع ده نوهغه منسوخه ده.

﴿وَأُمِرۡتُ لِأَعۡدِلَ بَيۡنَكُمُ﴾ داپنځم امر متفرع دې ،يعني اصل احکامات د وحي دی،دينه برعکس احکامات تحريفات دی،نو لهذا ماته حکم شويدې چه تاسو مينځ کښ عدل اوکړم، او هغه دا چه وحي مطابق احکامات تاسو ته بيان کړم ،توحيد درته بيان کړم ،شرک نه خو منع کړم ،او څومره تنازعات او فيصلې دی هغه دَقران په رڼړا کښ اوکړم ، نه دمحرف احکامات مطابق .

«الله ربنا وربكم »دا شپږم امر متفرع دې ، يعني کله چې توحيد د الله تعالىٰ حق دين دې ، نو زه سر عام د الله تعالىٰ ربوبيت اعلان کوم. چې هغه زمونږه هم رب او کار ساز دې او ستاسو هم رب او کار ساز دې

﴿لَنَآ أَعۡمَٰلُنَا وَلَكُمۡ أَعۡمَٰلُكُمۡ﴾يعنی که حق واضح کيدلو باوجود تاسو مذکوره خبرې نه منئ او د الله تعالىٰ د حکم تعميل نه کوئ ، نو بيا خپل کار کوئ ، مونږ به خپل کار جاري ساتو او تاسو خپل کار جاري ساتئ ، ﴿لَا حُجَّةَ بَيۡنَنَا وَبَيۡنَكُمُ﴾ مراد دَ حجة نه بحث مباحثه ده،مراد دا

دي چه حق واضحه شوي دي ،اوس دي نه ورستو که تاسو ایمان نه راوړئ ، نو عناداً به نه راوړئ ، بحث مباحثه ته ضرورت نشته دي، الله ﷻ به دمحشرپه میدان کښ مونږ ټول جمع کوی نو هغه به فیصله اوکړی

﴿ وَالَّذِينَ يُحَاجُّونَ فِي اللَّهِ ﴾دا د یوې شبهې جواب دې ،شبه دا ده چي دورستنو خلقو ګمراهي سبب هغه تعلیمات او تحریرات دي، چه کومو کښ مخکښني خلقو تحریف او تبدیلي کړیوه ، او د دې دوجهې نه دوئ په شرک کښ مبتلا شوي دي.نو پکار داچه د دوئ دا عذر او حجت اومنلې شی او عذاب ورته ورنکړي شي، الله ﷻ ئې ترینه جواب کوي چه د دوئ دې حجت او عذر الله په نیز هیڅ اعتبار او وزن نشته ،ځکه چه څنګه اهل باطل او محرف احکامات موجود وؤ ، اهل حق هم موجود وؤ ،چې هغوئ توحید او صحیح احکاماتو باندې عمل کولو ،داسې کسان اهل مکه کښ هم وؤاو په اهل کتابو کښ هم وؤ ،خو دوئ اتباع نه کوله بلکه بغض او عناد د وجهې نه دالله ﷻ توحید په باره کښ حجت بازي او مناظرې کولې ،نوالله ﷻ به دوئ ته په دنیا کښ هم عذاب ورکوي او آخرت کښ هم.

﴿مِنۢ بَعۡدِ مَا ٱسۡتُجِيبَ لَهُۥ﴾ای من بعدمااسلم النّاس .له، ضمیر الله تعالي ته راجع دې یعنی لکه څرنګه چه اهل باطل موجود وؤ او دوئ دهغوئ اتباع کوله، نودغه شان اهل حق هم موجود وواوتوحیدئې قبول کړي وو ، او دَ وجه دَ ظهور دَحجت نه الله تعالی ته منقادشوي وو ، نودوئ دَهغوئ اتباع ولی نه کوله کقوله تعالی:اولم یکن آیة ان یعلمه علماءُ بنی اسرائیل (شعراء: ۱۹۷)

«وَالَّذِينَ »اسم موصول مبتدا اول دئ «يُحَاجُّونَ فِي اللَّهِ» صله ده .«مِنۢ بَعۡدِ مَا ٱسۡتُجِيبَ لَهُۥ » ورسره متعلق دی« حُجَّتُهُمۡ » مبتدا ثاني ،«دَاحِضَةٌ » ای زالةٌ باطلةٌ، ورله خبر دی دا پوره جمله خبر ده د مبتدا اول دپاره ،«وَعَلَيۡهِمۡ غَضَبٞ » دیکښې اشاره دینوې عذاب ته ،«وَعَلَيۡهِمۡ » خبر مقدم او«غَضَبٞ » مبتدا مؤخر دی ،او جمله عطف ده په« حُجَّتُهُمۡ دَاحِضَةٌ » باندی ،«وَلَهُمۡ عَذَابٞ شَدِيدٌ» پدیکښې اشاره ده اخروي عذاب ته ،او داهم عطف ده په حُجَّتُهُمۡ دَاحِضَةٌ باندي

﴿ ٱللَّهُ ٱلَّذِيٓ أَنزَلَ ٱلۡكِتَٰبَ ﴾ دا ده عذر نه قبلیدلو دویمه وجه بیانیږی. دَالکتاب نه مرادیاجنس کتاب دې یاورنه قرآن مراددې،یعنی الله تعالی داسې عظیم الشان کتاب نازل کړیدې چه په هغې کښ ئې مسئله دَتوحیداوحق ئې واضح اومدلل بیان کړیدې، نودوئ هغې طرف ته ولی توجه نه کوی چه په هغې پوهه شی اوتوحید اومنی. ﴿بِٱلۡحَقِّ ﴾یعنی متلبس دی په حق اولری دې

دَ باطل نه ، اودې کتاب چه کومه مسئله بیان کړیده نوهغه حق ده، ﴿وَالْمِیزَانَ﴾میزان نه یاآله معروفه مراد ده، اونسبت دَانزال ورته حقیقة دی ، یعنی الله ﷻ میزان (تله،ترازو)پیدا کړیده چه په هغې سره دَ مادی اشیاؤوزن(ثقل اوخفت)معلومیږی،نوچه دَمادی اشیاؤ دَپاره ئې میزان پیدا کړې دې ، نوچه کومه اصل مسئله ده چه توحیداودینِ حق دې نودهغې دَپاره ئې خو ئې خامخا میزان پیدا کړیدی چه هغه قرآن دې،نوچه میزان(تله)موجوددې اوبیاهم وربانديې دوئ خپل عقائداواعمال نه تلی، اوپه ګمراه خلقوپسی روان دی، نودوئ معذور نه دی، اوعذاب به ورته ورکولی کیږی. یا میزان نه مراد شرع ده چې حقوق پری وزن کیږی اوخلقومابین کښې تسویه کیږی، نونسبت دَانزال ورته مجازاً دې.

﴿وَمَا يُدْرِيكَ لَعَلَّ السَّاعَةَ قَرِيبٌ﴾داتخویف اخروی دې،چه قیامت به ناګهانه راځي اوبیابه چاته مهلت نه ورکولی کیږی،نودَقیامت راتلونه مخکښې دَ خپلو اعمالو اواحوالو اصلاح اوکړئ،د قران او دَ دین په تله ئې اوتلې.

﴿قَرِيبٌ﴾ قریبةٌ نی اونه وې څکه(۱) "الساعة" په تاویل د "البعث" کښې دې ، او یا "اتیان الساعة" کښې دې. (۲) بې تکلفه قول د فراء رحمه الله دې ، دې وائي چې قریب او بعید چې کله نسب کښې استعمالیږي، نو په دې صورت کښې ئې موصوف سره تذکیر او تانیث کښې موافقت ضروري وي، خو کله چې ظرف زمان یا مکان په طور استعمال شې نو بیا ئې مطابقت ضروري نه دې ، لکه: وماهي من الظالمین ببعید، و ما یدریک لعل الساعه تکون قریباً ،انّ رحمة الله قریبٌ من المحسنین.

يَسْتَعْجِلُ بِهَا الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِهَا ۚ وَالَّذِينَ آمَنُوا مُشْفِقُونَ

زرغواړی قیامت هغه کسان چه ایمان نه راوړی وربانديې،اوهغه کسان چه ایمان ئې راوړیدی نوهغوئ یریدونکې دی

مِنْهَا ۙ وَيَعْلَمُونَ أَنَّهَا الْحَقُّ ۗ أَلَا إِنَّ الَّذِينَ يُمَارُونَ فِي السَّاعَةِ لَفِي

دَقیامت نه،اوپوهیږی چه قیامت حق دې،خبردار! بیشکه هغه کسان چه جګړه کوی په باره دَقیامت کښې خامخاپه

ضَلَالٍ بَعِيدٍ ۝ اللَّهُ لَطِيفٌ بِعِبَادِهِ يَرْزُقُ مَنْ يَشَاءُ ۖ وَهُوَ الْقَوِيُّ الْعَزِيزُ ۝

ګمراهئ لرې کښې دی،الله مهربانه دی په خپلوبندګانو،رزق ورکوی چاته ئې چه خوښه شی،اوهغه طاقت والادی غالب دی

﴿ يَسْتَعْجِلُ بِهَا الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ ﴾ زجر دي منكرينو دَقيامت ته چه كله دوئ ته دَقيامت باره كنبں اوويلې شي، نو دوئ بطورِ استهزاء اوتكذيب وائي چه داقيامت به كله راځي زردي راشي، ﴿ أَلَا إِنَّ الَّذِينَ يُمَارُونَ ﴾ يمارون دَ "مُماراة" نه مأخوذ دي، مخاصمه او جګړې ته وائي، يا دَ "مرية" نه ماخوذ دي، او مريه شک ته وائي يعنی كوم كسان چه دَقيامت په واقع كيدوكنبں شک كوي، نو دوئ دَسمې لارې نه ډيرلرې پراته دي، په نقصان كنبں دي، اوچه كوم كسان وربانديې يقين كوي نوپه هدايت اوپه فلاح كنبں دي.

﴿اَللّٰهُ لَطِيفٌ بِعِبَادِهٖ﴾ دَدې ځائ نه دَسورة اخرپورې پدې دعوۍ باندې تنويرات ذكر كيږي.

دا دَ اولې دعوې سره متعلق دي اوپه هغې تنويردي،چه الله تعالى په خپلوبندګانوباندې ډيرمهربان دي،دَمصلحت موافق چاته رزق فراخ وركوي اوچاته كم،په هرڅيزباندې قادراوغالب دي سره دَتكذيبه اوانكاره دَهيڅ چاروزي نه بنده وي بلكه په نهايته نرمۍ او لطيف تدبيرسره دَبندګانو تربيت كوي،نولهذاصرف دَهغه عبادت كوئ اوصرف دَهغه نه خپل حاجتونه غواړئ.

| |
|---|
| مَنْ كَانَ يُرِيدُ حَرْثَ الْاٰخِرَةِ نَزِدْ لَهٗ فِيْ حَرْثِهٖ ۚ وَمَنْ كَانَ يُرِيدُ حَرْثَ الدُّنْيَا |
| څوک چه غواړي فصل دَآخرت مونږ به اضافه اوكړوده لره په فصل دَده كنبں،اوڅوک چه غواړي فصل دَدنيا |
| نُؤْتِهٖ مِنْهَا وَمَا لَهٗ فِي الْاٰخِرَةِ مِنْ نَّصِيبٍ ۝٢٠ اَمْ لَهُمْ شُرَكٰٓؤُا |
| نو ور به كړومونږده ته ددُنيانه (څه حصه) اونه به وي ده لره په آخرت كنبں هيڅ حصه،آياشته دي،دوئ لره شريكان |
| شَرَعُوْا لَهُمْ مِّنَ الدِّيْنِ مَا لَمْ يَأْذَنْ بِهِ اللّٰهُ ۭ وَلَوْلَا كَلِمَةُ |
| چه مقرركړې ئې وي دوئ لره دَدين نه هغه چه ندې وركړې اجازت دَهغې الله اوكه نه وې خبره |
| الْفَصْلِ لَقُضِيَ بَيْنَهُمْ ۭ وَاِنَّ الظّٰلِمِيْنَ لَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ۝٢١ |
| دَنبصلې كولو(دَتاخيرد عذاب)نو اوس به فيصله شوې وى په مينځ دَدوئ كنبں اوبيشكه ظالمان دوئ دپاره عذاب دردناک دى. |

﴿ مَنْ كَانَ يُرِيدُ ﴾ پديكنبں ترغيب دي دآخرت اوتزهيدفی الدنيادی،چه قابل دَطلب صرف آخرت دي. نه دنياچه حسبِ تمنّانه نصيب كيږي،اوداصقصدګرځول ذريعه ده د آخرت دَ

حرمان، ﴿حَرْثَ الْاٰخِرَةِ﴾ حرث په لغت کښې کسب کولو ته وائی. يُقال يحرث لاهله ويحترث ای : يكتسبُ، او اصل معنی ئی القاء البذرفی الارض. ده، يعنی په زمکه کښې تخم ريزی کول. دلته دَ دې اطلاق بطورِاستعاره دَاعمالوپه ثمراتو اواجرونوباندې شويدې. خکه چه حديث کښې راغی "الدنيا مزرعة الاخرة" دنيا ده آخرت پټې دې، دې کښې د اعمالو څنګه تخم اوکرلو، آخرت کښې به درته د هغې پيداوار ميلاويږي. يعنی څوک چه په خپلو عملونو اوکږکسب سره دَآخرت ثواب اراده کوی، اودآخرت دَجوړيدوفکرورسره وی، نو ﴿نَزِدْ لَهٗ فِیْ حَرْثِهٖ﴾ يعنی الله تعالٰی به ورته نيکی مضاعف کوی، دَيوې نيکی اجربه ورته دَلس ګنانه تر اوؤ سوو (۷۰۰) پورې بلکه ددی نه هم زيات ورکوی. کقوله تعالی: والله يضاعف لمن يشآء.

﴿وَمَنْ كَانَ يُرِيْدُ حَرْثَ الدُّنْيَا﴾ يعنی دَچاچه مطمح نظراوهروخت ئی فکردَ دنيا وی. او دَ آخرت دَ پاره هيڅ تدبيراوسعی نه کوی، مرادورنه په غفلت اوپه انکاردآخرت سره دنياحاصلول دی. چه ظاهره ده چه دَداسې کس نه ايمان مفقود وی ، او دَ آخرت کاميابی او برخه خو دَ مؤمنانو دَ پاره ده نوځکه داسې کس دَپاره به هيڅ حصه نه وی، په خلاف دَاهلِ ايمان نه چه کسب د معاش په حلال طورسره کوی، اودَخپل ځان اواهلِ عيال دَپرورش دَپاره کوی چه داضروری دې بقدر ضرورت ﴿نُؤْتِهٖ مِنْهَا﴾ من دَتبعيض دَپاره دې، نومعنی داده چه ټول مطلوب به ورته نه ورکوؤ، بلکه څومره چه زمونږخوخه وی هغه به ورته ورکوؤ، قتاده رحمه الله وائی چه دَ ﴿نُؤْتِهٖ مِنْهَا﴾ معنی، نقدّر له ماقُسِم له ده، يعنی دنيابه ورته بقدرقسمت اومشيت ملاويږی نه بقدر طلب، کقوله تعالی: من كان يريدالعاجلة عجّلناله فيهامانشآء(اسرا:۱۸). ﴿وَمَا لَهٗ فِی الْاٰخِرَةِ مِنْ نَّصِيْبٍ﴾ په آخرت کښې به ئی هيڅ حصه نه وی.

﴿اَمْ لَهُمْ شُرَكٰٓؤُا شَرَعُوْا لَهُمْ مِّنَ الدِّيْنِ﴾ دادَويمې دعوې سره متعلق دې، چه حاصل ئی دادې چه شريعتِ حقه صرف هغه دې چه الله تعالی ئی ټولوانبياؤته وحی کړيده، دَدې خلاف ئی هيڅ چاته دَخودساخته شريعت ايجاداواختراع اجازت نه دې ورکړې، په ﴿اَمْ لَهُمْ شُرَكٰٓؤُا﴾ کښې "ام" استفهاميه دې اواستفهام انکاری دې، نومطلب دادی چه دَالله ﷻ نه ماسوا داسې هيڅ څوک نشته دې چه دَمخلوق دَپاره دين مقرراومشروع کړی(البته دَتشريع اجازت شته دې)، يا "ام" منقطعه دې پمعنی دَ "بل" سره اواضراب دی دَماقبل قول، شرع لكم من الدين الخ، نه يعنی دَ

دوئ شرکاچې شياطين دي دوئ لپاره ئې دَالله تعالى دَدين خلاف بل دين مقررکړيدى چه الله تعالى ئې اجازت نه ورکوى ﴿مَا لَمْ يَأْذَنْ بِهِ اللَّهُ﴾لکه شرک اوانکاردبعث نه وغيره،حضرت تهانوى رحمه الله فرمائي چه پدې آيت کښې لکه څرنګه چه دَشرک ابطال دې، نودغه رنګه دَ بدعاتو رَد هم دې، ځکه چه تمام بدعات خودساخته وى ، چه ثبوت ئې نه په قرآن نه په حديث کښې وى، او نه په عمل دَصحابه رضي الله عنهم کښې وى ، اونه په قياس دَ مجتهدينوفقهاؤوکښې وى(چه دوئ تشريح کوى اوتشريع نه کوى) مثلاً دَ مرګ رسمونه لکه دريمه،څلويښتمه،عروسونه وغيره کول ، ټول خود ساخته دى اوداهم دَشرک په شان دَدين خلاف يوبغاوت دې.

﴿وَلَوْلَا كَلِمَةُ الْفَصْلِ﴾دَ كلمة الفصل نه مرادحکم دَفيصلې دې يعنى الله تعالى دافيصله کړيده چه اصل عذاب به ورته په قيامت کښې ميلاويږى،ورنه﴿لَقُضِيَ بَيْنَهُمْ﴾نودنياکښې به ئې دَ مؤمنانو او کافرانو مينځ کښې فيصله کړى وه په ثواب اوعذاب سره﴿وَإِنَّ الظَّالِمِينَ﴾ مراد ورنه مشرکان دى.

| |
|---|
| تَرَى الظَّٰلِمِينَ مُشْفِقِينَ مِمَّا كَسَبُوا وَهُوَ وَاقِعٌۢ بِهِمْ |
| ته به وينې ظالمان يريږى به دَوبال دَهغې عملونو نه چه دوئ کړيدى،اودهغه (عذاب) به واقع کيدونکې وى پدوئ، |
| وَالَّذِينَ ءَامَنُوا وَعَمِلُوا الصَّٰلِحَٰتِ فِي رَوْضَاتِ الْجَنَّاتِ لَهُمْ |
| اوهغه کسان چه ايمان ئې راوړې دې اونيک عملونه ئې کړيدى په باغيچودَجنتونوکښې به وى،وى به دوئ لره |
| مَّا يَشَاءُونَ عِندَ رَبِّهِمْ ذَٰلِكَ هُوَ الْفَضْلُ الْكَبِيرُ ﴿٢٢﴾ ذَٰلِكَ الَّذِي يُبَشِّرُ اللَّهُ |
| هغه څه چه دوئ غواړې په نزد دَ رب دَ دوئ،دافضل دې لوئ،داثوب هغه دې چه زيرې ورکوى الله تعالى |
| عِبَادَهُ الَّذِينَ ءَامَنُوا وَعَمِلُوا الصَّٰلِحَٰتِ قُل لَّا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ أَجْرًا |
| بندګانوخپلوته هغه بندګان چه ايمان ئې راوړيدې اونيک عملونه ئې کړيدى ووايه ته نه غوارم څه ستاسونه پدې تبليغ مزدورى |
| إِلَّا الْمَوَدَّةَ فِي الْقُرْبَىٰ وَمَن يَقْتَرِفْ حَسَنَةً نَّزِدْ لَهُ فِيهَا حُسْنًا |
| مګرداچه تاسودوستى اوکړئ ماسره دَوجه دَخپلولئ نه، اوڅوک چه اوکړى نيکى نوزياتوومونږهغه لره په هغې نيکئ کښې حُسن، |

| إِنَّ | اللّٰهَ | غَفُوۡرٌ | شَكُوۡرٌ ۝ |
| --- | --- | --- | --- |
| بيشکه | الله | بخونکي دی | قدردان دي. |

﴿تَرَى الظّٰلِمِيۡنَ مُشۡفِقِيۡنَ﴾ دا تخويف اخروی دي مشرکانو ته . چي دنياکښ دوئ کوم سيئات کسب کړيدی دَقيامت په ورځ به دَهغی دَعذاب نه خوف کونکی وی.﴿وَالَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ﴾ داايمان او اعمال صالحه ؤوالاته بشارت اخروي دی،چی دوئ به په ډيرښه او پاکو باغونو دَجنت کښ وي او هرقسم راحتونه به ورته ميَسر وي،او دا په حقيقت کښ ډيرلوئ فضل دی.

﴿قُلۡ لَّاۤ اَسۡـَٔلُكُمۡ عَلَيۡهِ اَجۡرًا﴾ دا د دعوت منلو ته ترغيب دي،يعني ای پيغمبره ته ورته اوايه چه څما خبره اومنئ، او آخرت زندګي له په دنيا باندی ترجيح ورکړئ،ځکه چه څما دعوت بې غرضه او بې لوټه دي ،څه ذاتي مفادات پکښ نشته ،نو دااندازِ دَ ترغيب ډير مؤثر دي ،ځکه کوم دعوت او نصيحت باندي اجرت نه اخيستې کيږی،هغې اثر زيات وي .

﴿اِلَّا الۡمَوَدَّةَ فِى الۡقُرۡبٰى﴾ دَدي جملي مختلف معني بيان شويدي:

(۱)المودة في القربى معنى دا ده چه څه خپل دعوت باندې ستاسو ته اجرت نه طلب کوم، خو دومره خبره ده چه څما کومه خپلولي او رشته داري ده ستاسو سره،دهغې لګ خيال اوساتئ، او دهغې په بنياد څل لګ رحمدلي او محبت څماسره په زړونو کښ پيدا کړئ او څما په لار کښ رکاوټ مه جوړه وئ. دې صورت کښ استثنا منقطع ده ،((اَلۡمَوَدَّةَ)) په معنی (( تودّوني )) سره دي،(( فِى )) سببيه دي، ((اَلۡقُرۡبٰى))په معنی قرابت دي ،تقدير به داسي شي:إلا أن تودوني لأجل قرابتي منكم، يعني سوائ دينه چه خپلولئ وجهي نه څما سره محبت اوساتئ.

د آيت دا تفسير دحضرت ابن عباس ﷺنه په بخاري شريف کښې منقول دې چې دوئ نه چا د دي جملي " إلا المودة في القربى "تفسير تپوس اوکړو، خواه کښ ورسره سيعد بن جبير ناست وؤ ،هغه سائل ته جواب ورکړه چه دينه آل محمد قرابت مراد دي ، نوابن عباس ورته او فرمائيل/: چه تا جواب ورکولو کښ تيزي اوکړه، ددې تفسير دا دې چه نبيﷺ د قريش هر خاندان کښ رشته داري وه،نو دې وجه نه يې ورته او فرمائيل چه څما او ستاسو مابين کښ ۲کومه رشته ده ،د هغې لحاظ اوساتئ.

(۲) بعض مفسرینو د کلبی رحمه الله نه دابن عباس رضی الله عنه قول ددې آیت په باره کښې داسې نقل کړيدې، چه مدینې ته دراتلو نه بعد انصارو حضور ﷺ دپاره څه مال او اسباب د امداد په طور د ورکولو اراده اوکړه، او حضور ﷺ ته ئې پیش کړو، نو حضور ﷺ قبول نه کړو او دا آیت نازل شو چې: قل لااسئلکم... ، چه څه ستاسو نه هیڅ نه غواړم مگر څما اقاربو سره محبت ساتئ (چه فی الحقیقه دا اجر نه دې) دې صورت کښې القربی پمعنی د اقارب سره دې (تفسیر کبیر) لیکن دا روایت ضعیف دې او بل دا چه آیت مکی دې.

(۳) بعض حضرات دا مطلب بیان کړيدې چه څه په تبلیغ باندې هیڅ اجر نه غواړم بلکه څما مطالبه دا ده چه تاسو دین قبول کړئ او د اطاعت او عمل صالح سره قرب الهی حاصل کړئ، دې صورت القربی پمعنی ده تقرب سره دې ، اي: الاّ ان تودوا الی الله فیمایقربکم الیه من التوددِ الیه بالعمل الصالح (کبیر وغیره). بهر حال درې واړو صورتونو کښې مستثنی منقطع ده .

**تنبیه**: داهل بیتو او د اقاربو دروحی فداه ﷺ سره محبت او تعظیم دامت په هرهرفرد باندې لازم دې، او ددوئ سره محبت کول درحقیقت دحضور ﷺ سره محبت کول دی، ددې وجه نه دا مسئله په اُمت کښې تردې وخته پورې اتفاقي مسئله ده، او چا هم پکښې اختلاف نه دې کړې، لیکن دې آیت سره داهل بیتو سره محبت کول د رسالت اجر (مزدوری) گرځول دا په قرآن مجید کښې تحریف کول او د انبیاؤ په نبوت او ارتفاع شان باندې لویه حمله ده، لکه دشیعه گانو عقیده ده چه محبت اهل بیت اجرت رسالت دی (نعوذبالله) او دآیت مطلب داسې بیانوی چه، الله تعالی خپل نبی ﷺ ته حکم کوی چه ته خلقوته اووایه، چه څه پخپل تعلیم او تبلیغ نور څه اجرت نه غواړم، بس صرف دا چه څما قرابت والاسره محبت کوئ او څما قرابت والا څلور دی: (۱) فاطمه (۲) علی (۳) حسن (۴) حسین. (رضي الله عنهم)

داسې تفسیرکول درواياتِ صحيحه نه خلاف او د حضور ﷺ دشانِ رفیع نه خلاف دی، لکه تفصیل سره ئې ذکر اوشو، والله اعلم وهو یهدي الی سواء السبیل.

﴿وَمَن يَقْتَرِفْ حَسَنَةً﴾ الاقتراف اکتساب ته وائی، ای ومن یکتسب، پدیکښې تاکید دې په مودة فی القربی، کښې یعنی کم ازکم قرابت مطلوب دې، او که څوک ددې نه زیاته نیکی او خیگړه کوی نو الله ﷻ به ورته په هغې نیکئ کښې اضافه کوی.

﴿نَّزِدْ لَهُ فِيهَا حُسْنًا﴾ یعنی دنیکئ په اجراوثواب کښې اضافه اوکړو، ځکه پدې سره دنیکئ

حُسن زیاتیږي، یا مطلب دادې چه مزید دَنیکو کارونو توفیق به ورته ورکړو.

﴿اِنَّ اللّٰهَ غَفُوۡرٌ﴾ بخښونکې دې ذنوب دَعبادو لره، ﴿شَکُوۡرٌ﴾ قدردان دې چه دَلګ عمل په اجرکښې اضافه کوي.

| |
|---|
| اَمۡ یَقُوۡلُوۡنَ افۡتَرٰی عَلَی اللّٰهِ کَذِبًا ۚ فَاِنۡ یَّشَاِ اللّٰهُ یَخۡتِمۡ عَلٰی قَلۡبِکَ ؕ |
| آیا وائي دوئ چه دهٔ (محمد ﷺ) جوړ کړیدی په الله باندې دروغ، نو که خوښه شي دَالله تعالی نو مُهر به اولګوی په زړه ستا، |
| وَ یَمۡحُ اللّٰهُ الۡبَاطِلَ وَ یُحِقُّ الۡحَقَّ بِکَلِمٰتِهٖ ؕ اِنَّهٗ عَلِیۡمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوۡرِ ﴿۲۴﴾ |
| او ورانوی الله باطل (دروغ) او ثابتوی حق (رشتیا) په خپلو وعدو سره، بیشکه الله عالم دی په خبرو دَسینو باندې، |
| وَ هُوَ الَّذِیۡ یَقۡبَلُ التَّوۡبَةَ عَنۡ عِبَادِهٖ وَ یَعۡفُوۡا عَنِ السَّیِّاٰتِ وَ یَعۡلَمُ |
| او الله تعالی هغه ذات دی چه قبلوی توبه دَبندګانو خپلو نه او معافی کوی دګناهونو نه او عالم دې |
| مَا تَفۡعَلُوۡنَ ﴿۲۵﴾ وَ یَسۡتَجِیۡبُ الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ |
| په هغه څه چه تاسوئی کوئ، او دعاګانې قبلوی دَهغه کسانو چه ایمان ئی راوړې دې او عملونه کوی نیک |
| وَ یَزِیۡدُهُمۡ مِّنۡ فَضۡلِهٖ ؕ وَ الۡکٰفِرُوۡنَ لَهُمۡ عَذَابٌ شَدِیۡدٌ ﴿۲۶﴾ |
| او زیات ورکوی دوئ ته دَخپل فضل نه، او کافران دَهغوئ دَپاره عذاب سخت دې، |

﴿اَمۡ یَقُوۡلُوۡنَ افۡتَرٰی عَلَی اللّٰهِ کَذِبًا﴾ دا شکوه ده چه مشرکانو به عناداً وئیل چه حضور ﷺ په الله ﷻ باندې (نعوذ بالله) افتریٰ کوی او دا قرآن دَځان نه جوړه وی ﴿فَاِنۡ یَّشَاِ اللّٰهُ﴾ جواب دَشکوې دې، دا شرط دې او ﴿یَخۡتِمۡ عَلٰی قَلۡبِکَ﴾ ئی جزا ده، نو په دیکښې تسلي ده حضور ﷺ ته او تصدیق درسالت دې، حاصل ئی دادې چه دا قرآن دَالله تعالی دَطرفه دې، کچرته دا حضور ﷺ دَځان نه جوړ کړې وې او په الله تعالی باندې ئی افتراء کړې وې، نو الله تعالی به ئی په زړه مهرلګولی وې نو په زړه کښې به ئی مضمون دَقرآن نه وې راغلې او نه به ئی په ژبه الفاظ دَقرآن راغلې وې، کقوله تعالی "ولو تقوّل علینا بعض الاقاویل لاخذنا منه بالیمین" قتادة رحمه الله دَ﴿یَخۡتِمۡ عَلٰی قَلۡبِکَ﴾ معنی: یطبع علی قلبک فینسیک القرآن، سره کوی (شربینی) یعنی دا قرآن به درنه هیر کړی، کقوله تعالی: ولئن

شئنا لنذهبنّ بالّذی اوحیناالیک(اسراء).

﴿وَيَمْحُ اللَّهُ الْبَاطِلَ﴾ داجمله مستانفه ده، پدې کښې تاکیددې دَمفهوم سابق، چه حضورﷺ افتراء نه ده کړې، ځکه چه عادت دَالله تعالی داسې جاری دې چه ابطال دَباطل او احقاق دَحق کوې نو کچرته داقرآن باطل او افتراء وې، نودابه ئی هم محوکړې وؤ.

"یمح"مرفوع دې او مجزوم نه دې چه عطف شی په﴿ يَخْتِمْ عَلَىٰ قَلْبِكَ﴾باندې، چونکه "واو" دَ التقاء ساکنینو په وجه لفظاً ساقط شویدې، نوتبعاًپه کتابت کښې هم ساقط شویدې(روح المعانی) کما فی قوله تعالی: ویدعُ الانسانُ بالشّرّ (اسراء: ۱۱) سندعُ الزّبانیة(العلق:۱۸)

حضرت شاه صاحبﷺ دَ﴿وَيَمْحُ اللَّهُ الْبَاطِلَ﴾عطف په﴿ يَخْتِمْ عَلَىٰ قَلْبِكَ﴾باندې کوی، چنانچه هغوئ آیت تفسیر داسی کوې: الله تعالی ولی پخپل ځان باندې افتراء پریدی«﴿فَإِن يَشَإِ اللَّهُ يَخْتِمْ عَلَىٰ قَلْبِكَ﴾» که اوغواړی په زړه به ئی مهر اولګوی نومضمون به پکښې نه راځي«﴿وَيَمْحُ اللَّهُ الْبَاطِلَ﴾»او که اوغواړی نوکفربه محوا وختم کړی بغیردَارسال دَرسول نه،لیکن الله تعالی په خپلو کلماتوسره دین ثابتوی، نوپدې وجه نبیﷺ باندې وحی رالیږی﴿إِنَّهُ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ﴾چه په سینو کښې څه دی په هغې عالم دې نو په حق اوباطل باندې خوپطریقٍ اولی عالم دې.

﴿وَهُوَ الَّذِي يَقْبَلُ التَّوْبَةَ﴾داآیت دَاولې دعوې سره متعلق دې، چه دصرف دَالله تعالی عبادت ځکه کوئ چه هغه داسې ذات دې چی دبندګانوتوبه قبوله وی اګرچه دَشرک نه وی، اودَبندګانو په هرحالت باندې عالم دې، نودَعبادت لائق هم صرف هغه دې.

"توبه" دیته وائی چه دَصادرشوی معصیت نه رجوع اوکړی اودَندامت اظهاراوکړی او دَ آئنده دَپاره دَنه کولوعزم وی، کچرته دامعصیت دَحقوق العبادسره متعلق وی، نوکه صاحب حق ژوندې وی نوورته دې واپس کړی، یا دې ورباندې معاف کړی، اوکه ژوندې نه وی نو ورثاء ته ئی حواله کړی، اوکه ورثاء نه وی موجود نوبیت المال ته دې ورکړی، کچرته افسر امانت دار او پرهیزګار وی، ورنه هغه مال دی دَصاحب حق طرف نه صدقه کړی او دُعا او استغفار دې ورته کوی(روح)نودَدې نه معلومه شوه چه محض،توبه،توبه وئیل اومعصیت نه پرېنخودل توبه نه ده بلکه مذاق اواستهزاء ده.

تفاسیرو یوه قصه ذکر کړې ده چه یواعرابی مسجدنبویﷺ ته راغې اوپه جلدئ جلدئ سره ئی، استغفرالله، استغفرالله، اووئیل نوحضرت علیﷺ رااوغوښتلواوورته ئی اووئیل چه

دَاستغفاردا طريقه نه ده، دا خودَ منافقانو توبه ده،نوهغه ورته عرض اوکړوچه ماته صحيح طريقه اوښايه، نوحضرت علي ﷺ اوفرمايل:چه دَريښتنى توبي دَپاره شپږ (۲) شرطونه دى: يو اعرابى زر زروئيل: اللّٰهمّ انّى استغفرک واتوبُ اليکَ،نوحضرت علي ﷺورته اوفرمائيل: داسى زر زرتوبه اوباسل دَ کاذبينو توبه ده،هغه ورته عرض اوکړو ،صحيح توبه څنګه وي،ده ورته اوفرمائيل:چه په هغى کښ شپږ (۲) خبرې وى:

(۱) تيرشوى ګناهونو باندى ندامت

(۲) چه کوم فرائض واجبات درنه پاتى وى دَهغى اعاده

(۳) دَ بل چامال واپس کول

(۴) معاف کول دَتکليف

(۵) عزم کول په عدم عود باندى

(۲) او دا چه ته به ويلى(کمزورى) کړې نفس خپل په طاعة دَالله ﷻ کښ ، لکه چه غټ کړې دې دې په معصيت کښ(کشاف)،

اودَيو بزرګ نه چاتپوس اوکړوچه دَتوبې دَقبليدو څه علامت دې نوهغه اوفرمايل چه کله تاته ګناه رايادشى نوحلاوت نه وى بلکه ندامت وى(شربينى).

﴿وَيَعۡفُواْ عَنِ ٱلسَّيِّـَٔاتِ﴾ پديکښ اشاره ده ديته چه بعضِ ګناهونه الله تعالى بغيردَتوبې نه هم معاف کوى يعنى کله په توبې سره ګناه معاف کړى اوکله بغيردَتوبى نه محض په خپل رحمت سره، ﴿وَيَعۡلَمُ مَا تَفۡعَلُونَ﴾ يعنى په هرخيراوشرباندې عالم دې، نوکله جزاء ورکړى اوکله دَګناه نه معافى اوکړى.

﴿وَيَسۡتَجِيبُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ﴾ دابشارت دنيويه او اخرويه دې. "استجاب" او "اجاب" يوه معنى ده، اوپه کلام کښ مضاف مقدردې،اى ويجيبُ الله دُعاءَهم اذا دعوا،يعنى الله تعالى دَمؤمنانو دعاګانى قبوله وى کله چى ورنه دعا غواړى،اويا "عبادَتهم" مقدردې،او "يستجيب" په معنى دَ "يُثيب" سره دې، يعنى الله تعالى مؤمنانوته دَهغوئ په عبادت باندې ثواب ورکوى، ﴿وَيَزِيدُهُم مِّن فَضۡلِهِۦ﴾ يعنى دَمطلوب نه ورته زيات ورکوى،اودَعبادت دَاجراستحقاق نه زيات اجرورکوى، ﴿وَٱلۡكَٰفِرُونَ لَهُمۡ عَذَابٞ شَدِيدٞ﴾ کافرانوته تخويف اخروى دې په بدل دَمؤمنانو کښ دَاجابت اوتفضل نه.

| |
|---|
| وَلَوْ بَسَطَ اللّٰهُ الرِّزْقَ لِعِبَادِهٖ لَبَغَوْا فِي الْاَرْضِ وَلٰكِنْ |
| اوکچرته فراخه کړي وي الله رزق بندګانوخپلودپاره نوخامخابه سرکشي کړي وی دوئ په زمکه کښ،ليکن |
| يُّنَزِّلُ بِقَدَرٍ مَّا يَشَآءُ ؕ اِنَّهٗ بِعِبَادِهٖ خَبِيْرٌۢ بَصِيْرٌ ۞ وَهُوَ الَّذِيْ |
| نازلوي الله رزق  په هغه اندازه چه ئې خوښه شي،بيشکه هغه پخپلوبندګانوخبرداردې ليدونکې دې.اوالله هغه ذات دې |
| يُنَزِّلُ الْغَيْثَ مِنْۢ بَعْدِ مَا قَنَطُوْا وَيَنْشُرُ رَحْمَتَهٗ ؕ وَهُوَ الْوَلِيُّ الْحَمِيْدُ ۞ |
| چه نازلوي باران ورستودې نه چه نااُميده شي.دوئ اوخوروي رحمت خپل.اوالله کارسازدی.ستائيلې شويدې |

﴿وَلَوْ بَسَطَ اللّٰهُ الرِّزْقَ لِعِبَادِهٖ﴾ دادَسوال مقدرجواب دې چه په ماقبل باندې وارددې،چه هرکله چه الله ﷻ دَمؤمنانودعاګانې قبوله وی نومشاهده ده چه ډيرکرته دَرزق دَفراخی اودنياوی مقصددَپاره يومؤمن دعاکوی ليکن نه قبليږي؟ حاصل دَجواب دادې چه کله کله فراخی دَرزق اوخواهش پوره کيدل دَبغاوت اودَنافرمانئ سبب اوګرځی،نوکچرته په يووخت کښ دَانسان دعاپه ظاهرکښ قبوله نشی نوپديکښ دَالله ﷻ يوعظيم مصلحت وی،اودَروزئ ورکولوئې ورسره وعده ده نودَمصلحت مطابق ئې ورته ورکوی.

﴿لَبَغَوْا فِي الْاَرْضِ﴾ بيان دَمصلحت دې،يعنی په يوبل به ظلم شروع کړی،حال دَقارون دَعبرت دپاره کافی دې،اوپه حديث کښ دی:أَخْوَفُ مَا أَخَافُ عَلَيْكُمْ مَا يُخْرِجُ اللّٰهُ لَكُمْ مِنْ زَهْرَةِ الدُّنْيَا (مسلم).او په بل روايت کښې دي : فو الله ما الفقرَ أخشى عليكم ولكنْ أخشى عليكم أنْ تُبسطَ عليكمُ الدنيا كما بُسطتْ على مَنْ قبلكمْ فتنافسوها كما تنافسوها وتُهلككم كما أهلكتهمْ (بخاري)

بعضو دَ ﴿لَبَغَوْا فِي الْاَرْضِ﴾ معنی "لتكبروافيها" کړيده، يعنی تکبربه اوکړی اوتجاوزبه اوکړی دَشان دَ عبديت نه . حضرت شفيق رحمه الله ددې آيت په تفسيرکښ فرمائی چه که الله ﷻ خپلو بندګانو ته بغيردکسب نه رزق ورکړی، نودوئ به هرفرصت موندلوسره پخپل مينځ کښ فساداوکړی.

﴿وَلٰكِنْ يُّنَزِّلُ بِقَدَرٍ مَّا يَشَآءُ﴾ يعنی دَحکمت مطابق چاته اوغواړی غنی جوړکړی اوڅوک فقير،په حديث قدسی کښ دی:انّ من عبادی من لواغنيته لافسده الغنیٰ وانّ من عبادی من لوافقرته لافسده الفقر(ترمذی). ﴿اِنَّهٗ بِعِبَادِهٖ خَبِيْرٌۢ بَصِيْرٌ﴾ په پټ اوښکاره حالتونودَ بندګانو باندې عالم دې نو

دَ هريو دَ شان مطابق ورته روزي ورکوي.

﴿وَهُوَ الَّذِىۡ يُنَزِّلُ الۡغَيۡثَ﴾ دا دَاولې دعوې سره متعلق دې، او په توحيد باندې دليل عقلي دې، چه کله خلق دَباران نه نااميده شي او قحط خطره وي، نو صرف الله ﷻ هغه ذات دې چه باران اووريږي او خپل رحمت عام کړي، نو صفاتو دَالوهيت مالک صرف هغه دې لهذا صرف دَهغه عبادت کوئ. "غيث" هغه باران ته وائي چه دَ سوکړې نه پس اووريږي. وسمّي الغيثُ غيثًا لانّه يُغيثُ الخلق او مطرعام دې.

﴿مِنۡۢ بَعۡدِ مَا قَنَطُوۡا﴾ دا قيد دَپاره دَتذکير دَکمال نعمت دې ﴿وَيَنۡشُرُ رَحۡمَتَهٗ﴾ دلته تقدير دې "اى آثار رحمته" مراد ورنه برکات او منافع دَباران دي چه قحط ختم شي، زمکه شنه شي، او په ونو کښې ميوې راشي، وغيرذلک ﴿وَهُوَ الۡوَلِىُّ الۡحَمِيۡدُ﴾ علت دې دَماقبل.

| وَمِنۡ اٰيٰتِهٖ خَلۡقُ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضِ وَمَا بَثَّ فِيۡهِمَا |
|---|
| اوبعض دَدَلائلو دَقدرت دالله نه پيداکول دَاسمانونو او دَزمکې دې او هغه چه خواره کړي ئي دي پدې دواړو کښې |
| مِنۡ دَآبَّةٍ ؕ وَهُوَ عَلٰى جَمۡعِهِمۡ اِذَا يَشَآءُ قَدِيۡرٌ ۞ وَمَآ اَصَابَكُمۡ مِّنۡ مُّصِيۡبَةٍ |
| هر قسمه جاندار، او الله تعالى په جمع کولو دَدوئ باندې چه کله اوغواړي قادر دې، او هغه چه اورسي تاسو ته څه تکليف |
| فَبِمَا كَسَبَتۡ اَيۡدِيۡكُمۡ وَيَعۡفُوۡا عَنۡ كَثِيۡرٍ ۞ وَمَآ اَنۡتُمۡ |
| نو په سبب دَهغې گناه دې چه کړې وي لاسونو ستاسو او الله معافي کوي دَډيرو گناهونو، او نه يئ تاسو |
| بِمُعۡجِزِيۡنَ فِى الۡاَرۡضِ ۖۚ وَمَا لَـكُمۡ مِّنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ مِنۡ وَّلِىٍّ وَّلَا نَصِيۡرٍ ۞ |
| عاجزه کونکی الله لره په زمکه کښې او نشته دې تاسو لره دَالله تعالى نه ماسوىٰ هيڅ څوک دوست او نه مددګار، |

﴿وَمِنۡ اٰيٰتِهٖ خَلۡقُ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضِ﴾ دا بل دليل عقلي دې په توحيد، چه دَاسمانونو او دَزمکې او پدې کښې چه څومره مخلوقات دي دَټولو پيداکونکی صرف الله تعالى دې، او دادې هم څوک نه منکري چه دَدې دومره مخلوقاتو جمع کول به څنګه کيږي؟ دَدوئ جمع کول الله تعالى ته ډير آسان دي، په دې ئي قدرت شته دې چه دَقيامت په ورځ به ټول يو ځائ جمع کړي.

﴿وَمَا بَثَّ فِيۡهِمَا مِنۡ دَآبَّةٍ﴾ که څوک اشکال اوکړي چه په اسمانونو کښې خو ملائک دي نو په هغوئ

باندې دَ«دَآبَّةٍ» اطلاق څنګه شویدې؟

جواب دا دې: (۱)چه﴿ فِيهِمَا ﴾تغلیبًاوئیلې شویدې لکه قمرین،ابوین،ومنه قوله تعالی:یخرج منهمااللؤلؤوالمرجان.

(۲)دابة مشتق دې دَ"دبیب" نه، دبیب حرکة ته وائی،نوملائک هم حرکة کوی نوځکه وربانډې اطلاق اوشو.

﴿ وَمَآ أَصَٰبَكُم مِّن مُّصِيبَةٍ ﴾جواب دَیوې شبهې دې چه هرکله الله تعالی حمید(خیرمحض) دې، نوبیاخلق ولی په تکلیفونواومصائبو کښې مبتلاکوی؟ کله قحط وي،بارانونه نه وریږي ، کله بیمارایانې او نور تکلیفونه وي ؟ حاصل دَجواب دادې چه انسان ته چه تکلیف رسیږی نو دادَهغه دَخپلوعملونونتیجه وی. په﴿مِّن مُّصِيبَةٍ﴾کښې عموم والی دَ مصیبت ته اشاره ده، مصیبت عام دې وړکې وی که غټ وی، خودګناهونوکفاره ګرځی،لکه په روایت کښې دی چه کله داآیت نازل شو نوحضورﷺ اوفرمایل:والّذی نفسی بیده مامن خدش عودٍ و لا اختلاج عرقٍ و لا نکبة حجر ولاعثرة قدمٍ الاّ بذنب و ما یعفوالله تعالی عنه اکثر(روح بحواله ابن المنذر).

﴿وَيَعْفُوا۟ عَن كَثِيرٍ﴾کثیر نه مراد ګناهونو هم کیدیشي او انسانان هم،ای کثیراًمن الذنوب، یا کثیراً من النّاس یعنی ډیرګناهونه خوالله تعالی هسی معاف کوی،

داخبره ذهن کښې ساتل پکار دی چه آیت کریمه مخصوص دی عامو ګناهګارانو مسلمانانو پوری، ځکه انبیاء کرام چې هغوئ ته هم مصائب رسی ، لکه حدیث کښې دي، اشد النّاس بلاءً الانبیاء ثم الامثل فالامثل،نودادَهغوئ رفع درجات لپاره.وي، اوهرچې ماشومان او لیونی دي، نو هغوئ هم داخل نه دی پدی خطاب کښې، ځکه چې مکلف نه دي،بعضِ وائی ماشومانو ته چه کوم تکلیف رسیږی نودَمورپلاردَرفع درجات سبب ګرځی.

حضرت علیؓ فرمائی چه داآیت "ارجیٰ آیة فی کتاب الله" دي، ډیر دَ طمع والا آیات دي، ځکه چه بعضِ ګناهونودَپاره مصائب کفاره شی،اوبعضِ ګناهونه الله تعالی محضِ په خپل مهربانئ سره معاف کری نو "فمابقیٰ بعدکفارته وعفوهٖ هیڅ ګناه باقی نشو ،

**فائده**:دَبعضوعلماؤپه نیزمصائب دَ ګناهونو عقوبت اوجزا ګرځی پدی شان چې آخرت

کښې به پرې عذاب نه ورکولې کیږي،حضورﷺ دَدې آیت په تفسیرکښې حضرت علی ؓ ته فرمائې چې ای علي! دنیاکښې تاسوته کوم مرض یاتکلیف ورسي نوداستاسودَعمل پوجه وي، او الله تعالیٰ دَدینه مبرأدی چې په آخرة کښې درته دوباره عقوبت درکړي اوچې کوم گناه الله تعالیٰ معاف کړي دنیاکښې نوبیاورباندې سزانه ورکوي.(ابن کثیر بحواله ابن ابي حاتم او مسند احمد)

بعض واني مصائب جزانه گرځي ځکه چې دنیا دارالتکلیف دی اوکه جزاپه کښې میلاوه شي نودارالجزابه شي،نومصائب به طورامتحان وي.

﴿وَمَآ أَنتُم بِمُعْجِزِينَ فِى ٱلْأَرْضِ﴾یعنی تاسوالله تعالیٰ دَدینه نشي عاجزه کولې چې مصائب درباندې راولې اگرچه په زمکه کښې هرطرف ته اوتختئ،دَمصیبت نه دَبچ کیدودَپاره درې طریقې وي(۱)چه انسان په خپل قوت سره ځان بچ کړي،نوپدې جمله کښې ددې نفي اوشوه(۲)دَملگري په ذریعه سره ځان بچ کړي(۳)څوک ئې مدداوکړي نوددې دواړونفي پدې سره اوشوه چه﴿وَمَا لَكُم مِّن دُونِ ٱللَّهِ مِن وَلِىٍّ وَلَا نَصِيرٍ﴾.

| |
|---|
| وَمِنْ ءَايَٰتِهِ ٱلْجَوَارِ فِى ٱلْبَحْرِ كَٱلْأَعْلَٰمِ ۞ إِن يَشَأْ يُسْكِنِ |
| اوبعض دَدلائلو دَقدرت دَالله نه بیړۍ دي چلیدونکې په دریاب کښې په شان دَغرونو،که چرې اوغواړي الله نواوبه دروی |
| ٱلرِّيحَ فَيَظْلَلْنَ رَوَاكِدَ عَلَىٰ ظَهْرِهِۦٓ ۚ إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَءَايَٰتٍ لِّكُلِّ صَبَّارٍ شَكُورٍ ۞ |
| هوانوشی به ولاړې پاتې په مینځ دَدریاب کښې،بیشکه پدیکښې خامخادلائل دَتوحید دي دَهرصبرکونکي شکرکونکي دَپاره، |
| أَوْ يُوبِقْهُنَّ بِمَا كَسَبُوا۟ وَيَعْفُ عَن كَثِيرٍ ۞ وَيَعْلَمَ |
| یابه هلاکې ئې کړي په سبب دَعملونو دَ دوئ او معافي اوکې ډیرو ته ، او پوهه شي |
| ٱلَّذِينَ يُجَٰدِلُونَ فِىٓ ءَايَٰتِنَا مَا لَهُم مِّن مَّحِيصٍ ۞ |
| هغه کسان چه جگړې کوي په آیاتونوزمونږ کښې،چه نشته دې دوئ لره هیڅ ځائ دَخلاصیدو |

﴿وَمِنْ ءَايَٰتِهِ ٱلْجَوَارِ فِى ٱلْبَحْرِ كَٱلْأَعْلَٰمِ﴾دابل دلیل عقلی دې په توحیداودَدې په ضمن کښې تخویف دنیوی هم دې،یعنی دادَالله تعالیٰ دَتوحیداودَقدرت دلیل دې چه په سمندرونوکښې دَغرونوپه شان لوئ لوئ کشتئ دَهغه په حکم سره چلیږي، کچرته الله تعالی اوغواړی نوهوابه اودرو

وی، نوکشتئ به هم اودریږی، یابه هواتیزه کړی نوخلق به پکښې ډوب شی،مقصود دَالله تعالی عظمت اوقدرت،او دَ خلقو دَ احتیاج بیان دې،نوپټرول یاګیس وغیره چه نن صبا وربانديې جهازونه اوګاړی چلیږی داهم الله تعالی پیدا کړیدی اودَالله ﷻ په قبضه قدرت کښې دی ((الجوار)) په اصل کښې"الجواری" دې"ي"تخفیفًاحذف شویده،اوداصفت دَموصوف محذوف دې ای السّفُن الجواری.

﴿إِنَّ فِي ذَٰلِكَ﴾یعنی پدې مسخرکولو اوچلیدلو دکشتو په سمندرکښې﴿لَآيَاتٍ﴾ډیری نښانې او دلائل دَقدرت اوتوحید دی﴿لِكُلِّ صَبَّارٍ شَكُورٍ﴾کنایه ده دَمؤمن کامل نه،چونکه سمندري سفر د خطرې او د نفع په مینځ مینځ کښې وي ، یو طرف دجان هلاکیدو خطره وي ، بل طرف ته د نجات امید وي ، یو طرف ته د مال ډوبیدو په صورت کښې د نقصان خطره وي ، بلکه طرف د بچ کیدو په صورت د نفع امید وي، نو ځکه د بندهٔ مؤمن دا دوه صفتونه به طور خاص ذکر شو.

﴿أَوْ يُوبِقْهُنَّ﴾ای اهلُهُنّ، "ایباق" هلاکت ته وائي ، او دلته ترینه مراد "اغراق" دې ، او دا عطف دې په ((یسکن)) باندې ، یعني که اوغواړي په خلقو به تیزه هوا راولي، او ځنې ډوب کړي دهغوئ د ګناهونو په سبب .﴿وَيَعْفُ عَن كَثِيرٍ﴾او ځنې بچ کړي په خپل فضل وکرم سره ، یعفُ بمعنی دَ"ینج"سره دې،مجزوم دې عطف دې په"یوبق"باندې.

بعضِ وائی چه "یعفُ"عطف دې په﴿يُسْكِنِ﴾باندې،ای وان یشأیعفُ عن کثیرٍ،دی صورت کښې به دآیت مطلب داشي که الله تعالی خوخه شي ، نو داخلق به هلاک کړي یا هواګانوادرولو سره او یاپه تیز هواګانو چلو لو سره ،اوکه خوخه یې شي نو عفو ودرګزر به ترینه اوکړی.

﴿وَيَعْلَمَ الَّذِينَ يُجَادِلُونَ﴾ "واو"عاطفه دی،یعلم،منصوب دې عطف دې په تعلیل محذوف باندې ، ای لینتقم منهم ولیعلم الذّین... یعنی اللهﷻ به داکشتئ په مینځ دَدریاب کښې اودَروی یا به ئې غرقه کړی دَدې لپاره چې انتقام ورنه واخلی، نومشرکان به بیاپوهه شی چه مونږلره دَالله تعالی دَعذاب نه اوس خلاصې نشته دې، یاتقدیری عبارت داسی دی"لیظهرعظیم قدرته تعالی ویعلم الذین".

فَمَآ أُوتِيتُم مِّن شَيْءٍ فَمَتَاعُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۚ وَمَا عِندَ اللّٰهِ

پس هغه چه تاسوته درکړې شوی دی هرڅیزچه وی نوهغه معمولی نفع دژوندددنیاده،اوهغه څه چه دالله سره وی

خَيْرٌ وَّأَبْقٰى لِلَّذِينَ اٰمَنُوا وَعَلٰى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُونَ ۝۳۶ وَالَّذِينَ

دیرغوره دی اوهمیشه دی دپاره دهغه کسانوچه ایمان ئی راوړې دې اوپه رب خپل باندې اعتمادکوی.اوداهغه کسان دی

يَجْتَنِبُونَ كَبٰٓئِرَ الْإِثْمِ وَالْفَوَاحِشَ وَإِذَا مَا غَضِبُوا هُمْ يَغْفِرُونَ ۝۳۷ وَالَّذِينَ

چه ځان ساتی دلویوګناهونونه اودبې حیایئ کارونونه،اوچه کله دوئ ته غصه ورشی نودوئ بخنه کوی اوهغه کسان

اسْتَجَابُوا لِرَبِّهِمْ وَأَقَامُوا الصَّلٰوةَ ۠ وَأَمْرُهُمْ شُورٰى بَيْنَهُمْ ۠

چه قبول کړې ئې دې حکم درب خپل اوپابندئ سره مونځونه کوی.اوکاردوئ په مشورې سره وی په مینځ ددوئ کښی

وَمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنفِقُونَ ۝۳۸ وَالَّذِينَ إِذَآ أَصَابَهُمُ الْبَغْيُ هُمْ يَنتَصِرُونَ ۝۳۹

اودهغې مال نه چه مونږورته ورکړیدې خیرات کوی.اوداهغه کسان دی چه کله ورسیږی دوئ ته ظلم نودوئ صرف بدله اخلی.

وَجَزٰٓؤُا سَيِّئَةٍ سَيِّئَةٌ مِّثْلُهَا ۖ فَمَنْ عَفَا وَأَصْلَحَ فَأَجْرُهُ عَلَى اللّٰهِ ۚ

اوبدله دبدئ بدې ده په شان دهغې،نوڅوک چه عفوه اوکړی اوصلح اوکړې نواجردده په الله ﷻ دې،

إِنَّهُ لَا يُحِبُّ الظّٰلِمِينَ ۝۴۰ وَلَمَنِ انتَصَرَ بَعْدَ ظُلْمِهِ فَأُولٰٓئِكَ مَا

بیشکه الله ﷻ نه خوښوی ظالمان.اوهغه څوک چه بدله واخلی ورستود ظلم نه په هغه باندې،نودغه کسان نشته دې

عَلَيْهِم مِّن سَبِيلٍ ۝۴۱ إِنَّمَا السَّبِيلُ عَلَى الَّذِينَ يَظْلِمُونَ النَّاسَ وَيَبْغُونَ

په دوئ باندې هیڅ ګناه. (بلکه) بیشکه ګناه په هغه کسانو ده چه ظلم کوی په خلقو او سرکشی کوی

فِي الْأَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ ۚ أُولٰٓئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ۝۴۲ وَلَمَن صَبَرَ وَغَفَرَ

په ناحقه سره ، دغه خلق دوئ دپاره عذاب درناک دې ، او خامخا چا چه صبر اوکړو او معافی ئی اوکړه

| إِنَّ | ذٰلِكَ | لَمِنْ | عَزْمِ | الْأُمُورِ | ﴿٤٣﴾ |
|---|---|---|---|---|---|
| بېشکه | دا دَ | | همت | کارونونه | دي |

﴿فَمَا أُوتِيتُمْ مِنْ شَيْءٍ﴾ دَتخويف نه ورستوترغيب دي ايمان اواعمال صالحه ته﴿فَمَتَاعُ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا﴾ حيات دنياسره دَمتاع لفظ دَذلت اوحقارت دَپاره دي، يعنى دَدنياچه څومره سازوسامان دي نوداديوڅوورځوتيرولواسباب دى چه ناقص اوفانى دى،نودَمطلوب اومقصود جوړه ولوقابل نه دى، اونه پدې فخركول پكاردى،اودَدې په مقابل كښې﴿وَمَا عِنْدَ اللَّهِ خَيْرٌ وَأَبْقَىٰ﴾ايمان اودَعمل صالح ثواب اوجنت اودَهغې نعمتونه ابدى اوبهتردى،نومقصود اومطلوب ئې جوړكړئ چه دابه هغه خاته ملاويږى چه دايو څو صفات پكښې موجودوى:

﴿لِلَّذِينَ آمَنُوا﴾خبردى دَمبتدامحذوف اى ذلك للذين...،اول صفت دې چه شرک نه کوى صرف په الله تعالى ايمان راوړى.

﴿وَعَلَىٰ رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُونَ﴾دويم صفت دې ، چې په هركاراوحال كښې په خپل رب بهروسه كوى بل خاته حاجت روا او كار ساز نه وائي

﴿وَالَّذِينَ يَجْتَنِبُونَ كَبَائِرَ الْإِثْمِ﴾دريم صفت دې ، يعنى دکبيره گناهونواودَبې حيايئ كارونونه ځان بچ ساتى، كبيره هغه دى چې وعيدپرى راغلې وى ياهغه چې حدپرى واجب وي،دكبيره گناهونو تفصيل په سورة نساء كښې بيان شويدې هلته ئې ملاحظه كړئ،چاويلي دى چه﴿كَبَائِرَ الْإِثْمِ﴾ نه مراد اعتقادى گناهونه دى چه دَقوت نظريه سره تعلق ساتى،او"فواحش" نه مراد هغه گناهونه دى چه دَ قوت شهوانيه سره تعلق ساتى اودَهغې دَبې اعتدالئ نه پيداكيږئ، اوپه ﴿وَإِذَا مَا غَضِبُوا هُمْ يَغْفِرُونَ﴾ كښې هغه مراددى چه قوت غضبيه سره تعلق ساتى﴿هُمْ﴾مبتدادى او﴿يَغْفِرُونَ﴾ ئې خبر دې ، او دا څلورم صفت دې، چه كله دوئ په غصه كښې شى نومعافى كوى، دا مطلب نه دې چه غصه ورته نه ورځى ، ځكه غصه په خپل موقع اومحل كښې نه راتلل دليل دَحلم اودَ عفوې نه دې، بلكه دليل دَجُبن دې ، بلكه مطلب دادې چه كله بې محله غصه ورشى نو په مقتضائى عمل نه كوى بلكه خپل طبعيت په قابو كښې كړى.

﴿وَالَّذِينَ اسْتَجَابُوا لِرَبِّهِمْ﴾پنځم صفت دې، استجابت نه مراددادې چه دَالله ﷻ دَطرف نه ورته كوم حكم اوشى نودَصميم القلب نه هغې ته منقاداوتابع داروى

﴿وَأَقَامُوا الصَّلَوٰةَ﴾ شپږم صفت دې ،يعنى دَمونځ پابندى كوى، په احكاماتوكښې ټولونه اهم حكم دَمونځ دې نوځكه ئې مستقل ذكركړو

﴿وَأَمْرُهُمْ شُورَىٰ بَيْنَهُمْ﴾اووم صفت دې ،يعنى دَدوئ كارونه پخپل مابين كښې په مشورې سره وى، "شورى" مصدردې مبالغةً حمل شويدې،ياتقديردَعبارت"ذوشورى"دې،مشوره كول په دينى يادنياوى كاركښې سنت نبوىﷺ دې او اللهﷻ ته محبوب عمل دې،دَټولونه لوئ اهميت ئى دَدې نه ظاهردې چه دَمونځ،اودَزكوة سره ئى ذكركړو.

﴿وَمِمَّا رَزَقْنَاهُمْ يُنفِقُونَ﴾اتم صفت دې ، يعنى دَخيرپه كارونوكښې انفاق كوى،پديكښې زكوة، واجب اونفلى صدقات ټول شامل دى

﴿وَالَّذِينَ إِذَا أَصَابَهُمُ الْبَغْيُ﴾ دا نهم صفت دې ، يعنى چه كله په دوئ باندې څوک ظلم اوكړى نو دوئ په بدله اغستلو كښې تجاوزاوزياتې نه كوى،بلكه صرف بدله اخلى اودامطلب نه دې چه بدله اخلى او عفونه كوى، ځكه چه بيابه دَدې صفت اودَعفودَصفت په مابين كښې منافات راشى، چا ويلى دى چه عفوه"معافى كول" اوبدله اخستل دواړه په خپل خپل موقع كښې محمود دى، نو عاجز اوهغه كس ته چه دَجرم معترف وى عفوه كول محموددى،اوهغه كس چه په خپل جرم اصراركونكې وى،يادَدين اهانت وى نوبدله اخستل محموددى،خوداهم بقدرِجرم ځكه چه ﴿وَجَزَاءُ سَيِّئَةٍ سَيِّئَةٌ مِّثْلُهَا﴾يعنى دَسيئه جزاء دَهغى برابرسيئه كول دى،په جزاء دَسيئه باندې اطلاق دَسيئةً مشاكلةً شويدې ورنه جزاء(بدله اخستل)سيئه نه وى حقيقةً.﴿فَمَنْ عَفَا وَأَصْلَحَ﴾ يعنى دَبدلې اغستلو اجازت شته دې ليكن معاف كول زيات بهتر دى، نو څوک عفو اوكړي او اصلاح روالي، نو اجر ئې د اللهﷻ په ذمه باندې دې،﴿إِنَّهُ لَا يُحِبُّ الظَّالِمِينَ﴾اى المتجاوزين الحد في الانتقام(روح المعانى).

﴿وَلَمَنِ انتَصَرَ بَعْدَ ظُلْمِهِ﴾دادَمخكنى آيت دَمضمون تنويردې،يعنى كه مظلوم دَظالم نه بدله اخلى نوپه هغه څه عقاب اوملامتى نشته دې﴿ظُلْمِهِ﴾مصدرمبنى للمفعول دې اى بعدماظُلم،

﴿إِنَّمَا السَّبِيلُ عَلَى الَّذِينَ يَظْلِمُونَ﴾بلكه عقاب اوملامتى په هغه خلقوده چه ظلم كوى،ياابتداءًظلم كونكى وى ياپه بدله اغستلوكښې حدِاستحقاق نه تجاوزكوى اوتكبركونكى اوفسادكونكى وى

﴿وَلَمَن صَبَرَ وَغَفَرَ﴾پدیکښې دَصبراو دعفوی دوباره ترغیب دې.دَاهتمام شانِ دَوجه نه﴿ لَمِنْ عَزْمِ الْأُمُورِ﴾اضافت دَصفت دې موصوف ته اومصدرپه معنی دَمفعول سره دی،ای الامور المعزومة علیها،یعنی صبردَهغه امورونه دې چه دَهغې پوخ قصدکول پکاردی،صبرتلخ است ولیکن برشیرین دارد.

| |
|---|
| وَمَنْ يُضْلِلِ اللَّهُ فَمَا لَهُ مِنْ وَلِيٍّ مِنْ بَعْدِهِ ۗ وَتَرَى الظَّالِمِينَ |
| اوهغه څوک چه ګمراه ئې کړی الله نونیشته دې هغه لره هیڅ دوست ورستودَالله تعالیٰ نه،اووینې به ته ظالمانولره، |
| لَمَّا رَأَوُا الْعَذَابَ يَقُولُونَ هَلْ إِلَىٰ مَرَدٍّ مِنْ سَبِيلٍ ﴿٤٤﴾ وَتَرَاهُمْ يُعْرَضُونَ عَلَيْهَا |
| هرکله چه اووینې دوئ عذاب وائي به آیاشته دې دَواپسئ څه لاره.اووینې به ته دوئ چه پیش کولې به شی جهنم باندې |
| خَاشِعِينَ مِنَ الذُّلِّ يَنْظُرُونَ مِنْ طَرْفٍ خَفِيٍّ ۗ وَقَالَ الَّذِينَ |
| سرونه به ئې خکته کړی وی دَوجه دَذلت نه،ګوری به جهنم ته په پټ نظرکولوسره،اووائې به هغه کسان |
| آمَنُوا إِنَّ الْخَاسِرِينَ الَّذِينَ خَسِرُوا أَنْفُسَهُمْ وَأَهْلِيهِمْ |
| چه ایمان ئې راوړې دې چه بیشکه تاوانیان هغه کسان دی چه تاوان کښې ئې اچولی دی خپل ځانونه،اوبال بچ خپل، |
| يَوْمَ الْقِيَامَةِ ۗ أَلَا إِنَّ الظَّالِمِينَ فِي عَذَابٍ مُقِيمٍ ﴿٤٥﴾ وَمَا كَانَ لَهُمْ مِنْ أَوْلِيَاءَ |
| په ورځ دَقیامت،خبردار!بیشکه ظالمان(کافران)به په عذاب همیشه کښې وی،اونه به وی دوئ دپاره هیڅ مددګاران |
| يَنْصُرُونَهُمْ مِنْ دُونِ اللَّهِ ۗ وَمَنْ يُضْلِلِ اللَّهُ فَمَا لَهُ مِنْ سَبِيلٍ ﴿٤٦﴾ |
| چه مددئې وکړی ماسوادَالله تعالیٰ نه،اوهغه څوک چه ګمراه ئې کړی الله تعالیٰ نونیشته دې هغه لره هیڅ لار(دَهدایت). |

﴿وَمَن يُضْلِلِ اللَّهُ﴾دادَدویمې دعوې "ومالفرقوا الامن بعد......"سره متعلق دی،چه هرهغه کس چه ضداوعنادوجه نه ئې الله تعالی ګمراه کړی، اودَباغیانوتحریفات اوګوری، اوپه شرک کښې مبتلاشی ، نو بیاهغه ته څوک هدایت نشی ورکولې﴿ مِنْ بَعْدِهِ﴾ ضمیرالله تعالیٰ ته راجع دې په

حذف دمضاف سره ای من بعد خذلان الله،یا راجع دی ضلال ته﴿ وَتَرَى الظّٰلِمِيْنَ ﴾تخويف اخروى دي، دَظالمين نه مراد كافران دى،لقوله تعالى﴿والكافرون هم الظّالمون﴾او لمّا په معنى دَحين سره دي اى حين يرون العذاب،مرادورنه یاوخت دَمرګ دي یاجهنم دي.یعنی کافران چه دَعذاب مشاهده اوکړی نوبیابه درخواست کوی چه آیادنیاته دَواپس کیدلوڅه لاره اوذریعه شته دي چه مونږلاړشو اونیک عمل اوکړو.

﴿خٰشِعِيْنَ مِنَ الذُّلِّ ﴾ من سببيه دي،اى بسبب الذل یعنی دذلت دَوجه به ئی سرونه خکته کړی وی، ﴿طَرْفٍ خَفِيٍّ﴾نه مراد پټ نظراوپه غلاغلاکتل دی،یعنی دوئ به جهنم ته نبکاره اوپوخ نظرنشی کولی دَوجه دَهیبت اورُعب نه،من پمعنی دَباء سره دي اى بطرف خفي.

﴿وَقَالَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِنَّ الْخٰسِرِيْنَ ﴾یعنی مؤمنان به اوو‌ائی چه په دنیاکښ دوئ مونږه بې وقوفه او په خسارې کښ مبتلاګنړلو ،لیکن نن معلومه شوه چه دراصل په خساره کښ هغه دی چه په آخرت کښ په خساره کښ دی﴿خَسِرُوْٓا اَنْفُسَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ﴾په شرک،معاصیؤسره ئی ځان په خساره کښ کړو ،﴿وَاَهْلِيْهِمْ ﴾خسران دَاهل تابع کول دی دَخپل ځان په کفراوشرک کښ اودَغه شان خپل اهل دَدینی تعلیماتونه محرومه کول لوئ خسران دي،﴿اَلَآ اِنَّ الظّٰلِمِيْنَ ﴾مرادورنه کافران دی په قرینی دَمابعدسره چه﴿فِيْ عَذَابٍ مُّقِيْمٍ ﴾ای دائم.

﴿ وَمَا كَانَ لَهُمْ مِّنْ اَوْلِيَآءَ ﴾ یعنی مشرکانولره به دَجهنم دَعذاب نه هیڅ بچ کونکي نه وی.

| اِسْتَجِيْبُوْا لِرَبِّكُمْ مِّنْ قَبْلِ اَنْ يَّاْتِيَ يَوْمٌ لَّا مَرَدَّ لَهٗ مِنَ اللّٰهِ |
|---|
| اومنئ حکمونه دَرب خپل مخکښ دَدې نه چه راشی هغه ورځ چه نه وی ممکن دَهغې واپس کیدل،دَالله جل جلاله نه، |
| مَا لَكُمْ مِّنْ مَّلْجَاٍ يَّوْمَىِٕذٍ وَّمَا لَكُمْ مِّنْ نَّكِيْرٍ ﴿٤٧﴾ فَاِنْ اَعْرَضُوْا |
| نه به وی تاسولره هیڅ ځائ دَپناه پدغه ورځ اونه به وی تاسولره هیڅ انکارنافع.نوکچرته دوئ اعراض کوی |
| فَمَآ اَرْسَلْنٰكَ عَلَيْهِمْ حَفِيْظًا ؕ اِنْ عَلَيْكَ اِلَّا الْبَلٰغُ ؕ وَاِنَّآ اِذَآ اَذَقْنَا |
| نونه ئی لیږلي مونږته پدوئ باندې ذمه وار،ندی ستاپه ذمه مګررسول دی،اوبیشکه مونږه چه کله اوڅکوؤ |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| الْإِنْسَانَ | مِنَّا | رَحْمَةً | فَرِحَ | بِهَا | وَإِنْ | تُصِبْهُمْ | سَيِّئَةٌ |
| په انسان باندې دخپل طرف نه څه رحمت نودې خوشحاله تکبراوکړي په هغې.اوکه ورسيږي دوئ ته څه تکليف | | | | | | | |
| بِمَا | قَدَّمَتْ | أَيْدِيهِمْ | فَإِنَّ | الْإِنْسَانَ | كَفُورٌ ﴿٤٨﴾ | | |
| بوجه | دهغې | عملونوچه | مخکښې | ليږلي | دي | لاسونودوئ،نوبيشکه | انسان ناشکره دې |

﴿اسْتَجِيبُوا لِرَبِّكُمْ﴾ داهم ددويمې دعوې سره متعلق دې، اوماقبل ثمره ده اوتخويف اخروى هم دې، يعني کله چه دا ثابت شوه چي توحيد نه خلاف احکامات د باغيانو کارنامه ده اوتحريفات دى،نو هغه قابل قبول نشو،لهذا تاسو ده وحي اتباع اوکړى، او توحيد قائل شئ، ورنه داسي ورځ دربانديى راوانه ده چه هغي نه واپس کيدل نشته او نه بچ کيدل شته.

﴿اسْتَجِيبُوا﴾ پمعنى د "اجيبوا" سره دې، اى اجيبوه الى مادعاكم اليه من الايمان والطاعة(قرطبى) يعنى دخپل رب حکم اومنئ اوايمان راوړئ. ﴿يَوْمٌ﴾نه مراديا ورځ دمرګ ده،ياورځ دقيامت« مِنَ اللَّهِ » جار ومجرور يا په ﴿يَأْتِيَ﴾ پورې متعلق دې،اى ان يأتى من الله يومٌ لايمكن ردّه،ياپه﴿ لَا مَرَدَّ لَهُ﴾ پورى متعلق دې،يعنى داسي ورځ چه الله تعالى به ئى نه واپس کوى،اى لايرده الله تعالى بعدماحكم به«روح المعانى» ﴿مِنْ نَكِيرٍ﴾ مصدردې د "انكر، ينكر" خلاف قياس ، او مراد ترينه انکارنافع،يعنى د داسي انکارگنجائش به نه وى چه فائده ورته ورکړى، اګر چه نفس انکار د دوئ ثابت دې چى «والله ربنا ما كنامشركين»، مجاهد رحمه الله ئى معنى کړيده چه مالكم من ناصرٍ ينصركم،يعنى ستاسو امداد والابه څوک نه وى چه ستاسو امداد اوکړئ، بعضُ ئى معنى پټيدل کړيده،يعنى تاسوبه دالله ﷻ دعذاب نه نشئ پټي دې.

﴿فَإِنْ أَعْرَضُوا﴾زجردې مشرکانوته اوتسلى ده نبى اکرم ﷺ ته،چې ته د دوئ په اعراض مه خفه کيږه ، ځکه چې دوئ رب نه هم اعراض کوي ، باوجود دينه چې هغه ورته مختلف حالاتو بدلولو رابدلولو سره تنبيه کوي.﴿ وَإِنَّا إِذَا أَذَقْنَا الْإِنْسَانَ ﴾دانسان نه مرادجنس انسان دى،﴿ رَحْمَةً﴾ د رزق فراخ والې،صحت عافيت،کثرت داولادوغيره،﴿فَرِحَ بِهَا﴾ اى بطر لاجلها، د تکبر او د غروراظهارکوى،﴿ وَإِنْ تُصِبْهُمْ ﴾کښې ضميردجمع راجع شو او حکم په اعتبار د اکثريت دې.﴿سَيِّئَةٌ﴾د مال کمى، بيمارى، اولاد نه محرومى وغيره﴿فَإِنَّ الْإِنْسَانَ كَفُورٌ﴾ دير

ناشکره ، چه په وخت دَتکلیف کښې ټول نعمتونه هیرکړي،اوپه سبب دَتکلیف باندې فکرنه کوي چه داګناهونو دَوجې نه دي.

| لِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۭ يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ ۭ يَهَبُ لِمَنْ يَّشَآءُ |
|---|
| خاص الله لره ده بادشاهي دَاسمانونواودزمکې ،پیداکوي هغه څه چه اوئ غواړي،ورکوي چاته ئې چه خوښه شي |
| اِنَاثًا وَّيَهَبُ لِمَنْ يَّشَآءُ الذُّكُوْرَ ۝ اَوْ يُزَوِّجُهُمْ ذُكْرَانًا وَّاِنَاثًا ۚ وَيَجْعَلُ |
| صرف لونړه اوورکوي چاته ئې چه خوښه شي صرف خامن،یاجوړه ورکوي ورته خامن اولونړ«دواړه»اوګرځوي |

| مَنْ | يَّشَآءُ | عَقِيْمًا | اِنَّهٗ | عَلِيْمٌ | قَدِيْرٌ ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| چاته ئې چه خوښه شي | شنډ،بیشکه | الله په | هرڅه | عالم | قادردې |

﴿لِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ﴾داد لیل عقلي دې په توحید اودَاولې دعوې سره متعلق دې، حاصل ئې دادې چه تمام کائنات کښې تصرف کونکې اومختارصرف الله تعالى دې، دَهر څيز خالق دې،اولادورکول،نه ورکول،صرف نارینه اولادورکول،یاصرف جینکئ ورکول یادواړه ورکول دَهغه په مشیت اواختیارکښې دی،بل چاپه اختیارکښې نشته دې، نولهذاصرف دهغه عبادت کوئ اوخپل حاجتونه ورنه غواړئ.

﴿يَهَبُ لِمَنْ يَّشَآءُ﴾هبة: تبرع بالشئ مجاناً ته وائی،نوپدیکښې اشاره ده دیته چه دَانسان پیداکیدل محض په قدرت دَالله تعالى سره کیږي،بل چاته پکښې دخل نشته دې،په آیتِ کریمه کښې چه کوم تقسیم دَاولادو شویدې، نو بعض مفسرینو دا تقسیم په انبیاؤ علیهم السلام کښې ذکر کړیدې، نو﴿اِنَاثًا﴾لکه لوط اوشعیب علیهما السّلام چه صرف جینکئ ئی وې ، نارینه اولاد ئی نه وؤ، ﴿وَيَهَبُ لِمَنْ يَّشَآءُ الذُّكُوْرَ﴾لکه ابراهیم علیه السلام چه اته«۸»خامن ئی وؤجینکئ ئی نه وې،﴿اَوْ يُزَوِّجُهُمْ ذُكْرَانًا وَّاِنَاثًا﴾ بلکه خاتم النبیین ﷺ چه نارینه اولاد لې هم وؤ،اوځلورئی زنانه اولاد وؤ زینب، ام کلثوم،رقیه،فاطمه.

﴿وَيَجْعَلُ مَنْ يَّشَآءُ عَقِيْمًا﴾لکه حضرت یحیی علیه السلام اوعیسی علیه السلام، چه اولادئی نه وؤ،البته دَحضرت عیسی علیه السلام په باره کښې دی چه قرب قیامت ته به راکوزیږي، واده به کوي ، او اولاد به ئی هم وي،نوپه انبیاؤ علیهم السلام کښې تفاوت«چه مقربین بندګان دی»اختیارالله تعالى سره دې،

نو دَعامو خلقو اختیار خو په طریقه اولی الله تعالی سره دي﴿إِنَّهُ عَلِيمٌ﴾نو دَ تقسیم دَ اولادو په مصلحت اوحکمت باندې هم عالم دي﴿قَدِيرٌ﴾قدرت لرونکې دې په اسبابو دَ ذکورت او انوثت، نو خپل حکمت او اختیارسره تاسوته اولاددرکوی.

| وَمَا كَانَ لِبَشَرٍ أَنْ يُكَلِّمَهُ اللَّهُ إِلَّا وَحْيًا أَوْ مِنْ وَرَاءِ حِجَابٍ أَوْ يُرْسِلَ رَسُولًا |
|---|
| اوندی ممکن هیڅ انسان لره داچه خبرې وکړی ده سره الله مګربه وحی یاورستودپردې نه یاواولیږی فرشته |
| فَيُوحِيَ بِإِذْنِهِ مَا يَشَاءُ ۚ إِنَّهُ عَلِيٌّ حَكِيمٌ ﴿٥١﴾ |
| نووحی ورته اوکړی په اجازت دَالله ﷻ سره دَهغه څه چه دَالله ﷻ خوښه وی،بیشکه الله ﷻ لوئ شان والا،حکمتونه والادې |
| وَكَذَٰلِكَ أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ رُوحًا مِنْ أَمْرِنَا ۚ مَا كُنْتَ تَدْرِي مَا الْكِتَابُ وَلَا الْإِيمَانُ |
| اودغه شان وحی کړیده مونږتاته دَقرآن په حکم خپل سره،نه پیژندلو تا چه څه دې کتاب اونه ایمان |
| وَلَٰكِنْ جَعَلْنَاهُ نُورًا نَهْدِي بِهِ مَنْ نَشَاءُ |
| لیکن مونږ ګرځولې دې داقرآن رڼاچه هدایت کوومونږپدې سره هغه چاته چه زمونږخوښه شی |
| مِنْ عِبَادِنَا ۚ وَإِنَّكَ لَتَهْدِي إِلَىٰ صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ ﴿٥٢﴾ صِرَاطِ اللَّهِ الَّذِي لَهُ |
| دَبندګانوخپلونه،اوبیشکه تهٔ(ای پیغمبره)خامخالاره ښائی خلقوته لار سمه،لاره دَهغه الله ﷻ چه دَهغه په قبضه کښ دی |
| مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ ۗ أَلَا إِلَى اللَّهِ تَصِيرُ الْأُمُورُ ﴿٥٣﴾ |
| څه چه په اسمانونوکښ دی اوڅه چه په زمکه کښ دی،خبردار! صرف الله ته ورګرځی ټول کارونه |

﴿وَمَا كَانَ لِبَشَرٍ أَنْ يُكَلِّمَهُ اللَّهُ﴾دا دلیل نقلی دی په توحید اودَدویمې دعوې سره متعلق دې،چه الله تعالی تمامو انبیاؤته دَوحی په ذریعه دَتوحید حکم کړیدې،نودَدې خلاف چه دَباغیانو کوم تحریفات دی هغه باطل اومردود دی،په آیت کریمه کښ دَ وحی درې قسمه بیان شویدی، مفسرینودَدې آیت په تفسیرکښ لیکلی دی چه یهودیانوحضورﷺ ته اوونیل چه کچرې ته برحق نبی ئی نوته الله تعالی سره بالمشافه خبرې ولې نه کوې اوته ولی الله تعالی نه وینې؟

لکه څرنګه چه حضرت موسی علیه السلام دَالله تعالى سره بالمشافه (مخامخ) خبرې کولی، او الله تعالى به ئی لیدلو، حضور ﷺ ورته اوفرمایل چه انّ موسی لن یّنظر الیه (قرطبی، روح وغیره) یعنی موسی علیه السلام الله تعالى نه دې لیدلې، نودَدې په تائید کښې دا آیت نازل شو ﴿وَمَا كَانَ﴾ کله دَنفی دَامکان دَپاره وی لکه ماکان لکم ان تنبتوا شجرها، اوکله پمعنی دلاینبغی، لایناسبُ سره وی، دلته نفی دَامکان دَپاره دې، یعنی دَهیڅ یو بشر دَپاره نه ده ممکنه، چه دَالله ﷻ سره کلام اوکړی مګرپه دَدې درې طریقو کښې:

(۱) ﴿إِلَّا وَحْيًا﴾ مرادورنه وحی قلبی ده، چه په حالت دَ بیدارئ کښې ورته الهام ویلې کیږی، لکه "واوحینا الی امّ موسی" اوپه حالت دَخوب کښې ورته "رؤیاصادقه" ویلې کیږی، لکه ابراهیم علیه السلام خپل څوی ته اووئیل "انی اریٰ فی المنام انّی اذبحک" یا په حدیث کښې دی "اوّل مابدئ به رسول الله ﷺ من الوحی الرؤیاالصالحة فی النوم.

(۲) ﴿أَوْ مِن وَرَاءِ حِجَابٍ﴾ یعنی بغیردَواسطې دَفرشتې نه، اودَالله تعالى کلام دَحجاب نورانی دَ ورستو نه وی، لکه موسی علیه السلام سره الله تعالى مشافهة کلام نه وؤکړې، بلکه من وراء حجاب وؤ، دَحجاب (پردی) نه مرادحجاب دَعظمت اوحجاب دَنوردې، چه دَمشاهدې دَتجلیاتو نه بشر منع کوی، ذات دَالله تعالى محجوب نه دی، بلکه په روایت دَمسلم کښې دی، حجابُه النور لو کشفه لاحرقت سبحات وجهه ما انتهی الیه بصره من خلقه (حجاب دَالله تعالى نوردې، کچرې الله تعالى هغه پرده لرې کړې نو دَ وجه کریم انوارات به منتهی ئی نظرپورې مخلوق اوسوزوی).

حضرت تهانوی رحمه الله فرمانی چه داحجاب څه جسم حائل نه دې، اونه داحجاب دَحق تعالى ذات مخفی کولی شی، بلکه حقیقت دَ دې ءَ بشرضعف ادراک دې، چه دَدې په وجه دَ زیارت حق نه حجاب واقع کیږی، چنانچه په جنت کښې چه بصارت قوی شی نو هلته به هرجنتی ته زیارت نصیب کیږی (اللّٰهم ارزقنا) لکه په ډیروصحیح احادیثو کښې دې تصریح ده اودامذهب دَاهل سنت والجماعت دې.

(۳) ﴿أَوْ يُرْسِلَ رَسُولًا﴾ دَ "رسولاً" نه مرادجبرئیل امین علیه السلام دې، یعنی دریم قسم دادې چه په واسطې دَفرشتې سره وحی اوشی، دَوحې حقیقت اومعنی، اقسام اوبعض نوراهم اموردَدې تفسیرپه مقدمه کښې په تفصیل سره بیان شویدی هلته ئی ملاحظه کړئ.

﴿عَلِيٌّ﴾الله تعالى بلندشان والادې نودعلوشان تقاضاداده چه هيڅ بشرورسره دهمکلامئ طاقت نه لری ﴿حَكِيمٌ﴾نودخپل حکمت اومصلحت په بنيادئ دبندګانودپاره دخپلې همکلامئ طريقې مقرر کړې دي.

﴿وَكَذَٰلِكَ أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ﴾دادليلِ وحی طرف ته اشاره ده،اودَ﴿وَكَذَٰلِكَ﴾مشاراليه مذکوره درې طريقې دی،يعنی لکه څرنګه چه مونږه تيرشوی تماموانبياؤته په دغه طريقوسره وحی کوله، نودغه شان تاته هم کوؤ﴿رُوحًا﴾نه مرادتوحيدياقرآن دې،قرآن ته روح څکه اوويلې شوچه په دې سره دَزړونوحيات ابدی راځی،لکه په رُوح سره چه حيات دَبدن راځی،وسمّاه روحًالانّه يُفيدالحياة من موتِ الجهل اوالكفر(كبير)ياورنه مرادنبوت دې ياورنه جبرئيل عليه السلام مراددی او﴿أَوْحَيْنَا﴾ يمعنی دَ"ارسلنا"دې.

﴿مَا كُنتَ تَدْرِي مَا الْكِتَابُ﴾داماقبل دَپاره علت دې اوتکميل دې چه دَيهوديانومطالبه او سوال (کوم چه ذکرشو)محض جاهلانه اومعاندانه دې،څکه تاته چه کوم کمالات ميلاؤ دی، نو دا قبل دَنبوت نه، نه وؤ، نه دَقرآن علم او واقفيت،اونه دَايمان تفصيلات،نوچه تاته نبوت ميلاؤ شو ، نو دا کمالات هم درته ميلاؤ شو،نوداواضح دليل دې ستاپه نبوت باندې.

﴿مَا الْكِتَابُ﴾دکتاب نه مرادقرآن دې،﴿وَلَا الْإِيمَانُ﴾دَمطلق ايمان نفی نه ده،څکه انبياء کرام عليهم السلام قبل دَنبوت نه هم دَشرک نه معصوم وی،بلکه: (۱)مرادتفصيلات دَايمان دی. (۲)بعضِ فرمائی چه مرادايمان نه مجموعه دَتصديق،اقراراواعمالوده،دَايمان اطلاق لکه څرنګه چې په مجردتصديق باندی کيږی، نودغه شان ئی په مجموعه باندی هم کيږی ، لکه"وماكان الله ليضيع ايمانكم"ای صلوٰتكم الى البيت المقدس(۳)بعضِ فرمائی چه کلام په حذف دَمضاف سره دی،تقديردارنګه دی،دعوة الايمان،يعنی ته نه پوهيدلی چې څنګه به خلق ايمان ته راغواړې. ﴿وَلَٰكِن جَعَلْنَاهُ﴾ يعني ته بالکل امي وې ، کتاب او قرآن دې نه پيژندو ، او دايمان تفصيلات دې نه پيژندلو ،بلکه الله جل جلاله دا کتاب نازل کړو، چې په دې سره خلقو ته هدايت او ايمان توفيق ورکوي ، ضمير منصوب په «جعلنه» کښې يا راجع دې قرآن ته،ياايمان ته، يا دواړو ته راجع دی په اعتبار دَ مقصود واحد سره، لکه په دې قول دَالله تعالى کښې"والله ورسوله احقّ ان يّرضوه" يعنی دَايمان اوقرآن مقصود دا دې،

﴿وَاِنَّكَ لَتَهۡدِیۡۤ اِلٰی صِرَاطٍ مُّسۡتَقِیۡمٍ﴾ او اې پیغمبره! ته هم دَدې په ذریعه خلق صراط مستقیم طرف ته راغواړې، نوستاپه رسالت باندې هیڅ قدحه او اعتراض نشی کیدې، صراط مستقیم نه مراددین اسلام دې، دَدې اضافت الله تعالی خپل طرف ته کړیدې چه ﴿صِرَاطِ اللّٰهِ الَّذِیۡ﴾ نو پدیکښې دَدې عظمت شان طرف ته اشاره ده، چه دادَهغې ذات لاره ده چه دَزمکې او اسمان او دټول کائناتو مالک او متصرف او اختیارمند دې، نو داقبول کړئ چه دنیا او آخرت کښې درته نجات ملاؤشی. ﴿اَلَاۤ اِلَی اللّٰهِ تَصِیۡرُ الۡاُمُوۡرُ﴾ پدیکښې وعده دَثواب ده ایمان او هدایت موندونکو ته او زجر دې گمراهانو ته.

| ركوعاتها (۷) | سورة حم زُخْرُفْ مكية | آياتها (۸۹) |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان او ډیر رحم کونکي دي شروع کوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۴۳) وحسب النزول (۶۳)**

سورة زخرف مکی سورة دي، ترتیب قرآنی په لحاظ سره(۴۳)دي او ترتیب نزولی په لحاظ سره(۶۳)دي، دَمخکنی سورة نه ورستو نازل شویدي.

**ربط** : (ددي خبرې وضاحت مخکې شویدي چه په حوامیم سبعه ؤکښې هرمابعد حمیم دَماقبل حمیم باندي دَوارُدشوی اعتراض جواب وی)پدیکښې دَدریم اعتراض او دَسوال جواب دي، سوال داوؤچه مشرکینو اویل چه زمونږ معبودان اګرچه حاجت رواندی(لکه په مخکنی سورة کښې ئی الوهیة باطل شو)بلکه حاجت رواصرف الله تعالی دي، البته مونږ دَدوئ عبادت ځکه کوؤچه دوئ نازولی اوزوره وردی نوزمونږ شفارش به الله تعالی ته کوی، اوزمونږ کارونه به وربانديِ کوی، نوپدی سورة کښې ئی جواب اوشوچه﴿وَلَا يَمْلِكُ الَّذِينَ يَدْعُونَ مِن دُونِهِ الشَّفَاعَةَ﴾ آیت(۸۶)یعنی دَالله تعالی په بارګاه کښې هیڅ څوک شفیع قهری نشته دي.

**دسورة دَمضامينو اجمالی خلاصه:**

دَسورت مرکزی دعوه توحید او نفی دَنائب ده، چه آسمانونو او زمکه کښې صرف یو معبود دی او هغه متصرف اور کار ساز دي. اوهغه لره هیڅ څوک نائب نشته نه په صورتِ د زوی، نه پصورت دلور، اور نه په صورت دَسفارشی، ددینه علاوه توحید باندی دلائل عقلیه، نقلیه، او وحی ذکر کیږي، او په ځائی په ځائی تخویفات، بشارتونه اور زجرونه ذکر کیږی.

**تفصیلی خلاصه**: ده دی سورت څلور حصی دی.

اوله حصه آیت ۱ـ۸پوری ده، پدیکښې ترغیب الي التوحید اور ترهیب دي.

دویمه حصه آیت ۹ـ۵۲پوری ده، پدیکښې مرکزي مضمون اثبات د توحید رد شرک او نفي د نائب په صورت دَلور ده، او په دی کښې دلائل عقلیه او نقلیه ذکر کیږی، اور په مینځ مینځ کښې تخویفات اور زجرونه هم ذکر کیږی.

دريمه حصه آيت ۵۷ـ۸۵پورى ده ،پديكښ نفى دنائب په صورت ده زوږ كيږي،اوبيا تخويفات بشارتونه اور زجرونه ذكركيږي،اود دې حصه كښ دعوه د سورت هم ذكر كيږى،چه هو الذي في السماء اله وفي الارض اله

څلورمه حصه آيت ۸۲ـ۸۹پورى ده ،پديكښې نفي دغائب په صورت د شفيع قهري ده،او دليل عقلي اور تخويف ذكر كيږي.

**تمت خلاصة السورة اجمالاًو تفصيلاً**

| |
|---|
| حٰمٓ ۝ وَالْكِتٰبِ الْمُبِيْنِ ۝ اِنَّا جَعَلْنٰهُ قُرْءٰنًا |
| الله ﷻ ښه پوهيږى په معنى ددې،قسم دې په كتاب واضحه،بيشكه مونږگرځولې دې ده لره قرآن |
| عَرَبِيًّا لَّعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ ۝ وَاِنَّهٗ فِيْٓ اُمِّ الْكِتٰبِ لَدَيْنَا لَعَلِيٌّ |
| په عربئ ژبه كښ،دپاره ددې چه تاسوپدې پوهه شئ.اوبيشكه دا قرآن په لوح محفوظ كښ زمونږسره دې.ډير اوچت دې |
| حَكِيْمٌ ۝ اَفَنَضْرِبُ عَنْكُمُ الذِّكْرَ صَفْحًا اَنْ كُنْتُمْ قَوْمًا مُّسْرِفِيْنَ ۝ |
| دحكمتونونه ډک دې،آيا نوواړه وؤستاسونه قرآن په منع كولوسره د وجه ددې نه چه يئ تاسوقوم (حد نه) تجاوز كونكي |
| وَكَمْ اَرْسَلْنَا مِنْ نَّبِيٍّ فِي الْاَوَّلِيْنَ ۝ وَمَا يَاْتِيْهِمْ مِّنْ نَّبِيٍّ اِلَّا كَانُوْا بِهٖ |
| اوډيرليږلى وؤمونږه نبيان په مخكښنى خلقوكښ،اونه به راتلودوئ ته هيڅ يونبى مګردوئ به په هغه پورې |
| يَسْتَهْزِءُوْنَ ۝ فَاَهْلَكْنَآ اَشَدَّ مِنْهُمْ بَطْشًا وَّمَضٰى مَثَلُ الْاَوَّلِيْنَ ۝ |
| توقې كولې،نومونږهلاک كړى وؤهغه چه زيات سخت وؤددوئ نه په قوت كښ اوتيرشويدى حالات داولنى خلقو. |

﴿حٰمٓ﴾ دادَمقطعاتونه دې چه معنى حقيقى اومرادئى الله تعالى ته معلوم دې. ﴿وَالْكِتٰبِ الْمُبِيْنِ﴾ ددې ځائ نه دَ سورت اوله حصه ذكر كيږى چې پدېكښ توحيد منلوته ته ترغيب دې چه دا په عربى ژبه كښ واضح كتاب دې او ډيراوچت او عظيم الشان كتاب دې. نوپدى ځان پوهه كړئ او دَ دې په احكاماتو باندې عمل اوكړئ،"واو"په ﴿وَالْكِتٰبِ﴾ كښ قسميه دې، او مراد دَ كتاب نه قرآن دې ﴿الْمُبِيْنِ﴾صفت دې دَ﴿وَالْكِتٰبِ﴾،لازمى هم رازى اومتعدى هم،نوكه لازمى شى نومعنى ئى داده چه واضحه اوظاهره ده په عربوباندې ددې معانى،اومشتبه ندى

پدوئ باندي، ځکه چه دَدوئ په مادری ژبه کښې نازل شویدې، اوچه متعدی شی نو معنی نی داده چه ظاهره ونکې اوواضحه کونکې دې حق لره دَباطل نه، اولارې دَهدایت لره، دَګمراهئ نه.

﴿إِنَّا جَعَلْنَٰهُ قُرْءَٰنًا عَرَبِيًّا﴾ جواب قسم دې، او قسم برائ استشهاد دې ، یعنی داواضحه قرآن بذات خود پخپل حقانیت باندې ګواه دې، «آفتاب آمد دلیل آفتاب»
معتزله ؤېدې آیت سره استدلال کړیدې چه قرآن مخلوق اوحادث دې، ځکه چه دلته﴿جَعَلْنَٰهُ﴾ اوویلې شو ، نو قرآن مجعول شو اوهرمجعول حادث اومخلوق وی نو قرآن هم حادث او مخلوق شو ،تمام اهل سنت والجماعت، سلف اوخلف پدې باندې متفق دی چه دَقرآن دوه حیثیتونه دی، یو معنوی چه کلام نفسی ورته ویلې کیږی، نو داصفت دَالله تعالی دې، قدیم دې، القرآن کلام الله تعالی لیس بمخلوق ومن قال انــه مخلــوق فقــد کفر«شرح عقائد»اودویم تعبیری حیثیت چه کلام لفظی ورته ویلې کیږی اوپه صحائفو باندې لیکلې شویدې نو ظاهره ده چه دامخلوق اوحادث دې، اوپه آیت کښې دَ﴿جَعَلْنَٰهُ﴾ تعلق هم ددې قسم سره دې﴿قُرْءَٰنًا﴾ پمعنی دَمقروٴ سره مصدر دې، حال دې او﴿عَرَبِيًّا﴾ ورله صفت مادحه دې. ﴿لَّعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ﴾ دَ نزول دَ قرآن فائده ده. او"لعل"دَتعلیل د پاره دې ، یعنی دا قرآن دَ دې د پاره نازل شویدې چه تاسو دَدې په معانیؤ اوحکمتونو اودَدې په حقانیت ځان پوهه کړئ.

﴿وَإِنَّهُۥ فِىٓ أُمِّ ٱلْكِتَٰبِ﴾ دا جمله هم د جواب قسم تحت داخله ده او د قرآن مزید عظمت شان پکښې بیان دې، او ترغیب دې قرآن منلو ته چې په علم الهي او ملا اعلی کښې ورته دومره لوئ د عزت او شرافت والا مقام حاصل دې، نو زمکې والا ته هم پکار ده چې دوئ دې هم د دې شرافت او عزت خیال اوساتي او په مضامینو باندې دې ایمان راوړي ، "ام الکتاب"نه مرادلوح محفوظ دې، لوح محفوظ ته ام الکتاب ځکه وائي چه ټول اسماني کتابونه نازلیدلو نه مخکښې دیکښې پراته وو او بیا دینه نقل کړې شوی دی، نو ګویا داهر کتاب دپاره اصل دې نو دې وجهې نه ورته ام الکتاب اوئیلې شو. اویا ترینه علم الهي ازلي مراد دې یعني دا کتاب د الله ﷻ په علم کښې له ازل نه اوچت مقام او مرتبې والادې، ﴿لَعَلِىٌّ﴾ بلند اوبرتر دې ﴿حَكِيمٌ﴾ «۱»یاپمعنی دَذی حکمـة،حکمتونه والا»سره دې«۲»یاپمعنی دَمحکم سره دې یعنی لفظ

اومعنوی اعتبارسره محکم دي. منسوخ ندي په بل کتاب سره(۳)یاصفت بحال متعلقه دي،ای حکیمٌ منزّله یعنی داکتاب دَحکیم ذات طرف نه نازل دي (۴)پمعنی دَحاکم سره،

﴿ أَفَنَضْرِبُ عَنكُمُ الذِّكْرَ صَفْحًا ﴾داز جردي دَقرآن نه اعراض کونکو دپاره. دَ "الذِّكْرَ" نه مراد قرآن دي اوپه کلام کښې تقدیردي ای انزال الذکر﴿ صَفْحًا ﴾مفعول مطلق من غیرلفظه دي دَ «نضربُ» دپاره. ﴿أَن كُنتُمْ قَوْمًا مُّسْرِفِينَ ﴾ "لام" پکښې مقدردي ای لأن کنتم...الخ دَ دی ایت څو مطلبونه بیان شویدي:

(۱)دادي چه آیااوړه وؤمونږستاسونه قرآن، اودَدې نزول بندکړومحض دَدې وجه نه چه تاسوپه ګناهونواوپه شرک کښې ډیرزیات منهمک یئ،استفهام انکاری دي،یعنی مونږسلسله دَانزال نه بنده وؤکه تاسوورته التفات کوئ یانه کوئ، مفتی شفیع رحمه الله فرمائی چه دَدې نه معلومه شوه چه کوم سړي دَتبلیغ کارکوی نوهغه دي هرسړي ته دعوت ورکوی،اګرچه فاسق اواعراض کونکي وی،محض دَاعراض پوجه تبلیغ ترک کول ندي پکار.پدی صورت کښې لام مقدره "اجلیه" دي.

(۲)اوچاویلي دی چه پدیکښې وسعت دَرحمت الهی ته اشاره ده،یعنی ستاسودَحال او دَ شان تقاضاخوداده چه تاسوپدې حال پریدواونزول دَقرآن بندکړوچه حتی که دکفراودَضلالت په حالت کښې مړه شئ اوهمیشه دَپاره په عذاب کښې مبتلاشئ،لیکن دَوسعتِ رحمت دَوجه نه مونږ داسلسله دَ رشد او هدایت نه بنده وؤ،نوکه ایمان موراوړونو فبها ونعمت ورنه حجت خو به دربانديقائم شي،دي صورت کښې لام مقدره د پاره د "تعلیل" دي،

(۳)مجاهد رحمه الله فرمائی چه دَ﴿الذِّكْرَ﴾نه مرادعذاب دي،ای افنضربُ عنکم العذاب و لا نعاقبکم علی اسرافکم و کفرکم(قرطبی)یعنی آیاستاسوداګمان دي چه مونږبه ستاسونه عذاب واړه وؤاوستاسوپه ګناهونواوشرک به عذاب نه درکوؤ.

﴿ وَكَمْ أَرْسَلْنَا مِن نَّبِيٍّ فِي الْأَوَّلِينَ ﴾ "کم"خبریه دَپاره دَتکثیردي،پدیکښې دَماقبل مضمون تنویر او تاکید دي،چه امم سابقه ؤته الله تعالی دَارسالُ دَرسولانوسلسله نه وه بنده کړې اګرچه هرنبی پورې استهزاء اوتکذیب ئې شوې وؤ،اوپدیکښې حضور ﷺ ته تسلّی هم ده،څکه چه "البلیّة اذا عمّت طابت" ﴿ فَأَهْلَكْنَا أَشَدَّ مِنْهُم ﴾تخویف دنیوی دي ضمیردَ﴿مِنْهُم﴾مشرکینِ مکه ته راجع دي

﴿بَطْشًا﴾منصوب بناء برتميزدي﴿وَمَضَىٰ مَثَلُ الْأَوَّلِينَ ﴾يعنى دَعبرت دَپاره دَمخكنى قومونو دَ تباهئ مثالونه موجوددى.

| وَلَئِن سَأَلْتَهُم مَّنْ خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ لَيَقُولُنَّ خَلَقَهُنَّ |
|---|
| اوكه ته تپوس اوكړې دَدوئ نه چه چاپيدا كړيدى اسمانونه اوزمكې نوخامخابه دوئ وائى چه پيدا كړى دى دا هغه الله |
| الْعَزِيزُ الْعَلِيمُ ۝ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ الْأَرْضَ مَهْدًا وَجَعَلَ لَكُمْ فِيهَا سُبُلًا |
| چه غالب دې عالم دې.هغه ذات چه گرځولې ده ستاسودَپاره زمكه بستر اوگرځولى دى ستاسودپاره په هغې كښې لارې |
| لَّعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ ۝ وَالَّذِي نَزَّلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً بِقَدَرٍ |
| دَپاره ددې چه تاسولاره معلومه كړئ.اوهغه ذات چه نازلې كړى دَطرفه دَاسمان نه اوبه،باران،په اندازې سره، |
| فَأَنشَرْنَا بِهِ بَلْدَةً مَّيْتًا ۚ كَذَٰلِكَ تُخْرَجُونَ ۝ وَالَّذِي |
| نوبيا ژوندى كړومونږ.په هغې سره كلى مړ«وچه ځمكه»هم دغه شان به تاسوراوباسلې شئ،اوهغه ذات چه |
| خَلَقَ الْأَزْوَاجَ كُلَّهَا وَجَعَلَ لَكُم مِّنَ الْفُلْكِ وَالْأَنْعَامِ |
| پيدا كړى ئى دى جوړه جوړه ټول مخلوقات اوگرځولى ئى دى تاسولره دَبيړونه،په درياب،نوكښې،اودَخاروونه «په وچه» |
| مَا تَرْكَبُونَ ۝ لِتَسْتَوُوا عَلَىٰ ظُهُورِهِ ثُمَّ تَذْكُرُوا نِعْمَةَ رَبِّكُمْ |
| هغه،چه تاسوپرې سورېږئ.د پاره د دې چې اوخيژئ«كينئ»تاسوپه شاگانودَهغې بيايادكړئ تاسونعمت دَرب خپل |
| إِذَا اسْتَوَيْتُمْ عَلَيْهِ وَتَقُولُوا سُبْحَانَ الَّذِي سَخَّرَ لَنَا |
| په هغه وخت كښې چه تاسوبرابركينئ په هغې اووايئ تاسوپاكى ده« دَشركاؤنه» هغه ذات لره چه مسخركړى ئى دى زمونږدَپاره |
| هَٰذَا وَمَا كُنَّا لَهُ مُقْرِنِينَ ۝ وَإِنَّا إِلَىٰ رَبِّنَا لَمُنقَلِبُونَ ۝ |
| دا،اونه وؤمونږدَى لره په خپل قابوكښې راوستونكى.اوبيشكه چه مونږخپل رب طرف ته خامخاتلونكى يو. |

**وَجَعَلُوا لَهُ مِنْ عِبَادِهِ جُزْءًا إِنَّ الْإِنْسَانَ لَكَفُورٌ مُبِينٌ ﴿١٥﴾**

اوګرځولی دی دوئ الله ﷻ لره دبندګانودده نه جزء ، بیشکه انسان(مشرک)یقینا چی ناشکره دې ښکاره.

﴿ وَلَئِن سَأَلْتَهُم مَّنْ خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ ﴾ دلته نه دَ سورت دویمه حصه ذکر کیږی، چې پدیکښې نفي دَ نائب ده په صورت ولد مؤنث، اوپه دی باندی دلائل دی. مشرکینو دَا عقیده وه چې ملائک دالله ﷻ لونړه دی. ددې عقیده تحلیل چې اوشی نودرې خبرې ترینه رااوځی:

(۱) الله ﷻ لره دَ جزء اثبات

(۲) ملائک دَالله ﷻ لونړه دی

(۳) ملائک مونث دی،

الله ﷻ پدی کښې دَ دوئ عقیدې هر هر جزء مدلل رد کوی، دې ځائ نه تر وجعلو ا له من عباده جزءا پورې دَاولې عقیدې ذکر او دَ هغې رد باندې دلائل ذکر کیږی چې الله ﷻ لره جزءثابتول صحیح ندي ،ځکه چه دَ دینه خو احتیاج لازمیږی، حالانکه دالله ﷻ صمدیت او بې نیازي په مختلفو دلائلو سره ثابت ده او دوئ یي خپله هم اعتراف کوی. نو دا اول لیل عقلی دې په توحید او په نفي د جزء او نائب علی سبیل الاعتراف من الخصم چې دا مشرکین دَالله ﷻ خالقیت هم قائل دی ،دهغه اقتدار هم معترف دی، په هر څه باندې د هغه علم منی نو بیا څرنګه ورله جزء ثابتوی، دا خو د دی صفاتو منافي دې. نوپدې آیت کښې پدغه اعتراف استدلال دې، چه په پیدا کولودکائناتوکښې هغه یکتادې نوپه تصرف اواختیارکښې هم دَهغه سره شوک شریک نشته دې، حاجت روا ، مشکل کشا ،دَسجدې مستحق هم صرف هغه دې.

﴿ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ الْأَرْضَ مَهْدًا ﴾ دا دویم دلیل عقلي دې او په اول دلیل عقلي علي سبیل التنویر ذکر کیږی، یعني کله چه تاسو الله ﷻ خالق او قادر منئ نو دا صفات به هم منئ ځکه چې دا دَ هغې مظاهردی ،چه الله تعالی هغه ذات دې چه ستاسودَپاره ئی زمکه فرش کرځولې ده چه تاسوته پکښې آرام راحت کول، مکانات جوړه ول، کرونده کول وغیره اسان دی، اوپدې زمکه کښې ئی لارې جوړې کړیدی چه دَهغې په وجه تاسوتجارتی وغیره مقاصدو دَ پاره سفرکولې شئ﴿ لَّعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ ﴾ ای لکي تهتدوا بسلوکی الی مقاصدکم، یا معنی داده چه تاسو په دې انعاماتوکښې فکراوکړئ اوهدایت درته ملاؤشی دَتوحید، چه هغه مقصداصلی دې(روح المعانی).

﴿ وَالَّذِي نَزَّلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً ﴾دا دريم دليل دی او په اول على سبيل التنوير ذکر کيږي،چې الله ﷻ دَخالقيت او قدرت يومظهر داهم دې چه آسمان نه په اندازې اوبه راوره وی،او په هغې سره مړه زمکه ژوندئ کوی او بوټی راخيژوی. ﴿ مَاءً بِقَدَرٍ ﴾ يعني نه کم چې فائده ئي نه وي او نه زيات چې طوفان نوح شکل اختيار کړي﴿ كَذَٰلِكَ تُخْرَجُونَ ﴾ په ديکښې د بعث بعد الموت بيان دې چې لکه څنګه الله ﷻ آسمان نه باران وروي او هغې په وچه زمکه ژوندئ شي او وچ بوټي را زرغون شي نو دغه شان به تاسو هم قيامت په ورځ راژوندي کړي او راپاسوي ،

﴿ وَالَّذِي خَلَقَ الْأَزْوَاجَ ﴾ دا څلورم دليل دې او په اول على سبيل التنوير ذکر کيږی ،چه دَالله ﷻ دَخالقيت او قدرت يو مظهر دا دې چې د مخلوقاتو مختلف اقسام وانواع ئي پيدا کړيدی، تاسو زميني (زمکي) او بحري سفر دپاره ئي سورلئ مهيا کړي او تاسوته يې مسخر کړيدی.«الْأَزْوَاجَ » مراد دَازواج نه(۱)اصناف او اقسام دَمخلوقاتو دی يعنی الله ﷻ هغه ذات دې چه دَ تمامو اقسامو دَ مخلوقاتوخالق دي،فالزّوج هنابمعنى الصنف لابمعناه المشهور(روح) (۲)يا ورنه مراد دا دې چه هرځيزئی جوړه جوړه پيداکړيدې، دَمذکر مؤنث سلسله ئی په نباتاتو،حيو اناتوکښې هم ګرځولې ده(۳)بعض محققين وائی چه مرادورنه دَيوبل مقابل څيزونه دی، لکه شپه ورځ،اسمان زمکه،مشرق مغرب،وغيرذلک، نودَهرڅيز جوړه اومقابل موجود دې صرف ذات دَواجب الوجودفردِ مطلق دې منزه دې دَتمامو صفاتو دَمخلوق نه (کبير وغيره).

﴿ وَجَعَلَ لَكُم مِّنَ الْفُلْكِ وَالْأَنْعَامِ ﴾ من بيانيه دې اودابيان مقدم دې او﴿ مَا تَرْكَبُونَ ﴾مبين مؤخر دې، يعنی الله ﷻ هغه ذات دې چه ستاسودَرکوب دَپاره ئی په دريابونوکښې بيړئ اوپه وچه کښې ځاروی پيدا کړيدی

﴿ لِتَسْتَوُوا عَلَىٰ ظُهُورِهِ ﴾ اغراض د سوارليږو بيانيږي ، دا اول غرض دې ، استواء په معني د استقرار او اعتلاء سره دې ، اي:لتستقرّوا ياپمعنی دَ"لتعتلوا"سره دې اوپه ﴿ عَلَىٰ ظُهُورِهِ ﴾ کښې واحد ضمير راجع "ما" ته دې چې هغې مصداق انعام او فلک دواړه دي ،

﴿ ثُمَّ تَذْكُرُوا نِعْمَةَ رَبِّكُمْ ﴾ دويم غرض دې ، چې هغه زړه کښې د الله شکر دې او د هغه په وحدانيت ايمان او د جز او نائب نه هغه منزه کنړل دي ﴿ وَتَقُولُوا سُبْحَانَ الَّذِي سَخَّرَ لَنَا ﴾ دا دريم غرض دې چې چې هغه په ژبه د الله ﷻ شکر ادا کول او ظاهر اعتبار سره هم هغه ته تسليم

کيدل دي،او تکبر او شرکشي نه کول دي «مُقْرِنِيْنَ» پمعنى دَمطيقين دي،يعني کچرته الله ﷻ دا څناور زمونږ دَ پاره نه وې تابع کړي نومونږته دَهغوئ قابوکول اوپه هغې سوارلى کول مشکل وو.

داخبره په نن صبامشيني سورلوباندې هم صادقه کيږي ځکه کچرته الله ﷻ دَدې موادنه وې پيدا کړې يائى انسانى دماغوته دَدې دَجوړه ولو ،چلولوطاقت نه وې ورکړې نوهيڅ څوک پدې قادرنه وو،

﴿وَإِنَّآ إِلَىٰ رَبِّنَا لَمُنقَلِبُونَ﴾يعني دَرکوب په وخت کښ تکبريافخرمه کوئ په خپلو ګاډو باندې بلکه دَدې دنياپه سفرسره دآخرت سفرراياد کړئ.

دَ دَې آيت مخکښى سره آيت سره مناسبت دا دې چه سوارلئ دَ الله ﷻ اګر چه لوئي نعمت دې خو بياهم يوسبب دَهلاکت دې،ځومره خلک وى چه دَ خپل انجام نه نا خبره سفر شروع کړى،خولارکښ حادثى دَ وجهى نه مرګ سره مخامخ شي،نو دَدې وجهې نه الله ﷻ ورسره دا آيت ذکر کړوچه هلاکت پدې اسبابو مينځ کښ انسان غافله پاتې نشى،اوخپل مرګ او ورځ دَ جزاء ورته مستحضر وى.

**فائده**:په څناورياپه ګاډى کښ دَسوريدلوپه وخت کښ دَدې دُعااهتمام پکاردې، دَ حضور ﷺ نه په متعددورواياتوکښ منقول دى چه حضورﷺ به په سورلئ باندې دکيناستلو په وخت کښ دغه دعاوئيله،اودَسوريدلومستحبه طريقه هغه ده چه دَحضرت علىؓ نه منقوله ده چه دده په خدمت کښ دَسورلئ دَپاره يوڅناورراوستلې شوکله ئى چه په رکاب کښ خپه کيخودله نو(بسم الله)ئى اوېله،بياچه کله سورشولونو"الحمدلله"ئى اووې،اوبيائى دغه مذکوره دعااووئيله،بيائى درې ځله(الحمدلله)اودرې ځله"الله اکبر"اوې،بيائى دادعااوئيله، سبحانک انى ظلمتُ نفسى فاغفرلى فانه لايغفرالذّنوب الاّانت،بيائى اوخاندل، چاورته عرض اوکړو چه اميرالمومنين تاسولې اوخاندل،اوئى فرمايل:چه حضورﷺ هم داسې کړي وو ځنګه چه مااوکړل،دَحضورﷺپه خدمت کښ عرض اوکړې شوچه يارسول الله!تاسوپه کومه خبره اوخاندل؟ نو اوئى فرمايل چه اللهﷻ پدې خوشحاله کيږي چه بنده"رب اغفرلى"وائى او الله تعالى فرمائى چه څمابنده ته معلومه ده چه څمانه علاوه بل څوک بخنه کونکې نشته دې. (روح بحواله ابوداؤد،ترمذى).

﴿ وَجَعَلُوا لَهُ مِنْ عِبَادِهِ جُزْءًا ﴾ دا دَمشركانو دَمكې عقيدې بيان دې او شكوه ده ورنه چې دَ خپل اعتراف باوجود الله ﷻ لره ولد اوناتب ثابتوي ﴿مِنْ عِبَادِهِ﴾ نه مراد فرشتې دي ﴿جُزْءًا﴾ (١) اى ولدا، يعنى دوئ فرشتوته بنات الله (دَ الله لونړه) وائي، دَولدنه تعبيرپه "جزء" سره او شو پديكښې دَدوئ دَدې باطلې عقيدې عقلى ترديدته اشاره ده، چه دَهغې خلاصه داده چه كچرته الله ﷻ لره اولاد وې نوهغه به ئې جزءوي ځكه چه ولدجزءوي دَوالدنه (كقوله ﷺ: فاطمة بضعة مني) اوهركل جزء ته محتاج وي په وجودخپل كښې. نومعاذالله دالازمه شوه چه الله تعالى هم محتاج دې، حالانكه داخوباربارثابته شويده چه الله تعالى صمداوبې نيازه ذات دې دَهرقسمه احتياج نه مبرأدې.

(٢) قتاده رحمه الله دَ ﴿جُزْءًا﴾ معنى كوي اى عدلاً، يعنى دوئ الله ﷻ سره شريكان اومعبودان گرځوي (٣) بعضُ ورنه دَنذرلغيرالله هغه ځناورمرادكړيدي چه دَهغې يوه حصه به مشركانو دَ الله ﷻ په نوم اويوه حصه دَبتانوپه نوم مقرركړې وه، دَدې ذكرپه سورة انعام "وجعلوالله مما ذرأمن الحرث والانعام نصيبا" آيت (١٣٦) كښې تيرشويدې، ﴿إِنَّ الْإِنسَانَ﴾ مراد ورنه انسان مشرك دې ﴿لَكَفُورٌ مُّبِينٌ﴾ ښكاره ناشكره دې اوداواضحه ده ځكه چه نسبت دَ ولد الله تعالى ته كفردې اواصل ناشكرى كفركول دي.

| |
|---|
| أَمِ اتَّخَذَ مِمَّا يَخْلُقُ بَنَاتٍ وَأَصْفَاكُم بِالْبَنِينَ ﴿١٦﴾ وَإِذَا |
| آيانيولى دى الله ﷻ دَهغې مخلوق نه چه پيداكړى ئې دى لونړه اوغوره كړى يې يئ تاسو په ځامنوسره. اوحال داچه كله |
| بُشِّرَ أَحَدُهُم بِمَا ضَرَبَ لِلرَّحْمَٰنِ مَثَلًا ظَلَّ وَجْهُهُ مُسْوَدًّا |
| خبروركړيشى يودَدوئ ته په (پيداكيدلو دَ) هغه څيز (لور) چه گرځولى ئې دې الله ﷻ لره مشابه نوا وگرځي مخ دَده تك تور |
| وَهُوَ كَظِيمٌ ﴿١٧﴾ أَوَمَن يُنَشَّأُ فِي الْحِلْيَةِ وَهُوَ فِي الْخِصَامِ غَيْرُ مُبِينٍ ﴿١٨﴾ |
| اودې دَك وى دَغصې نه. آياهغه څوك چه لوئيولې شى په زيوراتوكښې اوهغه په گفتگوكښې نشى ښكاره كولې خپل مقصد. |
| وَجَعَلُوا الْمَلَائِكَةَ الَّذِينَ هُمْ عِبَادُ الرَّحْمَٰنِ إِنَاثًا أَشَهِدُوا خَلْقَهُمْ |
| اوگرځولى دى كافرانو هغه فرشتې چه هغوئ بندگانې دَرحمن دي ښځې، آياحاضروؤدوئ په وخت دَپيدائش دَهغوئ كښې، |

| سَتُكْتَبُ | شَهَادَتُهُمْ | وَيُسْئَلُوْنَ ⑲ |
| --- | --- | --- |
| خامخاليکلې کيږي | ګواهي دَدوئ | اوتپوس به ورنه کيږي |

﴿ أَمِ اتَّخَذَ مِمَّا يَخْلُقُ بَنَاتٍ ﴾ دَ دې ځائ نه دهغوئ دَ **عقيدې دويم جزء** رد دې، چې ملائک دَالله ﷻ 'ونړه دي. استفهام انکاری دې دَپاره دَتوبيخ، پديکښې دَمشرکانوپه جهالت او په ړوندوالی دَعقل باندی تعجب دې، چه الله ﷻ طرف ته ئی دَداسې څيزنسبت کړيدې چه پخپله ئی هم دوئ حقيره اوذليله ګڼړي، ﴿وَأَصْفَاكُم بِالْبَنِينَ ﴾داعطف دې په "اتخذ" باندې، پديکښې هم تعجب دې دَ دوئ په حال باندې، يعنی الله ﷻ چه خالق دې دَ مخلوقاتو، نو پخپلو مخلوقاتو کښې ئی دَخپل ځان دَپاره، اخسّ الصنفين، اوستاسودَپاره ئی "افضل" منتخب کړيدې نو دا ندې مګربې انتهاجهل اوحماقة دې.

﴿ وَإِذَا بُشِّرَ أَحَدُهُم ﴾پديکښې دَماقبل مضمون تاکيد دې چه دالونړه دَدوئ په نزددومره حقيره دی چه کله دوئ ته دَلورپه پيدائش سره خبر ورکړيشي نورنګ ئی بدل شی دَغم پوجه، اودَغصې نه دومره ډک شی چه خبرې هم نشی کولې، اودَبعضِ مشرکينوپه باره کښې راځی چه کله به دوئ دَلوردَپيدائش خبرو اوَريدلونودکورنه به اوتختيدو، لکه مفسرينو دلته دَيوې ښځې اشعارذکرکړيدی چه لورئی شوې وه اوخاوندئی کورته نه راتللو.

**شعر:**

| | |
| --- | --- |
| مالابی حمزة لا يأتينا | يبيتُ فی بيتِ الذّی يلينا |
| غضبان ان لاَنلد البنينا | ليس لنامن امرنامَاشينا |
| ونحن كالارض لزارعينا | نخرجُ مَاقدبذُوره فينا |

﴿بِمَا ضَرَبَ لِلرَّحْمَٰنِ ﴾ای بالجنس الذی جعله للرحمن﴿مَثَلًا﴾ای شبيهًا. دَدې آيت تفصيلی تشريح په سورة نحل آيت ۵۸ کښې هم تيره شويده،

﴿ أَوَمَن يُنَشَّؤُا فِي الْحِلْيَةِ ﴾پديکښې هم دَمذکورې عقيدې "الملائکة بنات الله" مزيد قباحت دې، يعنی آيادوئ الله ﷻ ته دَهغونسبت کوی چه دَهغوئ دَعقل دکمزورئ نتيجه اواثردادې چه نشوونمائی په زيوراتو اوزينت کښې کيږي، يعنی توله ورځ پدغه فکراوغم کښې مبتلاوی او دَ خپل ذاتی معاملاتوصحيح کولو استعدادنه لری.

﴿وَهُوَ فِي الْخِصَامِ﴾ يعنى دعقل دَ نقصان او ضعف رائي پوجه خپلی دعوی ثابتولو او اقامت حجت باندی قادر نه وی په خصومت يعنى په بحث اوتكرار كښې خپل اصلی مقصد هم نشی بيانولې، قوت استدلال ئې ضعيف وی، يامراد دَخصام نه جنگ دې يعنى جنگ اوجهادته نشی تللې پوجه دَ صنف نازک نو داسې ضعيف مخلوق ته بنات الله ويل لوئ حماقة دې،

﴿ وَجَعَلُوا الْمَلٰٓئِكَةَ الَّذِيْنَ هُمْ عِبٰدُ الرَّحْمٰنِ اِنَاثًا ﴾ دادَمشركينو عقيدې دريم جزء رد دې چه دوئ ملائكوته ښځې وائی حالانكه ملائكه لايوصف بذكورة ولابانوثة دی، اونه دې مشركانوسره پخپل دعوې باندې څه دليل شته دې ځكه چه ذكورة انوثة معلوميږی په مشاهدې سره، نو آيا دوئ مشاهده كړيده،

﴿اَشَهِدُوْا خَلْقَهُمْ﴾ ای احضرواخلق الله تعالى، يعنى آيادوئ دَفرشتودَپيدائش په وخت كښې موجود وؤ؟ روح المعانی كښې دی چه حضورﷺ دَمشركانونه سوال اوكړوچه تاسوته څه معلومه ده چه فرشتې ښځې دی نودوئ ورته اووې چه دامونږ دخپلوآباؤنه اوريدلی دی، او مونږ گواهی وركوؤ چه دوئ دروغ ندی وئيلی، نوالله ﷻ ورته فرمائی ﴿سَتُكْتَبُ شَهَادَتُهُمْ﴾ سين دَ تاكيد دَپاره دې، يعنى دوئ داگواهی خامخادَدوئ په اعمالناموكښې ليكلې كيږی او بيا به دَقيامت په ورځ دَدوئ نه پوختنه كيږی. يا شهادت نه مراد دَ دوئ مشاهدی گواهې ده او بطور وعيد ذكر كيږی چه آخرت كښې به دَ دوئ نه دَ دې خبرو تپوس كيږی.

په درميان كښې ﴿هُمْ عِبٰدُ الرَّحْمٰنِ﴾ دفرشتومدحه ده چه فرشتې دَالله تعالى فرمانبردار، عبادت گزاربندگان دی، اولادندی.

| وَقَالُوْا لَوْ شَآءَ الرَّحْمٰنُ مَا عَبَدْنٰهُمْ مَا لَهُمْ بِذٰلِكَ |
|---|
| اووائې دوئ كچرته رضاوې دَالله نونه به وې كړې مونږعبادت دَدې معبودانو،نيشته دوئ لره پدغې وينا |
| مِنْ عِلْمٍ اِنْ هُمْ اِلَّا يَخْرُصُوْنَ ﴿٢٠﴾ اَمْ اٰتَيْنٰهُمْ كِتٰبًا مِّنْ قَبْلِهٖ فَهُمْ بِهٖ |
| هيڅ څه دليل،ندی دوئ مگردروغ وائی.آياوركړې دې مونږدوئ ته څه كتاب مخكښې دَدې قرآن نه،نودوئ په هغې |
| مُسْتَمْسِكُوْنَ ﴿٢١﴾ بَلْ قَالُوْا اِنَّا وَجَدْنَا اٰبَآءَنَا عَلٰی اُمَّةٍ وَّ اِنَّا |
| دليل نيوونكی دی،بلكه وائی دوئ بيشكه مونږه موندلی وؤخپل مشران په يودين اوبيشكه مونږه |

عَلَىٰٓ اٰثٰرِهِمْ مُّهْتَدُوْنَ ﴿٢٢﴾

په نقشِ قدم دَهغوئ سمه لار موندونکی يو.

﴿وَقَالُوْا لَوْ شَآءَ الرَّحْمٰنُ مَا عَبَدْنٰهُمْ﴾دی ځائي نه په شرک باندی دَ مشرکانو دليل او دهغې جواب ذکر کيږی،دوئ به استدلال په مشيت دَباری تعالی سره کولو. اوويل به ئی کچرته دَ اللهﷻ توحيدخوښ وې اوشرک ئی نه وې خوښ نوموږبه شرک نه وې کړې ځکه چه ستاسو هم داعقيده ده چه هرکارپه ارادې دَاللهﷻ سره کيږی،نوکه دَاللهﷻ اراده وې نوموږبه ئی په زورمنع کړې وې اوعذاب به ئی راکړې وې نوچه موږته عذاب نه راکوی نومعلوميږی چه اللهﷻ په شرک رضادې.

﴿مَا لَهُمْ بِذٰلِكَ مِنْ عِلْمٍ﴾داجوب دې دَمشرکانودَمذکوره قول،حاصل دادې چه دَيوفعل جواز يا په دليلِ عقلی سره ثابتيږی يانقلی سره،دَدوئ سره پدې مذکوره دعوې باندې نه دليل عقلی شته اونه دليل نقلی،هرچه ده نفی دَدليل عقلی نوپه﴿مَا لَهُمْ بِذٰلِكَ مِنْ عِلْمٍ﴾ کښې ورته اشاره ده،يعنی دَدوئ سره څه دليل عقلی په اثبات دَرضادَاللهﷻ په شرک دَدوئ باندې نشته دې،ځکه دوئ استدلال په مشيت اوارادې دَاللهﷻ سره کوی،حالانکه پدې نه پوهيږی چه په مشيت اوپه رضاکښې فرق دې،مشيت اواراده دَاللهﷻ دَهرکارسره متعلقه ده، چه دَالله تعالی دَارادې نه بغيرهيڅ کارهم نه کيږی،ليکن رضائی صرف دَمأموراتوسره متعلقه ده،دَدې وجه نه علماءوائی چه معصيت اوکفر دَ بنده، په ارادې دَاللهﷻ سره دې.ليکن په رضادَالله سره ندې،داسې تشريح دَدې مضمون په انعام(۱۴۸)اونحل کښې هم تيره شويده﴿اِنْ هُمْ اِلَّا يَخْرُصُوْنَ﴾ ای يکذبون(روح المعانی).

﴿اَمْ اٰتَيْنٰهُمْ كِتٰبًا مِّنْ قَبْلِهٖ﴾پديکښې دَدليل نقلی نفی ده،په﴿مِّنْ قَبْلِهٖ﴾کښې ضميرياقرآن ته راجع دې يانبي اکرمﷺ ته اواستفهام انکاری دې،يعنی دوئ سره پدې خپلې دعوې باندې څه نقلی دليل دکتب سابقهٔ وَهم نشته دې چه دوئ په هغې تمسک اوکړی،نودوئ سره نه دليل عقلی اونه دليل نقلی شته دې

﴿بَلْ قَالُوْٓا اِنَّا وَجَدْنَآ اٰبَآءَنَا﴾ دا دَ مشرکينو دويم دليل ذکيږی په شرک باندې، چې هغه تقليد دې د آباؤو،چې زمونږ اباؤو اجداد په شرک باندی قائم روان دی،لهذا مونږ هم هغوئي په

نقش قدم دا شرک نشو پریخودلې. ﴿عَلَىٰٓ أُمَّةٍ﴾ ای علی دینٍ وطریقة،یعنی مونږه دغه عقیده دخپلو اباؤنه اخذکړیده اوپدغه دین باندې مونږه هغوئ موندلی وو.یا امة نه مراد جماعت دې،اومطلب دا دې چه زمونږ اباؤو واجداد پدغې اتفاق او اجماع وه.

| |
|---|
| وَكَذَٰلِكَ مَآ أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ فِى قَرْيَةٍ مِّن نَّذِيرٍ إِلَّا قَالَ مُتْرَفُوهَآ |
| اوهم دغه شان نه وؤليږلى مونږمخکښې ستانه په هيڅ يوکلى کښې يره ونکې(پيغمبر)مګراوبه ويل مشرانو :هغې کلى، |
| إِنَّا وَجَدْنَآ ءَابَآءَنَا عَلَىٰٓ أُمَّةٍ وَإِنَّا عَلَىٰٓ ءَاثَٰرِهِم مُّقْتَدُونَ ﴿٢٣﴾ قَٰلَ |
| بيشکه مونږه موندلى دى مشران خپل په يودين باندې،اوبيشکه مونږپه نقش قدم دهغوئ روان يو.اوبه ويل پيغمبر، |
| أَوَلَوْ جِئْتُكُم بِأَهْدَىٰ مِمَّا وَجَدتُّمْ عَلَيْهِ |
| آياأګرکه راوړې وي ما تاسو ته داسې دين چې هغه زيات په هدايت وي دهغې نه چه موندلى دى تاسوپه هغې |
| ءَابَآءَكُمْ قَالُوٓا۟ إِنَّا بِمَآ أُرْسِلْتُم بِهِۦ كَٰفِرُونَ ﴿٢٤﴾ |
| مشران خپل،اوبه ويل دوئ چه بيشکه مونږپه هغه څه چه راليږلى شوى يئ تاسوپه هغې سره، انکارکوؤ، |
| فَٱنتَقَمْنَا مِنْهُمْ فَٱنظُرْ كَيْفَ كَانَ عَٰقِبَةُ ٱلْمُكَذِّبِينَ ﴿٢٥﴾ |
| نوانتقام واخستومونږ ددوئ نه نواوګوره چه څرنګه وو آخرى انجام دتکذيب کونکو. |

﴿وَكَذَٰلِكَ مَآ أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ﴾ دیکښې تسلي ده نبی کريم ﷺ ته چې دا وينا مخکنی کفاروهم وه،هغوی په هم خپل نبی ته وې: چه مونږ خپل آباؤواجداد مخالفت نشوکولې او شرک نشوپريخودلې ﴿وَكَذَٰلِكَ﴾مشار اليه مذکوره وينا دَ مشرکانو ده ﴿إِلَّا قَالَ مُتْرَفُوهَآ﴾ دَ ترفه نه مأخوذ دې نعمة ته واثی ای اهل النعمة(شربينی)مالداره اومشران قوم ورنه مراددی

﴿قَٰلَ أَوَلَوْ جِئْتُكُم﴾ داد مشرکينو دليل جواب ذکر کيږی چه اتباع دَ هدايت او حق ضروری دہ، خواه هغه د آباؤو اجداد طرز عمل خلاف ولی نوی،دَ حق او هدايت واضح کيدلو نو ورستې هم په باطل باندی قائم پاتې کيدل دَا ضد او عناد دې،نور څه ندی «قَٰلَ»کښې ضمير راجع دې پيغمبر دَ هرقوم ته ای قال کل نذير لامته(روح)﴿أَوَلَوْ جِئْتُكُم﴾ای اتقتدون بآبائکم و لو

جنتکم، یعنی هرپیغمبربه خپل قوم ته داویل چه څه تاسوته دآباؤدَدین نه زیات صحیح دین پیش کوم نو آیابیاهم تاسودَخپلوآباؤګمراه تقلید او اتباع کوئ؟ نو قوم به ورته عناداً اوویل چه تاسوپه کوم دین رالیږلی شوی یئ مونږه هغه دین بالکل نه منو﴿بِأَهْدَىٰ مِمَّا وَجَدتُّمْ عَلَيْهِ﴾**سوال** کیږی چه اهدیٰصیغه دَ اسم تفضیل ده،او اسم تفضیل دَ معنی مصدری په زیادتې باندې دلالت کوی په نسبت دَبل سره.نو دینه لازمیږی چه انبیاؤو دین اهدیٰاو دَ مخالفینو دین هدایت وؤ، حالانکه هغه خو سراسر ضلالت دې. **جواب**:دلته اسم تفضیل کښې معنی نسبتی ملحوظ نده، بلکه دا دَدعوت یو اندازدې چې مخاطب ته داسې کلام راوړلې شی،چه هغه ورسره ابتداءنه منتفر نشی او خبری ته لګ غوږکیږدی،نو مطلب دلته ترینه دا دې چه تاسو سوچ اوکئ که بالفرض والتقدیر څما دین اهدی او تاسو آباؤو دین هدایت وي نو انصاف تقاضه څه ده چې په کوم عمل اوکړې شي،چه جائیکه تاسوآباوؤ دین سراسر ضلالت دې!!!

﴿فَانتَقَمْنَا مِنْهُمْ﴾دا تخویف دنیوی دې اوپدیکښې تردید دې دَقول دَمشرکانو چه﴿وَقَالُوا لَوْ شَاءَ الرَّحْمَٰنُ﴾ یعنی دَالله دَشرک ندې خوښ څکه ئی مخکنی قومونوته عذابونه ورکړل،نوتاسوهم ورنه عبرت حاصل کړئ.

| وَإِذْ | قَالَ | إِبْرَاهِيمُ | لِأَبِيهِ | وَقَوْمِهِ | إِنَّنِي | بَرَاءٌ | مِّمَّا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

اوریادکړه هغه وخت چه اووې ابراهیم علیه السلام خپل پلارته اوقوم خپل ته چه بیشکه څه بیزاره یمه دَهغومعبودانونه چه

| تَعْبُدُونَ ﴿٢٦﴾ | إِلَّا | الَّذِي | فَطَرَنِي | فَإِنَّهُ | سَيَهْدِينِ ﴿٢٧﴾ | وَجَعَلَهَا |
|---|---|---|---|---|---|---|

تاسوئی عبادت کوئ مګردَهغه ذات نه چه څه ئی پیداکړې یم،نوبیشکه هغه ماته یقینا چې هدایت کوی.اوپرې ئی خودله دغه،

| كَلِمَةً | بَاقِيَةً | فِي | عَقِبِهِ | لَعَلَّهُمْ | يَرْجِعُونَ ﴿٢٨﴾ | بَلْ | مَتَّعْتُ | هَٰؤُلَاءِ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

کلمه باقی پاتې کیدونکی په خپل اولادکښې دَدې دپاره چه دوئ واپس شی دَشرک نه،بلکه مانفعه ورکړې ده دوئ ته

| وَآبَاءَهُمْ | حَتَّىٰ | جَاءَهُمُ | الْحَقُّ | وَرَسُولٌ | مُّبِينٌ ﴿٢٩﴾ | وَلَمَّا | جَاءَهُمُ | الْحَقُّ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

اومشرانو پلارانو دَدوئ ته حتی چه راغې دوئ ته حق(قرآن،توحید)اورسول بیانونکې،اوهرکله چه راغې دوئ ته حق

قَالُوْا هٰذَا سِحْرٌ وَّاِنَّا بِهٖ كٰفِرُوْنَ ۞

اوويل دوئ داجادودې، اومونږ پدې انکارکوؤ،

﴿ وَاِذْ قَالَ اِبْرٰهِيْمُ لِاَبِيْهِ وَقَوْمِهٖۤ ﴾ دادَ ماقبل سره متعلق دي او توحيد باندې اول دليل نقلي دې، يعني مشركينو ته ويلې كيږي چه تاسو دَ آباوؤ اتباع او تقليد نعرې وهئ نو دَ ابراهيم عليه السلام اتباع او تقليد اوكړئ ،هغه تاسو جد اعلى دې،ابراهيم عليه السلام پخپله هم دَتوحيدقائله وؤ او خپلو اولادته ئې هم دَتوحيدوصيت كړې وؤ(كمافي البقرة،ووصّى بهاابراهيم بنيه.....الخ) او دا رنگه ئې دَخپل گمراه اباؤاجدادونه اودَقوم نه برملادَبيزارئ اعلان كړې وؤچه﴿ اِنَّنِيْ بَرَآءٌ مِّمَّا تَعْبُدُوْنَ ﴾.

**فائده**:دَدې نه دامعلومه شوه چه دَاسلام اودَدلائل سماويه ؤپه مقابله كښې دَاباؤ اجدادو تقليدكول مذموم اوشرک اوگمراهي ده اودَسلف صالحينو(لكه شربيني،كبيروغيره په تفسيرونو)كښې چه دَدې آيت لاندې دكوم تقليدذم ذكردې نومرادورنه هم دغه تقليد دې، ليكن دَ ائمه مجتهدينوپه فتوؤباندې عمل كول چه دَادلهٔ اربعه ؤنه يعني چه په استنباط د نصوص باندې مبني دي،اودغه رنگه دَهغوئ تقليدكول چه دَمواردنصوص په تخصيص، تعميم، په احاديثوكښې صحيح،ضعيف پيژندل اوپه محاوراتودَعربواودَهغوئ په رسم رواج باندې ښه واقف وؤ ،داتقليدنه مذموم دې اونه پدې باندې دَشرک اوبدعت حكم جائزدې بلكه دا مقصود او مأجوردې.

﴿ اِلَّا الَّذِيْ فَطَرَنِيْ ﴾استثناء يامتصله ده ځكه چه مشركانوبه دَالله تعالىٰ عبادت هم كولو، او الله تعالىٰ ته به ئې هم معبودوئيلو،نومطلب داشوچه څه ستاسوپه معبودانوكښې صرف دَ هغه ذات عبادت كوم چه په حقيقت كښې دَعبادت لائق دې،يااستثناء منقطعه ده پمعنى دَ لكن سره بناء پدې چه دَ دوئ عبادت دالله تعالىٰ سره شرک نه په حكم دَ عدم كښې دې. او"س" په ﴿سَيَهْدِيْنِ﴾ كښې دَتاكيددَپاره دې نه دَاستقبال دَپاره،او"يهدينِ"پمعنى دَ(يثبتني على الهداية) سره دې.

﴿ وَجَعَلَهَا كَلِمَةًۢ بَاقِيَةً فِيْ عَقِبِهٖ ﴾"ها"ضميرراجع دې كلمات مذكوره اِنَّنِيْ بَرَآءٌ مِّمَّا تَعْبُدُوْنَ ته، چه كنايه ده دَ"لااله الاالله"نه،اوضمير دَ فاعل ياراجع دې ابراهيم عليه السلام ته،يعني ابراهيم عليه السلام دا كلمه دَ توحيدپه خپل اولادكښې باقي اوگرځوله يعني هغوئ ته ئې دَدې توحيدوصيت اوكړو، كما

مرّ، يا راجع دي الله ﷻ ته، يعنى الله دا كلمه دتوحيد دابراهيم علیه السلام په ذريت كښې باقي او ساتله چه ډيرپيغمبران ئې دده په نسل كښې پيدې كلمې سره مبعوث كړل ﴿لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ﴾ ضمير راجع دي اولاد د ابراهيم علیه السلام دا ماقبل د پاره علت دي، چي الله ﷻ دا كلمه باقي اوساتله ابراهيم علیه السلام په اولاد كښې، د دې پاره چې دوئ شرک نه بچ پاتې شي. ﴿يَرْجِعُونَ﴾ اى من الشرک الى التوحيد،

﴿بَلْ مَتَّعْتُ هَٰؤُلَاءِ وَآبَاءَهُمْ﴾ پديكښې د يو سوال جواب دي، چې هركله دحضرت ابراهيم علیه السلام په اولاد كښې الله ﷻ توحيد قائم اودائم اوساتلو يا الله ﷻ كلمه توحيد د ده اولاد كښې باقي اوساتله، اومقصود ترينه هم داوؤ چه دوئ شرک نه بچ شي، نو دا مشركينِ مكه خوهم دهغه په اولاد كښې دي نو دوئ ولې مشرک شول؟ آيا دتوحيد په باره كښې ددوئ په زړونو كښې څه شكوک و شبهات پاتې دي؟ نو جواب اوشو چه هيڅ شبه نه ده پاتې بلكه مونږه دوئ لره اودددوئ اباؤلره د دنيا په مال متاع سره مالامال كړل نو په عيش عشرت كښې محوه شول او دتوحيد نه منحرف شول، بل دپاره اضراب دى لعلهم يرجعون نه ((هَٰؤُلَاءِ)) نه مراد اهل مكه دى. ((حَتَّىٰ جَاءَهُمُ الْحَقُّ)) اى دعوة التوحيدوالقرآن، ﴿وَرَسُولٌ مُبِينٌ﴾ حضور اكرم ﷺ ورنه مراد دي،

﴿وَلَمَّا جَاءَهُمُ الْحَقُّ﴾ ديكښې د مشركينو ضد وعناد ذكر دي ، يعنى كله چه دوئ ته قرآن راغې .دپاره ددې چه دوئ ددې غفلت دخوب نه رابيدار كړي او توحيد طرف ته ئې رهنمائ اوكړي نو ﴿قَالُوا هَٰذَا سِحْرٌ﴾ عناداوضدئې ورسره اوكړو او سحر جادوئې ورته اووې، او انكار ئې ورنه اوكړو.

| وَقَالُوا لَوْلَا نُزِّلَ هَٰذَا الْقُرْآنُ عَلَىٰ رَجُلٍ مِنَ الْقَرْيَتَيْنِ عَظِيمٍ ﴿٣١﴾ أَهُمْ يَقْسِمُونَ |
|---|
| اوائی دوئ ولې نه دې نازل شوې دا قرآن په يو داسې سړي په دې دؤو كلو كښې چې لوئ وي. آيا دوئ تقسيموی |
| رَحْمَتَ رَبِّكَ ۚ نَحْنُ قَسَمْنَا بَيْنَهُمْ مَعِيشَتَهُمْ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا |
| رحمت نبوت د رب ستا، مونږ تقسيم كړيدې په مينځ ددوئ كښې معيشت ددوئ په ژوند د دنيا كښې |
| وَرَفَعْنَا بَعْضَهُمْ فَوْقَ بَعْضٍ دَرَجَاتٍ لِيَتَّخِذَ بَعْضُهُمْ بَعْضًا سُخْرِيًّا ۗ |
| او اوچت كړيدى مونږ ځنې ددوئ نه دپاسه د نورو په مرتبو كښې چه اونيسى بعضِ ددوئ نه بعضو لره خدمتگاران، |

| وَرَحْمَتُ | رَبِّكَ | خَيْرٌ | مِّمَّا | يَجْمَعُونَ | ٣٢ |
|---|---|---|---|---|---|
| اورحمت دَرب | ستابهتردي | دهغې نه | چه دوئ | ئې جمع | کوي، |

﴿وَقَالُوا لَوْلَا نُزِّلَ هَٰذَا الْقُرْآنُ﴾دا د مشرکینو ضد او عناد باندې مبني يو بل سوال بطور شکوي ذکر کيږي چه کله دَ قرآن حقانيت توحيد اثبات نبی کريم ﷺنبوت او شرک په رد باندې دوئ ته ناقبل انکار دلائل مخکښ ته راغلل نو دوئ حسد اوعناد شروع کړو او دا ئې اويل چه که خامخا دَ قرآنَ نزول دَالله ﷻ مقصود ووُنو دمکې يادَطائف په يومالداره کس باندې ئې ولې نه نازله ولو؟ ځکه چه عوام دَمالداراو رؤساؤو په نقش قدم باندې ځي،نودَدوئ په زعم کښ مالداری اومشری دَمقبوليت علامه ده، ﴿رَجُلٍ﴾ موصوف دې،او﴿عَظِيمٍ﴾ئې صفت دې اوپه﴿مِّنَ الْقَرْيَتَيْنِ﴾کښ مضاف مقدردې ای من احدی القريتين،نوعبارة دارنگه شو،علی رجل عظيم من احدی القريتين، او دَ قريتينونه مرادمکه اوطائف دی.

﴿أَهُمْ يَقْسِمُونَ رَحْمَتَ رَبِّكَ﴾دې ځائ نه دَ مشرکينو اعتراض دوه جوابونه ذکر کيږی،او دا اول جواب دې چه حاصل ئې دادې چه دوئ ته داحق ندې ملاؤچه ستادَرب نعمتونه بالخصوص دَ نبوت نعمت پخپلې مرضئ سره تقسيم کړی،بلکه داتقسيم کليةً دَالله ﷻ په مرضئ سره کيږي، ځکه چه الله ﷻ ته دَهرڅه علم اودَهرسړی په حالتوباندې واقف دې، نو دَ خپل عظيم مصلحتونو مطابق چه چاته اوغواړی دَنبوت تاج ورته ورپه سره وی. رحمت پمعنی دَنعمت دې، دلته ورنه مراددَتولونه لوئ نعمت دَنبوت دې،اواستفهام انکاری دې.

﴿نَحْنُ قَسَمْنَا بَيْنَهُم مَّعِيشَتَهُمْ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا﴾يعنی دَنبوت تقسيم خو،خود ستاسوپه مرضئ سره ندې شوې بلکه ستاسوپه مينځ کښ ستاسودَرزق اواسباب معيشت تقسيم هم زمونږپه مرضئ سره شويدې، نوچه يوادنی کارتاسوته ندې حواله نودَنبوت تقسيم په شان عظيم کار ځنگه تاسوته حواله دې،﴿وَرَفَعْنَا بَعْضَهُمْ فَوْقَ بَعْضٍ دَرَجَاتٍ﴾يعنی مونږدَخپل حکمت مطابق په درجاتو دَ انسانانو کښ، اودَدوئ په رزق کښ فرق اوتفاوت کړيدې،بعضِ قوی دی نوبعضِ ضعيف، بعضِ غنی نوبعضِ فقير،څوک خادم نوڅوک مخدوم،څوک حاکم نوڅوک محکوم.

﴿لِّيَتَّخِذَ بَعْضُهُم بَعْضًا سُخْرِيًّا﴾ سُخريا خدمتکارته وائی،منسوب دې سخرة ته پمعنی دَتذليل او ديکښ دَدې تفاوت او فرق وجه او حکمت بيانيږی ،يعنی په درجاتواورزق اوعقل وفهم

کښې مونږه داتفاوت ځکه کړیدې چه هراعلی دَادنی نه کارواخلی اوهریو په خپلې ذمه دارئ کښې مشغوله شی ،نودَالله ﷻ پدې حکمت بالغه سره دکائناتو نظام په احسن طریقې سره روان دې، ورنه کچرته ټول خلق ئې په منصب کښې،علم عقل کښې،اوپه نوروا سبابو کښې برابرکړې وې نو دَ دنیانظام به بربادشوې وې﴿وَرَحْمَتُ رَبِّكَ خَيْرٌ مِّمَّا يَجْمَعُونَ﴾مراد دَرحمة نه نبوت دې چې د دنیا یو ادنې منصب د دوئ په اختیار کښې نشته نو نبوت خو ډیر لوئ منصب دې دا به ځکه د دوئ په واک او اختیار کښې وې.

| وَلَوْلَآ اَنْ يَّكُوْنَ النَّاسُ اُمَّةً وَّاحِدَةً لَّجَعَلْنَا لِمَنْ يَّكْفُرُ |
|---|
| اوکه نه وې داخطره چه شی به اکثرخلق ډله یو«متفق په کفر»نوخامخابه مونږگرځولې وې دَهغه چاله چه کفرکوی |
| بِالرَّحْمٰنِ لِبُيُوْتِهِمْ سُقُفًا مِّنْ فِضَّةٍ وَّمَعَارِجَ عَلَيْهَا يَظْهَرُوْنَ ۝ |
| په رحمن ﷻ باندې،دَپاره دکورونودَهغوئ چتونه دَسپینوزرو اوپوړې هم« دَسپینوزرو»چه په هغې دوئ ختلې |
| وَلِبُيُوْتِهِمْ اَبْوَابًا وَّسُرُرًا عَلَيْهَا يَتَّكِـُٔوْنَ ۝ وَزُخْرُفًا ؕ |
| اودَپاره دکورونودَهغوئ دروازې«هم دَ سپینوزرو» اوکټونه هم چه په هغې دوئ تکیه وهی. او د سرو زرو «به موکړی وی.» |
| وَاِنْ كُلُّ ذٰلِكَ لَمَّا مَتَاعُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ؕ وَالْاٰخِرَةُ عِنْدَ رَبِّكَ لِلْمُتَّقِيْنَ ۝ |
| اوندی ټول داڅیزونه مگرمعمولی نفعه ده دَ ژوند دَ دُنیا،اوآخرت په نزد دَرب ستادَپاره دَپرهیزگارانودې |

﴿وَلَوْلَآ اَنْ يَّكُوْنَ النَّاسُ اُمَّةً وَّاحِدَةً﴾پدې کښې دَمشرکانودَاعتراض دویم جواب دې، او دَ دنیا دَ حقارت بیان دې حاصل ئې دادې چه مالداری دَنبوت دَپاره شرط نه ده ځکه چه دَالله ﷻ په نزد دنیاوی مال اودولت هیڅ قدراواهمیت نه لری اونه دَدنیوی مال اعطاء دَقرب اودَوجاهت عند الله دلیل دې،داخوداسې بې قدره اوحقیرڅیزدې چه کچرته داخطره نه وې چه اکثرخلق به کفر اختیار کړی نوالله ﷻ به دکافرانودکورنوچتونه،پوړئ،دروازې،پالنگونه اونوردکورسامان ټول به ئې دَسپینوزرو اودَسروزرو جوړکړی وې،نودَمسلمان دَحفاظت پوجه الله ﷻ کافرته دنیا نه ورکوی چه دکفرنه ئې حفاظت اوشی ورنه دَالله ﷻ په نزددنیاقدردَماشې دَ وزر برابر هم نه دې،کما فی الحدیث،لوکانت الدنیا تزنُ عندالله جناحَ بَعوضةٍ ماسقیٰ کافرمنها شربة ماءٍ

(ترمذی) دَ﴿أُمَّةً وَاحِدَةً﴾نه مراد امت کافره دي، ﴿لِبُيُوتِهِمْ﴾بدل اشتمال دي دَ﴿لِمَن يَكْفُرُ بِالرَّحْمَٰنِ﴾ نه، ﴿وَمَعَارِجَ﴾اى معارج من فضة، ﴿وَلِبُيُوتِهِمْ﴾تکرار دَ بیوتهم دَتاکید دپاره دي، ﴿أَبْوَابًا وَسُرُرًا﴾اى من فضة، ﴿عَلَيْهَا يَتَّكِئُونَ﴾ پدیکښې اشاره ده دیته چه هیڅ غم به ورسره نه وی بې غمه به ئې تکیه وهلی وی﴿ وَزُخْرُفًا﴾ مراد ترینه سره زر دی، او عطف دي په محل د ((من فضة)) أي: لجعلناه زخرفا اومنصوب بنزع الخافض دي او "من" تبعیضیه دي او دیکښې تنوع طرف ته اشاره ده یعنی بعضِ څیزونه دَسپینو اوبعضِ دَسروزرو، ځکه چه په تنوع کښې حُسن زیات ښکاره وی، زُخرف، په معنی دَزینت سره هم دي، کقوله تعالى حتى اذا اخذت الارض زخرفها و ازينت (يونس) نو معنی دا ده چه په هر څیز کښې به مو ورته زینت ورکړې ووُ.

﴿وَإِن كُلُّ ذَٰلِكَ لَمَّا مَتَاعُ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا﴾"ان"نافیه دي او "لما" په معنی دَالا سره دي، اى ماذلک الا متاع ، نو دادَماقبل ثمره اونتیجه ده، یعنی که دنیاتوله په توله چاته ملاؤشی نوبهرحال فانی ده، دَ دي وجه نه دانا قابل قدره اوحقیره ده﴿وَالْآخِرَةُ عِندَ رَبِّكَ﴾یعنی قابل قدر، قابل طلب صرف آخرت دي، اوهغه په تقوی یعنی ایمان او اطاعت سره حاصلیږي.

| وَمَن يَعْشُ عَن ذِكْرِ الرَّحْمَٰنِ نُقَيِّضْ لَهُ شَيْطَانًا فَهُوَ لَهُ قَرِينٌ ﴿٣٦﴾ |
|---|
| اوڅوک چه ځان ړوندکړی دَذکردَرحمن جل جلاله قرآن نه مونږمسلط کړوبه ده یوشیطان نوداشیطان دَده ملګري وی. |
| وَإِنَّهُمْ لَيَصُدُّونَهُمْ عَنِ السَّبِيلِ وَيَحْسَبُونَ أَنَّهُم مُّهْتَدُونَ ﴿٣٧﴾ حَتَّىٰ |
| اوبیشکه داشیطانان منع کوی دوئ لره دَسمې لارې نه او دوئ ګمان کوی داچه بیشکه په مونږ په سمې لاررروان یو. ترڅو پورې |
| إِذَا جَاءَنَا قَالَ يَا لَيْتَ بَيْنِي وَبَيْنَكَ بُعْدَ الْمَشْرِقَيْنِ فَبِئْسَ الْقَرِينُ ﴿٣٨﴾ |
| چه کله دوئ راشی مونږته وائی به ورته چه آفسوس ځما اوستاپه مینځ کښې لرې والي دَمشرق مغرب وې، پس ډیربد ملګرې ئې ته ، |
| وَلَن يَنفَعَكُمُ الْيَوْمَ إِذ ظَّلَمْتُمْ أَنَّكُمْ فِي الْعَذَابِ مُشْتَرِكُونَ ﴿٣٩﴾ |
| اوهرګزنفع نه درکوی تاسوته نن ورځ دَدې وجه نه چه ظلم کړیدې تاسو، داچه تاسوبه عذاب کښې شریک یئ. |

﴿ وَمَن يَعْشُ عَن ذِكْرِ الرَّحْمَٰنِ ﴾دازجرمع تخويف اخروى دي، يعنى څوک چې حق او هدايت دلائلو سره واضح كيدلو نه بعد هم دى نه محض حسد او عناد په بنياد اعراض كوى نو الله ﷻ دَ ده نه حق قبولولو تولې لاري بندكړې او شيطان ئې هم سفر شي تردې چې جهنم ته يې داخل كړي او بيا به ډير افسوس كوى او لاسونه به مروړى خو هيڅ نفع به ورته نه وركوى.

﴿يَعْشُ﴾عَشَى، يعشو باب نصر او عَشِيَ باب سمع داوړونه استعماليږى، سمع نه حقيقي ړوند والې او د شب كوړ په معنى كښې استعماليږي ،او نصر نه هغه وخت استعماليږي چې حقيقتا شب كور نه وي خو دَ هغوئ پشان طرز كوي او شي ته په غور سره نه گوري ، او دلته د"نصر" نه استعمال دي او دويمه معنى مراد ده، يعني څوک قرآن واوري او هغې كښې نظر تامل اونكړي بلكه اعراض ترينه اوكړي. ﴿ذِكْرِ الرَّحْمَٰنِ﴾قرآن ورنه مراددي، ﴿ نُقَيِّضْ لَهُ شَيْطَانًا ﴾ نقيضدَ قيض نه مشتق دي.قيض دَاگئ پوستكى ته ويلې كېږى،دې كښې اشاره ده چې څنگه دَ اگئ پوستكى دَاگئ نه چار چاپيره وى نو دغه شان مونږ به هم په دَه دَ هدايت لاري بندې كړو او مكمل دَ شيطان قابو كښې وركړو،هرطرف ته ، هر ځائ كښې او هر وخت به ده سره شيطان ملگرې وى، اونسبت دَتقييض الله ﷻ ته محض تكوينى مسبب الاسباب په حيثيت سره دې، كقوله تعالى:فلمّازاغوا ازاغ الله قلوبهم. ﴿فَهُوَ﴾ ضمير شيطان ته راجع دې﴿لَهُ ﴾ضميرانسان ته راجع دې،يابالعكس،

﴿ وَإِنَّهُمْ لَيَصُدُّونَهُمْ عَنِ السَّبِيلِ ﴾ د شيطانانو تسلط صورت ذكر كيږي چې شيطانان ورباندې دومره تسلط اوقبضه اوكړى چه گمراهى ورته هم هدايت ښكارى،د(( وَإِنَّهُمْ ))ضمير منصوب ((شَيْطَانًا))ته او د((لَيَصُدُّونَهُمْ)) ضمير منصوب ((من)) ته راجع دې په ((وَمَن يَعْشُ ))كښې ، او د ((من)) او ((شَيْطَانًا)) دواړو دوه دوه حيثيته دي ، لفظي حيثيت سره مفرد او معنوي حيثيت سره جمع دي ،نو مخكښني آيت ((فَهُوَ لَهُ قَرِينٌ))كښې او دغه شان ورستوني آيت (( حَتَّىٰ إِذَا جَاءَنَا ))كښې لفظي حيثيت اعتبار شوې دي نو ځكه صيغه دمفرد راوړلې شوې ده او او دې آيت كښې معنوي حيثيت اعتبار شوې دې او ((شَيْطَانًا)) جنس مراد دې نو دې اعتبار سره ورته ضمير دجمع راجع كړې شوې ذې.

﴿ حَتَّىٰٓ إِذَا جَآءَنَا ﴾دا دَ شيطان دوستئ انجام بيانيږي ، چې د دوئ دا دوستي صرف د دنيا حد پورې ده ، کله چې سترګې ئي پټې شي او حساب کتاب د پاره زمونږ دربار ته راشي نو بيا به په دوستئ پښيمانه شي ﴿بُعْدَ ٱلْمَشْرِقَيْنِ﴾ مشرقين تغليباً اويلې شويدی مرادورنه لرې والې دَمشرق اودَمغرب دې، ﴿فَبِئْسَ ٱلْقَرِينُ﴾مخصوص بالذّم محذوف دې اى، فبئس القرين انتَ

﴿ وَلَن يَنفَعَكُمُ ٱلْيَوْمَ ﴾دا جمله عطف ده په «قَالَ يَٰلَيْتَ بَيْنِي وَبَيْنَكَ » باندې ، اودينه مخکښې يقال لهم يوم القيامة مقدر دې، يعنې کله چې زمونږ دربار کښې حاضر شي نو ورته اوبه وئيلې شي چې تاسو ټول تابع او متبوع دواړه به جهنم کښې وي او په عذاب کښې اشتراک به درله هيڅ فائده درنکړي په تخفيف د عذاب کښې ، «أَنَّكُمْ فِى ٱلْعَذَابِ مُشْتَرِكُونَ »پوره جمله فاعل ده د « وَلَن يَنفَعَكُمُ » يعنې د دنيا قانون دا دې چې "مرګ انبوه جشنې باشد" د ټولو غم اختر وي ، خو دلته به داقانون نه چليږي او د جهنم عذاب کښې اشتراک به وجه به په تکليف کښې څه تخفيف نه راځي ، او«إِذ ظَّلَمْتُمْ» علت دې دَ « وَلَن يَنفَعَكُمُ » او "اذ" تعليليه دې ،

او دا هم کيدې شې چې « وَلَن يَنفَعَكُمُ » فاعل ضمير مستتر وي چې هغه راجع دې «قَالَ يَٰلَيْتَ بَيْنِي وَبَيْنَكَ » ته په تاويل د "القول المذكور" يا "الندم" سره ، «إِذ»ظرفيه دې ، د ماضي د پاره راځي خو دلته مطلق ظرف يا د حال دپاره دې ، او بدل دې د «ٱلْيَوْمَ» نه او«ظَّلَمْتُمْ » پوره جمله ورله مضاف اليه ده او مراد د«ظَّلَمْتُمْ» نه ثابت کيدل د ظلم دې يعنې دا تمناګانې او افسوسونه به درله هيڅ فائده نه درکوي نن ورځ کله چې ستاسو کفر او شرک الله ﷻ په دربار کښې ثابت شو «أَنَّكُمْ فِى ٱلْعَذَابِ مُشْتَرِكُونَ » دا علت دې د « وَلَن يَنفَعَكُمُ » او لام تعليليه دې نه مخکښې مقدر دې ، اي: لانكم في العذاب مشتركون، او«فِى ٱلْعَذَابِ »نه مرا د سبب د عذاب دې چې هغه کفر او شرک دې.

أَفَأَنتَ تُسْمِعُ ٱلصُّمَّ أَوْ تَهْدِى ٱلْعُمْىَ وَمَن كَانَ فِى ضَلَٰلٍ مُّبِينٍ ۝

آيانوته اې پيغمبره! اوروليهدايتکوليشې کونړوته ياته لاره ښودلې شېړوندوته اوهغه چاته چه وی په ګمراهۍ ښکاره کښې.

| فَإِمَّا نَذْهَبَنَّ بِكَ فَإِنَّا مِنْهُمْ مُنْتَقِمُونَ ﴿٤١﴾ أَوْ نُرِيَنَّكَ الَّذِي |
|---|
| پس كه چرې مونږ بوځو تا له نوبيشكه مونږ به دَدوئ نه بياهم انتقام اخلو.او ياا و ښايو تاته هغه عذاب |
| وَعَدْنَاهُمْ فَإِنَّا عَلَيْهِمْ مُقْتَدِرُونَ ﴿٤٢﴾ فَاسْتَمْسِكْ بِالَّذِي |
| چه وعده ئې كړيده مونږ دوئ سره، پس بيشكه مونږ په دوئ قادريو،پس خه كلك اونسيه ته هغه كتاب |
| أُوحِيَ إِلَيْكَ إِنَّكَ عَلَىٰ صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ ﴿٤٣﴾ وَإِنَّهُ لَذِكْرٌ لَكَ |
| چه وحى كړې شويدې تاته،بيشكه ته په لاره سمه باندې ئې.اوبيشكه داقرآن نصيحت دې ستادپاره |
| وَلِقَوْمِكَ وَسَوْفَ تُسْأَلُونَ ﴿٤٤﴾ وَسْئَلْ مَنْ أَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ |
| اودَقوم ستادپاره،اوزرده چه ستاسونه به تپوس اوكړيشي.اوتپوس اوكړه دَهغه چانه چه ليږلي وؤمونږمخكښې دَستانه |
| مِنْ رُسُلِنَا أَجَعَلْنَا مِنْ دُونِ الرَّحْمَٰنِ آلِهَةً يُعْبَدُونَ ﴿٤٥﴾ |
| درسولانوزمونږنه آياګرځولي دي مونږماسوئ دَ رحمن ﷻ نه نورمعبودان چه عبادت به ئې كوليشو. |

﴿أَفَأَنْتَ تُسْمِعُ الصُّمَّ﴾تسلى ده حضورﷺ ته،چه ځوک په زورځان كونړكړى يا ړوندكړى چه حق نه آورى اونه ئې وينى اواعراض كوى نوهغوئ ته هدايت كول ستاپه اختياركښې ندى،نوته داسې غم فكرمه كوه چه دوئ ايمان ولې نه راوړى،﴿فَإِمَّا نَذْهَبَنَّ بِكَ﴾ ماقبل تسلي سره متعلق دې ، يعني ته ئې پرواه مه كوه مونږ به ضرور د دوئ نه انتقام اخلو ستا په موجودګئ كښې وي او كه ته وفات شوې وې، او مونږ په دوئ خه قادر يو ، او الله ﷻ دواړه قسمه عذابونه مسلمانو ته اوخودل ، بدر وحنين واحزاب د نبي ﷺ په حيات كښې او يرموک و قادسيه وغيره د نبي ﷺ د وفات نه ورستو ، ((نَذْهَبَنَّ بِكَ)) اذهاب نه نه مراد وفات كول دي ،

﴿فَاسْتَمْسِكْ بِالَّذِي أُوحِيَ إِلَيْكَ﴾دليل وحى دې په توحيدچه اى پيغمبره استاكارهم دادې چه تاته كومه وحى راغلې ده اوچه دكوم ځيزحكم چه تاته شويدې په هغې باندې مضبوط اوكلک اوسيږه،اودمشركانودَاعراض پرواه مه كوه،مراددَ﴿فَاسْتَمْسِكْ﴾نه دوام دې په تمسک

باندې، ﴿بِالَّذِيٓ أُوحِيَ إِلَيۡكَ﴾ مرادورنه قرآن اوتوحيددې، ﴿إِنَّكَ عَلَىٰ صِرَٰطٖ مُّسۡتَقِيمٖ ۝٤٣﴾ تعليل دې دَ تمسک

﴿وَإِنَّهُۥ لَذِكۡرٞ لَّكَ وَلِقَوۡمِكَۖ﴾ اى لشرفٌ عظيمٌ ديکښې ترغيب دې وحي او دقرآن اتباع ته ، چې به دې باندې مضبوط او کلک اوسيږئ دا ستاسو دپاره د دنيا او آخرت عزت او شرافت ذريعه ده ، قوم نه مراد يا قريش دى يعنى دا قرآن ستااوستادَقوم دَپاره ډيرلوئ شرف اوعزت دې، ظاهره خبره ده چه دَدې نه به لوئ عزت اوشرافت څه وى چه دَالله ﷻ کلام، اودَټولې دنيا دَ نجات ابدى دستورالعمل دَدوئ په ژبه کښې نازل شو ،اودَدې مقدس کلام ړومبنى مخاطبين هم دوئ اوګرځيدل، يادقوم نه مرادامت اوآتباع دَنبى اکرم ﷺ دې چې د دى په اتباع او عمل سره دوئ ته د دنيا سيادت ميلاووې دې شي. ﴿وَسَوۡفَ تُسۡـَٔلُونَ﴾ يعنى په قيامت کښې به ستاسونه تپوس کيږى چه تاسودَدې لوئ نعمت څه قدرکړې وو؟اودغه رنګه دَدې په احکاماتوباندې موخومره عمل کړې وو

﴿وَسۡـَٔلۡ مَنۡ أَرۡسَلۡنَا مِن قَبۡلِكَ﴾ پديکښې استشهاددې په اجماع دَانبياؤکرامو په توحيدباندې يعنى دليل نقلى اجمالى ازانبياء سابقين دې په دعوى باندې،اوتنبيه ده پدې خبره باندې چه توحيد څه نوې څيزندې چه حضور ﷺ دَخان جوړکړيدې،اوتاسودَدې پوجه دَنبي اکرم ﷺ سره عداوت کوئ،بلکه الله ﷻ هرنبي ته دَتوحيدحکم کړيدې،اوهيڅ يونبي ته ئې دَشرک تعليم او اجازت ندې ورکړې چه ماسوى الله نه دې دَبل چاعبادت هم اوکړيشى،په آيت کښې دَ رسولانونه سوال کول(١) ياحقيقة دى لکه په قرطبى وغيره کښې دى چه دَمعراج په شپه چه حضور ﷺ تماموانبياؤته امامت اوکړونوحضرت جبرئيل عليه السلام ورته اووئيل "سل يا محمد من ارسلنا من قبلک..." فقال رسول الله ﷺ لاَاسأل قداکتفيتُ،اوپه يوروايت کښې دى چه حضور ﷺ ترينه سوال اوکړوچه"انّ ربّى اوحىٰ الىّ ان اسألکم هل اُرسل احدٌ منکم يدعوالى عبادة غير الله؟ فقالوا يا محمد، انا نشهد انا ارسلنا اجمعين بدعوةٍ واحدة انّ لااله الاّالله وانّ مايدعون من دونه باطل... (قرطبى)

(٢)ليکن چونکه دا روايات سنداًضعيف دى نودَدې وجه نه اکثرمفسرين فرمائى چه سوال کول حقيقة نه دى بلکه مجازا دى،نوپه عبارة کښې حذف دې،اى واسئل امم من ارسلنا....الخ يا

وسئل مومني اهل الكتاب اى اهل التوراة والانجيل (كبير وغيره) يعنى دَ انبياؤ سابقينو دَ امتونو او دَ اهل كتاب مؤمنانونه سوال اوكړه.

(۳) بعضِ وائى چه مراد دَسوال نه دَهغوئ په دين كښې نظركول او استدلال كول دى. (روح المعانى).

| وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا مُوْسٰى بِاٰيٰتِنَآ اِلٰى فِرْعَوْنَ وَمَلَاۡئِهٖ فَقَالَ |
|---|
| اوپه تحقيق سره ليږلي وو مونږ موسىٰ عليه السلام په معجزو خپلو سره فرعون ته اودَهغه سردارانوته، نواوويل موسىٰ عليه السلام |
| اِنِّیْ رَسُوْلُ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ ۞ فَلَمَّا جَآءَهُمْ بِاٰيٰتِنَآ اِذَا هُمْ |
| بيشكه څه رسول يم دَربّ العالمين. نوهركله چه راغې موسىٰ عليه السلام دوئ ته په معجزوزمونږسره، نودوئ به |
| مِّنْهَا يَضْحَكُوْنَ ۞ وَمَا نُرِيْهِمْ مِّنْ اٰيَةٍ اِلَّا هِیَ اَكْبَرُ مِنْ اُخْتِهَا ۫ وَاَخَذْنٰهُمْ |
| په هغې معجزاتوپورې خندل. اونه موښودله دوئ ته هيڅ معجزه مگرهغه به لويه وه د بلې (مخکنئ) نه . او اونيول مونږدوئ |
| بِالْعَذَابِ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ ۞ وَقَالُوْا يٰٓاَيُّهَ السّٰحِرُ ادْعُ لَنَا رَبَّكَ |
| په عذاب سره چه كيديشى دوئ راواپس شى دَشرک نه اوويل دوئ اې ساحره! سوال اوكړه زمونږ دپاره دَخپل رب نه |
| بِمَا عَهِدَ عِنْدَكَ ۚ اِنَّنَا لَمُهْتَدُوْنَ ۞ فَلَمَّا كَشَفْنَا عَنْهُمُ |
| په سبب دَهغه وعدې چه تاسره ئى كړيده بيشكه بيابه مونږخامخاهدايت قبول كړو. نوهركله چه لرې كړومونږدَدوئ نه |
| الْعَذَابَ اِذَا هُمْ يَنْكُثُوْنَ ۞ |
| عذاب نودوئ به ماته كړله وعده. |

﴿ وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا مُوْسٰى بِاٰيٰتِنَآ ﴾ دادويم دليل نقلى تفصيلى دې په دعوې باندې دَ موسى عليه السلام نه اودَمشركانودَشبهې "لولانزّل هذاالقرآن" سره متعلق دې چه حضرت موسىٰ عليه السلام ته الله ﷻ نبوت وركړې وؤحالانكه فرعون دَهغه نه زيات مالداره اوجابربادشاه وؤ، نودَدې نه دا خبره معلوميږى چه نبوت مالدارئ ته ندې محتاج، دارنگه پدې كښې تسلّى ده نبى اكرم ﷺ ته چه دا كفارمكه په تاسوباندې كوم اعتراض اوشبه كوى نودغه اعتراض فرعون په موسى عليه السلام

باندې هم کرې ووچه "اليس لي ملک مصر و هذه الانهار..." اودموسی علیه السلام باره کښې ئې اويل چه "هو مهين و لا يكاد يبين" نوفقيراوغريب سړې څرنګه ځماپه شان مالداره بادشاه ته رسول راليږلې شويدې، نوکفارهميشه پداسې رنګه ضعيفوشبهاتوسره استدلال کوی نولهذادې طرف ته التفات مه کوه، اولکه څرنګه چه دفرعونيانونه مونږه انتقام واخستواوغرق موکړل نو ستا دا اعداء به هم هلاک کړو، دموسی علیه السلام اودفرعون کومه واقعه چه دلته ذکرده نوپه تفصيل سره په سورة اعراف وغيره کښې ذکرشويده نودلته ئې ذکرلوته حاجت نشته دې.

﴿وَمَا نُرِيهِم مِّنْ آيَةٍ﴾ مراددَدينه هغه تسع ايات بينات چه په سورة اسراء آيت(۱۰۱)کښې تير شويدی﴿إِلَّا هِيَ أَكْبَرُ مِنْ أُخْتِهَا﴾اى من أختها السابقة عليها(روح المعاني)يعنی هره معجزه به دَ مخکښې معجزې نه لويه وه، ياپديکښې دهرې معجزې لوئ والې مقصوددې، لکه څرنګه چه په محاوره کښې هم چه دډيروڅيزونوکمال بيانيږی نودَ يوبل نه ښه دې، ويلې کيږی، ﴿وَأَخَذْنَاهُم بِالْعَذَابِ﴾ مراددعذاب نه قحط، طوفان وغيرذالک دی چه په سورة اعراف(۱۳۳)کښې مذکور دی، و لقد اخذنا آل فرعون بالسنين...الخ.﴿لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ﴾يعنی داعذابونه مې وربانديې ځکه راوستل چه دکفراوشرک نه راواپس شی اوتوبه اوکړی، ليکن دوئ راواپس نه شول،

نوچه په عذاب کښې مبتلاشول نوبيائی موسی علیه السلام ته فرياد کولوچه﴿وَقَالُوا يَا أَيُّهَ السَّاحِرُ﴾ ساحر ئې يا ادبًا او تعظيما وئيلی دی، ځکه چه ددوئ په محاوراتوکښې دالفظ مذموم نه وو بلکه لوئ عالم ته به ئې ساحرويل، ځکه چه ددوئ په نزدسحرلوئ علم وو، يائی توهينا او استهزاءً وئيلې دې دوجه دخبث باطن نه چه ګوياکه مونږتراوسه پورې تاته نبی نه وايوبلکه تا يو ماهر ساحر ګنړو. ﴿ادْعُ لَنَا رَبَّكَ﴾يعنی زمونږدپاره دخپل رب نه دعااوغواړه چه زمونږنه عذاب لرې کړې، ﴿بِمَا عَهِدَ عِندَكَ﴾دعهدنه مراد(۱)نبوت دې، اى بعهده عندک من النبوة، يعنی دخپل نبوت په وسيلې دعا اوکړه (۲)ياورنه مراد دَ دُعا قبولو عهد دې يعنی الله تعالی تاسوسره دَ دعا قبولو عهدکريدې نوزمونږدپاره ورنه دعااوغواړه، (روح المعاني).(۳)ياورنه مرادطريقه دَدعاده، يعنی په هغه طريقه دعااوغواړه چه کومه تاته رب ستا ښودلې ده. ﴿إِنَّنَا لَمُهْتَدُونَ﴾يعنی کچرته زمونږنه داعذاب لرې کړيشی نومونږبه خامخاهدايت قبول کړواوايمان به راوړو.

﴿فَلَمَّا كَشَفْنَا عَنْهُمُ الْعَذَابَ﴾يعنی چه دَموسی علیه السلام په دعاسره به ورنه عذاب لرې کړی شو نو بيا به دوئ خپله وعده ماته کړله.

| |
|---|
| وَنَادٰى فِرْعَوْنُ فِیْ قَوْمِهٖ قَالَ يٰقَوْمِ اَلَيْسَ لِیْ مُلْكُ مِصْرَ وَهٰذِهِ الْاَنْهٰرُ |
| اوآواز اوکړوفرعون په قوم خپل کښې وئ ویل اې قومه ځما! آیانده زما په قبضه کښې بادشاهي دمصراودانهرونه |
| تَجْرِیْ مِنْ تَحْتِیْ ۚ اَفَلَا تُبْصِرُوْنَ ﴿۵۱﴾ اَمْ اَنَا خَيْرٌ مِّنْ هٰذَا الَّذِیْ هُوَ مَهِيْنٌ ۙ |
| بهیږي ځما دلاندې، آیاتاسو نه وینئ (قوت ځما) بلکه څه بهتریم د دې سړي (موسی علیه السلام) نه چه دې خوارېي قدره دې، |
| وَّلَا يَكَادُ يُبِيْنُ ﴿۵۲﴾ فَلَوْلَآ اُلْقِیَ عَلَيْهِ اَسْوِرَةٌ مِّنْ ذَهَبٍ اَوْ جَآءَ مَعَهُ |
| اونه لري طاقت چه بیان اوکړي، پس ولې نه دي اچولې شوي په ده باندې بنګړي د سروزرو اویاولې ندي راغلی د ده سره |
| الْمَلٰٓئِكَةُ مُقْتَرِنِيْنَ ﴿۵۳﴾ فَاسْتَخَفَّ قَوْمَهٗ فَاَطَاعُوْهُ ؕ اِنَّهُمْ كَانُوْا قَوْمًا فٰسِقِيْنَ ﴿۵۴﴾ |
| فرشتې صف تړلې.پس بې عقله ئې اوموندوقوم خپل نوهغوئ اطاعت اوکړو د ده ، بیشکه دوئ ووقوم فاسقان |
| فَلَمَّآ اٰسَفُوْنَا انْتَقَمْنَا مِنْهُمْ فَاَغْرَقْنٰهُمْ اَجْمَعِيْنَ ﴿۵۵﴾ فَجَعَلْنٰهُمْ |
| پس هرکله چه ئې غصه کړومونږ،نوانتقام واخستومونږ د دوئ نه نومونږغرق کړل دوئ ټول نو اوګرځول مونږ دوئ |
| سَلَفًا وَّمَثَلًا لِّلْاٰخِرِيْنَ ﴿۵۶﴾ |
| پیشوایان اونمونه دعبرت دپاره دورستنو. |

﴿وَنَادٰى فِرْعَوْنُ فِیْ قَوْمِهٖ﴾ په دې کښې دفرعون دغرور او استکبار بیان دې،فرعون چه اولیدل چه بار بار د موسی علیه السلام په دعا سره عذاب دفع کیږي نو خطره ورسره پیدا شوه چه د ده دقوم په زړونو کښې دموسی علیه السلام عظمت پیدا نشي او ایمان ورباندې رانه وړي،نو دخپل سلطنت او اقتدار نه د مرعوب کولو او موسي علیه السلام نبوت مشکوکه کولو دپاره ئې درې اعتراضه په موسي علیه السلام اوکړو﴿ اَلَيْسَ لِیْ مُلْكُ مِصْرَ ﴾ دا اول اعتراض دې چې دنیا کر وفر ماسره دې ، نهرونه ځما ماتحت چلیږي ، نو ځما موجودګئ کښې څنګه کیدیشي چې دې دې نبي وي ؟ او د دومره سامانونو او وسائلو د موجودیت باوجود او زمونږ د دغه حیثیت سره دانه ده مناسبه چه دموسی علیه السلام په شان د یو معمولي حیثیت والاسړي ته تسلیم شو او ایمان پرې راوړو۔ کیدیشي چه فرعون پخپله په قوم کښې دغه اوازکړې وی،اودا هم کیدیشی چه اسناد

دَ ندا فرعون ته مجاز أشوي وي ، مراد ورنه امركول دي په نداء. ﴿وَهَٰذِهِ الْأَنْهَارُ﴾ دَ دينه مراد هغه څلور نهرونه دي چه دَدريائي نيل نه جدا كړي شوي وو. (۱) نهر الملک (۲) نهر دمياط (۳) نهر تنيس (۴) نهر طولون ﴿تَجْرِي مِن تَحْتِي﴾ اى تحت قصرى، يا من تحت امرى، يعنى څما دَ احكامو مطابق بهيږي

﴿أَمْ أَنَا خَيْرٌ﴾ "ام" پمعنى دَ "بل" سره دې اى بل انا خيرٌ، اوبعض استفهاميه ګرځولې دې، ﴿الَّذِي هُوَ مَهِينٌ﴾ فقيرضعيف الحال، خواربې قدره دې، ﴿وَلَا يَكَادُ يُبِينُ﴾ پديكښې اشاره ده دَموسى عليه السلام دَ ژبې لکنت ته لکه په سورة طه کښې تيرده، اودغه لکنت اګرچه الله تعالى دَموسى عليه السلام په دعا "و احلل عقدة من لسانى" سره ختم كړې وو ليكن فرعون ور باندې دَ مخكنى وخت په بناء عيب او لګولو.

﴿فَلَوْلَا أُلْقِيَ عَلَيْهِ أَسْوِرَةٌ مِّن ذَهَبٍ﴾ اسورة جمع دَسوارده سروزرو بنګړى ته وائى ، دا ئې **دويم اعتراض دې** ، پخوا دا رواج ووچه كوم سړې بادشاه، سردار، يا مشر به ئې جوړ وو نو هغه ته به ئې سروزرو بنګړى واچول ،نو فرعون په موسى عليه السلام دا اعتراض كوى كه چرته دې پيغمبر وې او دومره عظيم منصب ورته ميلاووى نو بيا ورته بنګړى ولې ندى اچولى شوي. او يا كنايه ده مالک كيدلو دَسروزرونه، يعنى دې دَسروزرومالک ولې ندې يعنى مالداره ولې ندې څکه چه پيغمبرخومالداره وى، لکه څنګه چه كفارمكه ؤهم دا اعتراض كولو

﴿جَاءَ مَعَهُ الْمَلَائِكَةُ﴾ دا **دريم اعتراض دې**، چې كچرته دې واقعي دالله تعالى نبي او پيغمبر وې نو ده سره به څنګ کښې اخوا ديخوا ملائک روان وې ، قتاده رحمه الله دَ ﴿مُقْتَرِنِينَ﴾ معنى "متابعين" كوى، نوداهم كنايه ده دَمعاونت اوامدادنه يعنى دَ ده سره ملائكه بطور "بادى ګاډ" ولې نه ګرځى، چه څوک ورته نقصان اونه رسوى.

﴿فَاسْتَخَفَّ قَوْمَهُ فَأَطَاعُوهُ﴾ استخف صيغه د باب استفعال ده، (۱) او ديكښې ياخاصه دَ "وجدان" دې نو دې صورت كښې به معنى دا وي: وجدهم خفيفة أحلامهم يعنى خپل قوم يې بې وقوف اومند. (۲) يا پكښې خاصه دَاتخاذ ده، او پدې صورت كښې به دا معنى وي: خپل قوم نه ئې بيوقوف جوړ كړو ، بقول والد حضرت شيخ به ئې داسې ترجمه كوله: "پس بے وقوف بنا ليا اپنے قوم كو" يعني پدغه دروغو نعرو سره ئې خپل قوم بې وقوفه اوغلط كړو نو هغوئ تابعداري اوكړه. لکه نن صبا سياسي فرعونيانو طرز دې، (۳) يا پكښې خاصه دَ طلب ده ، دې صورت كښې معنى

به داوی: طلب منهم الخفة:أي السرعة يعنی هغوی نه ئي خپل اطاعت او فرمانبرداری کښې جلدي طلب کړه،چه زر خما اتباع اوکړئ.

﴿فَلَمَّآ ءَاسَفُونَا﴾ دا دنتقام الهي بيان دې ، ((ءَاسَفُونَا))پمعنی دَ"اغضبونا"سره دې،اوغضب مجاز دې دَ ارادې دَعقوبة نه،يعنی کله چه هغوئ داسې کارونه اوکړل چه په هغې سره عادتًا سړې په غضب کښې کيږی نو الله وربانديږ عذاب راوستلو اوټول ئی غرق کړل

﴿فَجَعَلْنَٰهُمْ سَلَفًا﴾حضرت ابن عباس رضي الله عنه اوقتاده رحمه الله دَ((سَلَفًا)) معنی "متقدمين الى النار" کوی(٢) خنې نور مفسرين دَ((سَلَفًا)) معنی"قدوةً للکفارالذين بعدهم"کوی يعنی دَدوئ اقتداء کونکوته به هم دغه شان عذاب ملاويږی(٣)اوځوک ئی اخبارًا لامة محمد ﷺ کوی، اودَ﴿وَمَثَلًا لِّلْءَاخِرِينَ﴾ معنی:(١) عبرة لهم کوی(٢)او بعض ئي معنی عظةً لمن ياتي بعدهم،کوی ، يعنی ورستو راتلونکو دَ پاره وعظ دې پکښې، (٣)او بعض ورنه قصه عجيبه مرادکوی ، يعنی ورستو راتلونکو نورو نسلونو ته دَدوئ قصه دَيوې عبرتناکې واقعې اونمونې په شان بيانيږی (روح المعانی).

وَلَمَّا ضُرِبَ ابْنُ مَرْيَمَ مَثَلًا إِذَا قَوْمُكَ مِنْهُ يَصِدُّونَ ۝ وَقَالُوٓا۟ ءَأَٰلِهَتُنَا

اوکله چه بيان شی ابن مريم په مثال کښې نوبياقوم ستادَهغې نه چغې اُوباسی اودوئ وائی چه آيامعبودان زمونږ

خَيْرٌ أَمْ هُوَ ۚ مَا ضَرَبُوهُ لَكَ إِلَّا جَدَلًۢا ۚ بَلْ هُمْ قَوْمٌ خَصِمُونَ ۝

ښه دی اوکه عيسیٰ،نه بيانوی دوئ دامثال تاته مګردَپاره دَجګړې،بلکه دوئ قوم دې جګړې کونکی.

إِنْ هُوَ إِلَّا عَبْدٌ أَنْعَمْنَا عَلَيْهِ وَجَعَلْنَٰهُ مَثَلًا لِّبَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ ۝

نه دې داعيسیٰ عليه السلام مګريوبنده دې چه انعام کړې مونږپه هغه اوګرځولې مو وو دې نمونه دَخپل قدرت دَپاره دَبنی اسرائيلو.

وَلَوْ نَشَآءُ لَجَعَلْنَا مِنكُم مَّلَٰٓئِكَةً فِى ٱلْأَرْضِ يَخْلُفُونَ ۝ وَإِنَّهُۥ

اوکچرته مونږغوښتلی نوګرځولی به موونږستاسو په بدل کښې فرښتې په زمکه کښې چه خلافت به ئي کولی.اوبيشکه عيسیٰ عليه السلام

لَعِلْمٌ لِّلسَّاعَةِ فَلَا تَمْتَرُنَّ بِهَا وَٱتَّبِعُونِ ۚ هَٰذَا صِرَٰطٌ مُّسْتَقِيمٌ ۝

دليل دې دَقيامت نومه کوئ تاسوشک په راتلودَقيامت کښې اوخمااتباع اوکړئ،دالاره ده سمه

وَلَا يَصُدَّنَّكُمُ الشَّيْطٰنُ ۚ إِنَّهٗ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ ﴿٦٢﴾

ارمنع دې نه کړي تاسولره شيطان، دَدې سمی لارې نه بيشکه داشيطان ستاسودشمن دې ښکاره.

﴿وَلَمَّا ضُرِبَ ابْنُ مَرْيَمَ مَثَلًا﴾ دلته نه دَ **سورت دريمه حصه** ذکر کيږي او دَحضرت عيسی عليه السلام تذکره کيږي، دا دريم دليل نقلي تفصيلی دې په دعوې باندې او دې په ضمن کښې نفی دَ نائب کيږي بصورت ولد مذکر، يعنی حضرت عيسي عليه السلام د الله تعالیٰ خوې نه دې بلکه معزز بنده او پيغمبر وو چې بني اسرائيل ئي توحيد طرف ته رابللو. دَدې آيتونو څلور تفسيرونه شويدي:

**اول تفسير**: دَ آيتونه د عبد الله بن زبعری اعتراض او مجادلی په تناظر کښې نازل شويدی، روايت کښې راغلی دی چه رسول الله ﷺ دا آيت تلاوت کړوچه "انکم وماتعبدون من دون الله حصب جهنم" (انبياء: ۹۸) يعنی بيشکه اې مشرکانو تاسو او ستاسو من دون الله معبودان دَجهنم خشاک يئ داخليږئ به ورته، نو ابن الزبعری اعتراض او کړوچه عيسی عليه السلام خو هم معبود ګرځولې شويدې نو آيا هغه به هم جهنم ته ځی (معاذالله) نو کچرې عيسی عليه السلام په جهنم کښې وی نو زمونږ معبودان او مونږ دې هم ورسره يو په جهنم کښې ، مونږ په دې راضی يو، نو مشرکانو چه دا واورېدلو نو ډير خوشحاله شو ، چغې اوشور شغب ئی جوړکړو، دامعنی ده دَدې قول ﴿إِذَا قَوْمُكَ مِنْهُ يَصِدُّونَ﴾ نو دَدې په جواب کښې الله تعالیٰ يو خو دا آيت نازل کړوچه "انّ الذين سبقت لهم (انبياء: ۱۰۱) يعني دَ دينه مراد بتان دَ دوئ دی ،دَدې مکمل تفصيل سورت الانبياء کښې ان الذين سبقت لاندی ملاحظه کړئ. ﴿وَقَالُوا ءَأٰلِهَتُنَا خَيْرٌ أَمْ هُوَ﴾ دا الزام دې د مشرکينو ، ضمير دَ "هو" راجع دې عيسی عليه السلام ته، يعنی ظاهره ده چه ستاپه نزد عيسی عليه السلام بهتردې، نو چه هغه به په جهنم کښې وی (معاذ الله) نو پرواه نشته پدې چه زمونږ معبودان او مونږ هم پکښې يوو.

**دويم تفسير**: بعض رواياتو کښې راغلی دی چه يوورځ نبی کريم ﷺ قريشو ته اوې: الله ليس احد يعبد من دون الله فيه خير چه الله تعالیٰ نه ماسوادَ چاهم عبادت کيږی هغه کښې هيڅ خير نشته، نو مشرکينو په دې شور جوړکړو او اوئي ويل: چې بيا خو د عيسی عليه السلام هم عبادت کيدلو، ظاهره خبره ده چې هغه زمونږ بتانونه بهتر وو . چې هغه کښې خير نشته نو هيڅ پرواه نشته چې زمونږ مونږ اله کښې نوی،

**دریم تفسیر**: دَ دې نه مراد ان مثل عیسی عندالله کمثل أدم دي،چه مشرکینو کله دا آیت واوریدلو نو چغې او شور ئې جوړ کړو چه أالهتنا خیرأم هویعني مونږ دَ عیسایانونه زیات غوره یو ځکه چې زمونږآلهة دهغوئ آلهة نه بهتر دي،مونږ د فرشتو عبادت کوو ،او هغوئ دَ انسان یعني عیسي علیه السلام.لهذا چي عیسی علیه السلام معبود جوړیدې شي نوفرشتې بطریق اولی معبود جوړیدې شي.

**څلورم تفسیر**:حضرت شاه ولی الله فرمائي چه دا دَ یوی شبهې جواب دې چه ماقبل ((واسئل)) نه پیدا کیږي.چه د الله ﷻ نه ماسوا بل څوک معبود جوړولواو دشرک کولو اجازت هیڅ مذهب کښې نشته نو مشرکینو چه کله دا واریدو نو شورئې جوړ کړو،چه څنګه نشته، نصاری عیسي علیه السلام معبود کرځولي وو،هغوئ عیسي علیه السلام معبود ګرځولي وو نو مونږ فرشتې معبودان ګرځول زیات غوره دی دَعیسی علیه السلام نه ،بهر حال دی تولو تفسیر خلاصه او قدر مشترک دادی چه (۱)دلته مشرکینو یو شبه او اعتراض ذکر کیږي ،(۲)اعتراض هدف عیسی علیه السلام دي (۳)اودَعیسی علیه السلام معبودیت نه خپل آلهؤو معبودیت باندې استدلال کوی.

﴿مَثَلًا﴾ دریم تفسیر مطابق خپلې حقیقي معنی یعني مثال کښې دې ، نورو توجیهاتو مطابق دې نه مراد مشبه به دې ، ځکه چې دوئ حضرت عیسي علیه السلام د خپلو الهؤو د پاره بطور تشبیه پیش کړې دې ،

﴿مَا ضَرَبُوهُ لَكَ إِلَّا جَدَلًا﴾ دلته نه الله ﷻ مشرکینو اعتراض او شبهې دو جوابونه ذکر کوی، یو اجمالا بل تفصیلاً، دا دَ مذکورې شبهې اجمالی جواب دې،چې مشرکین دا اعتراض څه د حق احقاق او اظهار د پاره نه کوي بلکه صرف بحث مباحثه او بل خاموشه کول غواړي ، ((جدال)) دیته وائي چې سوال جواب نه مقصد صرف بحث مباحثه او خپله غلبه وي ، احقاق د حق او ابطال د باطل نه وي مقصود ((بَلْ هُمْ قَوْمٌ خَصِمُونَ)) دیکښې ترقي ده د مشرکینو د حالت چې جدال ئې پریکده، دوئ خصم او جهګړماران دي ، خه ورته پته ده چې مونږ په ناحق یو خو بیا هم خپله دفاع کوي ، د((خصام)) مطلب دادې چه جګړه کونکې پدې پوهیږی چه څه په ناحقه یم ،او ما سره هیڅ دلیل نشته دې، محض دَخپلې خبرې پوره کولودَپاره بحث او تکرار کوی ، (التحریر والتنویر) نودوئ ته هم معلومه وه چه عیسی علیه السلام خپل قوم دَشرک نه منع کړي وو،کقوله تعالی:(( وقال المسیحُ یٰبنی اسرائیلَ اعبدوا الله ربّی و ربّکم انه من یّشرک بالله فقد حرّم الله

عليه الجنة» او دغه رنګه دلته هم فرمائی چه﴿إِنَّ اللَّهَ هُوَ رَبِّي وَرَبُّكُمْ فَاعْبُدُوهُ﴾نو عيسى عليه السلام دَخپلې بيزارئ اعلان پوجه په نوروباطلو معبودانوکښ ندې شمار،اونه پدې سره دَشرک په جوازباندې استدلال صحيح دې.

﴿إِنْ هُوَ إِلَّا عَبْدٌ أَنْعَمْنَا عَلَيْهِ﴾ دادَمذكورې شبهې تفصيلې جواب دې چې عيسى عليه السلام دَ الله تعالى معزز او انعام يافته بنده وۆ.ليكن بنى اسرائيلو كښ دَ ده معامله او امر يوڅو اعتبار سره عجيب وۆ: (۱)پيدائش اعتبار سره، چه بغيرده پلار نه پيدا شوې وۆ،(۲)ورکوالئ کښې خبرې کول. (۳)خلاف عادت زر زرلوئيدل.(۴)مادر زاد ړاندو ته بينائي ورکول او برص بيماران خه کول، ليکن دا تعجب خيز خلقت او احوال دَده په معبوديت باندې خو دلالت نه کوی بلکه دا خو د الله تعالى قدرت باهره باندې دلالت کوی،لهذا دې نه ابن الله او معبود کيديشې څکه چه بنده او مخلوق دې او نه معذب کيديشى څکه چه دَ الله تعالى انعام يافته او نبى دې نو ديکښ نفى دَ نائب بصورت ولد مذکر اوشو. ﴿أَنْعَمْنَا عَلَيْهِ﴾ انعام نه مراد نبوت دې يعنى نبوت موورته ورکړې وۆ،اوچاته چه الله تعالى نبوت ورکړی نوهغه جهنمى نه وی،﴿وَجَعَلْنَاهُ مَثَلًا﴾مثلاً بمعنى دَ آية و امرا عجيبا يستدلّ بها على قدرة الله تعالى،دې يعنى عيسى عليه السلام زمونږ په قدرت اومعبودوالى باندې د بني اسرائيلو د پاره نشانى وه.

﴿وَلَوْ نَشَاءُ لَجَعَلْنَا مِنكُم مَّلَائِكَةً﴾د دې آيت دوه توجيه کيديشي:

(۱)يو داچې دا تخويف دينوى دې او الله تعالى فرمائى چه كچرته مونږ او غواړو نو تاسو به هلاک کړو،او تاسو بدله کښ فرشتى راولو.دزمکى خلافت به ستاسو نه واخلم او هغوئ ته به ورکړم او هغوئ به څما اطاعت او فرمانبردارى کوى،دې صورت کښ «مِنكُم» کښ «مِن» دَ بدل دَپاره دې. أي:بدلكم، لكه په بل آيت کښ هم د بدل د پاره راغلې دې:ارضيتم بالحيوة الدنيا من الاخرة

(۲)دويم دا چې دا نفي د نائب ده په صورت د ولد مذکر او رد دې په هغه خلقو چې هغوئ د عيسى عليه السلام عجيب وغريب خلقت او احوالو نه ئي د هغه په معبوديت او ابنيت استدلال کولو، چې دا خو زمونګ دَ قدرت محض يو مظهر وو که مونږ او غواړو نو دينه عجيب و غريب امر باندې هم قادر يو چه تاسو نه فرشتې پيدا کړو،او تاسو نسل د فرشتو شي. ليکن که هر څومره عجيب امر وي خوبيا هم دَ الله تعالى مخلوق وی،او مخلوق معبود

نشي كيدى. ﴿ لَجَعَلْنَا مِنكُم ﴾اي:لولدنا منكم ملائكة يعنى تاسو نسل كښې به فرشتې پيدا كړو،او دا هم كيديشى «لَجَعَلْنَا» په معنى د «حوّلنا» سره شي، او«مِنكُم» كښې "مِنْ" ابتدائيه ياتبعيضيه شي، يعني بعينه تاسو ټولو يا څه خلقو نه فرشتې جوړې كړم او نسل در نسل داسې روان وئ.

﴿وَإِنَّهُ لَعِلْمٌ لِّلسَّاعَةِ ﴾يعنى عيسى عليه السلام بغيرد پلاره پيداكيدل دليل دې په ثبوت دَ قيامت، پدې شان سره چه په قيامت كښې دوباره پيداكيدل خلاف عادت دى اودَعيسى عليه السلام دَ بغير پلاره پيداكولونه داثابته شوه چه الله تعالى په خلاف عادت كارونوپه صادره كولوباندې قادر دې،

په يوقرأت كښې "وانّه لعَلَمٌ" راغلي دې نوبيامطلب دادې چه دَعيسى عليه السلام دوباره دَاسمان نه نازليدل دَقيامت آخرى نشانه ده،دَده دَنزول نه به خلق معلوم كړى چه قيامت بالكل نژدې را رسيدلې دې،چنانچه دَ صحيح اومتواترواحاديثونه دا ثابته ده،﴿فَلَا تَمْتَرُنَّ بِهَا ﴾ اى فى وقوعها ﴿وَاتَّبِعُونِ ﴾دا امر يادَالله تعالى دَطرفه دې،يعنى الله تعالى فرمائى چه څمادَرسولانو اتباع اوكړئ دا صحيح لاره ده اودَشيطان اتباع مه كوئ چه هغه ستاسودشمن دې،ياپه تقدير دَ "قل" سره امر دې دَ نبى اكرم ﷺ دَطرفه،﴿هَٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيمٌ﴾مشاراليه دعوت دَتوحيداوقرآن دې.

| وَلَمَّا جَاءَ عِيسَىٰ بِالْبَيِّنَاتِ قَالَ قَدْ جِئْتُكُم بِالْحِكْمَةِ |
|---|
| اوهركله چه راغې عيسى عليه السلام په واضحه معجزوسره،وئى ويل چه بيشكه څه راغلي يم تاسوته په حكمت(انجيل)سره |
| وَلِأُبَيِّنَ لَكُم بَعْضَ الَّذِي تَخْتَلِفُونَ فِيهِ فَاتَّقُوا اللَّهَ |
| اوچه بيان كړم تاسوته بعضِ هغه احكامات دَتورات چه اختلاف كوئ تاسوپه هغې كښې،نواوېريږئ دَالله تعالى نه |
| وَأَطِيعُونِ ۝ إِنَّ اللَّهَ هُوَ رَبِّي وَرَبُّكُمْ فَاعْبُدُوهُ ۚ هَٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيمٌ ۝ |
| اوځماطاعت اوكړئ بيشكه الله تعالى صرف هغه رب ځمااورب ستاسودې نودَهغه عبادت كوئ،دالاره ده سمه |

﴿ وَلَمَّا جَاءَ عِيسَىٰ بِالْبَيِّنَاتِ ﴾دا دليل نقلى تفصيلى دې په توحيد،ازعيسى عليه السلام،چه عيسى عليه السلام هم خپل قوم ته دَتوحيدتعليم وركړې وؤاوتوحيدته ئې صراط مستقيم وئيلى دى ﴿ بِالْبَيِّنَاتِ ﴾معجزات لكه احياء الموتى،ابراء الاكمه،مائده وغيره ورنه مراددى،اودَ« بِالْحِكْمَةِ» نه

مراد انجيل او نبوت دې، یاورنه مرادمواعظ دی، ﴿وَلِأُبَيِّنَ لَكُم﴾ متعلق دې په مقدرپورې ای و جئتكم لابيّن لكم، ﴿بَعْضَ الَّذِي تَخْتَلِفُونَ فِيهِ﴾ مراد دبعض الّذی نه(۱) هغه احکام شرعیه دتورات دی چه دوئ پکښې تحریف کړې وو، لکه څرنګه چه بعض احبارودبعضو اشیاؤحرمت دڅان نه کړې وو، نوعیسی علیه السلام دهغې حرمت رداوکړو(۲) یاورنه مراد امورمکلفه دی څکه چه خالص دنیاوی امورودپاره انبیاؤعلیهم السّلام نه مبعوث کیږی(۳) چاویلی دی چه داپشان ددی قول د الله تعالیٰ: ولاحلّ لکم بعض الذی حرّم علیکم(آل عمران: ۵۰) دې، یعنی مرادورنه نسخ دحرمت د هغه بعض اشیاؤده چه په بنی اسرائیلوحرام شوی وو، لکه لحم الابل، وازګه د هر حیوان، وغیرهما چه په: وعلی الذین هادواحرمنا کلّ ذی ظفر(اعراف:) کښې تیردی(۴) یابعض الذی پمعنی د کلّ الذی سره دې، کمافی قوله تعالی: یُصبکم بعضَ الّذی یعدکم(غافر:۲۸).

﴿إِنَّ اللَّهَ هُوَ رَبِّي وَرَبُّكُمْ﴾ یعنی څما معجزات څمادالوهیت دلیل ندی، رب څمااوستاسوصرف الله تعالیٰ دې، ﴿هَٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيمٌ﴾ توحیدصراط مستقیم دې.

فَاخْتَلَفَ الْأَحْزَابُ مِن بَيْنِهِمْ ۖ فَوَيْلٌ لِّلَّذِينَ ظَلَمُوا مِنْ عَذَابِ يَوْمٍ

پس اختلاف اوکړو ډلود نصاریٰ وو په خپل مینځ کښې، نوهلاکت دې دپاره دهغه خلقوچه شرک ئې کړیدې دعذاب د ورځې

أَلِيمٍ ﴿٦٥﴾ هَلْ يَنظُرُونَ إِلَّا السَّاعَةَ أَن تَأْتِيَهُم بَغْتَةً وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ ﴿٦٦﴾ الْأَخِلَّاءُ

دردناکې نه، نه کوی دوئ انتظارمګردقیامت چه راشی دوئ ته ناڅاپه اودوئ به نه پوهیږی، تول دوستان به

يَوْمَئِذٍ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ إِلَّا الْمُتَّقِينَ ﴿٦٧﴾

پدغه ورځ بعض ددوئ نه بعضونورو لره دشمنان به وی مګرپرهیزګاران.

﴿فَاخْتَلَفَ الْأَحْزَابُ مِن بَيْنِهِمْ﴾ دادیوسوال مقدرجواب دې چه هرکله چه عیسی علیه السلام دتوحیدتعظیم اوحکم کړیدې نوبیاهغه ولې معبودګرځولې شوې دې، حاصل دجواب دادې چه دعیسی علیه السلام درفع نه ورستوده په اتباعوکښې اختلاف واقع شواوپه مختلفوفرقوکښې تقسیم شول نوبعضوده لره معبوداوګرځوو، نود﴿الْأَحْزَابُ﴾ نه مرادنصاریٰ ؤمختلفې فرقې دی چه دعیسی علیه السلام په باره کښې ئې دیوبل سره شدیداختلافات وؤ، بعضوبه ورته ابن الله وې، بعضوبه ورته ثالث ثلاثه، وې، بعضُ به ورته الله وې، یامراد د﴿الْأَحْزَابُ﴾ نه یهود، نصاریٰ

دواړه دي،چه يهودودعيسى عليه السلام ډيرزيات تنقيص كولواونصارىٰ يعنى عيساىانوپكښ دومره غلواوكړه چه معبودئى اوګرځولو ﴿فَوَيْلٌ لِّلَّذِينَ ظَلَمُوا﴾اى اشركوا.

﴿هَلْ يَنظُرُونَ إِلَّا السَّاعَةَ﴾داتخويف أخروى دې.ٔهل ٔداستفهام انكارى دپاره دې پمعنى دنفى سره او﴿يَنظُرُونَ﴾دانتظارنه مأخوذدې،او﴿أَن تَأْتِيَهُم﴾بدل دې د﴿السَّاعَةَ﴾ نه اى ماينتظرون الاّاتيان السّاعة بغتةً(روح،كبير)يعنى ددې كفارمكه وحالت نه دامعلوميږى چه كه قيامت ناڅاپه دَدوئ په سرونواودريږى نوهلته به ئى اومنى،ليكن بيادغه وخت منل بالكل فائده نه وركوى،كقوله تعالى:فانّى لهم اذاجاءتهم ذكرىٰ هم(محمد:۱۸).

﴿الْأَخِلَّاءُ يَوْمَئِذٍ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ﴾يعنىٰ دقيامت په ورځ به ددنياتولې دوستئ اومحبتونه منقطع شى،په دغه ورځ به ډيرخوږاومين محبوب هم دخپلې خوږى اومحبوبې دشمن اوګرځى،ځكه چه دكافرانودوستئ بنياداودغه شان دغلطومحبتونوبنيادكفراوفسق دې او هم دغه كفراوفسق به ددوئ دعذاب اوجهنم ته دداخليدلوباعث وى.﴿إِلَّا الْمُتَّقِينَ﴾استثناء متصله ده پمعنى دلكن يعنى دقيامت په ورځ به تولې دوستئ اوتعلقات ختم شى ليكن د مؤمنانو تعلق اومحبت به نه منقطع كيږى،ځكه چه داهل ايمانُ محبت اوتعلق ددين او د رضاء الهى په بنيادوى اودغه ايمان اورضاء الهى دخيراوثواب باعث دې،نوپدې كښ به هيڅ انقطاع نه راځى.

| يَا عِبَادِ لَا خَوْفٌ عَلَيْكُمُ الْيَوْمَ وَلَا أَنتُمْ تَحْزَنُونَ ﴿٦٨﴾ الَّذِينَ |
|---|
| اې بندګانوځمانشته دې هيڅ يره په تاسونن ورځ اونه به تاسوغمجن يئ،هغه كسان |
| آمَنُوا بِآيَاتِنَا وَكَانُوا مُسْلِمِينَ ﴿٦٩﴾ ادْخُلُوا الْجَنَّةَ أَنتُمْ وَأَزْوَاجُكُمْ |
| چه ايمان ئى راوړې دې په آياتوزمونږاووُدوئ مسلمانان.داخل شئ جنت ته تاسوهم اوبيبيانى ستاسوهم |
| تُحْبَرُونَ ﴿٧٠﴾ يُطَافُ عَلَيْهِم بِصِحَافٍ مِّن ذَهَبٍ وَأَكْوَابٍ وَفِيهَا |
| تاسوبه خوشحاله ولې شئ،ګرځولې به شى په دوئ پليتونه دسروزرواوګلاسونه،اوپدې (جنت) كښ به وى |

| مَا تَشْتَهِيْهِ الْاَنْفُسُ وَتَلَذُّ الْاَعْيُنُ وَاَنْتُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ۝ وَتِلْكَ الْجَنَّةُ |
|---|
| هغه چه غواړی ئی زړونه اولذت پرې موندی سترګې،اوتاسوبه پدې جنت کښې همیشه یئ.اوداجنت دي |
| الَّتِيْٓ اُوْرِثْتُمُوْهَا بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ۝ لَكُمْ فِيْهَا |
| هغه چه تاسوته په میراث کښې درکړې شویدې په سبب دَهغو عملونوچه تاسو کول ،ستاسودَپاره پدې کښې |
| فَاكِهَةٌ كَثِيْرَةٌ مِّنْهَا تَاْكُلُوْنَ ۝ |
| میوې دی ډیرې چه دَهغې نه به تاسوخورئ، |

﴿ يٰعِبَادِ لَا خَوْفٌ عَلَيْكُمُ ﴾دابشارت اخرویه دې مومنانواوهغه کسانوته چه دَهغوئ تعلق او محبت صرف دَالله ﷻ دَپاره وی.فیقال لهم.ورنه مخکښې مقدردې،یعنی دوئ ته به قیامت په ورځ الله ﷻ دانداءاوکړی شی چه په تاسوبه هیڅ خوف اوحزن نه وی﴿ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِاٰيٰتِنَا ﴾ صفت دې دَعبادی.دَپاره یاورنه بدل دې(روح)یعنی څماښدګان هغه دی چه په دنیاکښې ظاهراًباطناڅماتابع داروؤ.﴿ اُدْخُلُوا الْجَنَّةَ اَنْتُمْ وَاَزْوَاجُكُمْ ﴾ازواج نه مرادمؤمنانی بیبانې دی،بعضُ ورنه مؤمنان ملګری مرادکړیدی،یاورنه مرادحورې دَجنت دی،﴿ تُحْبَرُوْنَ ﴾ای تُنعمونَ وتسرونَ.﴿ بِصِحَافٍ ﴾صحاف دَصفحةٌ جمع ده پلیټ ته وائی﴿وَاَكْوَابٍ ﴾جمع دکوبٌ ده،وهوکوزٌ لاعروة له(روح) ګلاس یا کنډول پیاله چې لاسکې یې نوي ﴿وَتَلَذُّ الْاَعْيُنُ﴾ یعنی په جنت کښې به هغه څیزونه وی چه دَهغې په لیدلوسره سترګې خوشحالیږی اولذت مومی،بعضِ علماء فرمائی چه په﴿ يُطَافُ عَلَيْهِمْ بِصِحَافٍ مِّنْ ذَهَبٍ ﴾کښې دَخوراک نعمتونوته اشاره ده او﴿وَاَكْوَابٍ﴾کښې دَڅکاک نعمتونوته اشاره ته اوپه﴿وَفِيْهَا مَا تَشْتَهِيْهِ الْاَنْفُسُ ﴾کښې،نکاح،لباس وغیره نعمتونوته اشاره ده اودَټولونعمتونونه لوئ نعمت چه سترګې ئی په لیدلولذت مومی هغه دیدارالهی دې.رزقناالله بفضله ومنه.نوپه﴿وَتَلَذُّ الْاَعْيُنُ﴾کښې ورته اشاره ده،﴿وَاَنْتُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴾پدې اعلان سره به اتمام دَټولونعمتونو راشی،په ﴿اُوْرِثْتُمُوْهَا ﴾کښې اشاره ده دیته چه داجنت تاسوته مفت ملاؤ شولکه څرنګه چه وارث ته مال موروثه مفت اوبغیردَڅه عوض نه ملاویږی،بعضِ حضرات وائی چه داکنایه ده دَملکیت نه یعنی داجنت تاسوته په ملکیت کښې در

کړيشو، چونکه چه ميراث په اسبابو دَملک کښې قوی سبب دې، نوځکه ورنه تعبيرپه ميراث سره اوشو، يامطلب دادې چه دکافرانو برخه جنت هم تاسوته درکړشو کمافی الحديث، مامن احد الاّ و له منزل فی الجنة ومنزل فی النار فالکافرُ يرثُ المؤمن منزله فی النار و المؤمن يرث الکافر منزله فی الجنة، و ذلک قوله تعالی: وتلک الجنّة التی اورثتموها بماکنتم تعملون . "باء" په ﴿بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ﴾ کښې سببيه ده، نو چونکه نيک عمل سبب ظاهری دې دَپاره دَخول جنت نوځکه سبب اوګرځولې شو، اوسبب حقيقی ئې دَالله ﷻ فضل دې، نوپه حديث پاک کښې "لن يدخل احدکم الجنةعمله ...."ورنه مراد سبب حقيقی دې، نودآيت اودَحديث په مابين کښې تعارض نشته دې، بعضِ حضرات وائی چه نيک عمل سبب دَدرجاتو دې، اونفس دخول جنت ته سبب دَفضل اورحمت الٰهی دې.

﴿لَكُمْ فِيهَا فَاكِهَةٌ كَثِيرَةٌ﴾ ديرې ميوې به وی بحسب الانواع والاصناف، ﴿مِّنْهَا تَأْكُلُونَ﴾ "من" تبعيضيه دې، اشاره ده پکښې دېته چه دَجنت ميوې به ختميږی نه، په شان دَدنيا، په حديث کښې دی "لاينزع رجل فی الجنة من ثمرهاالاّنبت مکانهامثلها".

| إِنَّ الْمُجْرِمِينَ فِي عَذَابِ جَهَنَّمَ خَالِدُونَ ﴿٧٤﴾ لَا يُفَتَّرُ عَنْهُمْ وَهُمْ فِيهِ |
|---|
| بيشکه مجرمان به په عذاب دَجهنم کښې وی هميشه نه به شی لرې کيدې عذاب دَدوئ نه اووی به دوئ په هغې کښې |
| مُبْلِسُونَ ﴿٧٥﴾ وَمَا ظَلَمْنَاهُمْ وَلَٰكِن كَانُوا هُمُ الظَّالِمِينَ ﴿٧٦﴾ وَنَادَوْا |
| نااُميده، اوندې کړې مونږظلم په دوئ ليکن هم دوئ ظلم کونکی پخپل ځانونووؤ. اوآوازبه اوکړی دوئ داروغې دَجهنم ته، چه |
| يَا مَالِكُ لِيَقْضِ عَلَيْنَا رَبُّكَ ۖ قَالَ إِنَّكُم مَّاكِثُونَ ﴿٧٧﴾ |
| اې مالکه فيصله دې وکړی په مونږرب ستا، هغه به اووائی چه بيشکه تاسوهميشه پاتې کيدونکی ئې پدی کښې |
| لَقَدْ جِئْنَاكُم بِالْحَقِّ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَكُمْ لِلْحَقِّ كَارِهُونَ ﴿٧٨﴾ أَمْ أَبْرَمُوا أَمْرًا |
| بيشکه راوړې وؤمونږتاسوته حق ليکن اکثرپه تاسوکښې دَحق نه نفرت کونکی وؤ بلکه دوئ پخه فيصله کړيده ديو کار |
| فَإِنَّا مُبْرِمُونَ ﴿٧٩﴾ أَمْ يَحْسَبُونَ أَنَّا لَا نَسْمَعُ سِرَّهُمْ وَنَجْوَاهُم ۚ |
| پس بيشکه مونږه هم پخه فيصله کونکی يو. آيادوئ ګمان کوی داچه بيشکه مونږنه آوروپټی خبرې دَدوئ اوجرګې دَدوئ |

| بَلٰى | وَرُسُلُنَا | لَدَيْهِمْ | يَكْتُبُوْنَ ﴿٨٠﴾ |
|---|---|---|---|
| ولې نه (آورو) او فرشتې | زمونږه | هم دَدوئ سره دي | ليکي عملونودَدوئ |

﴿اِنَّ الْمُجْرِمِيْنَ فِىْ عَذَابِ جَهَنَّمَ خٰلِدُوْنَ﴾تخويف اخروى دې مشرکانوته،مراددَمجرمانونه کافران دي،﴿لَا يُفَتَّرُ عَنْهُمْ﴾دَفترت نه مأخوذدې يعنى عذاب به ورنه لګ غوندې وخت دَپاره هم نه لرى کيږى، يا د فتورنه ماخوذ دى،فتور ويلې کيږى سست والې او کموالې ته،يعني عذاب کښې هيڅ تخفيف او کمى نه رازى﴿وَهُمْ فِيْهِ مُبْلِسُوْنَ﴾يعنى کافران به نااُميده شي چه اوس هيڅ صورت دَنجات نشته دې،بعضِ حضراتودَ﴿مُبْلِسُوْنَ﴾معنى کړيده حزينون من شدة الباس(روح)يعنى دَسخت عذاب پوجه به غمجن وى

﴿وَنَادَوْا يٰمٰلِكُ﴾ مالک دَهغې فرشتې نوم دې چه دَجهنم چوکيداره ده چه داروغه ورته ويلې شي﴿لِيَقْضِ عَلَيْنَا رَبُّكَ﴾مرادورنه فيصله دَمرګ ده،يعنى کافران به دَدوام اودَشدت دَعذاب پوجه نااُميده شي دَنجات نه نواوبه وائي چه مونږدې مړه شوچه عذاب نه راته نجات ملاؤشي.

﴿قَالَ اِنَّكُمْ مّٰكِثُوْنَ﴾يعنى مالک به ورته اووائى چه دلته مرګ نشته دې،تاسوبه هميشه په عذاب کښې يئ،حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمائى چه کافرانوته به داجواب زر(۱۰۰۰) کاله پس ملاؤشي دآخرت دکالونوپه حساب،ترززوکالونوپورې به هغوئ دَغه چغې وهي.

﴿لَقَدْ جِئْنٰكُمْ بِالْحَقِّ﴾داخطاب ياجهنميانوته دې،پخپله دَطرفه دَالله ﷻ نه يادَطرفه دَفرشتونه بطورنيابت،نوپدېکښې سبب دَمکث ذکرکيږى،ياالتفات دې بسوئ اهل مکه،دَحق نه مرادتوحيداوټول هغه احکامات دى چه ايمان راوړل ورباندې واجب دى،﴿وَلٰكِنَّ اَكْثَرَكُمْ لِلْحَقِّ كٰرِهُوْنَ﴾اکثرياپمعنى دکل دې يااورنه مرادرؤساواوليډران دى(قرطبى)چه دَحق نه انکار اونفرت په حقيقت کښې مشران کوى اوهرچه وى اتباع نومحض تقليداکفرکوى.

﴿ اَمْ اَبْرَمُوْا اَمْرًا ﴾دازجردې مشرکانوته،اودَهغوئ دَقباحت بيان دې'ام'دَاضراب دَپاره دې پمعنى دَ'بل'سره اودَ﴿ اَمْرًا ﴾نه مرادتدبيرونه دَقتلولودَنبى کريم ﷺ دى او اسلام ترقى پهٔ لار کښې قسم قسم رکاوټونه جوړول دى، ،يعنى دوئ صرف دانه چه دَحق نه انکارکوى او خه يې نه کړى بلکه دَدين اودَپيغمبرخلاف منظم تدبيرونه اوسازشونه هم کوى(لکه ددې تفصيل په

انفال: ۳۰ کښې تيردې، ﴿فَإِنَّا مُبْرِمُونَ﴾ يعنی مونږ هم دوئ خذلان اورسوائی اوخپل دين او پيغمبر ته ترقی اوډهغه نصرت پخه فيصله کړيده.

﴿أَمْ يَحْسَبُونَ أَنَّا لَا نَسْمَعُ سِرَّهُمْ﴾ سر: ډځان سره يادبل سره په خالی ځائ کښې خبروکولوته وائی، اونجوی په خپل مينځ کښې جرګې اومشورې ته وائی. يعنی دوئ چه ډنبی اکرمﷺ خلاف اوډدين خلاف تدبيرونه کوی نوآياډدوئ داګمان دې چه مونږډدوئ ډزړونوپه اسرارونه پوهيږواوډدوئ ډجرګونه نه يوخبر؟ بلکه مونږپوهيږواوزمونږفرښتې کرام کاتبين هروخت ډدوئ سره وی ډدوئ ټول اعمال ليکی.

| |
|---|
| قُلْ إِنْ كَانَ لِلرَّحْمَٰنِ وَلَدٌ فَأَنَا أَوَّلُ الْعَابِدِينَ ﴿٨١﴾ سُبْحَانَ رَبِّ |
| اووايه اې پيغمبره! کچرته وې ډپاره ډرحمنﷻ ولد، نوځه به اول عبادت کونکې ومه، پاکی ده ډشرکاوو نه رب |
| السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ رَبِّ الْعَرْشِ عَمَّا يَصِفُونَ ﴿٨٢﴾ فَذَرْهُمْ يَخُوضُوا |
| ډاسمانونولره اوډزمکې لره رب ډعرش لره ډهغې نه چه دوئ ئی بيانوی اللهﷻ لره، پس پريږده دوئ چه مشغوله وی |
| وَيَلْعَبُوا حَتَّىٰ يُلَاقُوا يَوْمَهُمُ الَّذِي يُوعَدُونَ ﴿٨٣﴾ |
| اولوبې کوی تردې چه ملاقات اوکړی ډورځې خپلې سره هغه چه ډدوئ سره ئی وعده کولیشی. |

﴿ قُلْ إِنْ كَانَ لِلرَّحْمَٰنِ وَلَدٌ ﴾ دامخکښې دواړه حصو سره متعلق دې، پدې کښې نفی ډ ولد (برابره ده که مذکر وی او که مؤنث) او ډ نائب ده ډاللهﷻ نه، بطورمبالغه، ډآيت کريمه په تفسيرکښې مفسرينوډير احتمالات ذکرکړيدی (۱) «إن» شرطيه دې ﴿كَانَ لِلرَّحْمَٰنِ وَلَدٌ﴾ شرط دې ﴿فَأَنَا أَوَّلُ الْعَابِدِينَ﴾ ئی جزاء ده، اواستدلال په نفی ډولداونائب باندې پطريقې ډقياس استثنائی سره شويدې، نو معنی داده چه که په فرض محال ډاللهﷻ ولدوې (مقدم) نوړومبنې سړې به ځه ووم چه ډده ډ ولدعبادت به مې کولې (تالی) لكن التالی باطل فالمقدم مثله، وجه ډبطلان تالی ظاهره ده، وجه ډ ملازمې داده چه کچرته ډاللهﷻ ولدوې نوډهغه عبادت به ضروری اوفرض ووْاوځه خوډټولې دنيا نه زيات ډاللهﷻ عبادت کونکې يم، نومابه ئی اول عبادت کړې وې، .

(۲) بعض ډ عابد معنی جاحد اومنکرکړيده، يعنی ډدې فاسدې عقيدې نه انکارکونکې او ترديدکونکې ډټولونه اول ځه يمه (۳) بعضو ويلی دی چه ان په ﴿ إِنْ كَانَ لِلرَّحْمَٰنِ وَلَدٌ ﴾ کښې نافيه

دي،یعنی الله ﷻ لره ولدنشته دي او﴿فَأَنَا أَوَّلُ الْعَابِدِينَ﴾وربانديِ تفريع ده،اى اناأول العابدين لله،نوځه هغه اول کس یم چه صرف.دالله ﷻ عبادت کوم. نورتفصيل ددې مضمون په سورة انبياء لوكان فيهما آلهة.... الخ آيت(٢٢)کښې تيردي.

﴿فَذَرْهُمْ يَخُوضُوا وَيَلْعَبُوا﴾د امشركانوته زجراوتخويف دي،﴿حَتَّىٰ يُلَاقُوا يَوْمَهُمُ الَّذِي﴾مراددَيوم نه یایوم القيامة ده،دَاكثروپه نزد،یاورنه مراديوم بدرده یاورځ دَمرګ ده.

| وَهُوَ | الَّذِي | فِي | السَّمَاءِ | إِلَٰهٌ | وَفِي | الْأَرْضِ | إِلَٰهٌ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اوالله هغه ذات دي چه دي په اسمان کښې هم المتصرف دي اوپه زمکې کښې هم المتصرف دي. | | | | | | | |

| وَهُوَ | الْحَكِيمُ | الْعَلِيمُ ﴿٨٤﴾ | وَتَبَارَكَ | الَّذِي | لَهُ | مُلْكُ | السَّمَاوَاتِ | وَالْأَرْضِ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اودې حکمتونو والادې پوهه دي په هرڅيز.اومبارک دې هغه ذات چه هغه لره ده بادشاهي داسمانونواودزمکې | | | | | | | | |

| وَمَا | بَيْنَهُمَا | وَعِنْدَهُ | عِلْمُ | السَّاعَةِ | وَإِلَيْهِ | تُرْجَعُونَ ﴿٨٥﴾ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوپه مینځ ددې دواړوکښې.اوصرف هغه ته دې علم دَراتلودَقيامت.اوهم هغه ته به تاسوواپس کيږئ. | | | | | | |

﴿وَهُوَ الَّذِي فِي السَّمَاءِ إِلَٰهٌ وَفِي الْأَرْضِ إِلَٰهٌ﴾دا دعوه د سورت ده،چې آسمانونو او په زمکی کښې اله او معبود صرف او صرف الله ﷻ دی او هغه تول کائناتوخالق او متصرف ذات دی،هر کار يي محکم او دحکمت نه ډک دی او په هر څه واقف دی،نو هغه ته ولد او نائب څه ضرورت شو.

﴿وَتَبَارَكَ الَّذِي﴾يعنی برکت دهنده هم صرف الله ﷻ دي چه په قبضه کښې ئې اسمانونه اوزمکه ومابينهمادی﴿وَعِنْدَهُ عِلْمُ السَّاعَةِ﴾یعنی دَقيامت علم،چه کله به راځی داهم صرف الله ﷻ ته دي،﴿وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ﴾یعنی دَتولوخلقومرجع هم صرف الله دي،نومذکوره صفات تول دَالوهيت صفات دی چه خاص دی په الله ﷻ پورې،نوهغه حقيقی اله اومعبوددي.

| وَلَا | يَمْلِكُ | الَّذِينَ | يَدْعُونَ | مِنْ | دُونِهِ | الشَّفَاعَةَ | إِلَّا | مَنْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اونه دي مالکان هغه معبودان باطله چه دوئ ئې عبادت کوي ماسوئ دالله ﷻ نه دشفاعت مګرهغه څوک چه شفاعت کوي | | | | | | | | |

| شَهِدَ | بِالْحَقِّ | وَهُمْ | يَعْلَمُوْنَ | ﴿۸۶﴾ وَلَئِنْ | سَأَلْتَهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| چه گواهي (اقرار) د حق | كوي | اودوئ | پوهيږي | اوكچرته ته تپوس | اوكړې ددوئ نه |
| مَّنْ | خَلَقَهُمْ | لَيَقُوْلُنَّ | اللّٰهُ | فَاَنّٰى | يُؤْفَكُوْنَ ﴿۸۷﴾ |
| چه چاپيداكړيدي دوئ نوخامخابه وائي چه الله ﷻ پيدا كړي يو نوكوم طرف ته دوئ اړه و لې شي. | | | | | |
| وَقِيْلِهٖ يٰرَبِّ | اِنَّ هٰٓؤُلَآءِ | قَوْمٌ | لَّا يُؤْمِنُوْنَ ﴿۸۸﴾ | فَاصْفَحْ | عَنْهُمْ |
| او (علم دي ورته د) خپل د پيغمبر د دي قول چه اې ربه څمابيشكه داقوم ايمان نه راوړي، پس اعراض اوكړه ته ددوئ نه | | | | | |
| وَقُلْ سَلٰمٌ فَسَوْفَ يَعْلَمُوْنَ ﴿۸۹﴾ | | | | | |
| اواوايه چه څماتاسوته سلام دي، پس زرده چه دوئ به پوهه شي. | | | | | |

﴿ وَلَا يَمْلِكُ الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهِ الشَّفَاعَةَ ﴾ دلته نه سورت **خلورمه حصه** شروع كيږي او پدې كښ نفي د نائب ده بصورت شفيع، كله چه مشركانوته شرك په رداو د توحيد په اثبات باندې ناقابل انكار دلائل او شواهد مخكې ته راغلل چې دوئ سره د هغې هيڅ جواب نوؤ، نو دوئ دا ويل شروع كړو چه زمونږمعبودان اګرچه حاجت روامشكل كشاندي ليكن مونږئې عبادت ځكه كوؤچه دوئ به زمونږسفارش كوي د الله ﷻ په دربار كښ، دې ايت كښ الله ﷻ مشركينو د عقيدې رد او شبهې جواب كوي حاصل د جواب دادې چه د الله ﷻ په دربار كښ د سفارش كولو د پاره درې شرطونه دي (۱) شفيع به مؤمن وي (۲) مشفوع له به مؤمن وي (۳) اذن الهي به وي، نود مشركانود پاره د دوئ معبودان باطله شفاعت نشي كولې، اختيار د شفاعت ورسره نشته دې، مفسرينو پدې آيت كښ دوه قوله ذكر كړيدي (۱) مراد د ﴿ الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهِ ﴾ نه ټول معبودان من دون الله دي او ﴿ اِلَّا مَنْ شَهِدَ بِالْحَقِّ ﴾ استثناء متصله ده، عيسى عليه السلام، عزير عليه السلام، ملائكه ورنه مستثنى دي، او د ﴿ شَهِدَ بِالْحَقِّ ﴾ نه مراد ګواهي د لااله الاالله ده، يعني شفاعت به هغه كوي چه مؤمن وي د كلمه توحيد ګواهي وركونكې وي ﴿ وَهُمْ يَعْلَمُوْنَ ﴾ كښ تصديق قلبي ته اشاره ده.

(۲) دَ ﴿ ٱلَّذِينَ يَدْعُونَ مِن دُونِهِ ﴾ نه مراد عيسى عليه السلام، عزير، ملائكه دى، او دَ من نه مراد مشفوع له دي پمعنى دَ لمن ای الالمن شهد بالحق، يعنى شفاعت به دَهغه چادپاره وى چه دَلااله الاالله گواهى وركوى، هرچه دي دريم شرط چه شفاعت به په اذن الهى سره وى نوپدې قول دَالله ﷻ كښې ذكردې من ذى الذى يشفع عنده الاباذنه (آيت الكرسى).

﴿ وَلَئِن سَأَلْتَهُم مَّنْ خَلَقَهُمْ ﴾ دا دليل عقلى دې په توحيد على سبيل الاعتراف من الخصم، او په دى كښې نفىْ دَ نائب هم كيږى ،يعني كچرته ته دَ دوئ نه تپوس اوكړى چه تاسو او ستاسو معبودان چا پيدا كړيدى، نو دوئ به دَدى اقرار اوكړى چه تول الله ﷻ پيدا كړيدى، نو كله چه دوئ هم مخلوق او هغوئ هم مخلوق شو ،نوبياهغه څرنگه معبودان شول، خلقهم كښې ضمير منصوب عابدين او معبودين دواړوته راجع دې، يا ضمير صرف عابدينونه راجع دې. ضمير دَ هم عابدانو (مشركانو) ته راجع دې ياعابدانو اومعبودانو دواړوته راجع دې، يعنى كچرته ته دَ دوئ نه تپوس اوكړى چه تاسوچاپيدا كړى يئ نوخامخابه دوئ اقراركوى چه زمونږخالق الله ﷻ دي، نوچه خالق صرف الله ﷻ دې نودبندگئ اودَعبادت مستحق هم صرف هم هغه دې.

﴿ وَقِيلِهِۦ يَٰرَبِّ ﴾ پدې كښې تخويف دې مشركانوته اوتسلى ده نبى اكرم ﷺ ته، قيل مصدر دې د قال يقول ضمير يې نبى كريم ﷺ ته راجع دې، پديكښې دوه متواتر قراءت دى:

(۱) وقيله بالجر (په جر سره) او وجهې د جر دوه كيديشي: (۱) عطف دى په الساعة باندې، تقدير عبارت به داسى شى، وعنده علم الساعة وعلم قيله يعنى الله ﷻ ته دَقيامت علم هم شته دى او دَخپل نبى دَ دى وينا علم هم شته دى، چې اى خما ربه ، خماقوم ايمان نه راوړي (۲) او دويمه وجه دا ده چې واؤ حرف جر قسميه دې، او «قيله» مقسم به دې ، او «يٰرب» مقوله ده د «قيله»، او مقصود ورنه فرياد او التجا د پيغمبر ده ، او «ان هؤلاء....» ورله جواب قسم دې ، يعنى خما د پيغمبر په التجاء او فرياد قسم چې نور دوئ ايمان نه راوړي ،او يا «يرب ان هؤلاء قوم لايؤمنون » تول ورله مقسم به دې او جواب قسم محذوف دې چې هغه لأعذبنهم دې.

(۲) دويم متواتر قراءت قيله بالنصب دې . دَنصب ويلو ۸ احتماله دى، ليكن غوره احتمالات پكښې يوڅو دى: (۱) مفعول مطلق محذوف قال دپاره اې: قال قوله يعنى پيغمبر خپله وينا او شكوه اوكړه چې اى رب! خما قوم ايمان نه راوړى. (۲) عطف دې په «سِرَّهُمْ» باندى،

أي : أيحسبون انا لانسمع قيله آيا دوئ گمان دا دي چه مونږ دَ خپل نبی وینا نه اورو، (۳)عطف دي په محل د((السَّاعَةِ)) ،چه هغه محل نصب دي ځه که چه((عِلْمُ السَّاعَةِ)) اضافت دَمصدر مفعول ته شويدی.

﴿فَاصْفَحْ عَنْهُمْ وَقُلْ سَلَامٌ﴾يعنی اي پيغمبره! دَدوئ نه اعراض اوکره اودَدوئ نه دَايمان طمع مه لره﴿وَقُلْ سَلَامٌ﴾ سلام متارکه ورنه مراددي چه دَتعلق ترک کولواوقطع کولودَپاره وی، لکه "واذا خاطبهم الجاهلون قالوا سلامًا(فرقان:۳۰)".

**فائده**:سلام په پنځه قسمه دي(۱)سلام متارکه،کوم چه پدي آيت کښ ذکردی(۲)سلام برائ دُعا،کوم چه اهلِ قبوروته ویلي کیږی چه السلام علیکم اهل دارقومِ مؤمنین(۳)سلام ستيذان(۴)سلام تحيّه،چه په وخت دَملاقات کښ وی(۵)سلام عندالوداع.

| ركوعاتها (۷) | سورة حم دُخان مكية | آياتها (۸۹) |
| --- | --- | --- |
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان او ډېر رحم کونکې دې شروع کوم | |

### ترتيبها حسب التسلسل (۴۴) وحسب النزول (۶۴)

سورة دُخان مکی دې، زمانه دَنزول ئی دورِآخرِ دَمکې دې، ترتیب قرآنی په لحاظ سره (۴۴) دې او ترتیب نزولی په اعتبار سره (۶۴) دې، دَتیرشوی سورة، سورة الزخرف نه ورستونازل دې.

**ربط اسمی**: ربط اسمی ماقبل سره دادې چې ماقبل کښې دې خبرې ذکر وۀ چې شرک او باطل باندې خومره دلائل دی دهغې هڅې یوظاهری چمک دمک ( زخرف) دې او انسان پرې دهوکه شی چه دلائل دی، اوس دې سورت کښې دا ذکر کیږی که چې حق اوتوحید دلائلو په مقابله کښې ددې هیڅ حیثیت نشته، بلکه دَلوګی (دخان) پشان هوا کښې والوزی.

**ربط معنوی**: ربط معنوی ماقبل سره په څووجوهو سره دې

(۱) مخکښې سورت په شروع کښې ترغیب الی القرآن ذکر وۀ دې سورت په شروع کښې هم ترغیب الی القرآن ذکر کیږی،

(۲) مخکښې سورت کښې دَموسی ﷺ واقعې ذکر وۀ دې سورتْ کښې دَموسی ﷺ واقعی بله حصه ذکر کیږی،

(۳) مخکښې سورت کښې دَمشرکینود دی عقیدی ابطال وۀ چې هغوئ وائی چې زمونږ معبودان دَ الله ﷻ نائبان اوسفارشیان دی، دی سورت کښې دهغوئ بلې عقیدې چې علی سبیل التنزل ده ابطال اوجواب دې، دوئ وائی چه مونږ دا منو چی زمونږ معبودان دَخدائ تعالی نائبان نه دی او دهغه اذن بغیر شفاعت نشی کولی، لیکن زمونږ ندا اوری، زمونږ په حالاتو باندې خبر دی، او الله ﷻ ته ئی مخکښې وړاندی کوی، نود دی سورت کښې دهغې رد اوشو چې «انه هو السمیع العلیم» یعنی الله ﷻ صرف دَدوئ آوازونه اوری اودوئ په حالاتو باندې خبر دې.

### دسورة دَمضامینو اجمالی خلاصه:

په ابتداء کښې تمهید مع ترغیب دې مسئلې دَتوحید اوقرآن منلوته، دوه بنیادي دعوې ذکر کیږي: (۱) اوله دعوه حقانیت د قرآن ده ، (۲) او دویمه دعوه اثبات د توحید دې ، او دا

دعوه د مشركينو يو اعتراض په ضمن كښې ذكر ده . چې دوئ ونيل چې زمونږ الهه زمونږ ندا آوري او زمونږ په حالاتو باندې خبر دي ، دې نه علاوه تخويف دنيوى نمونې. بشارت دنيوى نمونه.دليل عقلى په توحيد ،تخويفات بشارات پكښ هم دى.په آخره كښ دټول سورة سره متعلق آيت.

**تفصيلي خلاصه**: آيت نمبر ١ ،تر ٩ پورې تمهيد مع الترغيب دې، دې كښ سورت دواړه دعوى مذكور دى (١)حقانيت قرآن«والكتاب المبين » (٢)اثبات دتوحيد په ضمن دجواب دمشركينو شبهې «انه هو السميع العليم»

آيت نمبر ١٠ تر ١٢ پورې تخويف دنيوى ذكر كيږى

آيت نمبر ١٧نه تر٣٣ پورې دَ موسى ﷺ واقعه ذكر كيږى.ديكښ آيت نمبر ٢٩ پورې تخويف دنيوى اوآيت نمبر ٣٠ نه تر ٣٣پورې بشارت دنيوى دې.

آيت نمبر ٣۴نه تر ٣٦ پورې شكوه ذكر كيږى.

آيت نمبر ٣٧ كښ بيا تخويف دنيوى ذكر دې.

آيت نمبر ٣٩، ٣٨ تعلق دويمې دعوې سره دې.

آيت ۴٠ نه تر ۵٠ پورې تخويف اخروى دې.

آيت نمبر ۵١ نه تر۵٧ پورې بشارت اخروى ذكر كيږى،

آيت ۵٨ تعلق پوره سورت سره اوخصوصا اول دعوې يعنى حقانيت قرآن سره دي

آيت نمبر ۵٩ تعلق ،آيت ١۵ سره دې.

| حٰمٓ ۚ وَالْكِتٰبِ الْمُبِيْنِ ۙ اِنَّآ اَنْزَلْنٰهُ فِيْ لَيْلَةٍ مُّبٰرَكَةٍ اِنَّا كُنَّا مُنْذِرِيْنَ ۝ |
|---|
| حم،قسم دې په كتاب واضحه،بيشكه مونږنازل كړيدې داكتاب په شپې مباركې كښ بيشكه مونږه يرونكى يوخلقولره. |
| فِيْهَا يُفْرَقُ كُلُّ اَمْرٍ حَكِيْمٍ ۙ اَمْرًا مِّنْ عِنْدِنَا ؕ اِنَّا |
| پدې شپه كښ ليكلې كيږى هر كار محكم ، امر دې زمونږ دَ طرفه بيشكه مونږه |
| كُنَّا مُرْسِلِيْنَ ۚ رَحْمَةً مِّنْ رَّبِّكَ ؕ اِنَّهٗ هُوَ السَّمِيْعُ |
| ليږونكې يوپيغمبرانولره.دوجه درحمت نه دطرفه درب ستانه،بيشكه الله ﷻ صرف هغه اوريدونكې دې دهرآواز |

| |
|---|
| الْعَلِيْمُ ﴿٦﴾ رَبِّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا ۘ اِنْ كُنْتُمْ مُّوْقِنِيْنَ ﴿٧﴾ |
| عالم دي په هر حال چه رب د آسمانونو دي او د زمکې دي او څه چه په مينځ د دواړو کښې دي. کچرته يئ تاسو يقين کونکي. |
| لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ يُحْيٖ وَيُمِيْتُ ۭ رَبُّكُمْ |
| نشته دي لائق دعبادت بل څوک مګرالله ﷻ دي ژوندي کول کوي او مړه کول کوي رب دي ستاسو |
| وَرَبُّ اٰبَآىِٕكُمُ الْاَوَّلِيْنَ ﴿٨﴾ بَلْ هُمْ فِيْ شَكٍّ يَّلْعَبُوْنَ ﴿٩﴾ |
| اورب د پلارانو ستاسو پخوانو دي، بلكه دوئ په شک کښې دي توقي کوي، |

﴿حٰمٓ ﴿١﴾ وَالْكِتٰبِ الْمُبِيْنِ﴾ دا تمهيد مع الترغيب دي او د سورت د دعوې اوله حصه يعنى حقانيت د قرآن ذكر كيږى، چې حق پخپله خپل ځان ځانى نو د قرآن مضامين او احكام دومره واضحه دى چې دي په حقانيت كښې هيڅ شک وشبه نشى كيدى، نوره تشريح او تفسير د سورة الزخرف په ابتداء كښې تيرشويدي

﴿اِنَّآ اَنْزَلْنٰهُ فِيْ لَيْلَةٍ مُّبٰرَكَةٍ﴾ دا جواب قسم دي يعنى باوجود ددينه چې قرآن او دي مضامين پخپله دومره واضحه دى چې هغې نه د قرآن حقانيت ثابتيږى، خوځه قسم خورم چې دا كتاب مونږ نازل كړى دي، او ((في ليلة مباركة)) كښې ترغيب ذكر كيږى، يعنى دا دومره عظيم الشان كتاب دي چې دا موځه عامو شپو ورځو كښې نه دي نازل كړي بلكه ددي نزول د پاره مو مباركې شپې انتخاب كړيدى او هغې كښې خو نازل كړيدي لهذا دي قرآن او د دي احكاماتو باندې ايمان راوړئ، ((ليلة مباركة)) كومه شپه مراده ده ديكښې مفسرينو دوه قوله دى:

(١) اكثرو مفسرينو په نزد ليلة القدر (شب قدر) ده، چه د رمضان المبارک په آخره عشره كښې په طاق شپو كښې وى په دليل د (١) قول د الله ﷻ انا انزلناه فى ليلة القدر نو كچرته ورنه ليلة القدر مراد نشى نو د آياتونو په مينځ كښې به تناقض لازم شى (٢) شهر رمضان الذى انزل فيه القرآن (بقره ١٨٥) يعنى قرآن په رمضان كښې نازل دي، او ليلة القدر په رمضان كښې وي (٣) دلته چې كوم صفات ((ليلة مباركة)) ذكر دى سورت القدر كښې دا صفات د ليلة القدر ذكر دي نو دينه معلوميږى چې دا دواړه يوه شپه ده (٤) په تفسير مظهرى وغيره كښې د قتادة رحمه الله نه نقل دى چه صحف ابراهيم عليه السلام، او توراة په ابتداء د رمضان كښې نازل دى، او زبور، انجيل په درميان د

رمضان کښ، اوقرآن په آخرد رمضان کښ نازل دې، اوپه آخرکښې دی چه والليلة المبارکة هی لیلة القدر.

(۲) حضرت عکرمه رحمه الله فرمائی چه په آیت مذکوره کښ د لیلة مبارکة نه مراددَپنځلسم شعبان شپه ده.ځکه چې آیت کښ «لیلة مبارکة» کوم صفات راغلی دی داپه روایاتو کښ دَپنځلسم شعبان شپې هم راغلی دی.

**فائده(۱)**: پنځسلم شعبان شپې فضائل او احکام په ډیرو روایاتو کښ راغلی دی، په هغې کښ دې شپې عبادت ،قبرستان ته تللو ثبوت دې ، دا روایات اګرچه کمزور اوضعیف دی لیکن کافی تعداد کښ دی،لهذا "یقوي بعضها بعضا" اصول تحت فضائلو باب کښ پدې عمل کول صحیح دي لیکن شریعت کوم حدود دی ، د هغې رعایت ساتل انتهائی ضروری دي، لهذا مخصوص انداز اوتعداد کښ مونځ کول په جماتونو کښ اجتماع صورت جوړول یا قبرستان ته تللو التزام کول لکه څرنګه چې دَفرض اولازمی عبادت کولې کیږي حدود شریعت نه تجاوز او بدعت دې ورنه کم ازکم مفضی الی البدعة ضرور دې.

**فائده(۲)**: بعض مفسرینو دې آیت تحت دَ عکرمه رحمه الله قول باندې سخت رد کړیدی او دیته ئې باطل ویلی دی او د رد بنیاد دادې چه د آیت دا تفسیر دَ هغو صریح نصوصو خلاف دې چې په هغې کښ لیلة القدر کښ نزول قرآن تصریح ده.زمونږ اکابرو د دې قول کوم مطلب بیان کړیدې هغې مطابق ددې نصوصو سره تطبیق ممکن دې اوهیڅ تعارض نشی راتلې.

(۱)حضرت مدنی رحمه الله فرمائی چه دلته نزول نه مراد "نزول تقدیری" دې نزول تقدیری مطلب دادې چه پدې شپه کښ دَ قرآن نزول اجازت میلاوشی؟

(۲)شبیر احمد عثمانی رحمه الله بله توجیه پیش کړیده چې لیلة البراءة کښ نزول نه مراد ابتداد نزول ده او لیلة القدر کښ نزول نه مراد انتهاء ده.

**فائده(۳)**:قرآن درې نزوله دي:

(۱)**نزول تقدیری** : چه پدیکښ دَقرآن نازلیدلو اجازت ملاؤ شو او په لوح محفوظ کښ کیخودلی شو ،او دا۱۵شعبان شپه وه.(معارف مدنی)

(۲)**دویم نزول** لوح محفوظ نه آسمان دنیاته وۀ.او دلیلة القدر شپه او رمضان المبارک میاشت وه.

(۳)**دریم نزول** آسمان دنیا نه زمکه ته وؤ چه ۲۳ کاله کښ تدريجا تدريجا مكمل شو .او ددې ابتدا هم رمضان المبارک اوليلة القدر کښ شوې وه (تفسير عثماني)

﴿إِنَّا كُنَّا مُنذِرِينَ﴾ جواب قسم کښ دَدوه خبرو ذِکر اوشو .(۱)انزال دَقرآن،(۲)انزال په ليله مبارکه کښ اوس دلته نه بطور لف نشر مرتب دهر يوحكمت ذکر کيږی داحکمت دَنزول قرآن دې، چه زمونږ شان دادې چه خپل بندګان دَعذاب او عقاب نه اويروو، نودې دپاره مو داقرآن نازل کړو.

﴿فِيهَا يُفْرَقُ﴾ دا په «ليلة مباركة » کښ دانزال حکمت وجه بيانيږی چه دا قرآن دَحکمتونو ډک او عظيم الشان کتاب دې، او دې شپه کښ عظيم الشان اوحکمت نه ډک امورو فيصله کيږی ،نو ځکه خو ديکښ نازل کړو.«يُفْرَقُ »ياپمعنى دَيکتب سره دې،اى فيها يُكتبُ،ياپمعنى دَيفصلُ سره دې، يعنى فيصله کيږی په دې شپې کښ د هر امر محکم. «كُلُّ أَمْرٍ» امر نه مراد دَ امور تکوينيه فيصلې دی، يعنى پوره کال دقضا وقدر کومې فيصلی کيږی ،څوک به مرى څوک به پيدا کيږی ،څوک به نكاح کوی،چاته څومره رزق ورکولې شى وْغيره،دا ټولې فيصلې اوليکلې شى او په امورتكوينيه باندى مقرر فرشتو ته حواله کړيشى.دغه صفات شب برات او شب قدر دواړو کښ راغلى دی.تطبيق يي ممکن دې چه دې امورو حواله کولو ابتداء شب برات کښ اوشي او انتهاء يې په شب قدر کښ اوشى .﴿ حَكِيمٍ ﴾يا پمعنى دَ«ذى حكمة» سره دې ، يعنى حکمت والا احکامات ،دې صورت کښ اسناد مجازى دې، ځکه چې احکامات خو حکمت والا نه وی ، بلکه دَحکمت تقاضې موافق وی ،حکمت والا حاکم وی، يا پمعنى دَ«محكم» سره دې يعنى محکم حکم چې په هغې کښ نسخ تبديلي اوتغير نه رازی. يا په معنى «محكوم به» کښ دې ،يعنې دَ کوم امورو حکم کيدل دی، هغه جدا کړيشى او فرشتوته حواله کړيشى (کشاف، تفسير عثمانی)

﴿أَمْرًا مِّنْ عِندِنَآ﴾ امراًمنصوب دې بنا پر اختصاص اي أخص امرا من عندنا اوديکښ مزيد اهميت ددې شپې اوتفخيم دامر ذکر کيږی،يعنى يوخو دا چې دې شپه کښ حکمت نه ډک احکامات فرشتو له ورکړې شی،بله دا چه دَ الله ﷻ هر حکم اوامر دحکمت نه ډک دې، خو ديکښ خاص طور باندى دهغه عظيم الشان امورو فيصله کيږی چه هغه خاص دَ الله ﷻ علم،

تدبیر اوحکمت سره شایان شان وی.((من عندنا))جار مجرور ورله صفت واقع شویدی او دې نه مراد دادې چه هغه زمونږ دَعلم تدبیر اوحکمت تقاضی عین موافق وی یا((امرا)) مفعول مطلق من غیر لفظه دې ،دَ((یفرق)) دپاره،څکه چې ((یفرق)) معنی جدا کیدل دی اوکوم حکم چې جدا شی هغه "امر"جوړ شی،یاحال دې ((انزلناه)) ضمیر فاعل نه په تاویل "آمرین" سره ،یعنی مونږ دا کتاب نازل کړو اوحال داوؤ چې مونږ حکم کونکی وؤ،یاضمیر منصوب نه حال واقع دی ، یعنی مونږ نازل کړیدی دا کتاب حال دادی چې دازمونږ طرف نه یو امر دې.

﴿ إِنَّا كُنَّا مُرْسِلِينَ ۝ رَحْمَةً ﴾ دې تعلق(۱) یا(( انا انزلناه ))سره دې،او هغې د پاره علت دې، دې صورت کښې ﴿رَحْمَةً﴾ ((مرسلین)) دپاره مفعول له دې،((من ربک ))جارمجرو صفت واقع کیږی د((رحمة)) دپاره ، مطلب به دا شی چې مونږ دا کتاب نازل کړیدې څکه چې زمونږ عادت دا دې چې مونږ رسولان خپلو بندګانو ته رالیږو اوهغوئ ته کتابونه ورکوو دَ وجه دَ رحمت دَ رب ستا نه،یعنی دامحض فضل اومهربانی دَرب ده،(۲)او یا د دې تعلق(( فیها یفرق)) سره دې او دې دپاره علت دې. دې صورت کښې ((رحمة)) دَ((مرسلین)) د پاره مفعول به دې .نو مطلب به دا شی چې مونږ په دې شپه کښې هر حکمت نه ډک اومحکم کار جدا کوو اوفرشتو ته یې حواله کوو،څکه چې زمونږ کریمانه شان تقاضه داده چه مونږ خپلو بندګانو ته رحمت لیږونکی یو.

﴿ إِنَّهُۥ هُوَ ٱلسَّمِيعُ ٱلْعَلِيمُ ﴾دا دَ سورة مقصودی دعوه ده او دَ مشرکانو دَ شبهې جواب دې چه زمونږ آلهه زمونږ آوازونه نه آوری او زمونږ په حالتونو باندې خبر دی.

﴿رَبِّ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ﴾بدل دې دَ((ربک)) نه یابیان یانعت دې،﴿إِن كُنتُم مُّوقِنِينَ﴾ یعنی یقین نوم څه څیز تاسو پیژندلې نو تاسو ته به ددې خبرې خه پته وی چه زمکې او آسمانو نورب العالمین الله ﷻ دې څکه چې دا اظهر الیقینیات دې.﴿لا اله الا هو﴾دَماقبل مضمون مزید تاکید دې.

﴿ بَلْ هُمْ فِى شَكٍّ يَلْعَبُونَ ﴾اضراب دې د ((ان کنتم موقنین )) نه ، چې یقین چرته کوې دوئ ، بلکه شک کښې پراته دې اوایمان چرته راوړې بلکه ستا دعوت پورې توقې او مسخرې کوې.

| |
|---|
| فَارْتَقِبْ يَوْمَ تَأْتِي السَّمَآءُ بِدُخَانٍ مُّبِينٍ ۝ يَّغْشَى النَّاسَ هٰذَا |
| انتظاراوکړه دهغه ورځې چه راتله اوکړي اسمان په يولوګۍ ښکاره سره.پټ به کړي دا لوګې خلق(وائي به دوئ)دا |
| عَذَابٌ اَلِيْمٌ ۝ رَبَّنَا اكْشِفْ عَنَّا الْعَذَابَ اِنَّا مُؤْمِنُوْنَ ۝ اَنّٰى لَهُمُ |
| عذاب دې درناک.اې ربه زمونږلرې کړه زمونږنه دغه عذاب بيشکه مونږايمان راوړونکې يو،چرته دې دوئ لره |
| الذِّكْرٰى وَقَدْ جَآءَهُمْ رَسُوْلٌ مُّبِيْنٌ ۝ ثُمَّ تَوَلَّوْا عَنْهُ |
| نصيحت قبولول حالانکه په تحقيق سره راغلې دې دوئ ته رسول بيانونکې.بيادوئ اعراض اوکړودهغه داطاعت نه |
| وَقَالُوْا مُعَلَّمٌ مَّجْنُوْنٌ ۝ اِنَّا كَاشِفُوا الْعَذَابِ قَلِيْلًا |
| اووائی چه دا پيغمبر د بل چا شاګرد دې ، ليونې دې ، بيشکه مونږ لرې کونکې يؤ عذاب لره لږ وخت دپاره، |
| اِنَّكُمْ عَآئِدُوْنَ ۝ يَوْمَ نَبْطِشُ الْبَطْشَةَ الْكُبْرٰى ۚ اِنَّا مُنْتَقِمُوْنَ ۝ |
| بيشکه تاسو بياواپس کيدونکې يئ کفرته،په هغه ورځ چه مونږحمله اوکړوحمله لويه.بيشکه مونږبدله اخستونکې يو. |

﴿فَارْتَقِبْ يَوْمَ تَأْتِي السَّمَآءُ بِدُخَانٍ مُّبِينٍ﴾داتخويف دنيوی دې دخان مبين ښکاره لوګې،ددې په مصداق کښې دوه مشهورقوله دی:

(۱)حضرت ابن عباس رضي الله عنهمااو دبعض سلفوصالحينو نه مروی ده چه ددې نه مراد هغه لوګې دې چه قيامت ته قريب به پورته کيږی چه ټول خلق به پټ کړی، مؤمنانوته به د ده ډير لږ خفيف اثر په شان د زکام ورسيږی، او د کافرانو ، منافقانو په مرو او دماغو کښې به ننوځی اوبې هوشه کوی به ئې (ازکشاف، قرطبی، کبير وغيره) نودلته هم دغه لوګې مراددې او دا د قيامت په لسو(۱۰)نزدې علاموکښې يوه علامه ده،لکه په صحيح مسلم کښې دحذيفه بن اسيد ﷺنه روايت دې چه يو ځل نبی اکرمﷺزمونږخواته راغې،مونږ د يو بل سره د قيامت تذکره کوله، نو نبی اکرمﷺ اوفرمايل چه،تاسو د څه څيز تذکره کوئ نو مونږ عرض اوکړوچه د قيامت تذکره کوؤ، نوحضورﷺاوفرمايل: إِنَّهَا لَنْ تَقُومَ حَتَّى تَرَوْنَ قَبْلَهَا عَشْرَ آيَاتٍ - فَذَكَرَ - الدُّخَانَ، وَالدَّجَّالَ، وَالدَّابَّةَ، وَطُلُوعَ الشَّمْسِ مِنْ مَغْرِبِهَا، وَنُزُولَ عِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَيَأْجُوجَ

وَمَأجُوجَ، وَثَلَاثَةُ خُسُوفٍ: خَسْفٌ بِالْمَشْرِقِ، وَخَسْفٌ بِالْمَغْرِبِ، وَخَسْفٌ بِجَزِيرَةِ الْعَرَبِ، وَآخِرُ ذَلِكَ نَارٌ تَخْرُجُ مِنَ الْيَمَنِ، تَطْرُدُ النَّاسَ إِلَى مَحْشَرِهِمْ (صحيح مسلم :۲۹۰۱)

(۲)حضرت ابن مسعودﷺپه ډيرې سختئ سره دغه مذكوره قول ردكوى اوفرمائى چه مزاد دَ دې نه هغه قحط دې چه په كفارمكه ؤ باندې راغلې وؤ پوجه دَبد دُعا دَ پيغمبرﷺ، حضورﷺچه كله دَقريشودَمخالفت اودَسركشئ تنگ شونودعائى ورته اوكړه"اللهم اشدد وطأتک علی مضر، و اجعلها عليهم سنين كسني يوسف".نو اللهﷻ په دوئ قحط راوستلوحتّی چه دوئ به مردارې خوړلې،هډوكى اودَخاروخرمنې به ئى خوړلې،اوداقحط ترڅه وخته پورې جارى وؤحتّی چه ابوسفيان(چه لاتراوسه مسلمان شوې نه وؤ)راغې اووئيل چه اې محمدﷺته خو فرمائى چه څه رحمةً للعالمين يم او مونږ ته، ته د صله رحمئ حكم كوې، مونږ تا ته دَ صله رحمئ واسطه وړاندې كوؤ ځكه اې محمدﷺ ستاقوم دَلوګې دَوجه نه هلاكت ته قريب شو . نو دَ اللهﷻ نه دعااوغواړه چه باران اوشى،نو حضورﷺدعا اوكړه نوباران اوشواو دَ يمامه رئيس چه دَحضورﷺپه حكم ئى په دوئ غلې بندې كړې وې هغه ئى هم جارى كړى،ابن مسعودﷺ داهم فرمائى چه پنځه څيزونه تيرشويدى:(۱)دخان(۲)روم(يعنى دَروميانودَغلبې متعلق دَ قرآن پيشنگوئي،(۳) بطشة،يعنى په غزوه بدر كښ دكفارمكوّو انجام (۴)انشقاق القمر (۵) لزام،چه په سوف يكون لزاما سورت الشعراكښ تير دې

دابن مسعودﷺتفسيرمطابق دَقحط نه تعبيرپه دُخان سره ياځكه شويدې چه په زمانې دَ قحط كښ دَباران دَ نه وريدلوپه وجه دَزمكې نه دوړې اوچتيږى اوفضاء توله دَدوړو نه ډكه وى، ياپه زمانې دَقحط كښ دَشدت الجوع اوضعف بصر په وجه هرطرف ته دَلوګى په شان دوړې په نظر راځى،ياچونكه بعضِ عرب دَداسې لوئي واقعه نه تعبير په« دُخان » سره كوى نوځكه ورنه دلته تعبيرپه «دخانٍ مبينٍ» سره اوشو:قال بعض العرب نسمى الشرالغالب دُخاناً(روح المعانى)

﴿ رَبَّنَا اكْشِفْ عَنَّا الْعَذَابَ ﴾دې نه مخكښ يقولون مقدردې،يعنى دوئ به وائ چه مونږته دَدغه عذاب نه نجات راكړه نو مونږه به ايمان راوړو .لكه څرنگه چه تيرشوچه ابو سفيان سره دَ ملګرو راغې اودَحضورﷺسره ئى وعده اوكړه چه كچرته دغه تكليف زائل شى نو مونږ به ايمان راوړو . ﴿ أَنَّىٰ لَهُمُ الذِّكْرَىٰ ﴾يعنى دوئ پخپلې وعدې كښ ندى ريشتنى بلكه دَدوئ غرض كشف عذاب دې،يعنى دوئ به څرنگه نصيحت قبول كړى پدې سره اوڅرنگه به

دوئ وفاداري اوکړي څکه چه حال دادي، ﴿وَقَدْ جَآءَهُمْ رَسُولٌ مُّبِينٌ﴾يعنی دَنوَرپه شان عيان اوروښان رسول دوئ ته راغي، دَهغه نه دوئ انکاراوکړواو﴿مُعَلَّمٌ مَّجْنُونٌ﴾ئې ورته اوويل،کله وائي چې ده ته دا قرآن بل چا خودلې دې او کله وائي چې دې نعوذ بالله ليونې دې ،نودوئ نه دَ نصيحت قبولو توقع نشته.

﴿إِنَّا كَاشِفُوا الْعَذَابِ قَلِيلًا﴾يعنی مونږ دَدوئ نه څه لږمدت دَپاره دغه عذاب لرې کوؤ خو بيا هم دوئ ايمان نه راوړي،بلکه خپلوشرکي اعمالوته رجوع کوی.ليکن يادا وساتئ چه﴿يَوْمَ نَبْطِشُ الْبَطْشَةَ الْكُبْرَىٰ﴾يعنی که ايمان مورانه وړلونوپدغه ورځ به بيانشئ خلاصيدلې، البطشة الکبری په مصداق کښ هم دوه قوله دی:

(۱) دَابن مسعود ﷺ دَتفسيرمطابق دَ﴿ الْبَطْشَةَ الْكُبْرَىٰ ﴾ د لوني نيوني نه مرادغزو بدر ده، چه پدغه غزوه کښ دکفارونه بدل،انتقام واخيستوشواوويا(۷۰)تنه سرداران ئی قتل شول

(۲)او دَقول اول اودَابن عباس ﷺ دَتفسيرمطابق دَ الْبَطْشَةَ الْكُبْرَىٰ نه مراد ورځ دَقيامت ده، يعنی دوئ به دَ آخرت دَعذاب نه نشي خلاصيدونکی،چونکه دَابن مسعود ﷺ قول په دُخان مبين کښ موافق دې دَسباق سياق دَ عبارت سره نوپدې وجه اکثرومفسرينو ديته اصح وئيلی دی،والله اعلم.

| وَلَقَدْ فَتَنَّا قَبْلَهُمْ قَوْمَ فِرْعَوْنَ وَجَآءَهُمْ رَسُولٌ كَرِيمٌ ﴿١٧﴾ |
|---|
| اوبه تحقيق سره مونږامتحان کړې وؤمخکښ دَدوئ نه په قوم دَفرعون اوراغلی وؤدوئ ته رسول عزت مند. |
| أَنْ أَدُّوٓا۟ إِلَىَّ عِبَادَ ٱللَّهِ ۖ إِنِّى لَكُمْ رَسُولٌ أَمِينٌ ﴿١٨﴾ وَأَن لَّا تَعْلُوا۟ |
| داچه حواله ماته بندگان دَالله ﷻ بني اسرائيل بيشکه څه ستاسودَپاره رسول امانت داريم،اوداچه تکبرمه کوئ |
| عَلَى ٱللَّهِ ۖ إِنِّىٓ ءَاتِيكُم بِسُلْطَٰنٍ مُّبِينٍ ﴿١٩﴾ وَإِنِّى عُذْتُ بِرَبِّى |
| په الله ﷻ باندې،بيشکه څه راتله کوم تاسوته په دَليل ښکاره سره،اوبيشکه څه پناه نيسم په رب خپل سره |

وَرَبِّكُمْ اَنْ تَرْجُمُوْنِ ۞ وَاِنْ لَّمْ تُؤْمِنُوْا لِيْ فَاعْتَزِلُوْنِ ۞ فَدَعَا رَبَّهٗٓ

او په رب ستاسو سره دَدينه چه سنگسار کړئ ما، اوکه ايمان نه راوړئ په ما نولرې شئ څما نه نوسوال ئې اوکړو خپل رب نه

اَنَّ هٰٓؤُلَآءِ قَوْمٌ مُّجْرِمُوْنَ ۞ فَاَسْرِ بِعِبَادِيْ لَيْلًا اِنَّكُمْ مُّتَّبَعُوْنَ ۞

چه بيشکه دا قوم دې مجرمان (مونږ ورته اووې) چه بوځه بندگان څما د شپې بيشکه تاسو پسې کړې شوی به وی (قبطيان

﴿ وَلَقَدْ فَتَنَّا قَبْلَهُمْ قَوْمَ فِرْعَوْنَ ﴾ دَتخويف دنيوی يوه نمونه ده يعنی دَدې اهل مکه نه مخکښې قوم دَفرعون هم په ازمائش، امتحان کښې مبتلا کړې وو چه رسول موورته ليږلې وو چه آيا دوئ دَالله ﷻ پيغام قبلوی وی اوکنه؟ نوچه کله هغوئ انکار اوکړو اودَرسول تکذيب ئې اوکړو نوفرعون سره دَلښکرنه موپه درياب کښې غرق کړل، نوستاسو دَپاره اې اهل مکه! پدې کښې لوئ عبرت دې. ﴿رَسُوْلٌ كَرِيْمٌ﴾ ای کريم علی الله، کريم فی قومه، موسی عليه السلام ورنه مراد دې.

﴿اَنْ اَدُّوْٓا اِلَيَّ عِبَادَ اللّٰهِ﴾ "ان" تفسيريه دې او داتفسير دې ((وجاءهم رسول کريم)) يعنې تبليغ او وينا ئې دا وه چې الله بندگان ما ته حواله کړه او ﴿عِبَادَ اللّٰهِ﴾ منصوب دې مفعول دې دَ "اَدُّوْٓا" دَ پاره، مراد ورنه بنی اسرائيل دی، يعنی موسی عليه السلام فرعون ته اووې چه دابنی اسرائيل چه تاسو غلامان گرځولی دی داماته حواله کړئ اودَغلامئ نه ئې ازاد کړئ، لکه په سورة طه (۴۷) کښې تيردی ((ان ارسل معنا بنی اسرائيل))، دَابن عباس رضی الله عنه نه مروی ده چه دَ ﴿ اَدُّوْٓا ﴾ دَپاره مفعول محذوف دې او ﴿عِبَادَ اللّٰهِ﴾ منادیٰ ده حرف نداء ورنه حذف شوې ده اومراد دَ ﴿اَدُّوْٓا﴾ نه اطاعة او قبول دَدعوة دې، تقديردارنگه دې، اَدّوا اِلَيَّ حق الله تعالى من الايمان و قبول الدعوة يا عبادَ الله (روح المعانی) ﴿رَسُوْلٌ اَمِيْنٌ﴾ ای اَمينٌ على الرسالة ليس بخائن و لا كاذب، يعنی امانت دَرسالت ماته حواله دې، نوپدې کښې څه خيانت نه کوم اونه کاذب يم نوداپيغام دَرسالت قبول کړئ او دَ دې نه اعراض مه کوئ.

﴿اِنِّيْٓ اٰتِيْكُمْ بِسُلْطٰنٍ مُّبِيْنٍ﴾ تعليل دې دَ ﴿وَاَنْ لَّا تَعْلُوْا عَلَى اللّٰهِ﴾ يعنی ماتاسوته داسې واضحه معجزې (عصا، يدبيضاء وغيره) راوړی دی چه په هغې کښې دَانکار هيڅ گنجائش نشته

دي، نو لهذا تاسو تكبرمه كوئ چه دَدې نه انكاركونكي اوګرځئ، موسى عليه السلام چه خپل قوم ته دغه بيان اوكړونو هغوئ دَده دَقتلولواراده اوكړه لكه په سورة مومن كښې تيردي وقال فرعونُ ذروني اقتل موسىٰ....الخ نو موسى عليه السلام ورته اووې چه ﴿وَإِنِّي عُذْتُ بِرَبِّي وَرَبِّكُمْ﴾ يعنى ماته الله ﷻ ستادَتكليف نه پناه اوحفاظت راكړيدې، كقوله: فلا يصلون اليكما (القصص).

﴿وَإِن لَّمْ تُؤْمِنُوا لِي فَاعْتَزِلُونِ﴾ اعتزال مطلب يادادې چې كه خماخبره نه منئ او ايمان نه راوړئ نو خمانه لرى شئ ماته څه ضرر او ايذاء مه را رسوئ، او يا اعتزال مطلب دا دې چې خما نه لرې شئ خما تاسو سره هيڅ تعلق نشته ليكن چه قوم ئې منع نشونوموسى عليه السلام ورته بددعااوكړه چه ﴿فَدَعَا رَبَّهُ أَنَّ هَٰؤُلَاءِ﴾ لكه په سورة يونس كښې تيردي ربّنا اطمس على اموالهم واشدد على قلوبهم....

﴿فَأَسْرِ بِعِبَادِي لَيْلًا﴾ دې نه مخكښې قلنا مقدردې ﴿إِنَّكُم مُّتَّبَعُونَ﴾ يعنى فرعون او لښكر دَ ده چه ستاسو دَتلونه خبرشي نوستاسو دَتعاقب دپاره به درپسې رااوځي نو لهذا تاسو دَ شپې اوځئ چه تعاقب موا ونكړى نو ﴿إِنَّكُم مُّتَّبَعُونَ﴾ تعليل دې دَپاره دَامرپه تللو دَ شپې كښې.

| |
|---|
| وَاتْرُكِ الْبَحْرَ رَهْوًا ۖ إِنَّهُمْ جُندٌ مُّغْرَقُونَ ﴿٢٤﴾ كَمْ تَرَكُوا مِن جَنَّاتٍ وَعُيُونٍ ﴿٢٥﴾ |
| اوپريده درياب ولاړ، بيشكه دوئ لښكردې غرقيدونكې ، څومره ئې پريښودل دوئ باغونه اوچينې، |
| وَزُرُوعٍ وَمَقَامٍ كَرِيمٍ ﴿٢٦﴾ وَنَعْمَةٍ كَانُوا فِيهَا فَاكِهِينَ ﴿٢٧﴾ كَذَٰلِكَ |
| او فصلونه او ځايونه خائسته ، او نعمتونه چه وُو دوئ په هغې كښې خوشحال، هم داسې كوؤمونږ، |
| وَأَوْرَثْنَاهَا قَوْمًا آخَرِينَ ﴿٢٨﴾ فَمَا بَكَتْ عَلَيْهِمُ السَّمَاءُ وَالْأَرْضُ |
| اوبه ميراث كښې مو وركړل دغه ، قوم بل ته (بنى اسرائيلو ته) پس او نه ژړل پدوئ آسمان او نه زمكې |
| وَمَا كَانُوا مُنظَرِينَ ﴿٢٩﴾ |
| اونه وُو دوئ ته مهلت ميلاؤ شوې. |

﴿ وَاتْرُكِ الْبَحْرَ رَهْوًا ﴾ رهواً حال دې پمعنی دَساکنا علی حاله یعنی کله چه حضرت موسی علیه السلام دَحکم الهی مطابق بنی اسرائیل دَځان سره روان کړل، او بحر قلزم غاړې ته او رسیدل، نو ورستو ورپسې دَفرعون لښکر را اورسیدو، نو الله تعالیٰ موسی علیه السلام ته حکم اوکړو چه په خپلې عصا سره دا دریاب اووهه، نو دریاب ساکن اودریدلو او پکښې ورته دولس (۱۲) لارې جوړې شولې، بنی اسرائیل ورباندې پورې وتل (کمافی الشعراء:۲۵) نو موسی علیه السلام اراده اوکړه چه دریاب بیااووهی چه روان شی چه فرعون اولښکر ئې ورپسې رانشی. نوالله تعالیٰ ورته امراوکړوچه پخپل حال ئې پریږده چه لښکردَفرعون پکښې هم داخل شی، لښکردَفرعون چه پدغې وچه کښې ننوتل او ټول دَسمندرمنځ ته ورسیدل، نوالله تعالیٰ اوبوته حکم اوکړو نواوبه جاری شوې اوټول لښکر پکښې غرق شو، بعضومفسرینودَفرعون دَلښکرتعداد (۱۳) لاکه لیکلې دې.

عکرمه رحمه الله دَ ﴿رَهْوًا﴾ معنی یابساً خشک کوی کقوله تعالی: فاضرب لهم طریقاً فی البحر یبساً.... الخ (طه:) بعضِ ئې معنی (منفرجاً) کوی، او دا د دؤو څیزونو مینځ کښې حائل ټکړې ته وائي یعني دسمندر دواړه حصې داسې جدا جدا پریګده، مآل دَ ټولو یو معلومیږي

﴿إِنَّهُمْ جُندٌ﴾ ای لانهم جند.... الخ تعلیل دې دَماقبل، ﴿كَمْ تَرَكُوا مِن جَنَّاتٍ﴾ کم خبریه دې دَتکثیردَپاره، یعنی دَدوئ نه په ملک مصرکښې ډیرباغونه، نهرونه، خائسته خائسته بنګلې اوډیرنعمتونه پاتې شول.

﴿كَذَٰلِكَ﴾ کاف اسمي دې او په محل د نصب کښې مفعول مطلق دې فعلِ محذوف د پاره، او ذلک کښې اشاره ده مذکور نعمت او نقمت دواړو ته، اي: نفعل فعلا مثل ذلک، یعني مونږ هم دغه رنګ معامله کوو، چې اول خپل نعمتونو ورله ورکړو، خو چې ناشکري ئې اوکړي، نو خپل ترینه واپس واخلو او تباه ئې کړو. ﴿وَأَوْرَثْنَاهَا قَوْمًا آخَرِينَ﴾ دا عطف دې په ((ترکوا)) باندې، بنی اسرائیل ورنه مراددی لکه په سورة شعراء (۵۹) کښې پدې تصریح ده، (( و اورثناها بنی اسرائیل)). دَدې نه معلومیږی چه بنی اسرآئیل دَفرعون دَغرقیدلونه ورستو بیا مصرته راغلی وؤ او آبادشوی وؤ، دَدې آیت تفصیلی تفسیردَسورة شعراء په آیت (۵۹) کښې تیرشویدې نوهلته ئې ملاحظه کړئ.

﴿فَمَا بَكَتْ عَلَيْهِمُ ٱلسَّمَآءُ وَٱلْأَرْضُ﴾ دَدې آيت په تفسير کښې مختلف اقوال دي:

(۱) بعض فرمائي چه داکنايه ده دَعدم اکتراث نه په هلاکت دَفرعونيانو، يعنې دَدوئ هلاکت څه اهمه اولويه حادثه نده، بلکه لکه څرنګه چه دوئ بې قدره اومعمولي وُو نودغه شان ئې هلاکت هم معمولي خبره ده، نودادَعربودَعادت مطابق اووئيلې شو، ځکه چه دَهغوئ عادت دې چه کله څه لويه حادثه اولوئ سړې مړشي نوبياوائي چه "اظلمت له الدنيا، وبکت الرّيح والسّماء والارض"

(۲) بعض وائي چه په کلام کښې مضاف مقدردې تقديردارنګه دې: فمابکت عليهم اهل السّماء و اهل الارض، يعنې نه وربانديې فرشتواوجړل اونه انسانانو، بلکه په هلاکت ئې خوشحاله شول

(۳) ليکن دَاکثرومفسرينوقول دادې چه داحقيقةً دی، ځکه چه په آسمان اوزمکې کښې دَ هغوئ مناسب او لائق شعور موجود دې چه په هغې سره دَمومن اودَ کافر، فاسق دَمرتبې ادراک کوی، نو دَ مومن په وفات غمجن کيږی اوجاړی، لکه په حديث کښې دی چه: مامن عبدٍ الاّ و له في السّمآء بابان، بابٌ يصعد منه عمله وبابٌ ينزل منه رزقه اذا مات فقداه و بکيا عليه. رواه الترمذی عن انس ﷺ اوابن عباس ﷺ فرمائي چه: انّ الارض لتبکی على المؤمن اربعين صباحا، يعنې زمکه دَمؤمن سړی په وفات باندې څلويښت ورځې جاړی. اوحضرت علی ﷺ فرمائي چه: انّ المومن اذامات بکیٰ عليه مصلّاه من الارض، چه مومن سړې وفات شی نوورپسې جائ نماز، جاړی، غرض داچه دَ مومن په مرګ دَاسمانونودروازې اودَځمکې هغه حصه چه ده به وربانديې مونځ کولو ژاړی، او په کافرپسې نه ژاړی بلکه خوشحاله وی، نومطلب داشوچه فرعونيانوڅه نيک عملونه، نه کول چه زمکه ورپسې اوژاړی اونه ئې اسمان ته څه نيک عمل ختلې وُوچه ورپسې اوژاړی (تفسير کبير، روح المعاني وغيره).

﴿وَمَا كَانُوا۟ مُنظَرِينَ﴾ يعنې چه کله ئې دَهلاکت وخت راغې نوبل وخت ته ورته انتظاراونه کړې شو، اونه ورته اخرت پورې مهلت ملاؤشوبلکه دنياکښې معذب شول.

| وَلَقَدْ نَجَّيْنَا بَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ مِنَ ٱلْعَذَابِ ٱلْمُهِينِ ۝ مِن فِرْعَوْنَ ۚ إِنَّهُۥ كَانَ |
|---|
| اوبه تحقيق سره مونږنجات ورکړې وُوبنی اسرائيلوته دَعذاب رسواکونکی نه چه فرعون وُو، بيشکه دې |

| عَالِيًا مِّنَ الْمُسْرِفِينَ ۝ وَلَقَدِ اخْتَرْنٰهُمْ عَلٰى عِلْمٍ عَلَى الْعٰلَمِيْنَ ۝ |
|---|
| متکبره وو،حدنه تجاوز کونکو نه وو . او مونږ غوره کړي وو دوئ ته دَ علم په بنیاد په ټولو خلقو «دَ دغه وخت» |
| وَاٰتَيْنٰهُمْ مِّنَ الْاٰيٰتِ مَا فِيْهِ بَلٰٓؤٌا مُّبِيْنٌ ۝ |
| اوورکړي موووړدوئ ته معجزات هغه چه په هغی کښ وو انعام ښکاره |

﴿ وَلَقَدْ نَجَّيْنَا بَنِيٓ إِسْرَآءِيلَ ﴾داتتمه دَبیان سابق ده، او دیکښې په بني اسرائیلو باندې د احساناتو ذکر دې ، او دا اول احسان دې چه مونږبنی اسرائیلوته دَفرعون دَظلمونونه نجات ورکړو ، دَ﴿الْعَذَابِ الْمُهِينِ﴾نه هغه عذابونه مراد دی چه په سورة بقره،اعراف کښ تیر دی، چه "يذبّحون ابناءكم ويستحيون نسآءكم" .

﴿مِن فِرْعَوْنَ ﴾بدل دې دَ﴿ الْعَذَابِ الْمُهِينِ ﴾نه په حذف دَمضاف سره ای من عذاب فرعون،﴿إِنَّهُ كَانَ عَالِيًا مِّنَ الْمُسْرِفِينَ ﴾ای كان عالي الدّرجة فی طبقة المسرفين(كبير)یعنی په ظالمانو کښ ډیر لوئ ظالم وو ،یا﴿مِّنَ الْمُسْرِفِينَ﴾ خبرثانی دې دَ﴿ كَانَ ﴾یعنی فرعون متکبرهم وو او دَ مسرفینو نه هم وویعنی دَحدنه تجاوزکونکې ووحتّی چه دَالوهیت دعوه ئی کړې وه.

﴿وَلَقَدِ اخْتَرْنٰهُمْ عَلٰى عِلْمٍ﴾ اي لاجل علم . دا دویم احسان دې یعنی مونږبنی اسرائیلوته فضیلت اوغوره والي ورکړې وړپدې چې دوئ عالمان وو ،یا﴿عَلٰى عِلْمٍ ﴾ حال دی اي عالمين. معنی داده چه مونږ ته دَ بنی اسرائیلو کمزوریانې او نواقص اگرچه معلوم وو خو سره دَ دې نه مو ورته دَ هغې زمانې په خلقوفضیلت اوشرافت ورکړو(روح). ﴿عَلَى الْعٰلَمِيْنَ ﴾نه مراددَخپلې زمانې خلق دی، لکه داپه سورة بقره(۴۷)کښ هم تیردی،یا دَ بنی اسرائیلوفضیلت په اعتبار دَ بعضو وجوهو سره دې چه کثرت دَانبیاؤ عليهم السلام دې پدوئ کښ،نه من كلّ الوجوه حتی چه لازم شی فضیلت دَبنی اسرائیلوپه دې امّت محمّدیه علی صاحبهاالف الف سلامٍ وتحيه، باندې،

﴿وَءَاتَيْنَٰهُم مِّنَ ٱلْـَٔايَٰتِ﴾دريم احسان و انعام دي ، مراددآياتونه يامعجزات دموسى عليه السلام دى فقط چونكه معجزه دامت دپاره هم وى نو څكه« واتينٰهم »اويلې شو اوياهغه احسانات دى چه الله تعالىٰ په بنى اسرائيلوباندې كړى وو،لكه په درياب كښې ورته لارې جوړيدل،دشمن هلاكول، تظليل الغمام ، انزال دمن اوسلوىٰ وغيره،﴿مَا فِيهِ بَلَٰٓؤٌاْ مُّبِينٌ﴾ بلآءً يا پمعنى د انعام دې،اى نعمة ظاهرة،ياپمعنى دامتحان دې اى اختبار ظاهر لننظر كيف تعملون(روح).

| |
|---|
| إِنَّ هَٰٓؤُلَآءِ لَيَقُولُونَ ۞ إِنْ هِيَ إِلَّا مَوْتَتُنَا ٱلْأُولَىٰ وَمَا نَحْنُ بِمُنشَرِينَ ۞ |
| بيشكه دااهل مكه داوائى،چه نده دا مگر مرگ زمونږ رومبني دې او نه يومونږ بيا ژوندى كيدونكى |
| فَأْتُواْ بِـَٔابَآئِنَآ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ ۞ أَهُمْ خَيْرٌ أَمْ قَوْمُ تُبَّعٍ |
| «اوكه بيا ژوندى كيدل وى، نوراولئ زمونږمړه پلاران كچرته يئ تاسو رشتنى، آيادوئ غوره دى اوكه قوم دتبع غوره دې، |
| وَٱلَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ أَهْلَكْنَٰهُمْ إِنَّهُمْ كَانُواْ مُجْرِمِينَ ۞ |
| اوهغه خلق چه مخكښى وودهغوئ نه،هلاک كړل مونږهغوئ.بيشكه هغوئ وومجرمان |

﴿إِنَّ هَٰٓؤُلَآءِ لَيَقُولُونَ﴾ د تخويف دنيوى نمونې ذكر كولو نه ورستو رُخ د كلام بيا اهل مكئو طرف ته كرځولې كيږى،شكوه ده ددوئ نه په انكاردبعث بعد الموت باندې،مشركين د بعث بعد الموت نه منكروؤاوويل به ئې چه مرگ زمونږ اخرى حالت دې،دمرگ نه ورستو بيا ژوندى كيدل نشته دې، ﴿إِنْ هِيَ إِلَّا مَوْتَتُنَا ٱلْأُولَىٰ﴾ كه څوک اشكال اوكړى چې مشركان خو د حيات ثانى نه منكر وو،نو ان هي الا حياتنا الاولى وئيل پكاروو،لكه په سورة انعام(۲۹)كښې دى "ان هى الا حياتنا الدنيا" جواب دا دې چې حاصل د دواړو يو دې(۱) ځكه چې مسلمان د دې ژوند نه ورستو دمرگ او مرگ نه ورستو د برزخ زندگې، هغې نه ورستو بيا بعث ،حساب او د جنت جهنم قائل دي ، نو دوئ په دې قول كښې وائې چې مونږ درسره صرف دا يوه خبره منو چې مرگ شته ،او دا نور احوال درسره نه منو ، گويا علم معاني په اصطلاح كښې دا قصر الافراد دې ، دې تقدير باندې د "موت" نه مراد معروفه معنى د مرگ ده او «الاولى» په معنى السابقة سره دې ، اي : الا الموتة السابقة على تلک الاحوال (الجواهر للطنطاوي)

(۲) یا دا چې د دوئ دا قول رد دې د الله ﷻ د دې قول . کنتم امواتا فاحیاکم ثم یمیتکم ثم یحیکم (البقرة)، چې څنګه اول مرګ (چې عدم په صورت کښې وو) نه ورستو ئې درله ژوند درکړې دې ، دغه شان دویم مرګ نه بعد به خو بیا ژوندي کوي .نو دوئ اوئیل هغه مرګ چې هغې نه ورستو ژوند دې هغه صرف اول مرګ دې او مونږ د هغې قائل یو ، پاتې شو دویم مرګ نه ورستو بیا ژوندي کیدل نو مونږ دا نه منو ، دې تقدیر باندې موت نه مراد موت په صورت د نطفې کښې دې او ((الاولی)) په مقابله الثانیة کښې دې ، چې هغه معروف مرګ دې نو ګویا علم معاني په اصطلاح کښې دا قصر القلب دې .(کشاف ، کبیر)

﴿ أَهُمْ خَيْرٌ أَمْ قَوْمُ تُبَّعٍ ﴾دادتخویف دنیوی دویمه نمونه ده،مشرکین مکه دقوم دتبع نه زیات طاقت والاندی،نوچه هغوئ دشرک اودتکبرپوجه هلاک کړې شول نودوئ څوک دی،چه بچ به شی، تبّع دیمن په بادشاهانوکښ دیوبادشاه لقب وؤ،اصلی نوم ئی اسعد یا سعد وؤ، نیک،صالح اومؤحدوؤ،علماؤلیکلی دی چه تبّع دیمن هربادشاه ته وائی لکه قیصر د روم او کسریٰ دفارس بادشاه ته وائی،ددې وجه نه دتّبع جمع تبابعه راځی،دلته چه د کوم بادشاه ذکردې نودادحضورﷺدزماني نه تقریباًوه سوه(۷۰۰)کاله مخکښ تیر شویدې، پخپل عهدحکومت کښ ئی ډیرې علاقې فتح کړې وې،تردې چه سمرقندپورې رسیدلې وؤ، تاریخ لیکلی دی چه یوځل دې په مدینی منورې باندې تیرشونودحملې اراده ئی پرې اوکړه، د مدینی خلقوبه ورسره دورځې جنګ کولواودشپې به ئی ورله میلمستوب کولو،دې دهغوئ پدې سلوک باندې حیران وؤ،پدې دوران کښ ورته دوه یهودعالمانو اووئیل چه ته دا ښارنشې قبضه کولې ځکه چه دادنبی اخرالزمانﷺ دهجرت مقام دې،نودې دجنګ نه منع شو ،اودین موسوی چه پدغه وخت کښ برحق دین وؤهغه ئی قبول کړو ،دحضورﷺپه شان کښ ئی دا اشعار اوویل:

شهدتُ علی احمدَانه رسولٌ من الله باری النسم
ولومدّدهری الی دهره لکنتُ وزیراًله وابن عمّ

او بیا ئی دحضورﷺپه نوم خط اولیکواوداوس اوخزرج مشرانوته ئی ورکړوچه دابه نبی کریمﷺ ته ورکوئ،په خط کښ ئی لیکلی وؤ،امّابعدفانّی آمنتُ بکَ وبکتابکَ الّذی اُنزل علیکَ وانا علی دینک وسنتکَ وآمنتُ بربّک وربّ کل شیئ وآمنتُ بکلّ ماجآء من ربّکَ من شرائع الاسلام،فان

ادرکتک فبهاونعمت وان لم ادرک فاشفع لي ولاتنسني يوم القيامة فاني من امتک الأولين وتابعيک قبل مجيئک واناعلى ملتک وملة ابيک ابراهيم عليه السلام .بيانی په خط خپل مهر اولګولو "لله الامرمن قبل ومن بعد" ئی ورباندې اوليکل،اوخط دپاسه ئی پته اوليکله "الى محمدبن عبدالله نبی الله ورسوله خاتم النبين ورسول رب العالمين،من تبع الاول"دده قوم هم دده سره اسلام راوړې وؤليکن دده دوفات نه ورستو بيا ګمراه شوې وؤ ،بت پرستی وغيره ئی شروع کړه نو الله ﷻ ورباندې عذاب نازل کړواوتهس نهس شول،حضورﷺ چه کله مدينه ته هجرت اوکړونوهغه خط ورته ورکړې شو،ورته اولوستلې شو ،نوحضورﷺ درې(۳)خلې اووې مرحبابتبع الأخ الصالح اوداهم راغلى دی چه حضورﷺ ورباندې جنازه اوکړه(روح المعانی)په يوروايت کښې داهم دی چه حضورﷺ ارشاد دې چه "لاتسبوا تبعا فانه قد کان اسلم"دده په باره کښې راځی چه دې اولنې بادشاه وؤچه خانه کعبې ته ئی غلاف اچولې وؤ ،اوصيت ئی کړې وؤچه دې نه ورستودې هرکال خانه کعبې ته غلاف اغستولې شی،بعض مفسرين فرمائی چه قوم تبع اوقوم سبأمصداق يودې،دقوم سبأتاريخ او هلاکت دسورة سبأپه تفسيرکښې شويدې هلته ئی ملاحظه کړئ(والله اعلم)

﴿وَالَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ﴾قوم عاد،قوم ثمودوغيره ورنه مراددی،﴿إِنَّهُمْ كَانُوا مُجْرِمِينَ﴾علت دې د هلاکت،يعنی مونږدغه قومونوپدې وجه هلاک کړل چه دوئ مجرمان وؤنوای کفارمکه ؤتاسوهم دهلاکت نه اويريږئ،اوپه قرآن ايمان راوړئ.

| |
|---|
| وَمَا خَلَقْنَا السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا لٰعِبِيْنَ ۝ مَا خَلَقْنٰهُمَآ |
| اوندی پيداکړی مونږآسمانونه اوزمکه اوهغه څه چه په مينځ ددې دواړوکښې دی عبث،ندی پيداکړی مونږدغه دواړه |
| اِلَّا بِالْحَقِّ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ۝ اِنَّ يَوْمَ الْفَصْلِ مِيْقَاتُهُمْ اَجْمَعِيْنَ ۝ |
| مګرداثبات دحق توحيد دپاره،ليکن اکثردوئ نه نه پوهيږی.بيشکه ورځ دفيصلې تاريخ ددوئ دټولو، دې |
| يَوْمَ لَا يُغْنِيْ مَوْلًى عَنْ مَّوْلًى شَيْـًٔا وَّلَا هُمْ يُنْصَرُوْنَ ۝ اِلَّا مَنْ |
| هغه ورځ چه نه به راځي پکاريو دوست د بل دوست د هيڅ شي اونه به ددوئ امدادکولې شی.مګرهغه څوک |
| رَّحِمَ اللّٰهُ ۭ اِنَّهٗ هُوَ الْعَزِيْزُ الرَّحِيْمُ ۝ |
| چه رحم پری اوکړی اللهﷻ.بيشکه اللهﷻصرف هغه غالب دې په هرڅه،رحم کونکې دې |

﴿وَمَا خَلَقۡنَا ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضَ ﴾دليلِ عقلی دې په توحيد. الله ﷻ داتول علويات، سفليات محض دَلوبې تماشې دَپاره اوعبث بې مقصده ندی پيدا کړی بلکه دائی دَلوئ مقصد چه اثبات دَتوحيد دې، دلالت کولو دَپاره پيدا کړيدی﴿إِلَّا بِٱلۡحَقِّ ﴾ای لاثبات الحقّ،دَحق نه مرادتوحيد دې،يعنی دَتوحيد اظهار اواثبات دَپاره ئی پيدا کړيدی.

﴿إِنَّ يَوۡمَ ٱلۡفَصۡلِ ﴾ دی آياتونوکښی تخويف اخروی دې دَيوم الفصل نه ورځ دَقيامت مرادده،قيامت ته يومُ الفصل ځکه وائی چه پدې کښی به دَمخلوقاتوفيصلې کيږی، کقوله تعالی:ويومَ القيامة يفصل بينکم(ممتحنه:٣)يابه حق دَباطل نه جدا کيږی.﴿يَوۡمَ لَا يُغۡنِي ﴾بدل دې دَ﴿ يَوۡمَ ٱلۡفَصۡلِ ﴾.﴿إِلَّا مَن رَّحِمَ ٱللَّهُ ﴾بدل دې دَضميرمجهول دَ﴿يُنصَرُونَ﴾نه يعنی دَقيامت په ورځ به دَعذاب الهی نه څوک نشی بچ کيدلې مگرهغه چه الله ﷻ ورباندې رحم اوکړی،معاف ئی کړی،اودَده باره کښی شفاعت قبول کړی(٢)يامستثنی متصله ده اومرادورنه مومنان دی،يعنی دَقيامت په ورځ به هيڅ دوست بل دوست ته څه فائده نشی ورکولې،مگرمومنان به دَيوبل شفاعت کوی(٣)يامستثنی منقطع ده پمعنی دَلکن سره،يعنی په چاچه الله ﷻ رحم اوکړی نوهغه به نه دوست ته محتاج وی اونه ناصرته چه مددورسره اوکړی(روح المعانی).

﴿إِنَّهُۥ هُوَ ٱلۡعَزِيزُ ﴾غالب دې،نوچاته چه دَتعذيب اراده اوکړی نودَهغه څوک نصرت نشی کولې﴿ٱلرَّحِيمُ ﴾په چاچه رحم اوکړی نوهغه ته څوک عذاب نشی ورکولې اونه ورته دَنصرت ضرورت وی.

| إِنَّ شَجَرَتَ ٱلزَّقُّومِ ۝ طَعَامُ ٱلۡأَثِيمِ ۝ كَٱلۡمُهۡلِ يَغۡلِي فِي ٱلۡبُطُونِ ۝ |
|---|
| بيشکه اونه دَزقوم،خوراک دَغټ گنهګار دې ، پشان دَ ويلې کړې شوی تانبې به وي ، ايشيږی به په خيټوکښی، |
| كَغَلۡيِ ٱلۡحَمِيمِ ۝ خُذُوهُ فَٱعۡتِلُوهُ إِلَىٰ سَوَآءِ ٱلۡجَحِيمِ ۝ ثُمَّ صُبُّواْ فَوۡقَ |
| په شان دَايشيدلو گرمو اوبو،ونيسئ دې پس راکاږئ دې په ديکوديکومينځ دَجهنم ته . بيا واړوئ دَپاسه |

| رَأْسِهٖ مِنْ عَذَابِ الْحَمِيْمِ ۞ ذُقْ ۚ اِنَّكَ اَنْتَ الْعَزِيْزُ الْكَرِيْمُ ۞ اِنَّ هٰذَا |
|---|
| دَسردَده دَعذاب دَايشيدلو اوبو ،«ورته به ويلې شي» اوڅکه بيشکه ته«دنيا کښې» ډيرعزت مند معززوې،بيشکه داعذاب |
| مَا كُنْتُمْ بِهٖ تَمْتَرُوْنَ ۞ |
| هغه دې چه تاسو پدې کښې شک کولو. |

﴿اِنَّ شَجَرَتَ الزَّقُّوْمِ﴾ داتخويف اخروی دې،چه دکافرانو خوراک به په جهنم کښې زقوم وی، چه بدصورته اوترخه به وی ليکن کافران به ئې دَلوږې دَمجبورئ نه خوری،چه کله ئ او خوری نو په خيټو کښې به دګرمواوبو په شان خوټکيږی،ابن عباس فرمائی چه حضور دا آيت کريمه تلاوت کړو چه:يايها الذين آمنوا اتّقوا الله حقّ تقاته و لا تموتُنّ الاّ و انتم مسلمون(آل عمران:۱۰۲) بيائی اوفرمايل چه که دَزقوم يوه قطره هم دنياته رااوسسيږ نو دنيا والو دَخوراک څيزونه به خراب کړی،نو څه حال به وی دَهغه قوم چه خوراک ئې زقوم وی.(بغوي)

﴿شَجَرَتَ الزَّقُّوْمِ﴾ تفصيل په سورة صفّات کښې تيردې اوپه سورة بنی اسرائيل کښې ورته "شجرة الملعونة" وئيلې شويدی.

﴿طَعَامُ الْاَثِيْمِ﴾ "اثيم" مبالغه ده په آثم کښې،ډيرګنهګاريعنی کافر﴿كَالْمُهْلِ﴾جار مجرور خبر دې دَ مبتدا محذوف، چې "هو" دې ، او راجع دې "طعام" ته، نو ديکښې د کفارو مذکور خوراک تفصيل بيان دې ، "مهل" ياويلی کړې شوې تانبې ته وائی،يادُردی الزّيت،ته وائې يعنی تيلو په آخر کښې چه کوم خيرې اوخاوره وی. «يغلي في البطون» دا خبر ثاني دې مبتدا محذوف، ديکښې د طعام مذکور بل کيفيت بيان دې،﴿كَغَلْيِ الْحَمِيْمِ﴾صفة دې دَ مصدرمحذوف ای غلياً كغلي الحميم.

﴿خُذُوْهُ﴾دَدينه مخکښې "يُقال للزبانية"مقدردې،يعنی دَجهنم فرشتوبه اووئيلې شی چه اونی نيسئ اوپه ديکوديکوئی دَ جهنم مينځ ته بوځئ،﴿فَاعْتِلُوْهُ﴾ای جرّوه بقهرٍ."عتل" نه ماخوذ دې ، او "عتل" څوک د ګريبان نه نيولو ته وائي ، او دلته د "اعتلوه" معني په زور

راکاږل دي جهنم ته ﴿ثُمَّ صُبُّوا فَوۡقَ رَأۡسِهِ﴾لفظ دفوق کښې اشاره ده احاطې دعذاب ته په ټول بدن پورې، ﴿ذُقۡ إِنَّكَ أَنتَ ٱلۡعَزِيزُ ٱلۡكَرِيمُ﴾دا خطاب به ورته استهزاءً اوتوهيناً اوکړې شي، بعضِ وائی چه دا خطاب به ابوجهل ته وی چه نبی کريمﷺ ته ئې په يوه موقع کښې وئيلی وو چه"انا العزيز الکريم"پدې کښې اګرچه څه شک نشته دې چه ابوجهل هم ددې مصداق دې، ليکن غوره داده چه خاص ندې داعذاب په يو کافر پورې(ابن کثير)

| إِنَّ ٱلۡمُتَّقِينَ فِي مَقَامٍ أَمِينٍ ﴿٥١﴾ فِي جَنَّٰتٍ وَعُيُونٍ ﴿٥٢﴾ يَلۡبَسُونَ |
|---|
| بيشکه پرهيزګاران به په داسې ځايونو کښې وی چه په امن کښې به وی دهرآفت نه، په باغونو اوچينو کښې به وی، اغوندی به |
| مِن سُندُسٍ وَإِسۡتَبۡرَقٍ مُّتَقَٰبِلِينَ ﴿٥٣﴾ كَذَٰلِكَ وَزَوَّجۡنَٰهُم |
| دباريکو ريښمنونه اودغتو ريښمنونه مخامخ به وی يوبل ته،هم داسې به وی.اوپه نکاح به ورکړومونږدوئ ته |
| بِحُورٍ عِينٍ ﴿٥٤﴾ يَدۡعُونَ فِيهَا بِكُلِّ فَٰكِهَةٍ ءَامِنِينَ ﴿٥٥﴾ لَا يَذُوقُونَ |
| توروغټوسترګوو الاښځې،غواړی به دوئ په جنت کښې هرقسم ميوې حال داچه په امن کښې به وی،نه به څکی دوئ |
| فِيهَا ٱلۡمَوۡتَ إِلَّا ٱلۡمَوۡتَةَ ٱلۡأُولَىٰ وَوَقَىٰهُمۡ عَذَابَ ٱلۡجَحِيمِ ﴿٥٦﴾ |
| په جنت کښې مرګ مګرهغه مرګ چه ړومبې ووُ په دنياکښې اوبچ به کړی دوئ الله تعالی عذاب دجهنم نه |
| فَضۡلًا مِّن رَّبِّكَ ذَٰلِكَ هُوَ ٱلۡفَوۡزُ ٱلۡعَظِيمُ ﴿٥٧﴾ |
| په فضل درب ستا سره ، هم دا صرف . کاميابی لويه ده |

﴿إِنَّ ٱلۡمُتَّقِينَ فِي مَقَامٍ أَمِينٍ﴾دی آياتونو کښې بشارت اخرويه دې، مؤمنانو ته به دالله ﷻ په فضل اوکرم سره دجنت هرقسمه ابدی سروری نعمتونه حاصل وی، اوهم دا لويه کاميابی ده چه دانسان ابدی ژوند په ابدی نعمتونو کښې تيريږی، اودالله ﷻ دعذاب نه محفوظ مامون وی، اوتر ابد الاباد پورې دالطافو اوافضالو مورد اوګرځی(رزقنا الله بفضله). ﴿أَمِينٍ﴾يعنی داسې

ځايونه او بنګلې به ورته ملاؤشي چه جنتي به پکښې دهرآفت،خوف،نه محفوظ وي،په امن کښې به وي.

﴿فِي جَنَّٰتٍ﴾بدل اشتمال دې دَ﴿مَقَامٍ﴾نه﴿سُندُسٍ﴾جمع دَسندسة،ته"الرقيق من الديباج"باريک ريښنم ته وائي،او﴿وَإِسْتَبْرَقٍ﴾غټ،موټارېښنم ته وائي﴿مُّتَقَٰبِلِينَ﴾يوبل ته به مخامخ ناست وي،کنايه ده دَدينه چه دَيوبل سره به ئې موانست.محبت وي،بُغض عدوات به ورنه منتزع وي،کقوله تعالى:ونزعنامافى صدورهم من غلٍّ...الخ(اعراف،حجر).﴿كَذَٰلِكَ﴾ اى الامر کذالک،تقريراوتحقيق دَماقبل دې،دَ﴿وَزَوَّجْنَٰهُم﴾مطلب يادادې چه دَجنتيانوبه دَ حورو سره باقاعده نکاح کولې کيږي،په جنت کښې به اګرچه احکام تکليفيه نه وي خونکاح به بطورِ اعزاز او اکرام کولې کيږي،ياتزويج په خپله اصلى معنىٰ کښې دې،يعنى حورې به دَ جنتيانو جوړې اوګرځولې شي او جوړه جوړه به ګرځي.﴿بِحُورٍ﴾جمع دَحوراء ده،تک تورو سترګو والا ته وائي﴿عِينٍ﴾جمع دَعيناء ده،غټو سترګو والا ته وائي.

**فائده**:ډيرروايات په دې دلالت کوي چه حورې دَجنت غيردى دَنساءالدنيانه،په يوحديث کښې دي"خُلقَ الحورُالعين من زعفران"(روح، ابن ابي حاتم) بيااختلاف دې پديکښې چه آياحُورې به افضل وي اوکه نساءالدنيا.بعضې وائي چه نساءالدنيابه بهتره وي په سبب دَنيک عمل دَدوئ نه په دنياکښې ، بعضې وائي چه حورالعين به افضل وي،لقوله عليه السلام:وابدله زوجًاخيرًامن زوجه(مسلم باب الدعاء على الميت کتاب الجنائز)والله اعلم.

﴿ءَامِنِينَ﴾اى آمنين من الانقطاع والنقصان"آمنين"حال دې دَضميرفاعل دَ﴿يَدْعُونَ﴾ نه ﴿لَا يَذُوقُونَ فِيهَا ٱلْمَوْتَ﴾دانعمت دَتولونعمتونودَبقاء ضمانت دې،يعنى دوئ به هميشه هم پدغه عيش اونشاط کښې خوشحال اوسيږي،ځکه چه پدوئ به بالکل فناء اومرګ نه راځي، مرګ به ورباندې هم نه راځي اودَمرګ مشابه حالت چه خوب دې،هغه به ورباندې هم نه وي،لکه دَجابربن عبدالله نه روايت دې چه دَحضورﷺنه چاتپوس اوکړو"آينامُ اهلُ الجنة؟ قال لا، النوم اخوالموت واهل الجنة لايموتون ولاينامون(روح المعاني بحواله بيهقي).

﴿إِلَّا ٱلْمَوْتَةَ ٱلْأُولَىٰ﴾استثناء منقطع ده پمعنی د لکن سره ای لکن الموتة الاولی قد ذاقها فی الدنیا(بحر،روح)﴿فَضْلًا مِّن رَّبِّكَ﴾مفعول مطلق دي دمحذوف دپاره یاد﴿وَوَقَٰهُمْ﴾دپاره مفعول له دي،نوپدیکښ اشاره ده چه دجهنم نه بچ کیدل اوجنت ته داخلیدل محض په فضل دالله ﷻ سره دی،اوپه الله ﷻ باندې دعملونوثواب ورکول واجب ندی(روح)﴿ذَٰلِكَ﴾اشاره ده،دجنت نعمتونو اودجهنم ته بچ کیدوته،چه دالویه کامیابی ده

| فَإِنَّمَا | يَسَّرْنَٰهُ | بِلِسَانِكَ | لَعَلَّهُمْ | يَتَذَكَّرُونَ ۞ | فَٱرْتَقِبْ |
|---|---|---|---|---|---|
| بیشکه آسان کړې مودې داقرآن په ژبه ستادپاره ددی چه دوئ نصیحت قبول کړی پس انتظارکوه دانجام ددوئ | | | | | |
| إِنَّهُم مُّرْتَقِبُونَ ۞ | | | | | |
| بیشکه دوئ هم انتظارکونکی دی | | | | | |

﴿فَإِنَّمَا يَسَّرْنَٰهُ بِلِسَانِكَ﴾داآیت ټول سورة سره متعلق دي ګویاچه دټول سورة خلاصه اوتاکید دي،اواجمال دي دتفصیل،اوخصوصي طورباندې اولې دعوې سره متعلق دې چه دا قرآن زمونږ کتاب دي اودوئ د نصیحت دپاره مونازل کړیدې.او﴿بِلِسَانِكَ﴾معنی یاداده چه بلغتک په لغت ستاچه عربی ده،نوداقرآن موددوئ په مورنئ ژبه کښ نازل کړیدې چه دوئ وربانديې په اسانئ سره پوهه شی اونصیحت قبول کړی،ایمان پرې راوړی،اویامعنی داده چه د دې قرآن لوستل موتاته اسان کړیدی،چه ته ئی دوئ ته بیان کړې اودوئ نصیحت قبول کړی

﴿فَٱرْتَقِبْ إِنَّهُم مُّرْتَقِبُونَ﴾داتخویف دنیوی دې دابتداء سورة فارتقب یوم تاتی السماء سره متعلق دې اوپدې کښ تسلی هم ده حضورﷺ ته چه دوئ خوستادمرګ انتظارکوی چه غلبه داسلام به رانشی،لیکن ته انتظارکوه ددوئ دبدانجام چه څه ورته پیش کیږی.

| ركوعاتها (۴) | سورة الجاثيه مكية | آياتها (۳۷) |
| --- | --- | --- |
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بيحده مهربان او ډير رحم كونكي دي شروع كوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۴۵) وحسب النزول (۶۵)**

سورة الجاثيه په حواميم سبعه ؤكښې شپږم سورة دې،ترتيب قرآنى لحاظ سره(۴۵)دې، او ترتيب نزولى په لحاظ سره(۶۵)دې،نزلت بعدسورة الدخان،زمانه دَنزول ئى دوراِخيردمكې دې.

**ربط اسمى**: ماقبل كښې ذكر وؤ چې حق په مقابله كښې به ددوئ دلائل دخان (لوګى) پشان والوزى.اوس دلته ذكركيږى چې حق دلائلو په مقابله كښې دوئ بالكل عاجزه او لاجوابه دى لكه په ګوډو چې ناست وى.

**ربط معنوى**: (۱) ماقبل سورت كښې عظمت قرآن ذكر وؤ اودلته قرآن نه په انكار باندې زجر دې.

(۲)ماقبل كښې بنى اسرائيلو باندې دَ الله ﷻ نعمتونو تذكره وه،دلته ديكښې دَهغوئ ناشكرى تذكره كيږى،

(۳)ماقبل كښې هم دَيوې شبهې جواب او يوباطلې عقيدې رد وؤ،ديكښې هم يو على سبيل التنزل دَ مشركينو يوې بلې شبهې جواب او باطلې عقيدې رد دې شبه دا وه چې مشركانو به ويل چې زمونږمعبودان اګرچه زمونږسوالونه،نه آورى ليكن مونږئى عبادت ځكه كوؤ،چې زمونږ آباؤ اجدادو ئى عبادت كړيدې دادَهغوئ رسم دې،نوالله ﷻ ئى جواب كوى چه ثُمَّ جعلناك على شريعة من الامر.....(۱۸) يعنى دعبادت كولودَپاره مونږتاسوته صحيح دين دركړيدې، نودَهغې اتباع كوئ اودَاباؤاجدادو دَ رسم بداتباع مه كوئ. همدا دَدې سورت دعوى ده چې اتباع دَ شريعت كوئ آباؤو واجداد او د رسم اتباع مه كوئ.

**دسورة دَمضامينواجمالى خلاصه**

په اول كښې تمهيد دې مسئله دَتوحيدمنلوته،پنځه(۵)عقلى دلائل دى په توحيد،يو(۱)نقلى دې، دې نه علاوه،زجرونه،تخويفات،بشارات دى،اوپه درميان كښې دعوه دَسورة ده.

**تفصيلي خلاصه**: اول دوه آيتونو كښې تمهيد مع الترغيب الى القرآن دي،
ټول پنځه دلائل عقليه په توحيد باندې ذكر كيږي:
(۱) اول دليل عقلي آيت ۳تر۵ كښې ذكر كيږي، دا دليل على سبيل التدريج والترقى دري .
قسمه دلائل باندې مشتمل دي:
(۱) **دليل افاقى**: دَپه ان في السمٰوات والارض كښې ذكر دي.
(۲) **دليل انفسى**: دا په وفي خلقكم كښې ذكر دي.
(۳) **دليل جوى**: دا په واختلاف الليل كښې ذكر دي.
(۲) دويم دليل عقلي په آيت ۱۲ كښې ذكر دي: الله الذي سخرلكم البحر.
(۳) دريم دليل عقلي آيت ۲۲ كښې ذكر دي: وخلق الله السمٰوات والارض بالحق
(۴) څلورم دليل عقلي په آيت ۲۷ كښې ذكر دي: ولله ملك السمٰوات والارض،
(۵) پنځم دليل عقلي په آيت ۳۲ كښې ذكر دي: فلله الحمد رب السمٰوات•
ټول سورت كښې يو دليل نقلي دي، چې آيت ۱۷ كښې بيانيږي: ولقد آتينا بني اسرائيل
دعوه دَسورت آيت نمبر ۱۸ ثم جعلناك على شريعة كښې ذكر ده
دينه علاوه په مينځ كښې زجرونه ،شكوى، تخويفات، اوبشارتونه ذكر كيږي.

**تمت خلاصة السورة اجمالاً وتفصيلاً**

| حٰمٓ ﴿۱﴾ تَنْزِيْلُ الْكِتٰبِ مِنَ اللّٰهِ الْعَزِيْزِ الْحَكِيْمِ ﴿۲﴾ اِنَّ |
|---|
| الله ﷻ پوهيږي په معنى دَدې،نازليدل دَ كتاب دَطرفه دَالله نه دى چه غالب دې حكيم دې،بيشكه |
| فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ لَاٰيٰتٍ لِّلْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۳﴾ وَفِيْ خَلْقِكُمْ |
| په پيدائش دَاسمانونو كښې او زمكه كښې خامخا ډير دلائل دَتوحيد دى دپاره دَمؤمنانو ،اوستاسو په پيدا كولو كښې هم |
| وَمَا يَبُثُّ مِنْ دَآبَّةٍ اٰيٰتٌ لِّقَوْمٍ يُّوْقِنُوْنَ ﴿۴﴾ وَاخْتِلَافِ الَّيْلِ |
| اوپه هغه څه كښې چه خوره وى الله دَځناورونه دلائل دَتوحيددى دپاره دَهغه قوم چه يقين كوى.اوپه بدليدلو دَشپې |

| وَالنَّهَارِ وَمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ مِنَ السَّمَآءِ مِنْ رِّزْقٍ فَاَحْيَا بِهِ الْاَرْضَ |
|---|
| اوورځې کښې اوپه هغې کښې چه نازل کړيدې الله ﷻ دآسمان نه رزق(باران) بيا ژوندئ کړې په هغې سره زمکه |
| بَعْدَ مَوْتِهَا وَتَصْرِيْفِ الرِّيْحِ اٰيٰتٌ لِّقَوْمٍ يَّعْقِلُوْنَ ۝٥ |
| ورستودوچوالي دهغې نه،اوپه اړه ولوراړه ولو دهواګانوکښې دلائل دتوحيددي دپاره دهغه قوم چه عقل لرې. |
| تِلْكَ اٰيٰتُ اللّٰهِ نَتْلُوْهَا عَلَيْكَ بِالْحَقِّ فَبِاَيِّ حَدِيْثٍۭ بَعْدَ اللّٰهِ وَاٰيٰتِهٖ |
| دغه دلائل دتوحيددالله دي لولودامونږيې تاپه حق سره ، پس په كوم كلام ورستودكلام به دالله نه اوددلائلودهغه نه |
| يُؤْمِنُوْنَ ۝٦ |
| دوئ به ايمان راوړي. |

﴿حٰمٓ ۝١ تَنْزِيْلُ الْكِتٰبِ﴾دا تمهيد مع الترغيب دې او تفسير ئې په تيرشوو حواميمو كښې شويدې

﴿ اِنَّ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ﴾اى فى خلق السّمٰوات والارض،دَدې ځائ نه تر﴿لِقَوْمٍ يَّعْقِلُوْنَ ﴾ پورې دا اول دليل عقلى دې،ټول اته (٨)اموروباندى مشتمل دې،اودرى قسمه دلائل په توحيد باندى على سبيل التدريج والترقى راوړلې شوى دى، اول آيت كښې دليل آفاقى دې ، دويم آيت كښې دليل انفسى دې او دريم آيت كښې دليل جوى دې، ﴿اِنَّ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ﴾ دا **دليل عقلى افاقى** دې ، يعنې دې كائنات باندې غور اوكړئ،آسمانونو او زمكى پيدائش باندې غور اوتدبر اوكړئ،نوتاسو باندې به واضحه شى چې دې صانع خامخا څوک شته دې،

﴿وفي خلقكم﴾دا **دليل عقلى انفسى** دې، على سبيل الترقى ذكر كيږي،يعنى كه دا نه وى ، نو دى خپل تخليق باندى غور اوكړئ، څومره ادوارو باندې مشتمل دې ،اول نطفه،بيا علقه،بيا مضغة،بيا مور په خيټه كښې يوروغ صورت وركول، بيا دنيا ته راتلل ،او دغه شان څومره خاروى الله ﷻ په كائنات كښې خواره كړيدى،هر هر يوخلقت ،هيئت او عادت باندې غور اوكړئ نو تاسو ته به يقين راشى دالله ﷻ په وحدانيت.

﴿واختلاف الليل والنهار﴾دا دليل عقلي جوي على سبيل الترقي ذكر كيږي، يعني كه پدې مو يقين نه رازى نوبيادې كائنات انقلاباتو ته اوګورئ شپه راشي ورځ لاړه شي او ورځ راشى، شپه لاړه شى ، كله شپه لويه شى ورځ وړكى شى ،كله ورځ لويه شى شپه وړوكى شى.
بيا د الله ﷻ رزق انتظام ته اوګورئ،زمكه مړه پرته وى ،الله ﷻ وريځې راوليږى،باران اورى، فصل راوخيژى،تاسو ته رزق ملاؤشى،هواګانوته اوګورئ ځنى شمالا ،جنوبا الوزى. ځنې شرقا غربا ،ځنې ګرمې وې ځنې يخې، ځنې خشكې وى ،ځنو كښې نمى وى،كه چا كښې لګ غوندې عقل وى،او هغه په دې امورو باندې غوراوكړى نوضرور بالضرور په هغه به واضحه شى چې دې كائنات خالق او متصرف تن تنها صرف الله ﷻ دې.

**فائده** (١): دا درى آيتونه دى ،اول آيت په آخر كښې لآيت للمؤمنين ذكر دې ،دويم په آخر كښې آيت لقوم يوقنون‌ذكر دې،دريم په آخر كښې آيت لقوم يعقلون‌راغلې دې،ديكښې څه نكته ده ، علماؤ دَدى څو توجيهات ليكلى دى:

(١)ايمان على سبيل التدريج درې درجې دى:(١)نفس ايمان: دا مرتبه دا تصديق ده،(٢)ايقان:ديكښې ايمان سره يقين هم راشى اوكوم شكوك وشبهات وى هغه دفع شى(٣)عقل:دې درجه كښې ايمان كښې استحكام راشى اوشكوك و شبهات سره نه متزلزله كيږى،نو دلته دا ايمان ددغه درې درجوذكردې،يعنى چاچې آسمانونه او زمكې پيدائش باندې غوروتدبر اوكړو نو هغه په نفس ايمان سره متصف شى اوتصديق به ورته حاصل شى ،دينه بعد چى كوم دلائل ذكر دى په دويم آيت كښې چاچې په هغې باندې غور و فكر اوكړو نود هغه ايمان به ايقان درجى ته ترقى اوكړى،او چاچې په هغه امورو تدبر وغور اوكړو كوموذكر چى په دريم آيت كښې دى نوده ته به عقل درجه حاصله شى او ايمان به يى مستحكم شى.

(٢)دويمه توجيه بعض علماؤو داليكلى ده،چه د درې واړؤ صفاتومصداق يودې،يعنى دا درې صفات دَ مسلمانانو بيانيږى، يعنى مسلمانان دَ الله ﷻ په ذات وصفات ايمان لرونكى وى، هم دوئ پرې يقين كوى ،ضد اوعناد دَ وجهې نه انكار نه كوى،هم داخلق عاقلان دى.

(٣) تفسير كبير كښې دَدې مطلب داسې بيان شويدې كه چرته چا كښې دَ ايمان طلب وى نو اسمانونو او زمكه كښې كوم دلائل دَ الله ﷻ دَ وحدانيت دى هغه د دپاره كافى دى،اوكه

ايمان راوړل نه غواړي صرف حق پيژندل غواړي نوهغې دپاره بيا دا دلائل كافي دي كوم چې وړې خلقلكم كښې ذكر شو اوكه نه ايمان راوړل غواړئ او نه حق پيژندل غواړي نو عقلاء خودي ، كم از كم د عقلاؤو د زمرې نه خو دې ځان نه اوباسي،نو دكوم دلائل چې ذكر دى په اختلاف الليل كښې دا يو عاقل مجبوره وى چه ايمان راوړي.

**فائده** (۲): ددې سره مشابهه آيت دسورة بقرې(۱۶۴)آيت هم دې،مكمل تفسيرئې هلته هم شويدې،هلته داوكتلې شي،البته په دواړوآياتونوكښې په يوڅوجوهوسره فرق دې:

(۱)په سورة بقره كښې انّ فى خلق السّموات دې اودلته ئې لفظ دخلق ندې ذكر كړيدې،وجه داده چه پديكښې اشاره ده دې خبرې ته چه خلق عين مخلوق دې،نوفرق نشته دې په مابين د فى خلق السّموات كښې اود فى السّموات كښې(۲)په سورة بقره كښې فُلك (كشتئ) او سحاب(وريځې)ذكردى دلته نه دې ذكر شوى،وجه داده چه دلته دكشتئ اودوريځې،په سبب چه رياح(هوا)ده،اكتفاء شويده، ذكر دسبب استغناء راولى دمسبب نه

(۳)هلته ئې ټول دلائل په يوآيت كريمه كښې ذكركړيدى اودلته ئې جدا جدا په درې آياتونو كښې،پديكښې تنبيه ده پدې خبره چه هرقسمه دليل دپاره لابدى ده چه نظر ورته اوكړيشي په نظرتام اوشافى سره(تفسيركبير)

﴿تِلْكَ ءَايَٰتُ ٱللَّهِ﴾مشار اليه مذكوره دلائل دى﴿بِٱلْحَقِّ﴾اى بالصدق﴿فَبِأَيِّ حَدِيثٍۭ بَعْدَ ٱللَّهِ﴾اى بعد حديث الله،يعنى دالله ﷻ دكلام نه بل كوم كلام داوريدلو اومنلو قابل دې چه دوئ ئې واورى اوونې منئ،نوچه دوئ دالله ﷻ كلام نه منى نوبيا هيڅ هم نه منى.

| وَيْلٌ لِّكُلِّ أَفَّاكٍ أَثِيمٍ ۞ يَسْمَعُ ءَايَٰتِ ٱللَّهِ تُتْلَىٰ عَلَيْهِ ثُمَّ يُصِرُّ |
|---|
| هلاكت دې دپاره دهر ډير دروغژن،ډيرګنهګارچه اورى آياتونه دالله(قرآن)چه لوستلې شى پده بيا كلك اودريګي په كفر |
| مُسْتَكْبِرًا كَأَن لَّمْ يَسْمَعْهَا ۖ فَبَشِّرْهُ بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ۞ |
| تكبركونكې وى لكه چه نه وى اوريدلى ده هغه آياتونه پس زيرې وركړه ده ته د عذاب دردناك . |
| وَإِذَا عَلِمَ مِنْ ءَايَٰتِنَا شَيْـًٔا ٱتَّخَذَهَا هُزُوًا ۚ أُولَٰٓئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ |
| اوكله چه دې خبر شې دې زمونږ آياتونو كښې په څه څيزنو اونيسى هغې لره په مسخرو سره دغه كسان دوئ دپاره عذاب |

| مُّهِيۡنٌ ۞ مِنۡ وَّرَآئِهِمۡ جَهَنَّمُ ۚ وَلَا يُغۡنِيۡ عَنۡهُمۡ مَّا كَسَبُوۡا شَيۡـًٔا |
|---|
| ذلت ناک دي، مخکښ دَدوئ نه جهنم دې، او فائده به ورنکړي دَدوئ نه هغه څه چه کسب کړي وي دوئ د هيڅ څيز |
| وَّلَا مَا اتَّخَذُوۡا مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ اَوۡلِيَآءَ ۚ وَلَهُمۡ عَذَابٌ عَظِيۡمٌ ۞ هٰذَا هُدًى ۚ |
| اونه هغه بتان چه نيولي دي دوئ ماسوىٰ دَالله نه، کارسازان، او وى به دوئ دپاره عذاب لوئ. داقرآن هدايت دې، |
| وَالَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا بِاٰيٰتِ رَبِّهِمۡ لَهُمۡ عَذَابٌ مِّنۡ رِّجۡزٍ اَلِيۡمٌ ۞ |
| اوهغه کسان چه کفرئې کړيدې په آياتونودَرب خپل دوئ دپاره عذاب دې ډير سخت، دردناک . |

﴿وَيۡلٌ لِّكُلِّ اَفَّاكٍ اَثِيۡمٍ﴾ دازجردې هغه چاته چه دَآيات الهيه ؤنه اعراض کوى، مفسرين فرمائى چه داآياتونه نازل دى دَنضربن حارث په باره کښ، چه ده به دَدروغو قصو والاکتابونه «ډائجسټ» اخستل، خلق به ئې دَقرآن نه پرې منع کول، تفصيل په سورة لقمان په ابتداء کښ تيرشويدې، سبب د نزول اگرچې خاص کس کيدې شي خو مدلول ئې عام دې، هرهغه چاته شامل دې چه موصوف وى پدې صفت سره (روح). ﴿اَفَّاكٍ﴾ اى كذّاب، ﴿اَثِيۡمٍ﴾ اى كثيرالاثم، او ﴿وَيۡلٌ﴾ يا پمعنى دَهلاکت دې يا کنده ده دَکندو دَجهنم نه

﴿وَاِذَا عَلِمَ﴾ دا زجر ثانى دې يعنى ايمان راوړل خولرې خبره ده بلکه چه کله زمونږ اياتونه واؤرى نو مسخرې وربورې کوى. ((عذاب مهين)) جزاء من جنس العمل ده .

﴿مِنۡ وَّرَآئِهِمۡ﴾ داتخويف دې ،اى من قدامهم، يا وراء پمعنى دَ"بعد" سره دې، اى بعد موتهم جهنم، ﴿مَّا كَسَبُوۡا شَيۡـًٔا﴾ دَدې په عموم کښ دَدنيا احوال، اعمال، اولاد ، ټول داخل دى ﴿وَلَا مَا اتَّخَذُوۡا مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ﴾ رددې دَ مشرکانو په زعم باطل چه دوئ گمان کولو چه زمونږ معبودان به زمونږ شفاعت کوى.

﴿هٰذَا هُدًى﴾ مشارٌاليه قرآن دې اوحمل مبالغةً شويدې، ﴿لَهُمۡ عَذَابٌ مِّنۡ رِّجۡزٍ اَلِيۡمٌ﴾ "اليم" په رفع سره صفت دې دَ﴿عَذَابٌ﴾ او ﴿رِّجۡزٍ﴾ معني مفسرينو سخت عذاب سره کړې ده ، او «من» بيانيه دې ، او دا بيان دې د «عذاب» يعني هغه دردناک عذاب "رجز" دې.

| |
|---|
| اَللّٰهُ الَّذِيْ سَخَّرَ لَكُمُ الْبَحْرَ لِتَجْرِيَ الْفُلْكُ فِيْهِ بِأَمْرِهٖ |
| الله ﷻ هغه ذات دي چه تابع کړي ئی دي ستاسو دپاره درياب چه ګرځي بيړئ په هغې کښ په حکم خپل سره |
| وَلِتَبْتَغُوْا مِنْ فَضْلِهٖ وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴿۱۲﴾ وَسَخَّرَ لَكُمْ |
| اودپاره ددې چه طلب کړئ تاسو درزق د الله ﷻ نه اودپاره ددې چه تاسو شکراوباسئ ،اوتابع کړی ئی دی ستاسو دپاره |
| مَّا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ جَمِيْعًا مِّنْهُ ؕ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ |
| هغه څه چه په اسمانونوکښ دی اوهغه چه په زمکه کښ دی داټول د الله د طرفه دي .بيشکه پدی تسخيرکښ |
| لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّتَفَكَّرُوْنَ ﴿۱۳﴾ |
| خامخادلائل دی دپاره دهغه قوم چه فکرکوی. |

﴿ اَللّٰهُ الَّذِىْ سَخَّرَ لَكُمُ الْبَحْرَ ﴾دادويم دليل عقلی دې په توحيدعلی سبيل الترقی،چه الله سمندر ستاسو د پاره مسخر کړې دې تاسو د هغې نه خپلې حاصلوئ بلکه هغه دَ ټولو کائناتوخالق دې او داټول کائنات ئې ستاسودپاره مسخرکړيدې اوستاسوپه خدمت کښ ئی لګولې دې،کقول الشاعر:

آبروماه وفلك وخورشيددركاراند تاتونانی بکف آری وبغفلت نه خوری

نوداتسخيردمافی السّموات والارض لوئ دليل دې دوحدانيت دالله ﷻ،خودهغه چا د پاره چه دخپل فکراستعمال صحيح اوکری.«لتجري الفلک» مقاصد د تسخيردبحر بيانيږي ، دا اول مقصد دې چې کشتئ پکښې چليږي او ستاسو د آمد ورفت او تجارت ذريعه وي، «لتجري الفلک» بدل اشتمال دې د ﴿لکم﴾نه او د هغې تفصيل دې .«بامره» اي : باذنه و تسخيره، جار مجرور متعلق په «سخر» پورې، ﴿وَلِتَبْتَغُوْا مِنْ فَضْلِهٖ ﴾ دويم مقصد دې ، دفضل معنیٰ دلته وسيع ده، بحری تجارت، ښکار، وغيره ټولو منافع د بحر ته شامل دې.﴿وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴾ دريم او بنيادي مقصددې ، چې شکر د الله ﷻ دې ، اوشکرګذاری ددې نعمت داده چه دالله ﷻ دَوحدانيت اوربوبيت اقراراوکړئ.

﴿جَمِيعًا مِّنْهُ﴾ جميعاً حال دي ﴿مَّا فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِى ٱلْأَرْضِ﴾ نه. ﴿مِّنْهُ﴾ او منه متعلق دي په محذوف پورې اى كائنامنه.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| قُل | لِّلَّذِينَ | ءَامَنُوا | يَغْفِرُوا | لِلَّذِينَ | لَا | يَرْجُونَ | أَيَّامَ | ٱللَّهِ |

اووايه اې پيغمبره هغه كسانوته چه ايمان ئې راوړې دې بخنه كوئ هغه كسانوته چه اميدنه لرې دورخود الله ﷻ

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| لِيَجْزِيَ | قَوْمًا | بِمَا | كَانُوا | يَكْسِبُونَ ⑭ | مَنْ | عَمِلَ صَٰلِحًا | فَلِنَفْسِهِۦ |

دپاره دَدې چه بدله وركړې الله ﷻ هرقوم ته په هغې چه وږدوئ چه كول ئې.څوک چه عمل اوكړى نيک نودپاره دَفائدې خپلې ئې كوى،

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَمَنْ | أَسَآءَ | فَعَلَيْهَا | ثُمَّ | إِلَىٰ | رَبِّكُمْ | تُرْجَعُونَ ⑮ |

اوڅوک چه بدعمل اوكړى نووبال ئې په هغه دې،بيابه خپل رب ته تاسووروستلې شئ.

﴿قُل لِّلَّذِينَ ءَامَنُوا يَغْفِرُوا لِلَّذِينَ﴾ ماقبل كښې د مشركينو استهزا او عناد ذكر وو او دا چونكه عموما انسان په اشتعال او انتقام مجبوره كوي چې دې كښې اكثر د شريعت حدودو نه تجاوز اوشي نو دې آيت كښې مسلمانانو ته هدايت دې چې د دوئ داسې طرز عمل باندې تاسو د عفو او حلم نه كار اخلئ ،او د شريعت تعليماتو خلاف اقدام اونكړئ ، څوک چې څه كوي الله ﷻ به ورله د هغې بدله وركوي ، كه نيک كارونه كوي نو نيكه بدله به ميلاويږي او بد كارونه كوي نو بده بدله به ورته ميلاويږي، د آيت دې تقرير نه معلومه شوه چې ديكښې ممانعت دهغه انتقام او اشتعال دې چې شريعت حدودو نه پكښې تجاوز وي او مقصود ترينه د خپل غيظ او غضب تسكين وي ، د جهاد ممانعت نه دې ، نو مكي دور او مدني دور او ناسخ منسوخ بحث ته هيڅ ضرورت دلته نه پاتې كيږي كوم چې عامو مفسرينو ذكر كړې دې (بيان القرآن)

﴿يَغْفِرُوا﴾ مجزوم دې جواب امردې. ﴿لَا يَرْجُونَ﴾ ((رجاء)) دوه معنى ذكر كيږى :خوف او اميد، كه اوله معنى واخلو نو بيا دَ (( ايام الله )) نه مراد هغه واقعات دَ عذابونو دى چې په مخكنو امتونو باندى راغلى وۀ.لكه سورت ابراهيم كښې(( ذكرهم بايام الله)) كښې يې تفصيل تير شويدې. او كه دويمه معنى "اميد" واخلو نو بيا((ايام الله)) نه مراد هغه اجرونه او ثوابونه دى

چې په قيامت کښې نه مؤمنانوته ميلاويږي ، راجح قول دا دې چې دلته دې عامه معني مراد واغستلې شي چې هغه "اعتقاد" ده، او د«ايام الله»نه مراد دَ آخرت ثواب او عقاب دې ، اې : لا يعتقدون الآخرة

﴿لِيَجْزِيَ قَوْمًا﴾تعليل دې دَماقبل امر،اوراجح قول دا دې چې دلته دَ﴿قَوْمًا﴾نه مراد عام واغستې شي ، مؤمنان او کافران دواړه ، يعني هر قوم ته د هغوئ عمل مطابق صله ميلاؤ شي" او مخکښې آيت «من عمل صالحا» بيا د دې تفصيل او بيان دې.

| وَلَقَدْ آتَيْنَا بَنِي إِسْرَائِيلَ الْكِتَابَ وَالْحُكْمَ وَالنُّبُوَّةَ وَرَزَقْنَاهُمْ مِنَ الطَّيِّبَاتِ |
|---|
| اوبه تحقيق سره ورکړې مو مونږښي اسرائيلوته کتاب(تورات)اوشريعت اونبوة، اورزق موورته ورکړې وؤدپاکو څيزونو |
| وَفَضَّلْنَاهُمْ عَلَى الْعَالَمِينَ ⑯ وَآتَيْنَاهُمْ بَيِّنَاتٍ مِنَ الْأَمْرِ |
| اوفضيلت موورکړې وؤ دوئ ته په ټولوخلقو(دَدغه وخت)اوورکړې موؤدوئ ته واضح دلائل دَامردَتوحيد، |
| فَمَا اخْتَلَفُوا إِلَّا مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَهُمُ الْعِلْمُ بَغْيًا بَيْنَهُمْ إِنَّ |
| پس دوئ اختلاف اونکړو مګرورستودَ دې نه چه راغلې وؤدوئ ته علم،دَوجه دَضدنه په مينځ دَدوئ کښې،بيشکه |
| رَبَّكَ يَقْضِي بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فِيمَا كَانُوا فِيهِ |
| رب ستابه فيصله کوي په مينځ دَدوئ کښې په ورځې دَقيامت د هغه امورو په باره کښې "چه وؤدوئ چه په هغې کښې نې |
| يَخْتَلِفُونَ ⑰ ثُمَّ جَعَلْنَاكَ عَلَى شَرِيعَةٍ مِنَ الْأَمْرِ فَاتَّبِعْهَا وَلَا تَتَّبِعْ |
| اختلاف کولو.بيااوګرځولې مونږته اې پيغمبره په واضحه لارې دَامردَدين نه نواتباع کوه دَهغې اواتباع مه کوه |
| أَهْوَاءَ الَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ ⑱ إِنَّهُمْ لَنْ يُغْنُوا عَنْكَ مِنَ اللَّهِ شَيْئًا |
| دَخواهشاتو دَهغه خلقوچه نه پوهيږي.بيشکه دوئ هرګزنشي لرې کولې ستانه دَعذاب دَالله ﷻ نه هيڅ څيز |
| وَإِنَّ الظَّالِمِينَ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ وَاللَّهُ وَلِيُّ الْمُتَّقِينَ ⑲ هَذَا بَصَائِرُ |
| اوبيشکه ظالمان بعض پدوئ کښې دوستان دَنورو بعضو دې اوالله ﷻ دوست دَمتقيانودې.دا دلائل دی |

| لِلنَّاسِ وَهُدًى | وَرَحْمَةٌ | لِّقَوْمٍ | يُوقِنُونَ ۞ |
|---|---|---|---|
| دپاره د خلقواوهدایت دي | اورحمة دي دپاره | دهغه قوم | چه یقین کوي |

﴿وَلَقَدْ ءَاتَيْنَا بَنِيٓ إِسْرَٰٓءِيلَ ٱلْكِتَٰبَ﴾ دادلیل نقلي دي په توحید، چه مونږ په توراة کښ هم دتوحیدحکم کړې وؤاوبني اسرائیلوته مودتوحیدواضح واضح دلائل ورکړی وؤ، لیکن د موسی علیه السلام نه ورستوعلماء سوءدیده ودانسته محض دضدپه وجه پدې مسئلې کښ اختلاف اوکړو. ﴿ ٱلْكِتَٰبَ ﴾نه مرادتوراة دي﴿وَٱلْحُكْمَ﴾نه مراد، فهم دکتاب، تفقهه فی الدین دي، یا ورنه مراد فیصلې دخلقودی. ﴿وَرَزَقْنَٰهُم مِّنَ ٱلطَّيِّبَٰتِ﴾حلال او پاکیزه رزق لکه من وسلوی شو. ﴿ وَفَضَّلْنَٰهُمْ عَلَى ٱلْعَٰلَمِينَ ﴾ دخپلې زمانې په خلقو، لکه په سورة دخان کښ تیرشو،

﴿وَءَاتَيْنَٰهُم بَيِّنَٰتٍ مِّنَ ٱلْأَمْرِ ﴾ من پمعني د في سره دي او(۱) د امر نه مراد امر د توحید او د دین دي، یعنی دتوحیدپه باره کښ موورته واضح دلائل، معجزات ورکړل، (۲)ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه دې نه مراد علامات اونشانئ دبعثت دحضور ﷺ دی، چه هجرت به کوي مکې نه مدینه ته، اواهل مدینه به ئې انصار وی وغیرذلک، یهودو ته دحضور ﷺ نشانیانې معلومې وی لیکن چه کله حضور ﷺ مدینه ته تشریف راوړو نو دوئ باوجوددیقین نه منکر شول، کقوله تعالی: ( فلمّا جآءهم ما عرفوا کفروا به....)" البقرة". (۳)بعض وائی چه﴿ بَيِّنَٰتٍ مِّنَ ٱلْأَمْرِ﴾نه مراد حلال، حرام، طهارت نجاسة وغیره والاواضح واضح احکامات دی.

﴿ فَمَا ٱخْتَلَفُوٓا۟ إِلَّا مِنۢ بَعْدِ﴾یعنی مونږ ورته ددین ټول احکامات بالکل واضح ورکړی وؤ، په هغې کښ هیڅ ابهام او اشتباه نوه، چې اختلاف پکښ اوکړې شی، اختلاف په دوئ کښ ذاتی انانیت اوحسد دوجهې نه راغلې دې تفسیرپه شوری (۱۴)اوبقره(۲۱۳)کښ په تفصیل سره شویدې. ﴿إِنَّ رَبَّكَ يَقْضِى بَيْنَهُمْ﴾زجردې شرک کونکواواختلاف کونکوته په توحیدکښ،

﴿ ثُمَّ جَعَلْنَٰكَ عَلَىٰ شَرِيعَةٍ ﴾دادسورة مرکزی دعوه ده او دغه شان د مشرکینو دلیل او شبهې جواب هم دې چې دوئ به ویل مونږ خپلو الهوؤ ته بلنه دې وجهې نه، نه کوو چې دا

شفيع قهري دی، يا زمونږ بلنه اوري بلکه مونږ خپل آباوؤ په اتباع اوتقليد کښې دا هرڅه کوؤ، جواب ترينه اوشو چې هر قسم دلائلو عقليو نقليوؤ سره حق واضحه شو ،لهذا دينه باوجود دې مخالفت کول خواهش پرستی اونفس پرستی باندې مبنی دې،نو اتباع دحق کوئ خواهشاتو مه کوئ، "شَرِيعَة" په لغت کښې لارته وائی خو ليکن هغه لار چې هغه په يو څو اوصافو سره متصف وی:(۱)دا لار اوبو(ګدر)ته تللې وی،چې خلق پرې ځان اوبوته رسوی اوخپله تنده ماته وی (۲)دَا لاره بالکل سيدها وی(۳)پرامنه وی خطرې پکښې نه وی،(۴)باربار تللو د وجهې نرمه وی،تلل پرې آسان وی(۵)وسيع اوکشاده وی.او اسلام ته هم شريعت ځکه وائی چې دا هدايت ته رسائی دپاره يوه سمه،واضحه پرامنه او آسانه لار ده.دلته دَ﴿شَرِيعَةٍ﴾ نه مراد ټول احکامات الهيه دی،اوامر،نواهی دی.

﴿وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَآءَ ٱلَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ﴾يعنی دومره ځائسته او واضح دين مې درکړې دې نو ګډو وډو لاروباندې مه ځئ،« لايعلمون»قيد احترازي ندې بلکه اتفاقی دې ځکه چې شريعت خلاف احکاماتو کښې دَاهل علم او دهغوئ خواهشاتو اتباع هم نده جائز.اودلته«لايعلمون» راوړلو کښې نکته داده چې شريعت خلاف څوک څه عمل کوی، هغه که ځان ته ډير لوئ محقق وائی او دَعلم دعويدار وی ،الله ﷻ په نيز په جاهلانو کښې شمار دې.

﴿إِنَّهُمْ لَن يُغْنُوا۟ عَنكَ﴾علت دې دَ﴿وَلَا تَتَّبِعْ﴾يعنی دَ مشرکانو دَ خواهشاتو اتباع مه کوه کچرته اودکړه نومستحق دَعذاب به شې نودوئ ستانه دَعذاب په لرې کولو قادرنه دی،

﴿وَإِنَّ ٱلظَّـٰلِمِينَ بَعْضُهُمْ﴾يعنی دَظالمانواومشرکانودوستی اواتباع نه کوی مګرظالم ئی کوی،

﴿وَٱللَّهُ وَلِيُّ ٱلْمُتَّقِينَ﴾يعنی دَمؤمنانو،پرهيزګارانو دوست اومددګارالله ﷻ دې.لهذادهغوئ اتباع کوئ،

﴿هَـٰذَا﴾دا ترغيب دې د دعوې منلو،"هذا" کښې اشاره ياقرآن ته ده،او يا اتباع د شريعت ده داعلت دې دَ﴿فَٱتَّبِعْهَا﴾.﴿بصائر للناس﴾"بصائر" جمع د "بصيرة" ده ،اوبصيرت ويلې کيږی باطنی رڼا او زړه سترګو ته، څنګه چې بصارت ويلی کيږی ظاهری رڼاته،يعنی دا شريعت دَخلقو باطن رڼا کونکې دی، ﴿هدی﴾عين هدايت دې ﴿رحمة﴾اورحمت دې، نو شريعت دَ درې(۳)

امورو مجموعه شوه: (۱) بصیرت، (۲) هدایت (۳) رحمت حضرت تهانوی رحمه الله فرمائی دیکښې نکته دا ده چې یو لاره ونکی دپاره درې څیزونو ضرورت وی: (۱) لاره، چې منزل ته تللې وی. (۲) منزل (۳) بصر چې هغې په مددلارې روان شی اومنزل ته اورسی، نو شریعت هم دې درې امورو له جامع دې. بصائر یعنی سترګی هم دی .هدی: نیغه او سمه لاره هم ده. رحمة منزل او مقصود هم دې، ((بصائر)) جمع دې او ((هدی)) و((رحمة)) مفرد دې. دیکښې نکته دا ده چې لاره ونکی ډیروی او هر یو جدا جدا سترګې وی نو ځکه صیغه دجمع راوړلې شوه، اولاره اومنزل خو یو وې، نو ځکه ((هدی)) او ((رحمة)) مفرد راوړلې شو.

| |
|---|
| اَمۡ حَسِبَ الَّذِیۡنَ اجۡتَرَحُوا السَّیِّاٰتِ اَنۡ نَّجۡعَلَهُمۡ كَالَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا |
| آیا ګمان کوی هغه کسان چه کړی ئې وي ګناهونه داچه اوبه ګرځوؤمونږ دوئ په شان دهغه چاچه ایمان ئې راوړي دي |
| وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ ۙ سَوَآءً مَّحۡیَاهُمۡ وَمَمَاتُهُمۡ ؕ سَآءَ مَا یَحۡكُمُوۡنَ ﴿۲۱﴾ |
| اوکړي ئې دي نیک عملونه چه برابربه وی ژوند د دوئ اومرګ د دوئ، ډیربد دي هغه چه دوئ ئې فیصله کوی. |
| وَخَلَقَ اللّٰهُ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضَ بِالۡحَقِّ وَلِتُجۡزٰی كُلُّ نَفۡسٍۭ بِمَا |
| اوپیدا کړیدی الله ﷻ اسمانونه اوزمکه په حقه سره اودپاره ددې چه بدله ورکړیشی هرنفس ته په هغه |
| كَسَبَتۡ وَهُمۡ لَا یُظۡلَمُوۡنَ ﴿۲۲﴾ |
| چه ده کسب کړی وؤ اوپه دوئ به ظلم اونکړیشی. |

﴿اَمۡ حَسِبَ الَّذِیۡنَ اجۡتَرَحُوا﴾ دا زجر دې، چې آیا دمشرکینو دا خیال دې چه باوجود د دې چې دوئ شرک او ګناهونه کوي ، مونږبه دوئ ته دمؤمنانوصالحانوپشان درجه اومرتبه ورکوؤ، دا خیال ددوئ ډیربد اوباطل دې، مفسرین فرمائی چه دا آیت نازل دې د عتبه، شیبه، ولید بن مغیره په باره کښې چه حضرت علی رضی الله عنه ،حمزه رضی الله عنه ،عبیده بن الحارث رضی الله عنه ته اوویل چه "لئن کان مایقول محمدحقافی الاخرة لنفضلنّ علیکم فی الآخرة کما فضّلنا علیکم فی الدنیا" یعنی کچرته بعث بعدالموت حق وی لکه محمد ﷺ ئې چه وائی نومونږبه په آخرت کښې ستاسونه

بهتر يولکه څرنګه چه په دنياکښ بهتريو، کقوله تعالیٰ: ولئن رُجعتُ الی ربّی انّ لی عنده للحسنیٰ (حم سجده: ۵۰) نو الله ﷻ دَدوئ په ردکښ داآيت نازل کړو (قرطبی وغيره).

﴿ ٱجْتَرَحُوا ﴾ پمعنی دَاکتسبوا دي، ومنه الجوارح، اندامونو ته هم جوارح ځکه وائی چه پدې سره کسب دکارونو کيږی دَ ﴿ٱلسَّيِّـَٔاتِ﴾ نه مراد سيئات دکفراوشرک دی ﴿ أَن نَّجْعَلَهُمْ ﴾ هم ضمير مفعول اول دې او ﴿كَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا ﴾ کښ کاف اسمی دې پمعنی دَمثل سره دې، او مفعول ثانی دې ﴿سَوَآءً﴾ ديکښ دوه متواتر قرائته دی، رفع اونصب، رفع په صورت کښ به داخبر مقدم وی او «محياهم ومماتهم» به مبتدا مؤخر وی، او جمله په حکم دَمفرد کښ بدل دې «کالذين» کښ کاف نه اونصب په صورت کښ «سواء» بدل دې دَ کاف نه چی په «کالذين» کښ دې، او يا دَ الذين نه حال دی او «محياهم ومماتهم» پدې صورت کښ فاعل واقع کيږی دَسواء پمعنی مستويا د پاره.

﴿ محياهم ومماتهم ﴾ ضمير مجرور مسلمانانو اوکافرانو دواړو ته راجع دې اودې معنی کښ دو قوله دی:

(۱) استفهام انکاری متوجه دې حيات ممات دواړو ته، يعنی دَ دوئ دَحيات او ممات دواړو مساوات نفی مقصود ده، دې صورت کښ به معنی داسې وی: آيا دوئ داګمان کوی چه ژوند اومرګ دَدوئ به په شان دَ ژوند او مرګ دَ مومنانو وی؟ هرګز داسې نده، بلکه دوئ نه په ژوندکښ دَمؤمنانوسره برابردی (ځکه چه دَمؤمنانوژوندپه توحيد، اعمال صالحؤ کښ تيريږی اودَدوئ ژوندپه کفر، معاصيؤوکښ تيريږی) اونه په مرګ کښ، ځکه چه مؤمنانو ته به دَمرګ په وخت کښ دَجنت اودَرضاء الهی زيرې ورکولې کيږی (اللهم اجعلنامنهم) کقوله تعالیٰ: و ابشروا بالجنة التی... (حم سجده: ۳۰) وقوله تعالیٰ: يا ايّتها النّفس المطمئنة، ارجعی الی ربّكِ راضيةً مرضيةً (الفجر: ۲۷) او کافرانو ته به دَعذاب او دَ جهنم زيری ورکولې کيږی.

(۲) دويم قول دا دې چی انکار صرف ممات ته متوجه دې، يعنی صرف دَموت مساوات نفی مقصود ده، دی صورت کښ به مطلبَ داسې شی چه دوئ چه دَمؤمنانوسره لکه په ژوندکښ برابر دی (په رزق، صحت وغيره کښ) نوآيادوئ داګمان کوی چه په مرګ اومرګ نه وروستو به هم ورسره برابريو؟ هرګزداسې نده، دحضرت تميم داری ﷺ په باره کښ نقل دی چه يوه شپه ئی مونځ کولو، دَسورة الجاثيه تلاوت ئی کولوچه دې آيت ته اورسيدلونو داآيت ئی

. بار بار لوستلواو ژړل ئې حتّی چه سهارئې کړو، دَفضيل رحمه الله په باره کښې هم نقل دی چه دې آيت ته اورسيدو نو بيا بيا به ئې لوستلواوژړل به ئې اووئيل به ئې چه يافضيل ليت شعری من ایّ الفريقين انتَ دَدې وجه نه مفسرينودې آيت ته مبکاة العابدين ونيلی دی(قرطبی).

﴿وَخَلَقَ ٱللَّهُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضَ﴾ دادريم عقلی دليل دې په توحيد ﴿بِٱلۡحَقِّ﴾ ای لاثبات الحقِ،دَحق نه توحيدمراددې،يعنی دَاسمانواوزمکې ذره ذره دَالله تعالیٰ په واحدانيت باندې دلالت کوی﴿وَلِتُجۡزَىٰ﴾ عطف دې په﴿بِٱلۡحَقِّ﴾باندې،ياعطف دې په محذوف باندې،ای خلق اللهُ السّمٰوات والارضَ،ليدلَّ هماعلی قدرته ولتُجزیٰ....الخ.يعنی دَاسمانونواودَزمکې په پيداکولوکښې يوحکمت داهم دې چه ديکښې مختلف تغيرات او حوادث واقع کيږي، نو هر کس دې دَدې حوادثو نه دا اندازه اوکړی چه يوه ورځ به خامخا دَ دغې عظيم الشانې کارخانې نتيجه هم دا ظاهره کيږی چه هغې ته اخرت وائی اوهلته به هرچاته دَده دَاعمالوجزاء،سزا ،ثمره نتيجه ورورباندې کيږی،﴿وَهُمۡ لَا يُظۡلَمُونَ﴾چاچه څه کړلی وی هغه به ربيبی،ظلم زياتې به په هيڅ چانه کيږی.

| أَفَرَءَيۡتَ | مَنِ | ٱتَّخَذَ | إِلَٰهَهُۥ | هَوَىٰهُ | وَأَضَلَّهُ | ٱللَّهُ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| آياخبراکړه ته ماته دَهغه چانه چه نيولې ئې دې خپل معبود خواهش خپل اوگمراه کړې دې ده لره الله تعالیٰ | | | | | | |
| عَلَىٰ | عِلۡمٖ | وَخَتَمَ | عَلَىٰ | سَمۡعِهِۦ | وَقَلۡبِهِۦ | وَجَعَلَ |
| سره د علمه او مهرئې وهلې دې په غوږونودَده باندې اوپه زړه دَده باندې اوگرځولې ئې ده | | | | | | |
| عَلَىٰ بَصَرِهِۦ غِشَٰوَةٗ فَمَن يَهۡدِيهِ مِنۢ بَعۡدِ ٱللَّهِۚ أَفَلَا تَذَكَّرُونَ ﴿٢٣﴾ | | | | | | |
| په سترگودَده باندې پرده،پس څوک به هدايت اوکړی ده ته ماسوا دَالله تعالیٰ نه،آياتاسونصيحت نه قبوله وئ | | | | | | |
| وَقَالُواْ مَا هِيَ إِلَّا حَيَاتُنَا ٱلدُّنۡيَا نَمُوتُ وَنَحۡيَا وَمَا يُهۡلِكُنَآ | | | | | | |
| اووائی دوئ ندې داژوندمگرهم دغه ژوندزمونږدَدنياچه (بعض) ژوندی کيږو،او(بعض) مړه کيږواونه هلاکوی مونږلره | | | | | | |

| إِلَّا | الدَّهْرُ | وَمَا | لَهُمْ | بِذَٰلِكَ | مِنْ | عِلْمٍ | إِنْ | هُمْ | إِلَّا | يَظُنُّونَ ﴿٢٤﴾ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مگر زمانه او نشته | دَدوئ | سره | پدې | خپله | خبره | هيڅ | دليل.ندی | دوئ | مگر گمان | کوی. |

﴿أَفَرَءَيْتَ مَنِ ٱتَّخَذَ إِلَٰهَهُۥ هَوَىٰهُ﴾دازجردي مشرکانوته اوهغه چاته چه دَخواهشاتو اتباع کوی،اوخپل خواهش ئی خپل دين گرځولې وی،نوگوياخپل خواهش ئی معبود گرځولې وی، نو داسې شان سړی په زړه باندې دضداوعنادپوجه الله ﷻ مهرجباريت لگولې وی،څوک ورته هدايت نشی کولې،﴿أَفَرَءَيْتَ﴾رؤيت يا په خپلی معنی کښ دې او دلته ترينه مقصود تعجب دې ،يعني اوخوگوره هغه کس ته، څومره تعجب خبره ده چې الله ﷻ يی پريخيدې او خپل خواهشات ئې خپل معبود گرځولې دې اويا پمعنی دَاخبرنی دې،پدی صورت کښ﴿مَنِ ٱتَّخَذَ﴾ ئی مفعول اول دې،مفعول ثانی ئی مقدردې چه ايهتدی دې،يعنی آياداسې کس ته به هدايت اوشی؟ دَ «ارايت» مکمل تحقيق جلددوم،ص:۳۹۳ کښ ذکر شويدې هلته مراجعت اوکړئ ﴿إِلَٰهَهُۥ﴾عام مفسرينو په نيزمفعول ثانی مقدم دې دَ﴿ٱتَّخَذَ﴾ دپاره او﴿هَوَىٰهُ﴾ئی مفعول اوّل مؤخردې،ای اتخذ هواه الٰها،خپل خواهش يی خپل معبود گوځولی وی، يعنی دَ خپل خواهش داسې اتباع کوی لکه دَمعبودچه کيږی، به قول والد صاحب نور الله مرقده حضرت شيخ رحمه الله به فرمايل چه ﴿إِلَٰهَهُۥ﴾مفعول اول دې او﴿هَوَىٰهُ﴾ مفعول ثانی دې،نومعنی به داشی چه نيولې ئی وی خپل معبوددَخپل خواهش مطابق،مشرکانوبه دَيوکاڼړی عبادت کولو، چه کله به ئی بل خکلې کاڼړې اوليدلو، نواولنې به ئی اوغورځولواودَهغې عبادت به ئی شروع کړو.

﴿وَأَضَلَّهُ ٱللَّهُ عَلَىٰ عِلْمٍ﴾على پمعنې مع سره دې ، او دا حال دې د ضمير د مفعول نه ، يعنې سره د علمه الله ﷻ گمراه کړې دې او يادَفاعل نه حال دې،يعنی الله ﷻ عالم دې چه پده کښ استعداددَقبول حق نشته دې نوځکه ئی گمراه کړې هم وی،﴿وَخَتَمَ عَلَىٰ سَمْعِهِۦ وَقَلْبِهِۦ﴾ يعنی دَ ضداوعنادپوجه ئی داسې حالت شوې وی چه نصيحت درباندې اثرنه کوی،اونه ئی په سترگو کښ دَبصيرت رڼاوی.﴿فَمَن يَهْدِيهِ مِنۢ بَعْدِ ٱللَّهِ﴾بعدپه معنی دَغيرسره دې،«روح» يا

مضاف مقدردې عبارة داسې دې،اى من بعد اضلالِ الله،يعنى استعداددقبول ورنه دومره سلب شوې وى چه په انسانى تدبيرسره ئى اصلاح نه كيږى. ﴿أَفَلَا تَذَكَّرُونَ﴾ دغه حالت ملاحظه كول عبرت اولوئ نصيحت دې، دَحضورﷺ ارشاد دې چه درې څيزونه هلاكونكى دى اودرې نجات وركونكى،هلاكونكى دادى:(١)شحٌ مطاع،بخل چه اطاعت ئى وشى(٢)وهوىً متبع، خواهش چه اتباع ئى وشى(٣)واعجاب المرء بنفسه، او په خپل ځان باندى عجب. درې نجات وركونكى دادى:(١)خشية الله فى السّرو العلانية،په پټه اوښكاره دَالله تعالى نه يره(٢)والقصد فى الغنى و الفقر، مالدارئ، تنګدستئ كښې ميانه روى(٣)العدل فى الرضاء والغضب، غصى او رضا دواړه حالتونو كښې دعدل نه كا اغستل حدود نه تجاوز نه كول دَدې وجه نه په هرمؤمن لازم دى چه خپل خواهش دَحضورﷺ دَدين تابع اوګرځوى كمافى الحديث لايؤمن احدكم حتّى يكون هواه تبعًالماجئت به،قال سهيل:هواک داءک فان خالفته فدواءک(قرطبى).

﴿وَقَالُوا۟ مَا هِىَ إِلَّا حَيَاتُنَا ٱلدُّنْيَا﴾داشكوه ده دَمشركانونه چه دوئ صرف دَتوحيدنه منكرندى بلكه دَحشرنشر نه هم منكردى اووائى چه ماسوا دَ دغه ژوند نه بل ژوند نشته دې، بس هم دغه دنياده چه مونږپكښې ژوندى كيږواومړه كيږو. ﴿نَمُوتُ وَنَحْيَا﴾اى يموت بعض ويحيابعض(كشاف)يعنى څوک به مړيږى اوڅوک به ژوندى كيږى او پيدا كيږي.

﴿وَمَا يُهْلِكُنَآ إِلَّا ٱلدَّهْرُ﴾اى الاَطول الزمان،داد كافرانودَيوې بلې غلطې عقيدې ذكردې چه دوئ وائى چه مرګ ژوند ،بيمارى وغيره حوادث دَزمانې دګردش نتيجه ده،دَالله تعالى دَحكم اومشيت ورسره هيڅ تعلق نشته دې،نو دى وجهى نه كله به چى دوئ ته څه تكليف رسيدو نو دوئ به دَهغى نسبت زمانى ته كوو اوزمانى ته به يى بدې ردې ويلې الله تعالى دَدوئ پدې عقيدې ردكوى چه﴿وَمَا لَهُم بِذَٰلِكَ مِنْ عِلْمٍ﴾دوئ سره پدې خپلې عقيدې باندې هيڅ علم اودليل نشته دې بلكه هسې دَاټكل خبرې كوى،څكه چه داحقيقت دې چه ټول كارونه صرف دَالله تعالى په قدرت اوحكم سره كيږى،په زمانې كښې نه حس شته دې نه شعور،زمانه خو دَ مقدارِ حركت،نوم دې چه څه كارپكښې اوكړيشى،پخپله خودَهيڅ څيزمتصرفه نده،هم پدې وجه په حديث كښې زمانې ته بد رد وئيلونه ممانعت راغلې دې لاتسبّواالدهرانّ الله هو الدّهر.

او په يوحديث قدسي کښې دي: يوذيني ابنُ آدم يسبّ الدهروانا الدّهر بيدي الامرُ اقلّب اللّيل و النّهار. غرض داچه دَزمانې ټول حوادث دَالله ﷻ په مشيت اواراده سره کيږي نوزمانې ته بد رد وئيل په حقيقت کښې الله ﷻ ته بد ردوئيل دي (اعاذناالله) بعض خلق دَناپوهئ په وجه داسې وائي چه څومره خرابه زمانه راغله، خراب وخت راغې وغيره وغيره دَداسې قسمه الفاظونه ډير احترازپکار دې.

| |
|---|
| وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ ءَايَٰتُنَا بَيِّنَٰتٍ مَّا كَانَ حُجَّتَهُمْ إِلَّآ أَن قَالُوا ٱئْتُوا بِـَٔابَآئِنَآ |
| اوچه کله اوسنلې شي پدوئ آياتونه زمونږواضحه نه وي دليل ددوئ مګرداچه وائي راولئ زمونږمړه پلاران |
| إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ ﴿٢٥﴾ قُلِ ٱللَّهُ يُحْيِيكُمْ ثُمَّ يُمِيتُكُمْ ثُمَّ يَجْمَعُكُمْ |
| کچرته تاسوئ ريښتني. اې پيغمبره! ته ورته اوايه چه الله ﷻ ژوندرکوي تاسوبيابه مومړه کوي بيابه موجمع کوي |
| إِلَىٰ يَوْمِ ٱلْقِيَٰمَةِ لَا رَيْبَ فِيهِ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ ٱلنَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٢٦﴾ |
| ورځ دَقيامت ته چه نشته دې هيڅ شک په هغې کښې خوليکن اکثردخلقونه پوهيږي. |

﴿ وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ ءَايَٰتُنَا ﴾ دادَمشرکانونه دويمه شکوه ده، چه کله دوئ ته دَبعث بعدالموت آياتونه يعنې دلائل بيان کړيشي نوانکارکوي ورنه اوتمسک کوي پدې قول چه ﴿ ٱئْتُوا بِـَٔابَآئِنَآ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ ﴾ يعنې زمونږمړه آباء اجدادراژوندي کړئ نوبيابه مونږه اومنوچه دَ مرګ نه ورستوژوندي کيدل شته دې، دَدوئ داتمسک باطل دې (چه ورستونې تفصيل راروان دې) په حقيقه کښې تمسک اوحجة ندې ليکن حجة ورته على سبيل التهکم وئيلې شويدې.

﴿ قُلِ ٱللَّهُ يُحْيِيكُمْ ثُمَّ يُمِيتُكُمْ ﴾ دادَماقبل دواړوشکوجواب دې، چه ستاسواوّل ځل پيداکونکې صرف الله ﷻ دې، اومړه کونکې هم صرف الله ﷻ دې، دَهر، زمانې لره پکښې هيڅ دخل نشته دې (دادَومايُهلکنا الاّالدّهرترديداوشو) نوچه الله ﷻ په اول ځل پيداکولوباندې قادردې نوپه دوباره پيداکولوباندې (چه دَاول ځل پيداکولونه زيات اسان دې) هم قادر دې، او دَ دوباره پيداکيدلودَپاره هغه وخت مقررکړيدې چه ورځ دَقيامت ده چه دَهغې په وقوع کښې

هیڅ شک نشته دي، قبل ازوقت دوباره پیدا کول دَهغه دَحکمت نه خلاف دی لهذا ستاسو مطالبه باطله او نامنظوره ده.

﴿وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ ٱلنَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ﴾ یعنی اکثرخلق، کافران نه پوهیږی په دې چه هرکله الله ﷻ قادردې په اول ځل پیدا کولو باندې نو پطریقه اولی قادردې په بعث بعد الموت باندې.

| وَلِلَّهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَيَوْمَ تَقُومُ السَّاعَةُ يَوْمَئِذٍ يَخْسَرُ |
|---|
| اوخاص الله ﷻ لره ده بادشاهی دَآسمانو اودَزمکې، اوپه کومه ورځ چه راشی قیامت پدغه ورځ نقصان مندبه شی |
| الْمُبْطِلُونَ ﴿٢٧﴾ وَتَرَىٰ كُلَّ أُمَّةٍ جَاثِيَةً كُلُّ أُمَّةٍ تُدْعَىٰ إِلَىٰ كِتَابِهَا |
| باطل خلق، کافران. اووینی به ته هرامت پروت په زنګونو باندې، هرامت به راغوختلې کیږی خپل عملنامی ته، |
| الْيَوْمَ تُجْزَوْنَ مَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿٢٨﴾ هَٰذَا كِتَابُنَا يَنطِقُ |
| (ورته به اوویلې شی) نن ورځ بدله درکولې کیږی تاسوته دَهغه عملونو چه وتی تاسو چه کول مو. داعملنامه زمونږ ده چه ګواهی کوی |
| عَلَيْكُم بِالْحَقِّ إِنَّا كُنَّا نَسْتَنسِخُ مَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿٢٩﴾ |
| په تاسوباندی په حقه سره، بیشکه وؤمونږچه په فرشتوبه مولیکل هغه عملونه چه وئ تاسوچه کول به مو. |

﴿وَلِلَّهِ مُلْكُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ﴾ خلورم دلیلِ عقلی دې په توحید اودَتیرشوی دلائلو خلاصه ده، ﴿وَيَوْمَ تَقُومُ ٱلسَّاعَةُ﴾ تخویف اخروی دې ﴿وَيَوْمَ﴾ منصوب دې مفعول فیه دې دپاره دَ﴿يَخْسَرُ ٱلْمُبْطِلُونَ﴾ یوم مقدم شویدې پخپل عامل دَپاره دَحصر، اشاره ده دیته چه کامل اوپوره تاوان هغه دې چه دَقیامت په ورځ ئی څوک اوکړی (روح المعانی) ﴿يَوْمَئِذٍ﴾ بدل دې دَ﴿وَيَوْمَ﴾ یا تاکید دې، دَ﴿ٱلْمُبْطِلُونَ﴾ نه کافران مراددی چه منازلو دَجنت کښې ئی تاوان کړیدې اوترینه محرومه شویدی.

﴿وَتَرَىٰ كُلَّ أُمَّةٍ جَاثِيَةً﴾ تخویف اخروي سره متعلق دې، د «جاثیة» څو معنی شوی دي:

(۱) جاثیه دَجثونه مشتق دې په څنګنونوباندې کیناستلوته وائی، داکنایه ده دَقیامت دَورځې دَخوف اوهولناکئ نه، لفظ دَ کلّ مصداق اګرچه ټول خلق دی لیکن انبیاء، صلحاء په

باره کښې راغلي دي چه "لايحزنهم الفزع الاكبر" اودغه شان "وهم مّن فزع يومئذٍ آمنون" نوددې وجه نه هغوئ ورنه دَعام مخصوص منه البعض په طورسره مستثنى دى،

(۲) ابن عباس رضي الله عنه وائى چه دَ "جاثية" معنى مجتمعة ده يعنى هر امت او هر اهل دين به جمع شوى وى.

(۳) او ځنو مفسرينو دَ "جاثية" معنى خاضعة نقل کړې ده يعنى دَالتّحياتُ په شكل كيناستل. چه داكنايه ده دَادب اوتواضع نه نو دې صورت كښې بيا دا آيت انبياؤو. صلحاؤو غيره ته هم شامل دې (قرطبى وغيره).

﴿كُلُّ أُمَّةٍ تُدْعَىٰٓ إِلَىٰ كِتَٰبِهَا﴾ كتاب نه مراداعمالنامه ده. كقوله تعالى: ووضع الكتاب فترى... (كهف) يعنى هرسړې به دَهغه په عملنامه كښې ليكلى شوى عملونو حساب طرف ته رابللې كيږى، بعض وائى چه دكتاب نه مرادكتاب دَنبى دَهرامت دې. يعنى هرسړې به دَخپل نبى كتاب طرفْ ته راوبللې شى چه څومره عمل ئى ورباندې كړې دې. اول قول راجح دې،

﴿ٱلْيَوْمَ تُجْزَوْنَ﴾ يُقالُ ورنه مخكښې مقدردې، ﴿هَٰذَا كِتَٰبُنَا﴾ اضافت دكتاب (عملنامې) الله ﷻ ته دَادنى ملابست دَوجه نه شويدې ځكه چه ملائكوته دَعملونو دليكلوحكم الله ﷻ كړې دې.

﴿يَنطِقُ عَلَيْكُم﴾ اى يشهدعليكم ﴿بِٱلْحَقِّ﴾ يعنى بغيردَزيادت اونقصان نه، ﴿إِنَّا كُنَّا نَسْتَنسِخُ﴾ متعدى معنى ده يعنى په فرشتوباندې به موليكلوستاسوعملونه. نو دادَ ﴿يَنطِقُ عَلَيْكُم بِٱلْحَقِّ﴾ تعليل دې.

فَأَمَّا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ فَيُدْخِلُهُمْ رَبُّهُمْ

پس هغه كسان چه ايمان ئى راوړې دې اوعملونه ئى كړيدى نيک بس داخل به كړى دوئ لره رب ددوئ

فِى رَحْمَتِهِۦ ذَٰلِكَ هُوَ ٱلْفَوْزُ ٱلْمُبِينُ ﴿٣٠﴾ وَأَمَّا ٱلَّذِينَ كَفَرُوٓا۟ أَفَلَمْ تَكُنْ

په رحمت خپل كښې هم داكاميابى واضحه ده، اوهغه كسان چه كفرئى كړيدې ورته به اوويلې شى آيا نه وو

ءَايَٰتِى تُتْلَىٰ عَلَيْكُمْ فَٱسْتَكْبَرْتُمْ وَكُنتُمْ قَوْمًا مُّجْرِمِينَ ﴿٣١﴾

آياتونه زما چه لوستلې به شوې په تاسوباندى نوتكبركړې وؤتاسواوونى تاسوقوم جرم كونكى كفركونكى؛

وَاِذَا قِيۡلَ اِنَّ وَعۡدَ اللّٰهِ حَقٌّ وَّالسَّاعَةُ لَا رَيۡبَ فِيۡهَا قُلۡتُمۡ

اوچه کله به ویلې شوچه بیشکه وعده دالله ﷻ حقه ده، اوقیامت نشته دې شک په راتلودهغې کښې نوتاسوبه ویل

مَّا نَدۡرِىۡ مَا السَّاعَةُ اِنۡ نَّظُنُّ اِلَّا ظَنًّا وَّمَا نَحۡنُ بِمُسۡتَيۡقِنِيۡنَ ﴿۳۲﴾ وَبَدَا لَهُمۡ

نه پیژنو مونږچه څه دې قیامت،نه کووګمان مونږ مګرګمان لږاونه یومونږ یقین کونکي.اوښکاره به شي دوئ ته

سَيِّاٰتُ مَا عَمِلُوۡا وَحَاقَ بِهِمۡ مَّا كَانُوۡا بِهٖ يَسۡتَهۡزِءُوۡنَ ﴿۳۳﴾

سزاګانې دهغه عملونوچه دوئ کړې وؤاوچاپیره به شي په دوئ هغه عذاب چه وؤدوئ په هغې پورې توقې کولې،

وَقِيۡلَ الۡيَوۡمَ نَنۡسٰٮكُمۡ كَمَا نَسِيۡتُمۡ لِقَآءَ يَوۡمِكُمۡ هٰذَا

اوورته به اویلې شي چه نن ورځ به مونږتاسو هیر کړو لکه چه تاسوهیرکړې وؤملاقات دخپلې ورځې ددې

وَمَاۡوٰٮكُمُ النَّارُ وَمَا لَكُمۡ مِّنۡ نّٰصِرِيۡنَ ﴿۳۴﴾ ذٰلِكُمۡ بِاَنَّكُمُ اتَّخَذۡتُمۡ

اوتهکانه ستاسواوردې اونه به وي تاسولره هیڅ څوک مددګاران.داپه سبب ددې چه بیشکه تاسونیولی وؤ

اٰيٰتِ اللّٰهِ هُزُوًا وَّغَرَّتۡكُمُ الۡحَيٰوةُ الدُّنۡيَا ۚ فَالۡيَوۡمَ لَا يُخۡرَجُوۡنَ مِنۡهَا

آیاتونه دالله ﷻ په مسخرې سره اودهوکه کړې وئ تاسوژوندددنیا،پس نن ورځ نه به ویستلې کیږي دوئ ددې جهنم نه

وَلَا هُمۡ يُسۡتَعۡتَبُوۡنَ ﴿۳۵﴾

اونه به ددوئ نه طلب دتوبې کیدیشي.

﴿فَاَمَّا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا﴾ مؤمنانوصالحانوته بشارتِ اخرویه دې،﴿فِىۡ رَحۡمَتِهٖ﴾ مراد د رحمت نه جنت دې.﴿وَاَمَّا الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا﴾ تخویف اخروی دې،﴿اَفَلَمۡ تَكُنۡ اٰيٰتِىۡ﴾ دینه نه مخکښې "فیقال لهم" مقدر دې، او استفهام توبیخادې،﴿اِنَّ وَعۡدَ اللّٰهِ حَقٌّ﴾ وعده دبعث بعدالموت اودغه شان نور امور اتیه ﴿اِنۡ نَّظُنُّ اِلَّا ظَنًّا﴾ داپه ظاهرکښې استثناء دشئ عن نفسه ده،نو ددې وجهې نه مفسرینو د دې مختلف توجهیات کړې دې:

(۱) يو توجيه داده چې ﴿ ظَنًّا ﴾صفت حذف دې چه ضعيفاً دې، اى ان نظنّ الاّ ظنًا ضعيفًا، يعنى دَقيامت په باره كښې زمونږ ډير كم غوننته گمان دې.يقين بالكل نشته دې.

(۲) نظنّ پمعنى دَنعتقد سره دې،اى ما نعتقد شيئًا الاّ ظنًا

(۳) بعض وائى چه په كلام كښې تقديم تاخيردې،اصل داسې دې ان نحن الاّنظنّ ظنًا ﴿وَمَا نَحْنُ بِمُسْتَيْقِنِينَ ﴾تاكيددې دَماقبل.

﴿وَقِيلَ ٱلْيَوْمَ نَنسَىٰكُمْ﴾مراد دَ نسيان نه په عذاب كښې پريخودل اودَنظرشفقت نه محرومه كول دى مجازاً،ځكه چه نسبت دَنسيان الله جل جلاله ته محال دې،اى نتركگم فى العذاب من باب اطلاق السبب على المسبب(روح المعانى)يامعنى داده چه گرځوؤمونږه تاسوپمنزله دَشئ منسى چه څوک ئې پرواه نه كوى.﴿ لِقَآءَ يَوْمِكُمْ هَٰذَا ﴾اضافت دَلقاء يوم ته اضافت ظرفيه دې، او مفعول مقدردې،اى لقاءكم الله جل جلاله وجزاءه فى يومكم هذا(روح)يعنى لكه څرنګه چه تاسوپه دنياكښې دَالله جل جلاله سره ملاقات اودَهغه په مخكښې پيشى د دې ورځ هيره كړې وه، نودغه شان تاسوهم نن ورځ الله جل جلاله هيركړى يئ،يا﴿لِقَآءَ يَوْمِكُمْ ﴾كنايه ده دَ ټولو احوالو دَ قيامت نه، سره دَ بعث نه،اوداانسب للمقام دې.

﴿ذَٰلِكُم بِأَنَّكُمُ ٱتَّخَذْتُمْ ءَايَٰتِ ٱللَّهِ ﴾دا سبب د عذاب بيان دې يعنى په احكامودَالله جل جلاله پورې استهزاء اوپه ژوند دَ دنيا باندې په دهوكه كښې مبتلا كيدل ،داسبب دې دَدې چه تاسو دَ هميشه دَپاره دَجهنم مستحق اوګرځيدلئ،﴿يُسْتَعْتَبُونَ ﴾يادَعُتبى نه مأخوذدې پمعنى دَ رجوع اوتوبه سره،اى لايُطلب منهم العتبى وهوالرجوع الى طاعته،يعنى طلب دَتوبې به ورنه نشى كيدې،داموقع به ورته نه وى چه الله جل جلاله راضى كړى،يادَعتاب نه مأخوذدې،ازاله دَ عتاب اوسزابه ورنه نشى كيدې بلكه هميشه به وى په عذاب كښې.

﴿فَلِلَّهِ ٱلْحَمْدُ رَبِّ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَرَبِّ ٱلْأَرْضِ رَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ ۝ وَلَهُ ٱلْكِبْرِيَآءُ﴾

پس الله لره ده ټوله ثناء صفت چه رب دَآسمانونو دې اورب دَزمكې دې،رب دې دتمامو مخلوقاتو ،اوالله جل جلاله لره لوئ ده

| فِي | السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضِ | وَهُوَ | الْعَزِيْزُ | الْحَكِيْمُ ﴿۳۷﴾ |
|---|---|---|---|---|---|
| په | اسمانونوکښې اوپه | زمکه کښې.اوهم | دې غالب | دې | خاونددحکمت دې |

﴿فَلِلّٰهِ الْحَمْدُ ﴾ فاء تفریعیه ده اوداپنځم دلیل عقلی دې په توحید ،متفرع دې په څلورم دلیل، چه دَاسمان اوزمکې بادشاهت دَالله ﷻ په قبضه او اختیار کښې دې نوټول صفات دَ الوهیت هم صرف هغه لره ثابت دی﴿رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ ﴾بدل دې دَماقبل نه

﴿وَلَهُ الْكِبْرِيَآءُ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ﴾لائق دَلوئی صرف ذات دَالله ﷻ دې، دَ کبریاء معنی امام راغب الترفع عن الانقیادکړیده یعنی دَعاجزئ اوسرټیټئ نه برتر وبالا،او دیکښې عظمت، جلال، بقاء، سلطان ، قدرت اوکمال ټول رازی، په حدیث قدسی کښې راغلی دی الکبریاء ردائی والعظمةُ ازاری فمن نازعنی علی واحدٍمنهماقذفته فی النار کبریا څماڅادردې اولوئی څما ازار دې نوهرڅوک چه په دغودواړوکښې څماسره منازعه کوی(یعنی تکبراولوئ کوی)څه به ئی په سخت اورکښې اوغورځوم.

کله چی ثابته شوه چې کبریائی صرف الله ﷻ سره خاص ده نو اتباع هم دَ الله ﷻ اودهغه شریعت پکار ده ، نه ده آباؤ اجدادو اودَهغوئ رسم ورواج.

| ركوعاتها (۴) | سورة الاحقاف مكية | آياتها (۳۵) |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان او ډیر رحم کونکي دي شروع کوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۴۶) وحسب النزول (۶۶)**

دامکی سورة دي،ترتيب قرآني په لحاظ سره(۴۲)دي اوترتيب نزولي اعتبار سره(۲۲) دي دسور الجاثيه نه ورستو اودسورة الزاريات مخکښ نازل دي.زمانه دنزول ئی لسم(۱۰)کال يا يولسم(۱۱)کال دنبوة دي.

**ربط معنوی** : پدې سورة کښ دمشرکانودآخری سوال جواب دي،ماقبل سورتونو کښ ددوئ داشبهات دفع شول چه ددوئ آلهه معبودان ندی،موصوف په صفاتودالوهيت نه دی، شفعاء قهری نه دی،هرڅه نه آوری او نه وينی،ليکن دوئ به ويل چه زمونږدمعبودانوپه بلنه کښ تاثير خامخا شته دې ځکه چه مونږه ورنه کله هم سوال اوکړونوحاجت موپوره کيږی او د مصائبو نه محفوظه کيږو ،الله ﷻ دغې شبهې جواب پدې سورة کښ کوی چه﴿فَلَوْلَا نَصَرَهُمُ الَّذِينَ اتَّخَذُوا مِن دُونِ اللَّهِ قُرْبَانًا آلِهَةً﴾آيت(۲۸).حاصل دا چه کچرته ددوئ په بلنه کښ تاثير او برکت وې نو دوئ خپل عابدين زمونږدګرفت اودعذاب نه ولې خلاص نه کړل.

(۲)مخکښ سورت کښ ترغيب الى القرآن وؤ اودقرآن حقانيت ذکروؤ.دي سورت کښ باقاعده دلائلو سره دقرآن حقانيت اثبات کيږی.

(۳)منښ سورت کښ مسئله معاد اجمالی طورباندی بيانه شوی وه چی﴿ قل الله يحييكم ثم يميتكم ثم يجمعكم﴾ دې سورت کښ باقاعده دليل سره دامسئله بيانيږی.

**ربط اسمی**: توحيد په مقابله کښ دمشرکينو عجز مثال په مخکښ سورت کښ هغه کس سره ورکړې شوې وؤ چی سترتيا اوعاجز راتلو وجهی نه په ګوډوباندې ناست وی.اودې سورت کښ داذکر کيږی چی توحيد ،حقانيت قرآن او اثبات معاد د دلائلوپه مقابله کښ ددوئ شبهات پشان د شګو ډيري دي ،هيڅ دمقاومت تاب نه لری.

## دسورة دمضامینو اجمالي خلاصه

حوامیمو بنیادي مضمون اثبات توحید او رد د شرک دي.خودې سره سره معاد او حقانیت قرآن هم باقاعده ذکر کیږي،چونکه سورت الاحقاف حوامیو آخر اوبلاغ دې نو دیکښې دا درې واړه مسئلې په تفصیل سره ذکر کیږي،دې باندې چې کوم اشکالات دي دهغې جواب ذکر کیږي ،حق عقیدې دلائلو سره اثبات کیږي،او مینځ مینځ کښې تخویفات ،زجر او بشارات هم بیانیږي

## تفصیلي خلاصه

آیت 1،2:کښې تمهید مع الترغیب دې.

آیت 3-6:پورې اثبات توحید او رد دشرک دې.

آیت 7-12:پورې دقرآن حقانیت اثبات دې

آیت 13،14: کښې بشارت علی ادا حقوق الله دې

آیت 15،16 :کښې بشارت علی حقوق العباد دې.

آیت 17-28: پورې تخویفات دي.

آیت 29-32: پورې بیا حقانیت قرآن بیانیږي.

آیت 33 :کښې دمعاد اثبات ذکر کیږي.

آیت 34:کښې تخویف دې

آیت 35:کښې تسلي ده نبي ﷺ ته او اعلان دې چې هغې تعلق تولو حوامیمو سره دې.

حٰمٓ ﴿۱﴾ تَنْزِيْلُ الْكِتٰبِ مِنَ اللّٰهِ الْعَزِيْزِ الْحَكِيْمِ ﴿۲﴾ مَا خَلَقْنَا

الله پوهیږي په معنی ددې،نازلیدل ددې کتاب دطرفه دالله نه دې چه غالب دې خاوند دحکمت دې،ندي پیدا کړي مونږ

السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَآ إِلَّا بِالْحَقِّ وَأَجَلٍ

اسمانونه او زمکه او هغه څه چه په مینځ ددې دواړوکښ دي مګردپاره دحق ښکاره کولواودپاره دیوې نیټې

مُّسَمًّى ۚ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا عَمَّآ أُنْذِرُوْا مُعْرِضُوْنَ ﴿۳﴾ قُلْ

مقررې.اوهغه خلق چه کفرئی کړیدې دهغې نه چه دوئ ورنه یره ولې شوي دي اعراض کونکي دي ، ته اوابه

| أَرَءَيْتُم | مَّا | تَدْعُونَ | مِن | دُونِ | اللَّهِ | أَرُونِي | مَاذَا | خَلَقُوا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| تاسو ماخبر کړئ دَهغې نه چه تاسو ورنه حاجتونه غواړئ ماسوئ دَالله نه، ماته اوښايئ هغه څه چه دوئ پيدا کړی دی | | | | | | | | |
| مِنَ الْأَرْضِ أَمْ لَهُمْ شِرْكٌ فِي السَّمَاوَاتِ ائْتُونِي بِكِتَابٍ مِّن قَبْلِ هَٰذَا | | | | | | | | |
| دَزمکې نه يا دوئ لره څه برخه ده په اسمانونو کښ، راوړئ ما ته څه کتاب مخکښ دَ دې قرآن نه | | | | | | | | |
| أَوْ | أَثَارَةٍ | مِّنْ | عِلْمٍ | إِن | كُنتُمْ | صَادِقِينَ ④ | | |
| يا | يو نقل | دَ | علم «دَانبياؤ» | نه | کچرته | يئ | تاسو رښتنی. | |

﴿حٰمٓ ۝ تَنزِيلُ الْكِتَابِ﴾ تمهيد دې مسئلې دَتوحيد ته، او ترغيب دې منلو دَقرآن ته، چه دا قرآن دَ الله ﷻ دَطرفه نازل دې نو دا او منئ. ځکه چې دچا اطاعت ته غاړه ايخولو او فرمان برداری کولو دپاره په مطاع کښ دوه صفات ضروري دی: «۱» قدرت او سلطنت ورته حاصل وی او داجسمانی طور باندی انسان په اطاعت مجبوره کوی «۲» دهغه احکامات او خبرې دَحکمت نه ډکې وي، او دا وصف انسان عقلی طور متاثره کوی او الله ﷻ چونکه دی دواړو صفاتو سره بطور اکمل متصف دې نو لهذا هغه اطاعت او کلام منل ضروری دی.

﴿مَا خَلَقْنَا السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ﴾ دليل عقلی دې په توحيد او نفی دَ قدرت دتصرف ده غير الله نه او څو غلطو عقيدو باندی رد دې:

«۱» ټول کائنات الله ﷻ پيدا کړيدی او ديکښ څومره تصرفات کيږی الله ﷻ په ارادې سره کيږی، ددې ذکر اوشو په «ما خلقنا السموات والارض» کښ دا په عقيده دهريت رددی چه مشرکينو به ويل مايهلکنا الا الدهر

«۲» دا کائنات او ديکښ چې څه دی يو مقصد تحت پيدا شويدی، داعبث ندی پيدا کړې شوې، بلکه ديکښ دَ الله ﷻ معرفت نشانيانې دي. دا نه ده چې «نموت ونحيا» او بس، ﴿إِلَّا بِالْحَقِّ﴾ کښ دَدې ذکر دې

(۳) یوه ورځ به داسې راځي چه دا هرڅه به فنا شي اوستاسونه به دې ژوند هر لمحې حساب کتاب اخیستې کیږي، په(( واجل مسمی)) کښې دَ دې ذکر دې. دیکښې عقیده معاد ذکر دی.

﴿عَمَّآ أُنذِرُواْ﴾ جار مجرور مابعد سره متعلق دی اومراد ترینه قیامت اودَهغه ورځې اهوال دي ، یعنی چه کله دوئ دَبعث بعدالموت اودَقیامت خبرې واوری نودَهغې نه اعراض او انکارکوی.

﴿قُلۡ أَرَءَيۡتُم مَّا تَدۡعُونَ﴾ پدې آیت کښې دَمشرکانونه په شرک باندې دَدوؤقسمه دلیلونومطالبه ده: یو دلیل عقلی بل دلیل نقلی، ﴿أَرُونِي مَاذَا خَلَقُواْ﴾ دلیل عقلی مطالبه ده. یعنی آیاستاسومعبودانوڅه حصه دَزمکې پیداکړیده؟ استفهام دَتوبیخ اوپیغوردَپاره دې، یعنی تاسوڅرنګه دَداسې معبودانوعبادت کوئ چه په صفاتو دَ الوهیت نه دې متصف ﴿مِنَ ٱلۡأَرۡضِ﴾ یعنی زمکه او په مخ دَزمکه داسې څه شته چې دوئ هغې پیدا کولو کښې مستقل وی او الله ﷻ ته محتاج نه وی ﴿أَمۡ لَهُمۡ شِرۡكٞ فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ﴾ یعني آسمان اوپه هغی کښې څومره مخلوقات دی آیا هغې پیدا کولو کښې دوئ الله ﷻ سره څه معاونت او شرکت کړیدی،

**فائده:** دا خبره خوظاهره ده چی دوئ نه زمکی څه حصه پیداکولو کښې الله ﷻ سره شریک دی اونه آسمان ،خو بیا هم شرک نفی صرف آسمان نه اوشوه او زمکه کښې داستقلال نفی اوشوه، دیکښې نکته داده چی سفلیات او دهغی حوادثو کښې غیر الله بطور واسطه او سبب درجه کښې څه نه څه دخل وی، لیکن هر چه دی علویات نوهغې کښې دَغیر الله هیڅ قسم عمل دخل نشته نو ځکه هلته نفی دَ شرکت اوشوه

((ارایتم )) او ((اروني)) دواړه د دوه مفعولو تقاضه کوي ، د ((ارایتم ))د پاره مفعول اول ((ماتدعون )) دي او ((اروني )) د پاره پاره مفعول اول ضمیر منصوب ((یاء))دي او ((ماذا خلقوا)) کښې د دواړو تنازع ده ، دواړه ئي خپل مفعول به ثاني جوړیدو تقاضه کوي ، نو فعل ثاني له خو عمل ورکړو او د اول مفعول خو محذوف اومنلو ، او بعض وائي چې دا مفعول به ثاني دې د فعل اول ، اویا ((اروني)) جمله معترضه دپاره د تاکید ده، نو هډو تنازع نشته

﴿ائْتُونِي بِكِتَابٍ﴾ دليل نقلی مطالبه ده ازکتب سابقه، ﴿مِّن قَبْلِ هَٰذَا﴾ مخکښ دقرآن نه چه توراة، انجيل، زبوردی، ﴿أَوْ أَثَارَةٍ مِّنْ عِلْمٍ﴾ دليل نقلی مطالبه ده د انبياؤو سابقوؤ نه، د ﴿أَثَارَةٍ﴾ څو معنی بيان کړې شويدی:

(۱) روايت: يعنی انبياء سابقوؤ نه څه اثر او روايت منقول وی دیکښ تو پيش يی کړئ.

(۲) اثارة په معنی بقية سره دې يعنی سابقه علوم نه څه علم پاتې شوې وی او هغې کښې څه داسې خبره وي نو پيش ئي کړئ.

| |
|---|
| وَمَنْ أَضَلُّ مِمَّن يَدْعُوا مِن دُونِ اللَّهِ مَن لَّا يَسْتَجِيبُ لَهُ |
| اوڅوک زيات ګمراه دې دهغه چا نه چه دې سوال کوی ماسوئ دالله ﷻ نه دهغه چانه چه نشی قبولولې سوال دده |
| إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ وَهُمْ عَن دُعَائِهِمْ غَافِلُونَ ۞ وَإِذَا حُشِرَ النَّاسُ |
| ترورځې دقيامت پورې اودوئ (معبودان) دسوال ددوئ نه ناخبره دی، اوکله چه راجمع کړې شی خلق دقيامت په ورځ |
| كَانُوا لَهُمْ أَعْدَاءً وَكَانُوا بِعِبَادَتِهِمْ كَافِرِينَ ۞ |
| نووی به دامعبودان دوئ لره دشمنان اووی به په عبادت ددوئ باندې انکارکونکی. |

﴿وَمَنْ أَضَلُّ مِمَّن يَدْعُوا﴾ ما قبل کښې نفی د قدرت او تصرف وه دغير الله نه، دې آيت کښ نفی دعلم ده دغير الله نه. چه دهغه کس نه لوئ ګمراه بل نشته دې چه دداسې ځيزونونه پخپل حاجتونو کښ مددغواړی چه ترقيامته پورې نه ورته جواب ورکولې شی او نه ده دوئ حاجتونو نه خبر دې. ﴿مِن دُونِ اللَّهِ﴾ عام دې عابدانو دملائکو، عيسی عليه السلام او جناتو، جماداتو، قبرونو، زيارتونو ټولوته شامل دې. ﴿إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ﴾ مرادورنه تابيددې، يعنی هميشه ورته جواب نشی ورکولې ﴿وَهُمْ عَن دُعَائِهِمْ غَافِلُونَ﴾ يعنی جواب ورکول اوحاجت پوره کول خودېره بعيده ده بلکه دهغوئ بلنه آوری هم نه اوددوئ نه بې خبره دی.

صاحب دروح المعانی رحمه الله ليکلی دی چه بتان خوبهرحال بې خبره دی چه پکښ د اوريدلو صلاحيت اواستعدادنشته دې، اوهرچه ملائک دی نو هغه خولرې دی، ځکه مشرکينو

دَ اسمانی ملائکوعبادت کولو،اوهرچه اولیاأنبیاءدی نوبعض خولری وؤدَعابدینونه اوعلم الغیبؑ ورسره نشته دي چه دَدویٔ دَعبادت نه خبرشی،اوځوک چه قریب دی نوهغه مړه دی او مړی په هروخت کښ خبره نه آوری،یاداچه اللهﷻ دَ مشرکانو دَ شرکی اقوالوافعالونه دویٔ بې خبره ساتی چه په حُزن اوپه غمونوکښ پریشان نشی.

شیخ عطار رحمه الله دَمذکوره آیاتونوترجمانی پخپلو اشعاروکښ داسې کړیده،شعر:

دربلایاری مه خواهدازهیچ کس　　زانکه نه بودجزخدافریادرس

غیرحق راهرکه خوانداي پسر　　کیست درعالم ازوگمراه تر

﴿وَإِذَا حُشِرَ ٱلنَّاسُ﴾دا دویٔ مزید حماقت بیان دي یعنی دامعبودان دَدویٔ بلنه خو هڅې نه اوري بلکه دَ قیامت په ورځ به ئی ورسره عداوت وی .اوپه میدانِ حشرکښ به علی رؤس الاشهاد دا اعلان اوکړی چه مونږ ستاسو دَ عبادت ، او بلنې نه بالکل خبر هم نه وؤچه ځوک زمونږ قبر ته راغلیدې او سوالونه ئی کړیدی،سجدې ئی کړیدی،نذرانې ئی ورکړیدی، دا مضمون دَسورة یونس(۲۸) وغیره سورتونوکښ هم تیرشویدې.

((کانوا))کښې ضمیر ˚من لا یستجیب له ˚ یعني آلهؤو ته راجع دې او ((لهم)) ضمیر ˚ من یدعو من دون الله ˚ یعني مشرکینو ته راجع دې ،((اعداء)) چونکه د دویٔ عبادت به ورته د نفعې په ځایٔ نقصان رسوي نو ځکه ورباندې د((اعداء)) اطلاق اوشو ، او مطلب دا دې،چې دویٔ خو د غیر الله تقرب او رضا حاصلولو دَ پاره نن د هغویٔ عبادت کوي ، خو کله چې قیامت ورځ شې ،نو هغویٔ به د دویٔ د شمنان وي،یعني نفعې په ځایٔ به ورته ضرر اورسوي،

((وکانوا بعبادتهم)) ضمیر مرفوع دلته هم ˚ من لا یستجیب له ˚ یعني آلهؤو ته راجع دې او ((بعبادتهم)) کښې ضمیر مجرور مشرکانو ته راجع دې،یعني دَ دویٔ آلهه به دَ دویٔ دَ عبادت نه به براءت اعلان اوکړي ، چې ما کان ینبغي لنا ان نتخذ من دونک من اولیاء، یا ((کانوا))کښې ضمیر په دوارو ځائینو کښې ˚من یدعومن دون الله˚ یعني مشرکینو ته راجع دې او ((لهم )) ضمیر ˚من لا یستجیب له ˚ یعني آلهؤو ته راجع دې، یعني قیامت په ورځ چې دویٔ آلهې دویٔ نه براءت اعلان اوکړي ، نو دویٔ به د هغویٔ د شمنان اوګرځي او د هغویٔ عبادت کولو نه انکار اوکړي چې والله ربنا ماکنا مشرکین.

| |
|---|
| وَاِذَا تُتۡلٰى عَلَيۡهِمۡ اٰيٰتُنَا بَيِّنٰتٍ قَالَ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا لِلۡحَقِّ لَمَّا جَآءَهُمۡ ۙ |
| اوکله چه لوستلې شي پدوئ آياتونه زمونږ ښکاره، وائي هغه خلق چه کفرئې کړيدې. قرآن ته، هرکله چه راشي دوئ ته، |
| هٰذَا سِحۡرٌ مُّبِيۡنٌ ؕ﴿۷﴾ اَمۡ يَقُوۡلُوۡنَ افۡتَرٰىهُ ؕ قُلۡ اِنِ افۡتَرَيۡتُهٗ |
| داسحردې ښکاره،ولې دوئ داوائي چه دځان نه جوړکړيدې دې پيغمبردا قرآن،ته اوايه کچرې مادځان نه جوړکړې وی دا قرآن |
| فَلَا تَمۡلِكُوۡنَ لِىۡ مِنَ اللّٰهِ شَيۡـئًا ؕ هُوَ اَعۡلَمُ بِمَا تُفِيۡضُوۡنَ فِيۡهِ ؕ |
| نومالکان نه يئ تاسومالره دعذاب دالله ﷻ نه دهيڅ څيزالله ﷻ ښه خبردې په هغه ګډو وډو چې تاسو لګيايئ په هغې کښې. |
| كَفٰى بِهٖ شَهِيۡدًاۢ بَيۡنِىۡ وَبَيۡنَكُمۡ ؕ وَهُوَ الۡغَفُوۡرُ الرَّحِيۡمُ ﴿۸﴾ قُلۡ |
| کافی دې الله ﷻ ګواه،خبرپه مينځ څما اومينځ ستاسو کښې،اوالله ﷻ بخونکې ډيررحم کونکې دې،ته اووايه |
| مَا كُنۡتُ بِدۡعًا مِّنَ الرُّسُلِ وَمَاۤ اَدۡرِىۡ مَا يُفۡعَلُ بِىۡ وَلَا بِكُمۡ ؕ اِنۡ اَتَّبِعُ اِلَّا |
| نه يم څه نوې درسولانونه اونه پوهيږم څه چه څه به کولې شي ماسره اونه ستاسوسره،نه کوم څه اتباع مګر |
| مَا يُوۡحٰۤى اِلَىَّ وَمَاۤ اَنَا اِلَّا نَذِيۡرٌ مُّبِيۡنٌ ﴿۹﴾ |
| دهغې چه وحی ئی ئی کيديشی ماته اونه يم څه مګرويرونکې ښکاره. |

﴿وَاِذَا تُتۡلٰى عَلَيۡهِمۡ اٰيٰتُنَا﴾ دلته نه دقرآن حقانيت اثبات او په قرآن باندې دمشرکينو دری شبهات او هغې جواب ذکر کيږي په ضمن د شکوي کښې ، دا اوله شبه او شکوه ده چې دَدې مشرکينو عجيب طرز عمل دې يو طرف ته اوګورئ نو باطل پسې روان منډې وهي او دَ داسې معبودانو عبادت کوی چې هغوئ نه قدرت شته نه د تصرف اختيار، نه ورسره علم شته نه دوئ ته دَ الله ﷻ په مقابله کښې نفع يا ضرر رسولې شي،بل طرف ته اوګورئ چې دَ الله ﷻ حق کلام دې، په هغې کښې د الله ﷻ وحدانيت واضح دلائل دی. نو دوئ هغې ته سحر وائی، دَ دې شبهې جواب آيت کښې موجود دې،چې هغې ته اشاره«الحق» او «بينات»کښې شويده،چې دا د الله ﷻ حق ښکاره کلام دې،سحر نه دې؛ ځکه چې سحر معارضه ممکن وی او دَ دې کلام معارضه ممکن نه ده.

﴿أَمۡ يَقُولُونَ ٱفۡتَرَىٰهُ﴾دا **دویمه شبه ده** دَمشرکینو علي سبیل الترقي. امْ دلته اضراب د پاره دي یعنی داخبرخو ئی څه کئ ، دې بلې ته ئي غوګ شه .چی قرآن دَ الله ﷻ کلام نه دې بلکه دې پیغمبر دا دَځان نه جوړ کړیدې او الله ﷻ طرف ته ئي منسوب کوی.دَ دوئ پدی شبهی باندې دَ مخکښ شهبې نه زیات تعجب څکه اوشو چی دا څنګه کیدیشی چي یوداسې کلام چې هغې مثل یو آیت پیش کولو باندېْ دوئ قادر نه دی باوجود دَدینه چې فصحاء، بلغاء او شعراء دی، نویو داسې کس چی امی دې، شعر وشاعری سره ئي واسطه نشته هغه دَځان نه څنګه جوړ کړو .الله ﷻ دَدې شبهی درې جوابونه ذکر کړو

﴿قُلۡ إِنِ ٱفۡتَرَيۡتُهُۥ﴾دا **اول جواب** دې، خلاصه دَجواب داده چی څه یو مبلغ یم .الله ﷻ آیات واحکامات خلقو ته بیانوم،کچرته داحقیقت کښ دَ الله ﷻ احکام او آیاتونه ، نه وی نو دَ الله ﷻ عذاب راتلل په ما یقینی دي هغی نه ما څوک نشی بچ کولی. کما في قوله تعالی:ولو تقول علینا بعض الاقاویل لاخذنا منه بالیمین (الحاقه:۴۴، ۴۷)څکه چې عادت الله ﷻ دَجاری دې چی کوم کس دَ نبوت دعوی په دروغو کوی او احکام الهی کښ دجل وفریب نه کار اخلی،او حقیقت په خلقو ملتبس کوی نو الله ﷻ خپل قهر په هغه نازل کوی.

﴿بِمَا تُفِيضُونَ فِيهِ﴾داتخویف دې، افاض یفیض ماده په لغت کښې کثرت باندې دلالت کوی، ویلې کیږی: افاض الماء اناءه کله چی اوبونه لوخی ډک او ابهیګی ، ډیر سخی انسان ته فیاض ویلې کیږی، او افاض في الحدیثویلی کیږی څه شی په باره مختلفی خبرې کولوته ،او دلته هم دامعنی مراد ده چی کله ورته سحروائی کله ورته څه او کله څه ؟دی ټولو خبروباندی الله ﷻ خه عالم دي.﴿كَفَىٰ بِهِۦ شَهِيدَۢا﴾ دا ماقبل نه بدل الاشتمال دې یعنی کافی دې الله ﷻ ګواه څماپه تبلیغ اوستاسوپه تکذیب﴿وَهُوَ ٱلۡغَفُورُ ٱلرَّحِيمُ﴾داترغیب دتوبې او قرآن منلوته. یعنی کچرته اوس تاسوتوبه اوکړئ اوقرآن اومنئ نو الله ﷻ توبه قبولونکې دې رحم کونکې دې.

﴿قُلۡ مَا كُنتُ بِدۡعٗا﴾دا **دویم جواب** دې، خلاصه یې داده چې څه بنیاد باندې تاسو دې قرآن کښ شک کوئ؟ آیا څما نبوت او پیغمبري څه یونوې شې دې یا دا قرآن نازلیدل یو نوې

امر دي....؟انبياء او پيغمبران هم دينه مخکښ مبعوث شويدی اوکتابونه هم نازل شويدی، هغوئ به وحی اتباع کوله څه هم دَوحی اتباع کوم.هغوئ به هم دالله ﷻ آياتونه خلقوته اورول اويره ول به يی، څماهم دا وظيفه ده ،پاتې شول اخبار دَ دنيوی امورو چه مستقبل کښ به څه کيږی ،تکليف به رسی يا راحت،نقصان به کيږی يا ګټه،غلبه به ملاويږی يا شکست...دا دَ نبوت وظيفه نده،دې باره کښې ماته نه دَخپل ذات باره کښ علم شته نه تاسو باره کښ، «بدعا» پمعنی د "بديع" کښ دې،لکه خِف پمعنی خفيفاو خِل پمعنی خليل سره رازی،"بديع" ويلی کيږی عديم المثال شي ته، ﴿وَمَآ أَدْرِى مَا يُفْعَلُ بِى وَلَا بِكُمْ﴾دا يت اولی حصه "ماکنت بدعا"کښ دی خبری نفی اوشوه چی نه نبوت اورسالت نوې شی دې او نه کتاب نازليدل ،اوس دلته مماثلت بيان کيږی،روايتوکښ رازی چه مشرکينو به نبی کريم ﷺ نه داسوال کوو: اخبرنا بمضارنا ومصالحنا في المستقبل‌يعني راتلونکی زمانه کښ کوم تکليفونه په مونږ راروان دی يا کومې فائدې مونږ ته ميلاويږی هغې باره خبر راکه،نو بيا مونږ تا اومنو،الله ﷻ جواب اوکړو چی دا دَنبوت اور رسالت وظيفه نده،نبوت اور رسالت وظيفه اتباع وحی او تبليغ وحی ده.

| قُلْ أَرَءَيْتُمْ إِنْ كَانَ مِنْ عِنْدِ اللَّهِ وَكَفَرْتُمْ بِهِۦ وَشَهِدَ |
| --- |
| نه اووايه خبرراکړئ ماته کچرته وی داقرآن دَطرفه دَالله ﷻ نه او بيا هم تاسوکفرکوئ په دې اوګواهی ورکوي |
| شَاهِدٌ مِّنۢ بَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ عَلَىٰ مِثْلِهِۦ فَـَٔامَنَ وَٱسْتَكْبَرْتُمْ ۖ إِنَّ ٱللَّهَ |
| يوګواه دَبنی اسرائيلونه په شان دَدی قرآن، نو هغه ايمان راوړې اوتاسوتکبرکوئ بيشکه الله ﷻ |
| لَا يَهْدِى ٱلْقَوْمَ ٱلظَّٰلِمِينَ ۝ |
| هدايت نه کوی قوم ظالمانو ته |

﴿قُلْ أَرَءَيْتُمْ إِن كَانَ مِنْ عِندِ ٱللَّهِ﴾دا دريم جواب دې، خلاصه يی داده چی دا خو ډير ظلم او بې انصافی خبره ده چې دا قرآن دَ الله ﷻ طرف نه وی ، اوبنی اسرائيلو کښ معتبر اهل علم حضرات پدی ګواهی ورکوی، اوايمان پرې هم راوړی او حق يی ګنړی،ليکن ددې

باوجود تا سو ئي نه منئ او انکار واعراض ترینه کوئ،دې تفسير مطابق ((شاهد)) نه مراد دَاهل کتابو هر هغه عالم دي چی په قرآن ئي ايمان راوړې وی . چې هغه څوک هم وی برابره خبره ده چې دې آیت نزول نه مخکښ راوړې وی یاورستو (بیان القرآن) لهذا روایاتو کښ دَ عبدالله بن سلام ﷺ یا میمون بن یامین او دهغه شان چې کومو نورو اهل علم حضراتو تذکره راغلې ده،هغه بطور مثال ده، تخصيص ترينه نه دې مراد .((مثله)) ضمير مجرور مرجع قرآن دي "مثل" نه مراد يا هغه مضامين د قرآن دی چې هغه تورات کښ هم وؤ،چې هغه توحید او بعث بعد الموت وغیره دي ، يعنی داشاهد دَ قرآن مضامینو دحقانیت گواهي ورکوی،لکه بل ځائ کښ راغلی دی: وانه لفي زبرالاولین، اولم یکن لهم اية أن يعلمه علماء بني اسرائيل ، يا "مثل" نه مراد کتب سابقه دی چی هغه منزل من الله کيدلو کښ دَقرآن مماثل دی،او یا "مثل" نه مراد بعینه قرآن دې ، "مثل" لفظ اضافه دَ مبالغې د پاره شویده، لکه اهل عرب وائی مثلک لایبخل.((فآمن ))کښ ضمير مستتر "شاهد" ته راجع دې، يعنی بيائي پدې قرآن ايمان هم راوړو.

بعض مفسرینو دَ ((شاهد)) نه مراد کتب سابقه او ((مثله)) نه مضامين دَ قرآن اخستي دي، يعنی سابقه کتابونه چی کوم الله ﷻ نازل کړیدی هغه دَدې کتاب،ددَې مضامینو اودَرسول الله ﷺ دَ رسالت حقانيت گواهی ورکوی (قرطبی) نو دې توجيه مطابق ((فامن)) نه مراد تصدیق دي.

حضرت تهانوی ﷫ دَدې آیت منفرد تفسير کړیدې،دَ هغې خلاصه داده چې اهل کتاب باوجود ددینه چی اهل علم وؤ ،هغوئ دې قرآن په شان کتابونو تورات اوانجیل وغیره باندې ايمان راوړې دې حالانکه داکتابونه دَ فصاحت و بلاغت هغه مرتبه کښ نه وو چې په کومې مرتبې باندې قرآن دې،او تاسو باوجود دَدینه چی جاهله يئ دَ قرآن نه انکارکوئ، حالانکه دا دَ فصاحت اوبلاغت اوچتې مرتبې باندې فائز دې.دې تفسير مطابق ((مثل )) مصداق تورات ، انجیل وغیره دی،او((فامن)) نه مراد.تورات ،انجیل باندې ايمان راوړل دی.

﴿إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَهْدِى ٱلْقَوْمَ ٱلظَّٰلِمِينَ﴾دجزا محذوف قائم مقام دې،چی هغه فقد ظلمتم یا الستم اظلم الناس ده

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَقَالَ | الَّذِيْنَ | كَفَرُوْا | لِلَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | لَوْ | كَانَ | خَيْرًا |

اووائي هغه خلق چه کافران دي دهغه خلقوپه باره کښ چه ايمان ئې راوړي دي،کچرته وې دا قرآن حق

مَّا سَبَقُوْنَآ اِلَيْهِ ؕ وَاِذْ لَمْ يَهْتَدُوْا بِهٖ فَسَيَقُوْلُوْنَ هٰذَآ اِفْكٌ

نو نه به وي مخکښ شوي دوئ زمونږ نه ده ته،اوکله چه دوئ ته هدايت اونشوېدې قرآن نووائي دوئ دادروغ دی

قَدِيْمٌ ⑪ وَمِنْ قَبْلِهٖ كِتٰبُ مُوْسٰٓى اِمَامًا وَّرَحْمَةً ؕ وَهٰذَا كِتٰبٌ

پخوانی.اومخکښ دَدې قرآن نه کتاب دَموسیٰ(توراة)وؤ چه پيشوا او رحمت وؤ، او دا قرآن کتاب دې

مُّصَدِّقٌ لِّسَانًا عَرَبِيًّا لِّيُنْذِرَ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا

تصديق کونکې(دَمخکنوکتابونو)په ژبه عربئ کښ.دَ پاره دَدې چه ويروی هغه خلق چه ظلم(شرک)ئې کړيدې،

وَبُشْرٰى لِلْمُحْسِنِيْنَ ⑫ اِنَّ الَّذِيْنَ قَالُوْا رَبُّنَا اللّٰهُ ثُمَّ اسْتَقَامُوْا

اوزيرې دې دَپاره دَښائسته عمل کونکو.بيشکه هغه خلق چه دائي ويلي دی رب زمونږالله دې بياکلک ولاړدی پدی خبره،

فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ⑬ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ خٰلِدِيْنَ

نونه به وی هيڅ يره پدوئ باندی اونه به دوئ غمژن وی.دغه کسان اوسيدونکي دَجنت دی هميشه به وی

فِيْهَا جَزَآءًۢ بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ⑭

په هغې کښ(ورکولې به شی دوئ ته)بدله په سبب دَهغه عملونوچه دوئ کول

﴿وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا﴾ دی آيت کښ الله ﷻ مشرکينو دريمه شبهه ذکر کوی،خلاصه ئې داده چه کچرته قرآن او پدې ايمان راوړلو کښ خير وې نو مونږ به پرې ايمان راوړې وې، دا خو پر خلق لکه بلال صهيب عمار وغيره شو دوئ به مونږ نه نوؤ وړاندې شوی، ځکه چې مونږ عقلمند او روشن خيال خلق يو ، اوخير طرف ته سبقت هميشه علقمند انسان کوی،بلکه اصل خبره دا ده چی دا الله ﷻ کلام نه دې ،زاړه دروغ دی چې راجمع کړې شويدی،

دَ جاهليت قديمه اوجديده روشن خيالو اقوالو کښ مماثلت ته اوګورئ،نن صبا امت کښ دَ ايمان دعويدار داسې طبقه موجود ده چی هغه ددې امت غرباء چې اصل حاملين دَ دين

دی، دین دپاره هغوئ خپل مال وجان وقف کړیدې.دین اصل صورت کښې پیش کوی او تحریفاتو نه پرده اوچته وی، دَ هغوئ ظاهری شکل وصورت سادګي او سنت مطابق طرزعمل پورې مسخرې کوی ،او د هغوئ دین حقیقی صورت کښې پیش کولوته رجعت پسندی او قدامت پرستي وائی!!!

﴿لِلَّذِينَ ءَامَنُوا﴾ اي في شانهم ، لام دپاره تعدیه نه دې بلکه تعلیله دې اي لاجل ايمان الذين امنوا

﴿وَإِذْ لَمْ يَهْتَدُوا بِهِۦ﴾داجواب دشبهی دې،خلاصه ئي دا ده چې اصل خبره داده چې دوئ ایمان نه محروم دی اوخیر توفیق ورته نه دې میلاوشوې، نو تکبر اوعناد د وجهې نه داخبره کوی،چې دیکښې خیرنشته اودا زاړه دروغ دی،ده دوئ دا قول داسې دې لکه پښتوکښې وائی انګور تاروه دی،حالانکه انګور تاروه نه وی خودې ترینه محرومه وی

﴿وَمِن قَبْلِهِۦ كِتَٰبُ مُوسَىٰٓ﴾دا جواب دې دَ هذا افک قدیم یعنی دوئ دَ دې خبرې اعتراف کوی چې الله ﷻ په موسی ﷺ باندې تورات نازل کړې وؤ ،نو دې کتاب کښې عقائدو اعتبار سره هیڅ نوې خبره نشته، بلکه کوم مضامین دَ توحید ،رسالت د معاد وغیره هغې کښې وؤ بعینه هغه دیکښې هم دی، مزید دا چې دا کتاب په عربئ کښې دې او زبان و بیان فصاحت و بلاغت اعتبار سره تورات نه اوچت دې نوځنګه هغه منئ او دینه انکار کوی.

﴿إِمَامًا﴾ حال دې کتاب نه یعنی مقتدیٰ کتاب وؤ ،اتباع او اقتدا به یې کیده لکه ځنګه چې دَ امام کیږی، نو هغې کښې نبی کریم ﷺ بشارت هم موجود دې نو ځنګه چې تورات حق منئ دا خبره یې هم اومنئ او پدې نبی اوکتاب ایمان راوړی.«وَرَحْمَةً»عمل کونکو په حق کښې رحمت وؤ ، ﴿لِّسَانًا عَرَبِيًّا﴾ حال دی دَضمیر «مصدق» نه(بیضاوي)

﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ قَالُوا رَبُّنَا ٱللَّهُ﴾دلته نه بشارتونه ذکر کیږی،او دا حقوق الله په ادا کولو باندی بشارت دې یعنی چاپه الله ﷻ وحدانیت باندی ایمان راوړو اودین احکاماتو باندی عمل شروع کړو په استقامت سره نو هغه له به الله ﷻ دنیوی اخروی دواړه انعامات ورکوی، دنیوي انعام یی دادې چې زندګی به یې په آرام وی،خوف اوحزن به ورسره نه وی،اواخروې بدله همیشه دپاره جنت دې.

| |
|---|
| وَوَصَّيْنَا الْاِنْسَانَ بِوَالِدَيْهِ اِحْسٰنًا ۭ حَمَلَتْهُ اُمُّهٗ كُرْهًا |
| اوتاکید کړیدې مونږانسان ته په باره دَموروپلارکښې دَاحسان کولو.حمل کړی وی دی مور د ده په تکلیف سره |
| وَّوَضَعَتْهُ كُرْهًا ۭ وَحَمْلُهٗ وَفِصٰلُهٗ ثَلٰثُوْنَ شَهْرًا ۭ حَتّٰٓى اِذَا |
| او زیګولې نی وي په تکلیف سره،اوداحمل دده اوجداکول نی دَ تی نه دیرش میاشتې وي. تردې چه کله دې |
| بَلَغَ اَشُدَّهٗ وَبَلَغَ اَرْبَعِيْنَ سَنَةً ۙ قَالَ رَبِّ اَوْزِعْنِيْٓ |
| اورسي خوانئ خپلې ته او اورسي څلویښت کالوته ، نو وائی دې اې ربه څماتوفیق راکړې ماته دَدې چه |
| اَنْ اَشْكُرَ نِعْمَتَكَ الَّتِيْٓ اَنْعَمْتَ عَلَيَّ وَعَلٰي وَالِدَيَّ وَاَنْ اَعْمَلَ |
| څه شکراداکړم دَ نعمت ستا هغه چه دې کړیدې په ما اوپه مور.پلار څما،او د دې توفیق راکړه،چه څه اوکړم عمل |
| صَالِحًا تَرْضٰىهُ وَاَصْلِحْ لِيْ فِيْ ذُرِّيَّتِيْ ۚ اِنِّىْ تُبْتُ اِلَيْكَ وَاِنِّىْ |
| نیک چه ته پری راضی شې اوښه والې راوله ماله په اولادڅماکښې،بیشکه څه توبه کوم تاته اوبیشکه څه |
| مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ ۝ اُولٰۗىِٕكَ الَّذِيْنَ نَتَقَبَّلُ عَنْهُمْ اَحْسَنَ مَا عَمِلُوْا |
| دَمسلمانانونه یمـدغه خلق هغه دی چه مونږقبوله وژدوئ نه ښائسته هغه عملونه چه دوئ کړی وی |
| وَنَتَجَاوَزُ عَنْ سَيِّاٰتِهِمْ فِيْٓ اَصْحٰبِ الْجَنَّةِ ۭ وَعْدَ الصِّدْقِ الَّذِيْ |
| اومعافی کوُو دَ هغوئ دَ ګناهونو نه، په جنتیانو کښې به وی وعده د ریشتونې هغه چې |
| كَانُوْا يُوْعَدُوْنَ ۝ |
| چه دوئ سره کیدله.(په دنیا کښې) |

﴿ وَوَصَّيْنَا الْاِنْسَانَ بِوَالِدَيْهِ اِحْسٰنًا ﴾په مخکښې آیت کښې دَحقوق الله په پوره کولوباندې بشارت وژیدې آیت کښې دَحقوق العبادحکم اوپه پوره کولوئی بشارت اخرویه دې،مفسرین فرمائی چه داووه آیاتونه نازل شویدی په باره دَحضرت ابوبکرصدیق ﷺ کښې،لیکن تعبیر ترینه په عامو الفاظوسره څکه شویدې چه هرمسلمان ته پکښې تلقین دې چه دَ والدینو سره او

خصوصاً دَ مور سره ښه سلوک،احسان وکړی، او په عمر تیریدو سره دې الله ﷻ طرف ته رجوع کوی.

**فائده**:دآیت کریمی نه علماؤ استدلال کړیدې پدې چه په انسان باندې دَمورحق اوخدمت زیات دې دَحق دَپلارنه ځکه چه مور دَ بچی په باره درې تکلیفونه برداشت کوی:

(۱)﴿حَمَلَتْهُ أُمُّهُ كُرْهًا﴾ترڅومیاشتوپورې دَحمل دروندوالې برداشت کول

(۲)﴿وَوَضَعَتْهُ كُرْهًا﴾دَتولدپه وخت کښې صعوبتونه تکلیفونه برداشت کول

(۳)﴿وَحَمْلُهُ وَفِصَالُهُ﴾ترڅومیاشتوپورې بچی ته شودې ورکول چه داپه بدن کښې ډیره کمزوری پیداکوی،په حدیث کښې راځی چه یوسړی حضور ﷺ ته عرض اوکړوچه:یارسول الله!من ابر؟ دَچاسره نیکی وکړم نوحضور ﷺ ورته اوفرمائیل:امک:هغی ورته اووې بیادَچاسره حضور ﷺ ورته اوفرمایل:ثم امک:په دریم ځل ئی بیاتپوس اوکړو:ثم من:حضور ﷺ ورته اوفرمایل:امک:اوپه څلورم ځل ئی ورته اوفرمایل چه:اباک:

﴿وَحَمْلُهُ وَفِصَالُهُ ثَلَاثُونَ شَهْرًا﴾مضاف مقدردې ای مدة حمله وفصاله ، :فصال: مصدر دې پمعنی دَ :فطام: سره، شودو پریخودلو ته وائی یعنی رضاعت آخري مدت ؛

آیت دی حصه کښې دوه مسئلې بیانیږی:(۱)اقل مدت دحمل،(۲)اکثر مدت درضاعت

(۱)دحمل کم ازکم مدت شپږ میاشتې دي ځکه چې دلته الله ﷻ دَحمل او رضاعت مجموعی مده دونیم کاله ذکر کړه . دیکښې دوه کاله مده دَرضاعت ده ځکه چې سورت البقره کښې صفا راغلی دی: والوالدات یرضعن اولادهن حولین کاملین تو پاتې شو نیم کال یعنی شپږ میاشتی چې هغه مدت دَ حمل دې، روایتو کښې راغلی دی چې حضرت عثمان رضی الله عنه زمانه کښې دَیوښځې بچې پیدا شوه پوره په شپږو میاشتو مودې کښې،چونکه دا عادت خلاف وو نو خاوند یې عثمان رضی الله عنه ته راغلی ،حضرت عثمان په هغی ښځې رجم فیصله اوکړه،حضرت علی رضی الله عنه ته پته اولګیده نو هغه یې منع کړو ،او دَحمل کم ازکم مدت باندې په دې آیت سره استدلال کړو،

(۲)دویمه مسئله اکثر مدت د رضاعت ده،جمهور فقها په نیز اکثر مدت دَرضاعت دوه (۲) کاله ده لکه والوالدات یرضعن اولادهن حولین کاملینکښې دَدی صفاذکر دې ،لیکن امام

ابو حنيفه رحمه الله په نيز اكثر مدت دوه نيم كاله ده،صاحب هدايه دامام صاحب،په دليل كښې دا آيت پيش كړيدى او استدلال يې ترينه په دې شان كړيدې چې الله تعالى دلته دَ حمل او دَ فصال (يعنى دَشودونه جدا كول) دَپاره يوه موده بيان كړيده چه﴿ثَلٰثُونَ شَهْرًا﴾ دې تقاضه دا ده چې دا د ديرش مياشتو مده دې دواړو كښې هر يو د پاره مستقل مستقل وي ، په دوئ دې تقسيم نه وي ، ليكن چونكه دَمدې دَحمل دَپاره منقص(كمه ونكې)موجود دې چې قول دَحضرت عائشه رضي الله عنها دې چه"الولد لايبقى فى بطن امّه اكثرمن سنتين و لو بقدر فلكة مغزل "نودې وجهې نه اكثره مده دَحمل دوه كاله ده،ليكن امر ثانى يعنى فصال به په خپل ظاهرباندې باقى وى چه ﴿ثَلٰثُونَ شَهْرًا﴾ "ديرش مياشتې"دې،لهذاداثابته شوه چه مده دَرضاعت دوه نيم كاله ده.ليكن دا استدلال ضعيف دې:

(١)...ځكه چې سورت البقرة آيت او رواياتو كښې صفا ذكر دَ دوه كالو دې

(٢)...صحابه كرامو دآيت مطلب متعين كړيدې چې هغه دا نه دې لكه دور عثمانى واقعه تيره شو ،

(٣)...كچرته قول دَ حضرت عائشه رضي الله عنها "منقص" كيديشى په حق دَحمل كښې نو آيت و الوالدات... بطريق اولى "منقص" كيديشى په حق دَرضاعت كښې، لهذا جمهور قول قوى اور مفتى به دې.

بعض حضراتودَامام صاحب قول مطلب داسې بيان كړيدى چې امام صاحب په نيز هم اكثره مدت دَرضاعت ٢كاله ده،خو عام فقهاء دوكالو نه بعد بچى ته پئ وركولو ته حرام وائى او امام صاحب رحمه الله مزيد شپږ مياشتو پورى پئ وركول جائز ګنړى،ځكه چې دوه كاله پورى رضاعت خوبالاتفاق جائز دى اوس كه يو بچې مسلسل دوه كاله پورې د مور پئ اوڅكى،نو هغه يودم خپله غذانشى بدلولى،هغه ته دومره موقع او وخت وركول پكاردى چې هغې كښې هغه رو رو خپل خوراک تبديل كړى اوهغه شپږ مياشتى مده ده (تفسير مظهرى)

حضرت تهانوى رحمه الله فرمائى چې مفتى به قول اګر چه دَ جمهورو دې ليكن خاص نكاح په صورت كښې احتياطا امام صاحب قول رعايت ساتل پكار دى(احكام القرآن)

﴿حَتّٰٓى إِذَا بَلَغَ أَشُدَّهُ﴾ والدينو سره حسن سلوک نه بعد اوس دَبندګانو تقسيم كيږى،چې ځنى دى وصيت الهى باندى عمل كوى او ځنى نافرمانى، دآيت دى حصه كښې فرمانبردار بنده

تذكره ده. حتى غايه ده دپاره د محذوف اي عاش واستمر حتى يعني دومره زندګی ورته میلاؤ شی چي هغه زمانی ته اورسی چي عقل اوقوی ئي مستحکم شی . داکومه زمانه ده . دیکښ متعدد اقوال دی:

(۱)دینه مراد بلوغت اوتکلیف زمانه ده،چي انسان دَاحکامات الهیه مکلف اوپابند شی

(۲)دري دیرش(۳۳) کاله عمرمراد دی.

(۳)څلویښت(۴۰) کاله مراد دي، دي قول مطابق وبلغ اربعین سنةماقبل تفسیر دی.

(۴) راجح قول دا دي چې دا دیرشو نه واخله تر څلویښتو کالو پوري عمر دي

﴿رَبِّ أَوْزِعْنِيٓ أَنْ أَشْكُرَ﴾ دیکښ دري دعاګانو ذکر دي:

(۱)توفیق دَشکر په نعمتونو باندي،اوخصوصا اسلام او توحید باندي چی هغه ټولو کښ لوئ نعمت دي، ﴿عَلَيَّ وَعَلَىٰ وَٰلِدَيَّ﴾والدینو باندي نعمت چونکه داسي دي لکه په انسان باندي بعینه خپله وی نوځکه دهغې شکرتوفیق سوال اوشو.

(۲)اعمال صالحه توفیق.

(۳)صالح اولاد،دَاولاد صالحیت اونیک والی دعا چی انسان ته مرګ نه بعد هم فائده رسوی. ((واصلح لي في ذريتي))اصلاح فعل بغیر واسطې د حرف جر نه متعدي کیږي ، او دلته د پاره د مبالغې په واسطه د حرف جر في سره متعدي شوې دې ، ذریت پمنزله د ظرف او اصلاح ورله پمنزله د مظروف ګرځولي شوي دي ،یعني صلاح ځما په ذریت کښې داسې راسخ کړه چې هډو سره ترینه اونه اوځي،

﴿إِنِّي تُبْتُ إِلَيْكَ﴾هر درخواست پیش کولو نه مخکښ څه نه څه سفارش اوشفاعت پکار وی، نو دیکښ هغه سفارش او شفاعت ذکر دي ، هغه توبه او اسلام دي.

مفسرین دي آیت تحت لیکی چه کوم انسان عمر څلویښت ۴۰ کاله ته اورسی نو هغه ته پکار ده چی خپله تیره شوی زندګی باندې یو نظر واچوی،مکمل الله ﷻ طرف ته متوجه شی او کوم لغزشات اوګناهونه ترینه شوی هغی نه توبه اوکی او آئنده دپاره دَعمل عزم اوکی.

﴿أُوْلَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ﴾ای اولئک المنعوتون بماذکرمن النعوت الجلیلة(روح)دا بشارت دي یعني دغه صفاتو والا داسي دی چه مونږئی حسنات قبوله وؤاوسئیات ئی معاف کوؤ. ﴿فِيٓ أَصْحَٰبِ

ٱلْجَنَّةِ ﴾ اي كائنين في اصحب الجنة حال دي يعني شمار به اهل جنت كښې وي. ﴿وَعْدَ ٱلصِّدْقِ ٱلَّذِى

﴾ وعد مفعول مطلق دې د پاره فعل مقدر "نعد"

| |
|---|
| وَالَّذِىْ قَالَ لِوَالِدَيْهِ اُفٍّ لَّكُمَآ اَتَعِدٰنِنِىْٓ اَنْ اُخْرَجَ |
| اوهغه كس چه وائي مورپلار خپل ته افسوس دى وى په تاسو دواړو آيا تاسو وعده كوئ ماسره د دې چه راوبه ويستلې شمه خه دقبرنه، |
| وَقَدْ خَلَتِ الْقُرُوْنُ مِنْ قَبْلِىْ وَهُمَا يَسْتَغِيْثٰنِ اللّٰهَ وَيْلَكَ اٰمِنْ |
| حال دا چه تيرى شويدى ډيرې دلې خمانه مخكښې،اودادواړه فريادكوى الله ﷻ ته،اوبجى ته وائى هلاک شى ايمان راوړه، |
| اِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ فَيَقُوْلُ مَا هٰذَآ اِلَّآ اَسَاطِيْرُ الْاَوَّلِيْنَ ﴿۱۷﴾ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ |
| بيشكه وعده دالله ﷻ بعث حقه ده،نووائى دې ندى داخبرى مگرقصى دمخكنوخلقودى،داهغه خلق دى |
| حَقَّ عَلَيْهِمُ الْقَوْلُ فِىْٓ اُمَمٍ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِمْ |
| چه ثابته شويده پدوئ باندى فيصله دعذاب،«شمار به وي» په هغو ډلو كښې چه تيرې شويدى مخكښې دَدوئ نه |
| مِّنَ الْجِنِّ وَالْاِنْسِ اِنَّهُمْ كَانُوْا خٰسِرِيْنَ ﴿۱۸﴾ وَلِكُلٍّ دَرَجٰتٌ |
| دَ پيريانو او انسانانو نه ، بيشكه دوئ وۇ نقصان مند. او دَ پاره هريوعمل كونكى مختلفې درجې وي |
| مِّمَّا عَمِلُوْا وَلِيُوَفِّيَهُمْ اَعْمَالَهُمْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ ﴿۱۹﴾ |
| دَوجه دَعملونودَدوئ نه اوچه پوره پوره وركړى الله ﷻ دوئ ته بدله دَعملونوددوئ اوپه دوئ به ظلم نه كيږى. |

﴿وَٱلَّذِى قَالَ لِوَٰلِدَيْهِ﴾ والدينو مطيع او فرمانبردار خوى تذكره اوهغه ته بشارت نه بعد اوس دَنافرمان اولاد تذكره اوهغوئ ته زجر دتخويف ذكر كيږى يعني نيک اولاد بالمقابل داسې اولاد هم شته چې مور پلار ورته سوالونه كوى چې ايمان راوړه، آخرت زندگى را روانه ده هغه به دې خانسته شى او الله ﷻ نه ورله دعاگانې هم غواړى ليكن هغه ايمان نه راوړي، آخرت زندگې نه انكار كوى او وائى چې دا تاسو كومې خبرې كوئ دا دَزړه خلقو افسانې او واقعات دى، رواياتو كښې راغلي دى چې كله حضرت معاويه ﷺ د خپل زمانه خلافت آخرى ورځو كښې خپل خوې يزيد بن معاويه خان نه ورستو خليفه مقرر كړو،نو خپلو عاملينو او

گورنرانو ته یی حکم اوکړو چې اوس نه ځماپه موجودګئ کښې خلقو نه د یزید دپاره بیعت واخلئ ، حجاز ګورنر هغهٔ وخت کښې مروان بن حکم وؤ ، هغه خلقو ته یزید په لاس بیعت کولو ترغیب ورکړو او ورته یی اویل چې معاویه ﷺ دا کار بالکل دحضرت ابوبکر اوعمر ﷺ طرز موافق دې، هغوئ هم ځان نه بعد خپل ژوندانه کښې خلیفه مقرر کړې وو او معاویه ﷺ هم داسې اوکړو ،مجلس کښې عبدالرحمن بن ابی ابکر ناست وؤ .هغه انکار اوکړو اواوئیل ماهي الا هرقلیة یعنی داخو دروم په طرز مورثی حکمرانی ده.مروان ورته بیا اوئی چه دا د ابوبکر اوعمر ﷺ سنت دې،حضرت عبدالرحمن بن ابي بکر بیا هغه جواب ورکړو چې دا هرقلیه ده، ابوبکر اوعمر نه خپل ځوې خلیفه مقرر کړیدې او نه ئې څوک خپل رشته دار، مروان له په دې غصه ورغله او دعبدالرحمن دګرفتارئ حکم یی اوکړو ،عبدالرحمن ﷺ اوتختیدو او حضرت عائشه رضي الله عنها حجره کښې ننوتلو .مروان اویل دا هغه کس دې چې ده په باره کښې الله ﷻ د قرآن دا آیت نازل کړیدی: والذي قال لوالدیه... حضرت عائشه ﷺ چې دا واوریدلو نو د پردې شاته نه ئې اوفرمائیل؛ الله ﷻ ځما دبرات نه علاوه نور څه آیاتونه نه دی نازل کړی ، ماته خه پته ده چې دا آیاتونه چا په باره کښې نازل شویدی لیکن څه یی نه ښایم .

خلاصه دا د چې دې آیت نه حضرت عبدالرحمن بن ابي بکر مراد اخستل بالکل صحیح نه دی، بلکه یو کافر باره کښې نازل شویدی،سبب نزول یی که هر څوک وی خو آیت مصداق عام دې هرنافرمان ته شامل دې.

﴿أُفٍّ لَّكُمَآ﴾ کلمه د"اُف"داظهاردنفرت دپاره ده،تفصیل ئې په بنی اسرائیل(۲۳)کښې تیر شویدې. ﴿أَتَعِدَانِنِىٓ أَنْ أُخْرَجَ﴾ یعنی آیادمرګ نه ورستوبه بیاځه رااوباسلې شم د قبر نه، ﴿وَقَدْ خَلَتِ ٱلْقُرُونُ مِن قَبْلِى﴾استدلال کوی په نفی دبعث بعدالموت نه اومطلب ئې یادادې چه ځمانه مخکښې ډیرخلق مړه شویدی نوکوم یوبیاژوندې شو؟یامطلب دادې چه ځمانه مخکښې هم ډیرتکذیب کونکی دبعث تیرشویدی(روح)

﴿وَيْلَكَ ءَامِنْ﴾کلمه د"ویل"په اصل کښې دعابالهلاک ده، خو کله ترینه بدعا مقصود نه وي بلکه یو کار کولو یا نه کولو باندې آماده کول مقصود دي او دلته هم دا د تحریض یعني ایمان باندې آماده کولو پاره استعمال دې.

﴿حَقَّ عَلَيْهِمُ ٱلْقَوْلُ﴾ تخويف دې او «القول» نه مراد قول دَالله ﷻ دې ابليس ته "لاملأنّ جهنّم منک ومّمن تبعک منهم اجمعين"﴿فِىٓ أُمَمٍ﴾ حال دې اى كائنين فى امم.﴿مِّنَ ٱلْجِنِّ وَٱلْإِنسِ﴾ بيان دَ ﴿أُمَمٍ﴾.

**فائده:** په آيت كريمه كښې لكه څرنګه چه صراحتاً دَوالدينو سره دَښه سلوک كولو او دَهغوئ اطاعت كولو حكم دې، او په نافرمانئ باندې زجر دې، نو دغه رنګه اشارةً والدينو ته هم حكم دې چه اولاد ته دَايمان، عمل صالح، كسب حلال وغيره ماموراتو حكم كوى او دَګناه، حرام مال كسب كولو، او غلط ماحول نه دَبچ كيدلو وغيره منهياتو نه دې په سختئ سره منع كوى.

﴿وَلِكُلٍّ دَرَجَٰتٌ﴾ دا ماقبل بشارت او تخويف دواړو سره متعلق دې ، يعني څوک چې حقوق الله او حقوق العباد پوره كوي هغه له به مونږ جنت وركړو او كه څوک چې ئي نه پوره كوي هغه به مونږ جهنم ته ليږو خو دا نه ده چې ټولو نيكانو دپاره د جنت يوه درجه وي او دغه شان ټول مجرمان به د جهنم يوه طبقه كښې وي ، بلكه حسن عمل او جرم اعتبار سره به په ديكښې د درجاتو او طبقاتو فرق وي ،تنوين په﴿لِكُلٍّ﴾كښې عوض دې دَمضاف اليه نه.اى لكل عامل درجاتٌ.

كه څوک اشكال اوكړى چه درجات خو دَجنت دپاره وى، دَجهنم دَپاره دركات وى، نو څرنګه اطلاق په دركاتو دَجهنم دَدرجات اوشو؟جواب دادې چه دا يا تغليبًا شويدې، يا په اعتبار دَ معنى لغوى سره شويدې، يعنى زياتيدل، كه عُلواً وى لكه دَاهل جنت او كه سفلاًوى لكه دَ اهل جهنم(كبير). ﴿وَلِيُوَفِّيَهُمْ﴾ داعلت دې دَمعلل محذوف اى قدرنا تلک الدّرجات ليوفيهم... يعني دا درجات او فرق مراتب خو ځكه مقرر كړي دي چې هر چا ته د خپل عمل اجر پوره پوره ميلاؤ شي ، ظلم ، زياتي او بې انصافي چا سره اونشي ﴿لَا يُظْلَمُونَ﴾ په حقوقو كښې به ورسره ظلم نه كيږى چه دَچاثواب كم شى يادَاستحقاق نه زيات عذاب ملاؤشى.

﴿وَيَوْمَ يُعْرَضُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ عَلَى ٱلنَّارِ أَذْهَبْتُمْ طَيِّبَٰتِكُمْ﴾

اوپه هغه ورځ چه پيش كړې شى هغه خلق چه كافران دى په اور دَجهنم (ورته به اوويلې شى)وړيدې تاسو خپلې مزې

| |
|---|
| فِيْ حَيَاتِكُمُ الدُّنْيَا وَاسْتَمْتَعْتُمْ بِهَا فَالْيَوْمَ تُجْزَوْنَ عَذَابَ |
| په خپل ژوند دَ دنیا کښ او نفعه اخیستی وه تاسو په هغې سره،پس نن ورځ تاسو ته سزا درکولیشی دَعذاب |
| الْهُوْنِ بِمَا كُنْتُمْ تَسْتَكْبِرُوْنَ فِي الْاَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ وَبِمَا كُنْتُمْ |
| رسواکونکی پوجه دَ دې چه تاسو تکبر کولو په زمکه کښ په ناحقه سره اوپه وجه ددی چه تاسو |
| تَفْسُقُوْنَ ۝ |
| گناهونه کول |

﴿ وَيَوْمَ يُعْرَضُ الَّذِينَ كَفَرُوا﴾داهم تخویف أخروی دې،﴿أَذْهَبْتُمْ طَيِّبَاتِكُمْ ﴾کنایه ده دَعدم ایمان نه،چه سبب دې دَحرمان دَطیبات الاخرة نه،یعنی کچرته تاسوایمان راوړې وې نوستاسودَپاره به طیبات الاخرة وؤلیکن تاسوایمان رانه وړلواوخپل طیبات موپه دنیاکښ ختم کړل،نونن ماسویٰ دَعذاب الهون بل څه نشته دې﴿وَاسْتَمْتَعْتُمْ بِهَا ﴾دَدینه مطلق استمتاع اولذت ندې مرادچه هغه ممنوع اومذموم ندې بلکه هغه چه دَخدافراموشئ اورآخرت فراموشئ ذریعه اوګرځی.

﴿بِمَا كُنتُمْ تَسْتَكْبِرُونَ فِي الْأَرْضِ ﴾دَایمان نه راوړلودوه سببونه ذکرکیږی،یوناحق تکبرچه دا انسان دَحق اتباع نه منع کوی،دویم فسق چه په بی خوفئ سره ارتکاب دَ معاصیؤ کوی، مومن سړی ته دَدې دواړونه خپل ځان بچ کول پکاردی اودغه رنګه دآیت مذکوره مقتضی داهم ده چه دَتنعم اودَتن پروریٔ نه دې کناره کش وی، معاذبن جبل﷛ فرمائی چه کله حضور ﷺ څه دَیمن قاضی جوړکړم اولیږلم ئی نودائی راته اوفرمایل چه دَتنعّم اودَعیش پروریٔ نه بچ اوسیږه ځکه چه دَالله ﷻ بندګان تن پرورنه وی.بله داچه کله نفس په تنعم باندې عادت شی نوبیایٔ په قبضه کښ راوستل ګران وی،نوبیااکثردَتنعماتودَحصول دَپاره دَحرامو ارتکاب کوی.

حضرت عمر﷛ یوځل اوبه اوغوختلې،نودګبین شربت ورته ورکړیشو ،نوونئ فرمایل: چه داخوعمده څیزدې لیکن دَالله ﷻ داقول:اذهبتم طيباتكم.....الاية،نه په خوف کښ یمه چه هسې نه چه دَلذاتوڅیزونه څه په دنیاکښ استعمال کړم،اوپه قیامت کښ راته اوویلې شی

چه اذهبتم طيباتكم ... الاية دائی اوویل اوشربت ئی اونه څکلو .حضرت عمر ﷺ به په خپل دور خلافت کښې داهم فرمایل لوشئت لكنتُ اطيبكم طعامًا واحسنكم لباسًا ولكن استبقی طیباتی للاخرة، د دې علاوه دَحضرت عمر ﷺ په باره کښې دَتزهيد في الدنيا او دَقناعت نور ډیر اقوال هم منقول دی .حضرت علی ﷺ دَحضور ﷺ نه په يو روايت کښې دا ارشاد نقل کوی چه کوم سړی دَ الله ﷻ په لږ رزق باندې راضی شی نو الله ﷻ هم دَهغه نه په لږ عمل راضی کیږی

| وَاذْكُرْ اَخَا عَادٍ ۭ اِذْ اَنْذَرَ قَوْمَهٗ بِالْاَحْقَافِ وَقَدْ خَلَتِ |
|---|
| اویادکړه نه رورد عادیانو (هود علیه السلام) کله چه ئی اویرولو قوم خپل په احقاف مقام کښې او یه تحقیق سره تیرشوی دي |
| النُّذُرُ مِنْۢ بَيْنِ يَدَيْهِ وَمِنْ خَلْفِهٖٓ اَلَّا تَعْبُدُوْٓا اِلَّا اللّٰهَ |
| نور ډیر رسولان مخکښې دَده نه اوورستو دَده نه «دائی ورته اوې چه مه کوئ عبادت مګر دَ یو الله ﷻ کوئ، |
| اِنِّىْٓ اَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيْمٍ ﴿٢١﴾ قَالُوْٓا اَجِئْتَنَا لِتَاْفِكَنَا |
| بیشکه چه څه یریږم په تاسو دَعذاب دَورځې لوئ نه وویل دوئ آیا راغلې ئي ته مونږ ته دَپاره دَدې چه واړوې ته مونږ |
| عَنْ اٰلِهَتِنَا ۚ فَاْتِنَا بِمَا تَعِدُنَآ اِنْ كُنْتَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ ﴿٢٢﴾ قَالَ |
| دَمعبودانو خپلو نه،نو راوله مونږ ته هغه عذاب چه ته یروې مونږ که چرته یې ته دَرښتینو نه هود علیه السلام ورته وویل |
| اِنَّمَا الْعِلْمُ عِنْدَ اللّٰهِ ڮ وَاُبَلِّغُكُمْ مَّآ اُرْسِلْتُ بِهٖ |
| چه بیشکه خبره هم داده چه علم دَعذاب الله ﷻ سره دې،او څه خو تبلیغ کوم تاسو ته دَهغه څه چه څه پرې رالیږلې شوې یم، |
| وَلٰكِنِّيْٓ اَرٰىكُمْ قَوْمًا تَجْهَلُوْنَ ﴿٢٣﴾ فَلَمَّا رَاَوْهُ عَارِضًا |
| لیکن څه وینم تاسو چه تاسو قوم جاهلان یئ نو هرکله چه دوئ اولیدلو هغه عذاب په شکل دَوریځ کښې |
| مُّسْتَقْبِلَ اَوْدِيَتِهِمْ ۙ قَالُوْا هٰذَا عَارِضٌ مُّمْطِرُنَا ۭ بَلْ هُوَ |
| چه راتله مخامخ دَدوئ فصلونو ته،اووئیل دوئ دا وریځ ده باران به اوکړی به مونږ (هود علیه السلام اووئیل) بلکه دا |

| مَا اسْتَعْجَلْتُمْ بِهٖ رِيْحٌ فِيْهَا عَذَابٌ اَلِيْمٌ ۝ تُدَمِّرُ كُلَّ شَيْءٍ بِاَمْرِ رَبِّهَا |
|---|
| هغه عذاب دي چه تاسوتلوارکوله ده هغې، هوا ده پديکښې عذاب دردناک دي. تباه کوی هرڅیزپه حکم دَرب خپل، |
| فَاَصْبَحُوْا لَا يُرٰى اِلَّا مَسٰكِنُهُمْ كَذٰلِكَ نَجْزِي الْقَوْمَ الْمُجْرِمِيْنَ ۝ |
| نودوئ اوګرځيدل داسی چه ليدلې نه شول مګرکورونه دَدوئ،هم دغه شان سزاورکوؤمونږقوم مجرمانوته |

﴿وَاذْكُرْ أَخَا عَادٍ ﴾دا تخويف دنيوی دې يعنی قوم عاد تاريخ ځان ته مخکښې کيګدئ هغوئ دَوخت رسول هود ﷺ خبره يې اونه منله،توحيد اورسالت باندی ايمان را نوړو نو الله ﷻ ورسره څه حشر اوکو،دا دالله ﷻ دَجزاء ضابطه ده څه هغوئ پورې مخصوص نه ده، بلکه څوک چې هم دَوخت رسول اطاعت نه کوی الله ﷻ به ئي هلاک کړی،او الله ﷻ په مقابله کښې هيڅ قوت ورته نفع نشی ورکولې.

﴿إِذْ أَنذَرَ قَوْمَهُ ﴾بدل اشتمال دې دَ"واذکر....الخ"نه﴿بِالْأَحْقَافِ﴾"احقاف"دَحقف جمع ده دَشګووګدووګدوغونډوته وائی،په کومه علاقه کښې چه قوم عاداوسيدلوهلته دَشګوډيرې ډيرئ اوغونډئ وې،ځکه ورته احقاف وائی او دادَ"عمان" او"مهره" په مابين کښې علاقه ده،علامه شبيراحمدعثمانیؒ په حواله دَ"ارض القرآن"ليکلی دی چه عادارم دَ نجران او حضرموت ترمينځ علاقه کښې ابادوؤ.د قوم عادتاريخ اوپه مذکوره آياتونوکښې چه دَهغوئ دَ هلاکت کومه تذکره ده،حضرت والد نوّرالله مرقده وبرّدمضجعه الی يوم البعث،دَسورة اعراف او هود(۵۰) په تفسيرکښې په مکمل بسط اوتفصيل سره ئی ذکرکړيده،هلته ئی ملاحظه کړئ.

﴿وَقَدْ خَلَتِ النُّذُرُ مِنْ بَيْنِ يَدَيْهِ ﴾دَجمله معترضه ده او نبی ﷺ ته حکم دې چې اې نبیﷺصرف هود ﷺ او دَ قوم عاد په قصه اکتفاء مه کوه،بلکه دينه مخکښې او ورستو هم ډير داسې رسولان تيرشويدی چه هغوئ خپل قوم ته دعوت ورکړيدې خو قوم ورسره نه دې منلې او الله ﷻ په هغوئ عذاب راوستې دې، نو ټول واقعات ورته واوروه چه په دوئ واضحه شي چی دا صرف د يوم قوم معامله نه ده بلکه هر مجرم سره دَ الله ﷻ دا دستور دې.(کشاف)

﴿ لِتَأْفِكَنَا﴾ای لتصرفنا،يعنی ستاځه بل مقصد ندې مګردا چه ته مونږدَمعبودانوسره حسد کوې اومونږئی دَعبادت نه اړوې﴿قَالَ إِنَّمَا ٱلْعِلْمُ ﴾يعنی دَعذاب مقرره ورځ دَالله ﷻ په علم کښ ده چه کله به راځی،څه خوصرف تاسو دَعذاب نه يروم،چه خامخابه راځی که ايمان مورانه وړو، ﴿وَلَٰكِنِّيٓ أَرَىٰكُمْ قَوْمًا تَجْهَلُونَ﴾ ځکه چه توحيدهم نه قبلوئ اوبيادَعذاب مطالبه هم کوئ نودالوئ جهل دې.

﴿فَلَمَّا رَأَوْهُ ﴾ديکښ دعذاب بيان دې ضميرراجع دې"ما"ته په"ماتعدُنا"کښ چه ذکر دې، ﴿عَارِضًا﴾ ورله حال دې او زجاج رحمه الله په نيز (( راوه)) ضمير منصوب مبهم دې او((عارضاً )) ورله تمييز دې ،"عارض" په اسمان کښې خورې وريځې ته وائي صورت دَعذاب داوؤ(لکه په اعراف کښ چه تيردی)چه دوئ ته ګرمی شوې وه،يخه هوا راغله او په اسمان کښ ئی توره وريځ اوليده نو خوشحاله شوچه اوس به باران اوشی وئ ويل﴿قَالُواْ هَٰذَا عَارِضٌ﴾داوريځ ده په مونږبه باران اوکړی، نووريځ راتله راتله نوپدوئ باندې ئی اور اورولو او ټول هلاک شول ﴿ بَلْ هُوَ مَا ٱسْتَعْجَلْتُم بِهِۦ ﴾"قال هود"ورنه مخکښ مقدردې،يعنی هود ﷺ ورته اوويل چه داباران نه دې بلکه هغه عذاب دې چه تاسوپه جلدئ سره غوختلو .﴿رِيحٌ ﴾بدل دې دَ"ما"نه په ((ما استعجلتم به )) کښې ، يا خبر دَ مبتدا محذوف دې ای هي ريحٌ ... حضرت عائشه ؓ فرمائی چه کله به وريځ، سيلئ وغيره شوه دَنبی کريم ﷺ په مخ مبارک به دَ هغې اثر ښکاره کيدو او دَ مخ مبارک رنګ به ئی بدل شو،اودَخوف دَوجهې به ئی کله دننه تشريف راوړلو او کله باهر، او دا دعاء به ئی ويله: اللّهم انّي اسئلک خيرها و خير ما فيها و خير ما اُرسلت به ، و اعوذ بک من شرّها و من شرّ ما فيها و شرّ ما ارسلت به، اوهرکله چه به باران شونوپه مخ به ئی خوشحالی ښکاره شوه،ماعرض اوکړوچه اې دَالله رسوله! ټول خلق چه کله وريځ اووينی نو خوشحاله شی، ليکن تاسوپريشانه شئ؟ حضور ﷺ اوفرمايل:اې عائشه! ماته دَدې څه تسلی ده چه پدې کښ چرته عذاب نه وی،قوم عادته په هواسره عذاب ورکړې شوې وؤاوبيائی دا آيت مذکوره تلاوت کړو.

| وَجَعَلۡنَا | فِيۡهِ | مَّكَّنّٰكُمۡ | اِنۡ | فِيۡمَآ | مَكَّنّٰهُمۡ | وَلَقَدۡ |
|---|---|---|---|---|---|---|

اوپه تحقيق سره قوت ورکړي وؤمونږهغوئ ته په هغه کښ چه نه مودي درکړي ناسوپه هغې کښ اوورکړی موږ

لَهُمۡ سَمۡعًا وَّاَبۡصَارًا وَّاَفۡـِٕدَةً ۖ فَمَآ اَغۡنٰى عَنۡهُمۡ سَمۡعُهُمۡ وَلَاۤ اَبۡصَارُهُمۡ

هغوئ ته غوږونه اوسترګی اوزړونه،نو فائده ورنکړه دوئ ته غوږونو د دوئ او نه سترګو د دوئ

وَلَاۤ اَفۡـِٕدَتُهُمۡ مِّنۡ شَىۡءٍ اِذۡ كَانُوۡا يَجۡحَدُوۡنَ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ وَحَاقَ بِهِمۡ

اونه زړونودَدوئ د هيڅ څيز څکه چه وؤدوئ انکاربه ئی کولو دَ آياتونو دَ الله جل شانه اوګير کړو دوئ

مَّا كَانُوۡا بِهٖ يَسۡتَهۡزِءُوۡنَ ۞

هغه عذاب چه دوئ په هغې پورې مسخرې کولې

﴿ وَلَقَدۡ مَكَّنّٰهُمۡ ﴾دی آياتونو کښ التفات دې اهل مکه ته يعنی دا اهل عاد وؤ باوجود دَ دينه چی دوئ قوت ستاسونه زيات وؤ ليکن کله چی دَفرمانئ د وجهې نه پرې دا الله تعالیٰ عذاب راغې نو هغې قوت ورله هيڅ فائده ورنکړه نوستاسو څه حيثيت دې.﴿فِيۡمَآ﴾ "ما" موصوله ده او "ان" نافيه دې، تقدير دارنګه دې،مکّناهم فی الّذين مامکناکم فيه،يعنی اې اهل مکه! قوم عادته مونږ هغه مالونه، اولادونه، پاخه مکانونه،جسمانی طاقت وغيره ورکړی وؤ، چه تاسوته مونه دی درکړی، نوهغوئ دَ کفر په وجه هلاک شول نوستاسوڅه حيثيت دې چه نه به شئ هلاک؟﴿وَجَعَلۡنَا لَهُمۡ سَمۡعًا وَّاَبۡصَارًا ﴾اشاره ده هرقسمه جسمانی،عقلی صلاحيتونو ته چه اسباب دَحفاظت دی،﴿ فَمَآ اَغۡنٰى عَنۡهُمۡ ﴾يعنی دغې اسبابو دوئ دَعذاب الهی نه بچ نه کړل چه ايمان ئی رانه وړو،﴿ اِذۡ كَانُوۡا يَجۡحَدُوۡنَ ﴾تعليل دې دَماقبل.

| الۡاٰيٰتِ | وَصَرَّفۡنَا | الۡقُرٰى | مِّنَ | حَوۡلَكُمۡ | مَا | اَهۡلَكۡنَا | وَلَقَدۡ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

اوپه تحقيق سره مونږهلاک کړيدی هغه چه ګيرچاپيره دی دَستاسونه کوم کلی اوبيابياورته بيان کړل مونږ

| لَعَلَّهُمْ | يَرْجِعُوْنَ ﴿۲۷﴾ | فَلَوْلَا | نَصَرَهُمُ | الَّذِيْنَ | اتَّخَذُوْا |
|---|---|---|---|---|---|
| آیاتونه دپاره دَدې چه دوئ رااوګرځي دَشرک نه،نوولي اونکړوامداددوئ سره هغه معبودانوچه نیولی ئی وؤ | | | | | |

| مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ قُرْبَانًا اٰلِهَةً ۭ بَلْ ضَلُّوْا عَنْهُمْ ۚ وَذٰلِكَ اِفْكُهُمْ |
|---|
| ماسوئ دَالله ﷻ نه خدایان دپاره دَنزدیکت دالله ﷻ نه،بلکه غائب شول دَ دوئ نه.اودا(هلاکت)اثروؤ دَ دوئ دَ دروغو |
| وَمَا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ ﴿۲۸﴾ |
| او دَدوئ د افتراء. |

﴿ وَلَقَدْ أَهْلَكْنَا مَا حَوْلَكُمْ ﴾بل تخویف دې اهل مکوّ ته .دَ﴿مَا حَوْلَكُم مِّنَ ٱلْقُرَىٰ ﴾نه مراد ګیر چاپیره دَ قوم هود ،لوط،ثمود ،وغیره معذب کلی دی چه اهل مکه ئی دَانجام نه ښه واقف وؤ ،ځکه دوئ به تجارت دپاره شام،یمن ته تلل نوپه لاره کښ به ئی لیدل.لیکن بیائی ورنه هم عبرت وانه خستلو.

﴿فَلَوْلَا نَصَرَهُمُ ٱلَّذِينَ ٱتَّخَذُوا ﴾،دا دَ مشرکینو سوال جواب دې چه دوئ به ویل چه زمونږ دَ معبودانو په بلنې کښ ضرور تاثیر شته،ځکه چه مونږ چه ورنه سوال اوکړو یا ئی عبادت اوکړو نو حاجت موپوره کیږی ،الله ﷻ ئی جواب کوی چه دادروغ اوافتراء ده.کچرته تاثیروې دَدوئ په عبادت اوبلنه کښ ، نو بیا ئی دغه معذب کلی او خلق زمونږ دَعذاب نه ولې خلاص نه کړل او نصرت ئی ورسره ولې اونکړو؟یعنی دې قومونه نه عبرت واخلئ کله چې پرې عذاب راغی نوهیڅ شیٔ هم نفع ورنکړه او هغه شیاطین اومعبودان باطله چې دوئ یی عبادت کولو هغه ترینه غائب شو

﴿ ٱتَّخَذُوا ﴾مفعول اول ئی هم محذوف دې،مفعول ثانی ئی﴿ءَالِهَةً ﴾دې،او﴿ قُرْبَانًا﴾ یابمعنی دَتقرب سره،مفعول له دې،یعنی دوئ نیولی وؤخپلومعبودانولره په خدائ سره دپاره دَ نزدیکت الله ﷻ ته،کقوله ما نعبدهم الاّ لیقربونا الی الله زلفٰی یابمعنی دَمتقرباًحال دې،﴿بَلْ ضَلُّوا عَنْهُمْ ﴾بمعنی دَ غابواعنهم یعنی په وخت دَعذاب کښ ورنه پټ شول،پدې کښ تهکم اوپیغوردې

﴿وَذَٰلِكَ﴾اشاره ده ضلال د آلهؤو ته او دَ هغوئ نصرت نه کولو ته .﴿إِفْكُهُمْ﴾افک مصدر دې دَ افک یافک نه پمعنی دَ ((صرف)) اړیدلو کښې راځي،دلته مضاف محذوف دی اي ذلک اثر صرفهم عن الحق یعنی دا دَحق اوتوحید نه اعراض اواړیدلو نتیجه ده.﴿وَمَا كَانُوا يَفْتَرُونَ﴾ما مصدریه ده اي اثر افترائهم ، یعنی دَدوئ دَ دروغو نتیجه ده ،ځنی مفسرینو دلته افک پمعنی دَدروغو سره اخیستی دی چونکه دې صورت کښې تکرار اشکال پیداکیږی ځکه چی افک هم دروغو ته وائی او افتراء هم ،نو دوئ مابین کښې دلته څوفرقونه بیان کړیدی:

(۱)افک مصداق خاص قسم دروغ دی چی هغه غیر الله ته الله ویل او هغوئ ته خدائ درجه ورکول دی ،افترا عام ده مختلف انواعودَدروغو ته شامل ده که هغه شرک وی او که غیر شرک، لکه سائبه بحیره باندی افترا اطلاق شوې دي، ما جعل الله من بحيرة ولا سائبة ولا وصيلة ولاحام ولكن الذين يفترون الله الكذب(المائدة)دی صورت کښې عطف ده افترا په افک باندی عطف العام علی الخاص قبیلی نه دي(فتوح الغیب)

(۲)ځنی مفسرینودا فرق بیان کړیدی چی افک هغه دروغو ته وائی چی هغی کښې اشتراک وی چاته پکښې خصوصیت نه وی حاصل اوافتراهغه دروغوته وائی چی هغی کښې خصوصیت وی بنسبت یوفرد دَ جماعت یاقوم وغیره ته،نو د افک تعلق غیر الله ته معبود ویلو سره دې ،چی شرک دې،دامخکښې امتونو کښې هم وؤ ،مشرکین ته څه خصوصیت نه دی حاصل.اوافتراء تعلق غیر الله دَتقرب وسیله ګرځولو سره دې.چې داخاص دَمشرکینومکه عقیده ده(التحریر والتنویر)

بعض مفسرینو دلته کښې ((ذلک)) مشارالیه اتخاذ الاصنام الهةګرځولې ده،دی صورت کښې بیا مضاف مقدر منلو حاجت نشته،معنی به داوی:دي بتانوته الهه اوشفعا ویل دَ دوئ دروغ اوافتراده په الله ﷻ باندی(روح)

| وَإِذْ صَرَفْنَآ إِلَيْكَ نَفَرًا مِّنَ الْجِنِّ يَسْتَمِعُونَ الْقُرْآنَ فَلَمَّا حَضَرُوهُ |
| --- |
| اوکله چه مونږمتوجه کړله تاته یوه ډله دَپیریانونه چه آوریدلو ئي قرآن.نوهرکله چه حاضرشول قرآن ته |

| |
|---|
| قَالُوْٓا اَنْصِتُوْا ۚ فَلَمَّا قُضِيَ وَلَّوْا اِلٰى قَوْمِهِمْ مُّنْذِرِيْنَ ﴿٢٩﴾ قَالُوْا |
| وئ ویل چه چپ شئ،نوهرکله چه ختم شولاوت،واپس لاړل دوئ خپل قوم ته یره ونکی،وئ ویل |
| يٰقَوْمَنَآ اِنَّا سَمِعْنَا كِتٰبًا اُنْزِلَ مِنْۢ بَعْدِ مُوْسٰى مُصَدِّقًا |
| اې قومه زمونږ!بیشکه مونږه اوریدلي دي داسي کتاب چه نازل کړي شويدي وروستودموسی علیه السلام نه،تصدیق کونکي |
| لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ يَهْدِيْٓ اِلَى الْحَقِّ وَاِلٰى طَرِيْقٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿٣٠﴾ يٰقَوْمَنَآ اَجِيْبُوْا |
| دهغه کتاب چه مخکښ دي دده نه هدایت کوی حق عقائدو ته اولاري نيغي ته.اې قومه زمونږ!قبول کړئ |
| دَاعِيَ اللّٰهِ وَاٰمِنُوْا بِهٖ يَغْفِرْ لَكُمْ مِّنْ ذُنُوْبِكُمْ وَيُجِرْكُمْ |
| دعوت ددعاعی دالله اوایمان پری راوړئ بخښنه به اوکړی تاسوته ستاسودګناهونواوخلاص به کړی تاسو |
| مِّنْ عَذَابٍ اَلِيْمٍ ﴿٣١﴾ وَمَنْ لَّا يُجِبْ دَاعِيَ اللّٰهِ فَلَيْسَ بِمُعْجِزٍ |
| دعذاب دردناک نه،اوهغه څوک چه نه قبوله وی دعوت ددعاعی دالله جل جلاله نونه دي هغه خلاصیدونکي دالله جل جلاله نه |
| فِي الْاَرْضِ وَلَيْسَ لَهٗ مِنْ دُوْنِهٖٓ اَوْلِيَآءُ ۚ اُولٰٓئِكَ فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ﴿٣٢﴾ |
| په زمکه کښ اونه به وی ده دپاره دالله جل جلاله نه ماسوی نورمددګاران،دغه کسان په ګمراهئ ښکاره کښ دی |

﴿وَاِذْ صَرَفْنَآ اِلَيْكَ﴾ای وجهنا وبعثنا الیک، دلته نه بیاقرآن حقانیت اثبات کیږی. چه دجناتو په شان سرکش اوقوی قوم چه کله قرآن واوریدلونوایمان ئی راوړو اودی کتاب ته یی حق او د صراط مستقیم راهنما اویل اوبیائی خپل قوم ته هم دایمان دعوت ورکړو،نوتاسوهم ایمان راوړئ.

په آیت مذکورۀکښ چه دجناتودقرآن آوریدلواوایمان راوړوکومه واقعه چه ذکرده دهغې ذکر په احادیث صحیحه ؤکښ داسی راغلي دي،چه دسید الثقلین ﷺ دبعثت نه وروستوجنات د اسمانی خبروآوریدلونه منع شول اوکوم جن چه به اسمانی خبرواوریدلودپاره بره تللونو په شهاب ثاقب به ویشتلوکیدلو،لکه په سورة والصفّت کښ دی لایسمّعون الی الملاء الاعلٰی ویقذفون من کلّ جانب....الاية جناتوخیال اوکړوچه خامخاڅه نوی خبره پیښه شویده چه د

هغی پوجه مونږمنع کړي شوی یو ، په سورة الجن کښ دی: وانالاندری اشرٌ اریدبمن فی الارض... الایة نود دي خبری دتحقیق دپاره دوئ څوځوډلی په مشرق اومغرب کښ خوارې کړې،یوه ډله ئی حجازطرف ته هم رااولیږله،چه کله داډله بطن نخله (چه دمکې مکرمې ته نزدې یوه وادی ده) ته را اورسیدله،نوپدغه ورځ حضورﷺسوق عکاظ ته ددعوت دپاره تشریف وړلو چه دادحجازلویه تجارتی منډئ وه،پدغه مقام یعنی بطن نخله کښ حضور ﷺدسهارمونځ کولو ، جناتوچه دحضورﷺقرآن واؤریدلونو اوئیل چه بس نوې خبره هم دغه ده چه مونږدې په وجه د اسمان نه منع شوی اوشړل شوی یو ، د قرآن نه متاثره شو ایمان ئی ورباندې راوړو او بیا لاړل خپل قوم ته ئی هم دایمان دعوت ورکړو ، لیکن حضورﷺته د جناتو د راتللو او قرآن اوریدلو ، ایمان راوړلو علم نه وؤحتّی چه سورة الجن دنزول نه ورستو ورته ددې واقعې خبر ورکړې شو.

لیلة الجن واقعه مختلفو احادیثو کښې راغلی ده،روایاتو خپل مینځ کښې فرق هم دې،څنی روایاتو کښ رازی چی نبی ﷺ مونځ کښ تلاوت کولو نوجناتو قرآن واوریدلو او نبی ﷺ ته هیڅ پته اونه لګیده،بعضو روایاتوکښ دی چی باقاعده جناتو په دعوت تللې وؤ ،د هغه شان څنی روایاتو کښ راغلی دی چی دی موقع باندی نبی ﷺ یو اځې وؤ اوځنی روایاتو کښ دی چی ابن مسعود ﷺ ورسره وؤ .چونکه جناتو سره داسې مختلف مواقع پیش شویدی نودی وجهې نه محدثین دا په مختلف واقعاتوې محمول کوي،چی اول ځل نبی کریم ﷺ یو اځی وؤ او هیڅ پته ورته نوه لګیدلی،هر چه ده ابن مسعود همراهی او باقاعده دعوت باندې تلل نو دا بله موقع وه،لهذا روایاتو کښ تعارض نشته.

﴿نَفَرًا مِّنَ الْجِنِّ﴾ددینه معلومیږی چه دغه جنات دلسو (۱۰) نه کم اوه (۷) یانهه (۹) وؤ ځکه نفر د لسو نه کمو کسانو باندی اطلاق کیږی،جمع ئی انفار راځی،ابن ابي شیبه روایت کښې دي چې دا ټول نهه کسانو ټوله وه او د یو نوم پکښې زوبعه وو ﴿فَلَمَّا حَضَرُوهُ﴾ ضمیر یا قرآن ته راجع دې یاحضورﷺ ته ﴿ وَلَّوْا إِلَىٰ قَوْمِهِم مُّنذِرِينَ ﴾جمهورو علماؤددینه استدلال کړیدې چه په جناتو کښ مستقل رسولان نه دی مبعوث بلکه رسل الجن تذیران اوداعیان دحق دی.

﴿قَالُواْ يَٰقَوْمَنَآ﴾دا قوم ته دعوت دې يعنې چه کله خپل قوم ته واپس شول نو داصلي قصه نه ئې هم خبر کړل او دعوت ئې هم ورته ورکړو. ﴿أُنزِلَ مِنۢ بَعْدِ مُوسَىٰ﴾ من بعدعيسىٰ ئې اونه ويل نو دينه معلوميږي چه دا يهوديان وو﴿ يَهْدِيٓ إِلَى ٱلْحَقِّ ﴾دينه مراد عقائدصحيحه دي﴿وَإِلَىٰ طَرِيقٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴾دينه مراد احکام فرعيه دي،ياعام دې عقائد. او احکام دواړه ورنه مراددي نو دا ذکر دَ عام بعد الخاص دې.

﴿أَجِيبُواْ دَاعِيَ ٱللَّهِ ﴾دا ترغيب دې د دعوت منلو. دَ الله ﷻ داعي نه مراد ئې حضور ﷺ دې، يا ورنه مرادهغه تلاوت دې چه دوئ اوريدلې وو.﴿وَءَامِنُواْ بِهِۦ ﴾ضميرداعي الى الله ته راجع دې ياالله ﷻ ته.﴿يَغْفِرْ لَكُم مِّن ذُنُوبِكُمْ ﴾داورته دوه بشارتونه بيانوي په شرط دَ اجابت، او "من" زائده دې اى يغفرلكم ذنوبكم،ځکه چه په ايمان راوړلوسره ټول ګناهونه ختميږي كقوله تعالى"وان ينتهوا يُغفرلهم مَاقدسلف..."﴿وَيُجِرْكُم مِّنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ ﴾دادويم بشارت دې،چه دَعذاب دردناک نه به ورته نجات ملاوشي،داآيت اګرچه پدې کښې صريح دې چه جنات دَ ايمان راوړو په وجه به دَجهنم نه محفوظ شي ليکن دا صراحت نه دلته اونه په بل مقام کښې شته دې،چه آيا جنات په جنت ته داخليږي اوکه نه؟ نو ددې وجه نه دَعلماؤ په دې مسئله کښې اختلاف دې، امام ابوحنيفه رحمه الله ته منسوب او دَ بعضوعلماؤ قول دې چه ددوئ دَايمان راوړو صله صرف دا ده چه دَ اورنه به ورته نجات ملاوشي اوبيابه خاورې شي،دَامام ابوحنيفه رحمه الله نه يوقول دَتوقف هم منقول دې،امام نووي رحمه الله په شرح مسلم کښې فرمائي چه صحيح داده چه جنت ته به داخليږي او دَ خوراک،څکاک وغيره نعمتونوبه ورته ورکولې کيږي،اودا مذهب دَ حسن بصري رحمه الله، ضحاک،وغيره هم دې.

﴿ وَمَن لَّا يُجِبْ دَاعِيَ ٱللَّهِ ﴾داورته زجرذکرکوي په عدم ايجابت باندې.

| أَوَلَمْ يَرَوْاْ أَنَّ ٱللَّهَ ٱلَّذِي خَلَقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ وَلَمْ يَعْيَ بِخَلْقِهِنَّ |
|---|
| آيانه ويني دوئ چه بيشکه هغه الله ﷻ چه پيداکړي ئې دي اسمانونه اوزمکه او ندې عاجزه شوې په پيداکولو ددوئ |

﴿بَلَٰغٌ﴾خبر دَ مبتدا محذوف دي ای هذا بلاغٌ، حضرت والد ﷫ فرمائی چه حضرت الشیخ ﷫ به فرمائیل چی «هذا» کښې اشاره داحوامیم سبعوۀ او هغی کښې مذکور مضامینو ته، چی پدیکښې تاسوهر قسم شبهې او دلیل جواب اوشو،عقیده توحید رسالت معاد او حقانیت قرآن په مضبوط دلائلو سره ثابت شو نو په دې سره اتمام حجت اوشو،او خبره انتهاء ته اورسیدله،لهذا که اوس هم څوک نه منی نو دا د هغه سرکشی ده. سرکش اونافرمانه خلق دَ الله ﷻ دگرفت نه نشی بچ کیدې.

| ركوعاتها (۴) | سورة محمّد مدنية | آياتها (۳۸) |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بيحده مهربان او ډير رحم كونكي دي شروع كوم | |

## ترتيبها حسب التسلسل (۴۷) وحسب النزول (۹۵)

سورة محمّدمدنى دي،ترتيب قرآنى لحاظ سره(۴۷)دي اوترتيب نزولى اّعتبارسره (۹۵)دي، دَسورة حديدنه ورستونازل دي،زمانه دَ نزول ئى دهجرت نه فوراًورستوده،ابن عباس ﷠ اوقتاده ﵀ فرمائي چه دَدې يوآيت مكى دي.وكاَيِن من قرية...الخ داپه هغه وخت كښ نازل دي چه كله حضور ﷺ دَمكى نه دَهجرت په نيت مدينه ته روان شو،اوونئى فرمايل. انتِ احبّ بلادالله تعالى الىّ ولولاان اهلک اخرجونى منک لم اخرج منک نوداآيت نازل شو.

**ربط**: ماقبل سورة احقاف كښ دَ توحيد باللسان ذكر وؤ او پدې سورة كښ دَ توحيد بالسنان ذكردي يعنى دَتوحيددپاره جهاد اوكرئ﴿فَإِذَا لَقِيتُمُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ فَضَرْبَ ٱلرِّقَابِ﴾ سورة محمد، سورة فتح اوسورت حجرات درې واړه دَمضمون په لحاظ سره دَيوبل سره مرتبط دى،په سورة محمدكښ دَقتال حكم دي،په سورة فتح كښ داعلان دَفتح اوپه سورة حجرات كښ دَ نظم و نسق اصول اوٓاداب بيان شويدى.

**سورت مركزى دعوه**: سورت مركزى دعوه توحيد ده ، اله لااله الاالله چې هغې دَپاره جهاد فرض كړې شويدې او هم دې دَ وجهې نه مؤمنانونه دومره لوئى لوئى درجې او كفار و منافقينو ته سخت سخت عذابونه ميلاويږي.

**سورت موضوع**: سورت موضوع جهاد فى سبيل الله ده.

### دسورة دَمضامينواجمالى خلاصه

دَسورة دوه حصې دى اوله حصه دَابتداء ... مُتَقَلَّبَكُمْ وَمَثْوَىٰكُمْ ﴾ آيت (۱۹) پورې، او دويمه حصه دَ آيه ۲ - آخر ... او دَ مشركانو دَ صفاتو په .

جهاد حکم او ترغیب الی الجهاد علتونه.اومقصود ی مسئله چه دَ هغې دَ پاره جهاد فرض دې يعنی دَ توحيدذکر ، دويمه حصه کښې منافقانو ته زجرونه ذکر کيږی ، چه په جهادکښې نه ځان لګوی نه مال.

**تفصیلي خلاصه**

دی سورت دوه حصه دی ،اوله حصه تر آيت ۱۹ پوره ،دويمه حصه ۲۰ تر آخر پوری.اوله حصه کښې دري امور ذکر کيږي ،

(۱)تقابل بين المؤمنين والكفار.(۲)موضوع دَ سورت چې هغه جهاد دې(۳)توحيد چې هغې دَ اعلاء دَ پاره جهاد مشروع شويدي.

آيت نمبر ۱-۳پورې اول تقابل بين المؤمنين والمشركين ذکر کيږي او وجه فرق بيانيږی

آيت نمبر ۴: دَ جهاد حکم او حکمت بيان دې ،دی آيت آخري حصه والذين قتلوا في ..نه تر آيت۱۱ پوري دويم تقابل دې چې ديکښې مؤمنانو د پاره دوه انعامات او د کفارو د پاره عذابونه ذکر کيږي .

آيت نمبر ۱۲.۱۳کښې دريم تقابل ذکر کيږي

آيت نمبر ۱۴.کښې څلورم تقا بل بيان دې.

آيت۱۵کښې پنځم تقابل ذکر دي:

آيت نمبر ۱۲،۱۸ شپږم تقابل بيانيږې چه هغې بين المؤمنين والمنافقين دي

آيت ۱۹: توحيد بيان دې.

دويمه حصه کښې آيت ۲۰-۳۲ پورې منافقينو احوال، هغوئ ته زجرونه ، عذابونه او تخويفاتو ذکر دي

۳۳ نه تر آخر پورې تشجيع على القتال في سبيل الله اور ترغيب في الانفاق في سبيل الله دې.

| اَلَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَصَدُّوْا عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اَضَلَّ اَعْمَالَهُمْ ①وَالَّذِيْنَ |
|---|
| هغه کسان چه کفرئی کړيدې اومنع کوی خلق دَلارې دَالله ﷻ نه بربادکړی دی الله عملونه دَدوئ اوهغه کسان |
| اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ وَاٰمَنُوْا بِمَا نُزِّلَ |
| چه ايمان ئی راوړې دې اوعملونه کوی نيک اوايمان ئی راوړې دې په هغه قرآن چه نازل کړې شويدې |

| لى مُحَمَّدٍ وَهُوَ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّهِمْ كَفَّرَ عَنْهُمْ سَيِّاٰتِهِمْ وَاَصْلَحَ |
|---|
| ..ه محمدﷺاوداحق دين دي دَ طرفه دَ رب دَ دوئ نه ، معاف به كړي دَ دوئ نه گناهونه ددوئ اوښه به كړي |
| بَالَهُمْ ۞ ذٰلِكَ بِاَنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوا اتَّبَعُوا الْبَاطِلَ وَاَنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّبَعُوا الْحَقَّ |
| ..ال دَ دوئ ، دا(فرق) په وجه دَ دي چه بيشكه كافرانو اتباع كړيده دَ باطل او مؤمنانو اتباع كړيده دَ حق |
| مِنْ رَّبِّهِمْ كَذٰلِكَ يَضْرِبُ اللّٰهُ لِلنَّاسِ اَمْثَالَهُمْ ۞ |
| چه دَ دوئ دَرب طرفه دي، هم دارنگه بيانوي اللهﷻخلقوته مثالونه ددوئ |

﴿ اَلَّذِيْنَ كَفَرُوْا ﴾پدي آياتونوكښ اول تقابل ذكركيږي په مابين دَصفاتودَمشركانو اومؤمنانوكښ،حاصل دادي چه ايمان دومره بهترين صفت دي چه دَايمان پوجه گناهونه معاف كيږي اودَانسان دَدنيااوآخرت دَاحوالو اصلاح كيږي،اوكفردومره بدترين عمل دي چه دَ دي پوجه نيک عملونه هم حبط كيږي اوهيڅ بدله اوثواب پرې نه وركولې كيږي ﴿ اَلَّذِيْنَ كَفَرُوْا ﴾دا د كافرانو حالت بيان دي.﴿وَصَدُّوْا عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ﴾ مراداسلام دي او﴿وَصَدُّوْا ﴾لازمى هم استعماليږي يعنى دَ اسلام نه اعراض كوى،ايمان نه راوړي،داپه سبب باندې مسبب عطف شويدې، اومتعدى هم استعماليږى يعنى نورخلق دَايمان راوړلونه منع كوى،خلق دَايمان راوړلونه منع كول اوهغوئ ته روكاوټ جوړيدل دكافرانوكاردي،مسلمان ته پكارده چه دَ داسې كردارارتكاب اونكړى چه خلق دَده پوجه دَايمان راوړلونه منع شي.

﴿أَضَلَّ أَعْمَالَهُمْ ﴾دَ ضلال ماده په قرآن كښې درې مشهورو معنو كښې استعمال شوې ده :

(۱) دحقيقت حال نه ، ناواقفيت، لكه ((قال علمها عند ربى فى كتب ، لا يضل ربى ولاينسى )) (طه)،او دغه شان بل آيت ((فرجل وامراتان ممن ترضون من الشهداء ان تضل احديها))، دې دواړو آيتونو كښې ضلال د حقيقت حال نه بې خبره كيدلو او بې لاره كيدلو معنى كښې استعمال شوې دي.

(۲)دَ حقې لارې نه بې لاره كيدل ، لكه غير المغضوب عليهم ، قد ضلو من قبل واضلوا كثيرا،

(۳) اضمحلال ، يعني بې اثره او بې نتيجه كيدل، لكه عرب وائي : ضل السمن في الادام ، دغوړو اثر او نشان په سالن كښې روک شو ، او په ((اذا ضللنا في الارض)) او ((الذين ضل سعيهم في الحيوة

الدنيا›› کښې دې معنی کښې استعمال شوې دې ،او دلته هم دې آخري معنی کښې استعمال دې، ‹اضواء البيان› دَ‹‹ اعمالهم ›› نه مراد عام دې ،دَ کافرانونيک اعمال هم دی لکه دَزلزله زدګانو ياسيلاب زدګانو سره امدادونه کول، رفاهي اداري ، هسپتالونه جوړول وغيره او هغه تدبيرونه او سازشونه هم دي چه کافرانو دَ حضورﷺ او دَ مسلمانانو خلاف کول، يعني هغه به الله ﷻ ناکامه کوی.

﴿وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ﴾دا دَمؤمنانو حالت بيان دې،﴿وَءَامَنُواْ بِمَا نُزِّلَ عَلَىٰ مُحَمَّدٍ﴾يعنی په قرآن ايمان راوړی او دا اګرچه ماقبل کښې داخل دې،ليکن دَاهتمام شان دَ وجه نه ئی مستقل ذکر کړو ،اوتنبيه ده پدې چه دا اصل دې په ټولوعملونوکښې.ددې وجه نه ئی مؤکد کړوپدې قول سره﴿وَهُوَ ٱلۡحَقُّ مِن رَّبِّهِمۡ﴾،

﴿كَفَّرَ عَنۡهُمۡ سَيِّـَٔاتِهِمۡ﴾يعنی په ايمان سره دَسيئات ازاله کيږی،﴿وَأَصۡلَحَ بَالَهُمۡ﴾ای حالهم و شانهم "بال"په اصل کښې فکرته وائی،لکه خطرفی بالی کذا،اطلاق ئی په زړه کيږی چه دَ فکر مرکز دې، نو چه دَ هغې اصلاح اوشی نو دَ هر څه اصلاح اوشی. لکه حديث کښې راغلي دي چې دَزړه اصلاح او شی نو دَ ټول بدن اصلاح اوشی. نوپديکښې اشاره ده اصلاح دَعقيدی ته او توفيق دَ نيک اعمالو ته،يعنی په دنياکښې ئی دَعقيدی او دَ عمل اصلاح اوشی او په آخرت کښې ورته دَ عذابونو نه نجات ملاؤشی،او دا هم مطلب کيديشی دينوی احوالو اصلاح يې او شي،لکه حديث کښې راغلی دی :من كان همه الاخرة جمع الله شمله وجعل غناه في قلبه ، و اتته الدنيا وهي راغمة ، و من كانت نيته الدنيا فرق الله عليه ضيعته وجعل فقره بين عينيه ، و لم يأته من الدنيا الا ما كتب له (مسند احمد ، رقم الحديث:21590)

﴿ ذَٰلِكَ ﴾ديکښې د دواړو فريقينو حالت وجه فرق بيان دې ،او ‹‹ذلک ›› کښې اشاره ماقبل وعيدونو او وعدو ته ده،دَ﴿أَمۡثَٰلَهُمۡ﴾ نه مراد "احوالهم"دي.يعنی الله ﷻ خلقوته دَمذکوره فريقينودغه رنګه احوال بيانوی چه مؤمنان اتباع دَحق کوی چه نتيجه دَهغې دَدنيااوآخرت فلاح ده، او کافران اتباع دَباطل کوی چه نتيجه ئی دَدنيااوآخرت خسران اورسوائی ده.

فَإِذَا لَقِيتُمُ الَّذِينَ كَفَرُوا فَضَرْبَ الرِّقَابِ حَتَّىٰ إِذَا

نوکله چه مخامخ شئ تاسو د کافرانو سره نو وهئ ستونه د دوئ، تردې چه کله

أَثْخَنتُمُوهُمْ فَشُدُّوا الْوَثَاقَ فَإِمَّا مَنًّا بَعْدُ وَإِمَّا

تاسو ډيری وينی توئ کړئ د کافرانو، نو کلک کړئ تړل د دوئ، نو بيا يا احسان اوکړئ ورسته د ترلو نه او يا اورنه

فِدَاءً حَتَّىٰ تَضَعَ الْحَرْبُ أَوْزَارَهَا ۚ ذَٰلِكَ ۖ وَلَوْ يَشَاءُ اللَّهُ

فديه واخلئ، تر هغې چه کيږدی جنګ (کونکی) اسلحې د جنګ، دغه حکم د الله جل جلاله دې، او کچرته غوختلې الله تعالیٰ

لَانتَصَرَ مِنْهُمْ وَلَٰكِن لِّيَبْلُوَ بَعْضَكُم

نو خامخا پخپله به ئې بدله اغستې وه د دوئ نه، ليکن حکم د جهاد د دې پاره دی چه ازمائش اوکړی بعضو ستاسو

بِبَعْضٍ ۗ وَالَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَلَن يُضِلَّ أَعْمَالَهُمْ ۝

په بعضو نورو سره، او هغه کسان چه شهيدان شی په لاره د الله تعالیٰ کښې نو هرګز به نه ضائع کوی الله تعالیٰ عملونه د هغوئ

سَيَهْدِيهِمْ وَيُصْلِحُ بَالَهُمْ ۝ وَيُدْخِلُهُمُ الْجَنَّةَ

زر ده چه اوبه رسوی دوئ (جنت ته) او اصلاح به اوکړی شان د دوئ او داخل به کړی دوئ جنت ته

عَرَّفَهَا لَهُمْ ۝ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِن تَنصُرُوا اللَّهَ يَنصُرْكُمْ

چه تعارف ئې ورته کړې دې د دې (په دنيا کښې)، اې ايمان والو! کچرته مدد کوئ تاسو د دين د الله نو الله تعالیٰ به ستاسو مدد کوی

وَيُثَبِّتْ أَقْدَامَكُمْ ۝ وَالَّذِينَ كَفَرُوا فَتَعْسًا لَّهُمْ وَأَضَلَّ أَعْمَالَهُمْ ۝ ذَٰلِكَ

او کلک به کړی قدمونه ستاسو او کافران چه دی نو هلاکت دې د هغوئ د پاره او برباد دی عملونه د دوئ، دا (فرق)

بِأَنَّهُمْ كَرِهُوا مَا أَنزَلَ اللَّهُ فَأَحْبَطَ أَعْمَالَهُمْ ۝

په دې وجه دې چه کافرانو بد ګنړلې دې هغه (قرآن) چه نازل کړيدې الله تعالیٰ نو عبث ئې کړل عملونه د دوئ

﴿ فَإِذَا لَقِيتُمُ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ ﴾ دَ فريقينو دَ احوالو بيانولو نه ورستو دَ **جهاد حكم** دې چې اې مسلمانانو كله چه تاسو ته دَشرک قباحت معلوم شو چه داجرم عظيم دې نو اوس ددې ختمولو دَ پاره ميدان ته راوځئ اودَمشركانو ،كافرانو سره جهاد اوكړئ

﴿فَضَرْبَ ٱلرِّقَابِ ﴾كنايه ده دَقتلولونه.يعنى قتل ئى كړئ.چونكه رقاب.مذبح دې نو ځكه يئ تخصيص اوشو اودغه رنګه پدى تعبيركښ دكفاروسره دَشدت او غلظت اظهارهم دې ﴿فَضَرْبَ ﴾ منصوب دې،فعل محذوف دپاره مفعول دې.فعل حذف شويدې.مصدرئى قائمقام ګرځيدلې دې اوبيامضاف شويدې مفعول ته په اصل كښ دارنګه دې"فاضربوا"الرقاب ضربًا" ﴿حَتَّىٰٓ إِذَآ أَثْخَنتُمُوهُمْ ﴾اثخان د "ثخن" نه دې ،غټ والي او مضبوط والي معني وركوي، "ثخين" غټ او مضبوط څيز ته وئيلې كيږي چې په څمكه پروت وي نو سرې ئي راغستلې نشي. هم دې وجه نه مائع او بهيدونكې شي ټينګيدلو د پاره هم استعماليږي ، چې دا بيا مخكښې ته حركت نشي كولې، او دلته دا كنايه ده د كفر شان او شوكت ختمولو نه چې بيا پكښې د پورته كيدو او پيش قدمئ طاقت نه وي ، اودې وجهې نه ئي اكثرو مفسرينو معني د اكثروا القتل فيهم سره كړې ده يعنى چه كله تاسوډيره خونريزى اوكړئ.نو بيا﴿فَشُدُّواْ ٱلْوَثَاقَ ﴾ يعنى قيديان ئى كړئ،مضبوط ئى اوتړئ په پړو."شد" مضبوط تړولو ته وائي ، او "الوثاق" هر هغه څيز چې ورسره تړل كيږي ، لكه پړي ، تنړئ ، زنځير وغيره، يعني چې كله ښه اثخان اوشي نو بيا پړي تنړئ كلكې كړئ ،

﴿فَإِمَّا مَنًّۢا ﴾اى تمنون منًا﴿وَإِمَّا فِدَآءً ﴾اى تفدون فداءً،يعنى دَقيدكولونه بعد.پرې "من" (احسان)اوكړئ او يا بلامعاوضه ئى پريدئ،لكه نبى كريمﷺچه په غزوه بدركښ خپل خوم ابوالعاص رضی الله عنه بلامعاوضه پريخې وؤ،ياورنه فديه واخلئ اوازادئى كړئ.

دَمشرک قيدى قتلول اواستعباديعنى غلام ګرځول بالاتفاق جائزدى البته بلامعاوضه پريخودل يعنى"من" يا فديه اخستل او پريخودل دَامام صاحب رحمه الله په مشهورروايت كښ جائز نه دى،دَدې وجه نه دَعلماء حنفيه په نزددَسورة محمد داآيت مذكوره منسوخ دې په آيت دَ سورة انفال(۹۷)ماكان لنبيّ ان يكون له اسرىٰ... سره چه په هغى كښ فديه اخستلو باندې عتاب راغلې دې(والتفصيل هناک).

البته دَ امام صاحب رحمه الله نه صحيح مذهب په سيركبير كښې دَ جمهورو صحابه رضي الله عنهم او فقهاؤو مطابق منقول دې او امام طحاوى رحمه الله په معانى الآثار كښې هم دا مذهب دامام صاحب رحمه الله نه نقل كړيدې، چه كچرته مسلمانانو ته دَمال ډيرضرورت وى نو فديه اخستل جائزدى او دَ قيديانو په تبادله كښې ازاده ول هم جائزدى، دَحضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دې چه غزوه بدر اوله غزوه وه او تر اوسه پورى دَ كافرانو طاقت او قوت نه وو كمزورې شوې نو پدى وجه دَ قيديانو نه په فديه اخستلوباندى عتاب راغې، اوچه كله اسلام اومسلمانانوته غلبه حاصله شوه او كفر مغلوب شو نو الله تعالى مسلمانانوته اختياروركړو .د من اودَ فدا نوګوياكه آيت دَ سورة انفال منسوخ دې پدى آيت سره، ليكن تحقيق دادې چه پدې دواړه آياتونوكښې ناسخ منسوخ نشته دې، ځكه چه دلته چه پدى آيت كښې دَ من او فدا اجازت چه شويدې نوهغه هم دَ اثخان (كافى خونريزئ) نه بعدشويدې، كماقال تعالى﴿حَتَّىٰٓ إِذَآ أَثۡخَنتُمُوهُمۡ فَشُدُّواْ ٱلۡوَثَاقَ﴾اوپه سورة انفال كښې هم(حتى يُثخنَ فى الارض)ذكردې يعنى دَاثخان نه قبل من،فداء نه وؤمناسب نو ځكه پرى عتاب راغې،نو دَ دواړو آياتونو مفهوم يوشان ته دې،اودَواړوآياتونودَمجموعى خلاصه فقهاؤو دا ذكر كړيده چه دَ قيديانو په باره كښې دَ اميرالمؤمنين او دَ اهل شورىٰ خوخه ده چه:

(۱)قتل ئې كړى،لكه نبى كريم ﷺ دَبدرپه قيديانو كښې عقبه،نضربن حارث وغيره قتل كړې وؤ.

(۲)سرى دې غلامان كړى اوښځې دې وينزى جوړې كړى.

(۳)فديه دې ورنه واخلى كه دَتبادلې په صورت كښې وى يانقدى.

(۴)مَن او احسان دې ورسره اوكړى اوازاد دې كړى (والله اعلم).

﴿ حَتَّىٰ تَضَعَ ٱلۡحَرۡبُ ﴾اى اهل الحرب﴿أَوۡزَارَهَا ﴾جمع دَ "وزر" ده ثقل اوبوج ته وائى چې خلق ئې اوچتوي ،او مراد ورنه اسلحه ده،ځكه چې داهم په جنګ كښې خلق اوچتوي ، او دا كنايه ده دَ مغلوب كيدلو نه يعنى چه دوئ مغلوب شى،يا"وزر" پمعنى دَ "اثم" ګناه سره دې او مراد ترينه شرک دي ،او «الحرب» نه مراد «اهل الحرب» دي او «تضع» په معني د «تترک» سره دې ، يعني تردې وخت پورې ورسره جهاد کوئ چې اهل حرب ، يعني مشرکان شرک پريګدي او مسلمان يا مسالم اوګرځي.

پدې آیت کښې اشاره ده چه حکم دَجهادنه منسوخ کیږی همیشه به وی.اوهم دامعنی ده دَقول دَحضورﷺ چه وَ الْجِهَادُ مَاضٍ مُنْذُ بَعَثَنِي اللَّهُ إِلَى أَنْ يُقَاتِلَ آخِرُ أُمَّتِي الدَّجَّالَ لَا يُبْطِلُهُ جَوْرُ جَائِرٍ، وَلَا عَدْلُ عَادِلٍ، (ابو داود)

سنن نسائي کښې د سلمه بن نفیل رضي الله عنه روایت دې بينما أنا جالس عند رسول الله صلّى الله عليه وسلّم إذ جاء رجل فقال: يا رسول الله إن الخيل قد سيبت ووضع السلاح وزعم أقوام أن لا قتال وإن قد وضعت الحرب أوزارها فقال رسول الله صلّى الله عليه وسلّم: «كذبوا فالآن جاء القتال ولا تزال طائفة من أمتي يقاتلون في سبيل الله لا يضرهم من خالفهم يزيغ الله تعالى قلوب قوم ليرزقهم منهم وتقاتلون حتى تقوم الساعة ولا تزال الخيل معقودا في نواصيها الخير حتى تقوم الساعة ولا تضع الحرب أوزارها حتى يخرج ياجوج ومأجوج»

﴿ذَٰلِكَ﴾من حيث المعنى راجحه داده چه دَماقبل سره متصل شی اوپدی وقف اوشی ای الامر ذلک،یاذلک حکم الکفار،او اشاره ماقبل ضرب الرقاب او شدوا الوثاق ته ده.

﴿وَلَوْ يَشَآءُ ٱللَّهُ لَٱنتَصَرَ مِنْهُمْ﴾ای لانتقم منهم، **حکمت د مشروعیت د جهاد** بیانیږي چې الله ﷻ قدرت لری چې د دې کافرانونه پخپله انتقام واخلی اوخه اسمانی عذاب لکه خسف، زلزله، غرق ورباندې راولی او هلاک ئی کړی لکه عاد،ثمودوغیره ئی چه هلاک کړیدی ، تاسو ته ئی هیڅ ضرورت نشته دې خو تاسوته ئی چې دَجهادحکم کړیدې نوپدی کښې ستاسو امتحان مقصوددې چه څوک دَاللهﷻ په نوم باندی خپل جان ،مال،اولادقربانوی او جهاد ته را اُوځی او څوک نه،اوپدی کښې دَ کافرانوهم امتحان دې چه دَبې سره سامان مجاهدینو په مقابله کښې دَ دوئ دومره لویه ټیکنالوجی شکست خوری او دَ اللهﷻ مدد ورسره پخپلو سترګو وینی نوآیاچه دوئ حق قبوله وی اوکنه؟

﴿وَٱلَّذِينَ قُتِلُوا۟ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ﴾ جهاد حکم نه ورستو **ترغیب دې د جهاد** اودې په ضمن کښې **دویم تقابل** ذکر کیږي ،چې مؤمنان چې الله ﷻ په لار کښې جهاد کوي الله ﷻ به ورله په دې دنیا کښې هم د دې صله ورکوي چې هغه غلبه ده او آخرت کښې به هم ورکوي چې جنت دې، او دوئ په مقابله کښې کافرانو د دنیا انجام هم خراب دې او آخرت خو ئې هغې برباد دې، ((والذين قتلوا في سبيل الله )) دا **اول انعام** دې مجاهدینو ته، چې آخرت سره ئې تعلق دې، یعني که جهاد کښې شهید شوئ نو اعمال خو به ضائع نه ځی جنتونه به درته میلاویږی

﴿سَيَهۡدِيهِمۡ﴾ای سیوصلهم الی ثواب تلک الاعمال(روح)﴿وَيُصۡلِحُ بَالَهُمۡ﴾مراحل دَ آخرت، قبر، حشر ، نشر وغیره به ورته اسان کړی.﴿وَيُدۡخِلُهُمُ ٱلۡجَنَّةَ عَرَّفَهَا لَهُمۡ﴾دَ عرّفها یوڅومعنی کړې شویدی:

(۱)دَتعریف نه ماخوذدې یعنی الله ﷻ به ورته خودلی وی ځایونه دَدوئ په جنت کښې، هر جنتی ته به خپل منزل اوکمره معلومه وی سره دَدینه چه دَادنی جنتی به دَدنیانه لس چنده غټ جنت وی،په حدیث کښې دی:لاحدکم بمنزله فی الجنة اعرفُ منه بمنزله فی الدّنیا' دَ دنیا دَ کور نه به ورته زیاټ معلوم وی،لکه چې دې دلته ډیر وخت اوسیدلې دې،صاحب دَروح المعانی وائی چه دامعلوموالې به ورته یاپه الهام الهی سره وی،یاپه توسط دَملک سره،یا به حسنات دده رهنمائی کوی.

(۲)تعریف نه مراد پیژندولې ده د جنت په دنیا کښې په ذکر دَ اوصافو سره،یعنی الله ﷻدَ دې جنت په دنیا کښې ډوئ.ته دومره اوصاف بیان کړو چې دوئ پیژندلې دې تردې چې دوئ پرې عاشقان شول . والاذن تعشق قبل العین احیانا.دغه رنګه دَدې په مصداق کښې یوشاعروائی:

اشتاقه من قبلِ رؤیتهِ کما　　　هَوی الجنانُ بطیب الاخبارِ

حضرت والدمحترم نوّرالله مرقدهٗ دَدې په مصداق کښې داسې وائی:

نه تنهاعشق ازدیدارخیزد　　　بساکه این دولت ازگفتارخیزد

(۳)دَعرف نه ماخوذدې په معنی دَخوشبویه کولو،یعنی الله ﷻ ورته جنت خوشبویه کړیدې دامعنی دَابن عباس رضي الله عنه نه مروی ده

(۴)یادَاعراف نه مأخوذدې،ای شرّفها و رفعها.

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ﴾دادَ دویم انعام بیان دې چې دنیوي دې چې زندګي کښې که دالله تعالی دین اعلاء دپاره کوششونه کوئ نو الله تعالی خوبه مدد کوی او دَ دشمن په مقابله کښې خوبه ثابت قدم ساتی﴿إِن تَنصُرُواْ ٱللَّهَ﴾ای دینه، ایمان او اتباع حق علت دې دَ غلبې دَپاره ، کفر او اتباع باطل علت دې دَ مغلوبیت لیکن دا علی اطلاق نه دې،بلکه مقید بالشرط دی،او هغه شرط «ان تنصروالله» یعنی نصرت دینَ دې،که شرط(نصرت دین) وی نو علت (ایمان او

اتباع حق) به عمل کوی او حکم (غلبه) به وجود ته راشی.او که شرط(نصرت دین) نه وی نو علت (ایمان او اتباع حق) به عمل نه کوی لهذا بیا دغلبې خوبونه لیدل خیال است ، و محال است و جنون است.او نصرت دین دادي (۱) چې خپله شریعت باندې عمل اوکړي (۲)بیائي نورو ته تبلیغ اوکړي (۳)او بیا د هغې اعلاء د پاره توره لاسې کښې رواخلې او میدان قتال ته راوزي.

﴿وَيُثَبِّتْ أَقْدَامَكُمْ﴾تثبیت اقدام نه مراد(۱)جنګ په موقع کښې معونت اونصرت دې (۲) په اسلام ثابت قدم پاتې کیدل،یعنې په طاعت باندې به ورته ددوام توفیق ورکوی. (۳)په پل صراط باندې ثابت قدمی ده.

﴿وَالَّذِينَ كَفَرُوا﴾ دلته نه بطور تقابل د کفارو احوالو بیان دې.علی نشر ولف غیر مرتب، یعنی اهل ایمان برعکس الله تعالی کفارو ته دو سزا ګانې ورکوی. ﴿فَتَعْسًا لَّهُمْ﴾ دا د اولې سزا بیان دې ، "تعس" ویلې کیږي پړمخ پریوتلو ته، د دې تقابل ((وثبت اقدامکم)) سره دې، یعنی مؤمنانو لره ثابت قدمی او کفارو له شکست او ذلت دی.((تعسا)) مفعول مطلق دی فعل محذوف دپاره ،اي تعسهم الله تعسا﴿وَأَضَلَّ أَعْمَالَهُمْ﴾ د دویمې سزا بیان دې،فلن یضل اعمالهم په مقابله کښې راغلې دې.یعني کفارو ټول اعمال به الله ﷻ ضائع کړی او آخرت کښې به ورله هیڅ نفع ورنکړي او دغه شان کوم دنیوی سازشونه کوی دَ مسلمانانو خلاف ،الله تعالی به ورله هغه شنډ کړی او هیڅ تدبیر ورته کار نه ورکوی.

﴿ذَٰلِكَ﴾د کافرانو مذکور ذلت او رسوائي سبب بیانیږي. ﴿مَا أَنزَلَ اللَّهُ﴾ مراد ورنه قرآن، او احکامات دَ هغه دی لکه توحید ،رسالت وغیره.﴿فَأَحْبَطَ أَعْمَالَهُمْ﴾ "فاء" د پاره د تفریع ده ،یعني دالله ﷻ د احکاماتو نه بغاوت په نتیجه کښې د دوئ ټول نیک عملونه باطل شول او دوئ له به آخرت کښې هیڅ فائده ورنکړي، د ((احبط اعمالهم ))بظاهر تکرار معلومیږي د ((اضل اعمالهم)) سره ، خو دې دواړو کښې باریک فرق دې ، احباط خاص او اضلال عام دې."احباط " ویلې کیږی مکمل ضائع کولو ته چې انسان ته ترینه هیڅ قسم نفع نشی میلاؤ،نه حقیقي او نه ظاهری،نه دائمی او نه وقتی،او "اضلال" هم ضائع کول وی،لیکن هغې کښې کله کله انسان

نه ظاهري او وقتي طور باندې نفع ښکاريږي،نو دې وجهې نه د ا حباط تعلق دَ آخرت سره دې او اضلال تعلق دنيا و آخرت دواړو سره دې، ۱۰ حباط په صورت کښې د «اعمالهم» نه مراد هغه نيک اعمال دی چه ايمان نه بې بغير کړيدی،او اضلال په صورت کښې «اعمالهم» نه مراد عام دې،نيک اعمال او مسلمانانو خلاف سازشونه دواړه دی،دنيا کښې اګرچې څنې وخت کفارو ته نفع ښکاره شې خو ليکن هغه ظاهري او وقتی وې حقيقي او دائمي نه وې. نو دا تخصيص بعد التعميم دې ، يعني د کفر خو هسې ناکامي مقدر ده ، خو به طور خاص اخروي ناکامي ئې ډيره لويه ده ،ځکه چې دنيا کښې خو به ورته بيا هم څه نه څه مهلت او وقتي غلبه ميلاو شي ، خو آخرت کښې به ورله هيڅ نه وي.

| أَفَلَمْ يَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ فَيَنظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِينَ |
|---|
| آيا نو نه دي ګرځيدلي دوئ په زمکه کښې چه ئې ليدلي وې ځنګه وو انجام دَ هغه خلقو چه |
| مِن قَبْلِهِمْ ۚ دَمَّرَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ ۖ وَلِلْكَافِرِينَ أَمْثَالُهَا ﴿١٠﴾ |
| مخکښې وو دَ دوئ نه، تباهي راوسته الله ﷻ په هغوئ،دپاره دَ کافرانو دي دغه شان عذابونه |
| ذَٰلِكَ بِأَنَّ اللَّهَ مَوْلَى الَّذِينَ آمَنُوا وَأَنَّ الْكَافِرِينَ لَا مَوْلَىٰ لَهُمْ ﴿١١﴾ |
| داپدې وجه دې چه بيشکه الله ﷻ مددګاردَمؤمنانودې اوبيشکه کافران چه دي نيشته دې مددګاردوئ لره |

﴿أَفَلَمْ يَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ﴾تخويف دنيوی دی،اواحوال دَمشرکانو دی﴿وَلِلْكَافِرِينَ﴾لام په کښې دَعهددپاره دې ای هٰولاء الكافرين،مرادورنه کفاردَمکې دی.﴿أَمْثَالُهَا﴾مثليت په اعتبار دَ جنس سره مراددې په وقوع دَعذاب کښې،نوعيت په اعتبارسره ندې مراد،چې بعينه د غه عذابونه به پرې رازي. اوضمير مجرور راجع دې﴿عَاقِبَةُ﴾ته

﴿ذَٰلِكَ بِأَنَّ اللَّهَ﴾ديکښې د مؤمنانو نصرت او دَ کافرانو ذلت او تعس سبب بيان دې ،يعنی وجه دا ده چه الله تعالی د مؤمنانو مولی او ناصر دې ځکه هغوئ ته فتح او نصرت ورکوی،او د کفارو ناصر نه دې نو ځکه هغوئ ذليله وی. ﴿وَأَنَّ الْكَافِرِينَ لَا مَوْلَىٰ لَهُمْ﴾ مولی دلته

يمعنى دكارسازاوناصرسره دي،نودسورة يونس آيت(۳۰)ثمّ رُدّوا الى الله مولهم الحقّ.سره ني تناقض نشته دي ځکه هلته مولیٰ يمعنی دمالک سره دي.

إِنَّ اللَّهَ يُدْخِلُ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ

بيشکه الله ﷻ داخلوی مؤمنان اونيک عملونوالاجنتونوته چه بهيږی به لاندی دهغی نه نهرونه،

وَالَّذِينَ كَفَرُوا يَتَمَتَّعُونَ وَيَأْكُلُونَ كَمَا تَأْكُلُ الْأَنْعَامُ

هغه کسان چی کفر يي اختيار کړيدي دوئ عيش وعشرت کوي اوخوراک کوی لکه چه څرنګه خوراک کوی څناور

وَالنَّارُ مَثْوًى لَهُمْ ﴿۱۲﴾ وَكَأَيِّنْ مِنْ قَرْيَةٍ هِيَ أَشَدُّ قُوَّةً مِنْ قَرْيَتِكَ

او اُور د جهنم استونګه ددوئ ده، او ډير دلسي کلي وو چه خلق دهغو زيات وو په قوت کښی دخلقودکلی ستانه،

الَّتِي أَخْرَجَتْكَ أَهْلَكْنَاهُمْ فَلَا نَاصِرَ لَهُمْ ﴿۱۳﴾ أَفَمَنْ كَانَ عَلَىٰ بَيِّنَةٍ

هغه کلي چه ته ئی ورنه اوباسلې ئی.هلاک کړل مونږهغوئ نونه وو مددګار دهغوئ.آياهغه څوک چه وی په واضح دليل

مِنْ رَبِّهِ كَمَنْ زُيِّنَ لَهُ سُوءُ عَمَلِهِ

دطرفه درب خپل نه،دي کيديشي په شان دهغه چا چه ښائسته کړي شوي وی هغه ته بدعمل دهغه

وَاتَّبَعُوا أَهْوَاءَهُمْ ﴿۱۴﴾

اواتباع ئی کړي وی دخواهشاتوخپلو.

﴿إِنَّ اللَّهَ يُدْخِلُ الَّذِينَ﴾ دابشارت اخرويه دي مؤمنانوته،اودريم تقابل دي،چه مؤمنان دايمان پوجه الله ﷻ جنت ته داخلوی اودکافرانو دکفرپه و جه ټهکانه جهنم دي.

﴿وَالَّذِينَ كَفَرُوا﴾ بيان داحوالو دکافرانو دي﴿يَتَمَتَّعُونَ وَيَأْكُلُونَ﴾ لکه څرنګه چه دڅناور بغير د خوراک نه بل مقصدنه وی اودخپل انجام (نحر،ذبح) نه غافله وی نودغه شان دکافرانوهم دی چه د ژوندمقصدئي صرف خوراک،څکاک ګرځولي دي اود آخرت نه غافله دی،ددينه اشارةً په ولاړه د خوراک ممانعت ثبوت هم اوشو،لکه نن صبا په اکثرودعوتونو کښی دغه رواج

دي، ځکه چه په ولاړه خوراک دځناورو سره مشابهت دي.هيڅ يو ځناور هم په ناسته خوراک نه کوي.په احاديثو کښې په ولاړه دابو څکلو نه منع راغلې ده.

يا مشابهت دځناورو سره په عدم تميزکښې دي په مابين دحرامو حلالو کښې.لکه څرنګه چه ځناور تميزنه کوي په حرام حلال کښې نودغه شان کافرهم تميزنه کوي.مسلمان ته ددينه ډير زيات اجتناب پکار دي.

﴿وَكَأَيِّن مِّن قَرْيَةٍ﴾تخويف دي مشرکانوته او ضمنًا تسلي ده نبی کريمﷺته لکه په ابتدا کښې ددې آيت شان نزول تيرشويدې چه کله نبی کريمﷺ دمکې مکرمې نه دهجرت په اراده روان شو نو مکه معظمه ئې مخاطبه کړه وئې فرمايل چه"انتِ احبّ بلاد الله اليّ..." نو الله ﷻدا آيت نازل کړوچه ډيرکلې مونږ داسې هلاک کړيدی چه ددوئ نه په قوة طاقت کښې زيات وؤ، ليکن زمونږدعذاب نه هيڅ چاېچ نه کړل،نوته ددوئ په ايذاء باندې مه مغموم کيږه مونږبه ورته عذاب ورکوؤ. د﴿ مِّن قَرْيَتِكَ الَّتِي ﴾نه مراد مکه مکرمه ده

﴿أَفَمَن كَانَ عَلَىٰ بَيِّنَةٍ﴾څلورم تقابل دي په مابين دَ مؤمنانو او کافرانو کښې. استفهام انکاری دي، حاصل دادې چه مؤمنان چه دخپل رب دَ طرفه په واضح دلائل باندې قائم دی نو کافران ددوئ پشان نشی کيدلې چه شيطان ورته شرک وغيره قبيح اعمال مزين کړيدی او دَ خواهشاتو اتباع کونکی دی.'من'مصداق مؤمن دي، دَ﴿عَلَىٰ بَيِّنَةٍ﴾معنی ده « على ثباتٍ و يقين » يا ئې معنی ده« على حجةٍ ظاهرةٍ»، ﴿كَمَن زُيِّنَ لَهُ﴾'من' عبارت دي دَمشرکانو نه.

| مَّثَلُ الْجَنَّةِ الَّتِي وُعِدَ الْمُتَّقُونَ فِيهَا أَنْهَارٌ مِّن مَّاءٍ غَيْرِ آسِنٍ |
|---|
| صفت دَجنت هغه چه وعده ئې شويده دَ متقيانوسره«دادې چه»په هغې کښې نهرونه وی دَابو چې نه به وي زړې |
| وَأَنْهَارٌ مِّن لَّبَنٍ لَّمْ يَتَغَيَّرْ طَعْمُهُ وَأَنْهَارٌ مِّنْ خَمْرٍ لَّذَّةٍ لِّلشَّارِبِينَ |
| اونهرونه به وی دَپيوچه نه به وي بدل خوند دَ هغې ، او نهرونه به وی دَ شرابو چه مزه ورکونکې به وی څکونکو ته، |
| وَأَنْهَارٌ مِّنْ عَسَلٍ مُّصَفًّى وَلَهُمْ فِيهَا مِن كُلِّ الثَّمَرَاتِ وَمَغْفِرَةٌ |
| اونهرونه به وی دَ ګبين چه صفابه وی، او وی به دوئ لره په جنت کښې دَ هر قسمه ميوؤ نه اوبخنه |

| مِّن رَّبِّهِمْ كَمَنْ هُوَ خَالِدٌ فِي النَّارِ وَسُقُوا مَآءً |
|---|
| دطرفه درب ددوئ نه (آیا داسی کس کیدئ شی) په شان دهغه چاچي همیشه وي ـه اورکښې اوڅکولې شی ورته اوبه |
| حَمِيمًا فَقَطَّعَ أَمْعَآءَهُمْ ⑮ |
| ایشیدلې نوپرې به کړی کولمې ددوئ |

﴿مَّثَلُ ٱلْجَنَّةِ ٱلَّتِى﴾پنځم تقابل ذکر کیږی په مابین دَ بنده مؤمن او کافر کښې،یعنی بنده مؤمن او متقی به لوئ لوئ نعمتونه والا جنتونو کښې وی چی هغی کښې تازه ابو نهرونه، د خوګو شودو نهرونه، د خوندور شرابو نهرونه او د خالص ګبین نهرونه به پکښې وی،مختلف قسم میوې به پکښې وی او دَ الله ﷻ طرف نه مغفرت پروانه به ورته میلاویږی.بل طرف ته کافر دې ،هغه به همیشه همیشه د پاره جهنم کښې وی،قسما قسم عذابونه پرې وی . داسې ګرمې اشیدلی اوبه ، به ورکولې کیږی چه هغه اوڅکی نو کلمی به ئې ورسره اوشلیږی، نو څنګه بنده مؤمن او کافر یوشان کیدیشی؟ ﴿مَّثَلُ﴾دلته پمعنی دصفت عجیبه سره دې، او دا مبتدا ده اوخبرئې یا فیمایتلی علیکم محذوف دې او﴿فِيهَآ أَنْهَٰرٌ﴾ دهغې محذوف خبرتفسیردې یاورله خبر﴿فِيهَآ أَنْهَٰرٌ﴾دې،

په جنت کښې به څلورقسمه نهرونه وی:(۱)﴿مِّن مَّآءٍ غَيْرِ ءَاسِنٍ﴾ای غیر متغیر الطعم و الریح، یعنی داسی اوبه به وی چه په ډیر حصاریدلوسره به ئې خوند، رنګ، بوئ، نه بدلیږی پخلاف دَ اوبو دَ دنیا نه چه لګې زړې شې نوتعفن پکښې پیداشي.

(۲)﴿وَأَنْهَٰرٌ مِّن لَّبَنٍ﴾دَشودونهرونه به وی چه شوده به ئې نه خرابیږی،بلکه همیشه به خواږه وی

(۳)﴿وَأَنْهَٰرٌ مِّنْ خَمْرٍ﴾دَشرابونهرونه به وی چه خوږه ذائقه به وی،خوشبوداره به وی، کقوله تعالی: لا فیها غول و لا هم عنها ینزفون (الصفت:۴۷) په خلاف دَ شرابو دَ دنیا نه چه تریخ، بدبو داره وی

(۴) ﴿وَأَنْهَٰرٌ مِّنْ عَسَلٍ﴾ دګبین نهرونه به وی چه دَخیرو نه به پاک وی څکه چه ګبین دَجنت به دَ مچونه ،نه وی راویستلې شوې.

﴿وَلَهُمْ فِيهَا مِن كُلِّ ٱلثَّمَرَٰتِ﴾ دابل قسم نعمت دې چه دوئ ته به هرقسمه خوراکونه میسر وی ،من زائد دې دَپاره دَتاکید ،چونکه په جنت کښې به خوراک صرف دَلذت دپاره وی دَ لوږې دَ وجه به نه وی نوځکه ئې ذکر دَ ثمراتو (میوو) اوکړوچه دادَلذت دپاره خوړلې کیږی(کبیر).

﴿وَمَغْفِرَةٌ مِّن رَّبِّهِمْ﴾ دابل نعمت دې اومراد دَ مغفرت نه(۱) یامغفرت دګناهونودې قبلْ دَ دخول نه جنت ته (۲) یا ورنه مراد رفع دَ تکلیف (مکلف کیدل)ده چې جنت کښې به څه احکامات لازم یا بل څه پابندي به پرې نه وي (۳)او یا ترینه مراد رضائ الهي ده ،لکه بل آیت کښې دي ((ومغفرة من الله ورضوان)).

﴿كَمَنْ هُوَ خَٰلِدٌ﴾ دادَ کافرانوحال دې،اواستفهام انکاری دې،یعنی دواړه نشی برابر کیدلې، څکه چه مؤمنانو سره دَانهارِاربعه ؤ،من کل الثمرات.او دَ مغفرت وعده ده (اللّهمّ اجعلنا منهم) او دَ کافرانوسره دَ تخلیدفی النار،دَایشیدلواوبوڅکل.وعده شویده.نومؤمن به دَ الله تعالیٰ میلمه وی چه په مختلفو څیزونو سره به ئې میلمستیا کیږی اوکافربه دَالله تعالیٰ قیدی وی چه زقوم،ضریع خوراک،ایشیدلې اوبه،به ورته ورکولې کیږی.﴿ فَقَطَّعَ أَمْعَآءَهُمْ ﴾په حدیث کښې دی،اذاشربه صاحبه فقطّع امعاءه حتّی تخرج من دُبره(رواه احمدفی المسند)الله تعالیٰ دې زمونږخاتمه په ایمان اوکړی اودَدی عذابونه دې مونږته حفاظت نصیب کړی(آمین).

| وَمِنْهُم مَّن يَسْتَمِعُ إِلَيْكَ حَتَّىٰٓ إِذَا خَرَجُوا۟ مِنْ عِندِكَ قَالُوا۟ لِلَّذِينَ |
| --- |
| اوبعض دَدوئ نه هغه دی چه غوږاېږدی تاته تردې چه کله دوئ اوځی ستادمجلس نه،وائی هغه کسانوته |
| أُوتُوا۟ ٱلْعِلْمَ مَاذَا قَالَ ءَانِفًا ۚ أُو۟لَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ طَبَعَ ٱللَّهُ |
| چه ورکړې شویدې ورته علم،څه ویل دې پیغمبراوس، دغه کسان هغه دی چه مهرلګولې دې الله تعالیٰ |

| عَلٰى | قُلُوْبِهِمْ | وَاتَّبَعُوْٓا | اَهْوَآءَهُمْ | ⑯وَالَّذِيْنَ | اهْتَدَوْا |
|---|---|---|---|---|---|
| په زړونو ددوئ اواتباع ئې کړېده دَخواهشاتوخپلو.اوهغه کسان چه هدايت ئې قبول کړېدې | | | | | |
| زَادَهُمْ هُدًى وَّاٰتٰهُمْ تَقْوٰىهُمْ ⑰فَهَلْ يَنْظُرُوْنَ اِلَّا السَّاعَةَ | | | | | |
| زيات به کړي الله جَلَّ جَلَالُهٗ دوئ لره هدايت اووربه کړي دوئ ته تقوى ددوئ،پس نه کوي دوئ انتظارمګردَقيامت کوی | | | | | |
| اَنْ تَاْتِيَهُمْ بَغْتَةً ۚ فَقَدْ جَآءَ اَشْرَاطُهَا ۚ فَاَنّٰى لَهُمْ | | | | | |
| چه راشي پدوئ ناڅاپه،په تحقيق سره راغلی دی علامې دَقيامت،نوبيابه څرنګه فائده ورکړی دوئ ته | | | | | |
| اِذَا جَآءَتْهُمْ ذِكْرٰىهُمْ ⑱فَاعْلَمْ اَنَّهٗ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ | | | | | |
| چه کله راشي قيامت پدوئ ،نصيحت منل ددوئ.پس يقين اوکړه پدې چه بېشکه نشته دې بل معبودماسوى دَالله نه. | | | | | |
| وَاسْتَغْفِرْ لِذَنْۢبِكَ وَلِلْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنٰتِ ۭ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ مُتَقَلَّبَكُمْ | | | | | |
| اوبخښنه غواړه دګناه خپل اودپاره دګناه دَمؤمنانوسړواودَمؤمناتوښځو.اوالله جَلَّ جَلَالُهٗ پوهيږي په حالت دَدنياستاسو | | | | | |
| وَمَثْوٰىكُمْ ⑲ | | | | | |
| اودآخرت ستاسو. | | | | | |

﴿ وَمِنْهُم مَّن يَسْتَمِعُ إِلَيْكَ ﴾دی آياتونو کښې شپږم تقابل ذکر کيږي او دا تقابل په مابين دَ صفاتو دَ مؤمنانو او دَ منافقانو کښې دې چه منافقان دَنبی کريم ﷺ په صحبت اومجلس کښې ډير په توجه ناست وی،ليکن چه کله بهر ته را اوځی نو بيااستهزاءً صحابه کرامو ته وائی چه دې پيغمبر ﷺ اوس څه خبره کوله مونږ خو پرې پوهه نشو يعنی ګوياکه دَ هغه وينا ناقابل التفات ده (نعوذبالله)، دَدې په مقابل کښې صحابه کرام ﷺ چه کله قرآن اونصيحت دَ پيغمبر ﷺ واوری نو ايمانی کيفيات ئې نورهم زيات شی اوتقوی ورکښې پيدا شی.

﴿ لِلَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ ﴾لکه ابن عباس ﷺ،ابن مسعود ﷺ،ابو درداء ﷺ وغيره،﴿ مَاذَا قَالَ آنِفًا ﴾دا يابطوراستهزاءوائی چه(نعوذبالله)دا ئې څه بې فائدې خبرې اوکړې،يا په حقيقة کښې

دوئ نه وی پوهه ځکه چه په غفلت کښې دی توجه ئې نه وی ﴿أُولَٰئِكَ﴾ اشاره منافقانوته ده ﴿ٱلَّذِينَ طَبَعَ ٱللَّهُ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ﴾ يعنی دَدوئ دَاستهزاء اودَغفلت نتيجه داشوه چه الله ﷻ وربانديمهر جباريت اولګولو ،نودَايمان راوړلو توفيق ورته نه ملاويږی

﴿وَٱلَّذِينَ ٱهْتَدَوْا۟﴾ دَمؤمنانوحال دي ﴿زَادَهُمْ﴾ ضمير د فعل (١) يا الله ﷻ ته راجع دي ﴿هُدًى﴾ نه مرادبصيرت اوعلم دي،يعنی ځوک چه قوائ روحانيه وصحيح استعمال اوکړی نو الله ﷻ ورته بصيرت او فهم زيات کړی (٢) ياراجع دي،قول د رسول الله ﷺ ته.

﴿فَهَلْ يَنظُرُونَ﴾ داتخويف دنيوی دي کافرانوته،منافقانوته يعنی دقرآن نصيحتونه، دَ معذب قومونو واقعات، دَجنت بشارتونه. دَ جهنم وعيدونه چه نه منی نومعلوميږی چه دوئ دَبل څه انتظارنه کوی مګردَقيامت چه ناڅاپه وربانديږ راشی. ﴿إِلَّا ٱلسَّاعَةَ﴾ مراد ورنه قيامت دي، ﴿أَن تَأْتِيَهُم﴾ بدل اشتمال دي دَ الساعة ﴿فَقَدْ جَآءَ أَشْرَاطُهَا﴾ يعنی علامات دَ قيامت ورته راغلی دی نوقيامت به هم راشی ليکن چه قيامت راشی نوبيابه دوئ ته څه (ايمان، توبه) فائده نه ورکوی.

مراد دَ علاماتونه علامات ابتدائيه دَ قيامت دی: (١)لکه بعثت دَنبی کريم ﷺ،په يو حديث کښې راغلی دی چه نبی اکرم ﷺ خپله شهادت ګوته اومنځنۍ ګوته يوځائ کړې اووئ فرمايل: انا و الساعة كهاتين،يعنی څه دَقيامت نه دومره وړاندی راغلې يم لکه چه منځنۍ ګوته دَ شهادت دګوتی نه اوچته او وړاندې ده (مسلم وغيره) (٢)دُخان.کمامرتفسيره فی الدّخان (٣)شق القمرچه په اقتربت السّاعة وانشق القمر کښې ورته اشاره ده.داخوعلامات ابتدائيه دی چه دَنزول قرآن په وخت کښې موجودوؤ،اوپه آيت کښې هم ديته اشاره ده،

بعض علامات قريبه دی چه په احاديث صحيحه ؤکښې تذکره راغلې ده،لکه انس ﷺ فرمائی: لَأُحَدِّثَنَّكُمْ حَدِيثًا لاَ يُحَدِّثُكُمْ أَحَدٌ بَعْدِي سمعت رسول الله ﷺ يقول: مِنْ أَشْرَاطِ السَّاعَةِ: أَنْ يَقِلَّ العِلْمُ، وَيَظْهَرَ الجَهْلُ، وَيَظْهَرَ الزِّنَا، وَتَكْثُرَ النِّسَاءُ، وَيَقِلَّ الرِّجَالُ، حَتَّى يكُونَ لِخَمْسِينَ امْرَأَةً القَيِّمُ الوَاحِدُ (بخاري:81)په يوحديث کښې دی: اذاضيعت الامانة فانتظرالساعة.چاعرض اوکړوچه امانت به څرنګه ضائع کيږی نونبی کريم ﷺ اوفرمايل: «إِذَا وُسِّدَ الأَمْرُ إِلَى غَيْرِ أَهْلِهِ فَانْتَظِرِ السَّاعَةَ» (بخاري:5439)دَدينه علاوه نورواحاديثوکښې ئې هم تذکره شته دي

یا د «الساعة» نه مراد ساعت دَمرګ دي نو د «أَشْرَاطُهَا » نه مرادجسماني تغیرات دی چه دم بدم انسان مرګ ته نیزدي کوی.

﴿ذِكْرَىٰهُم ﴾ دَدي تعلق دَ﴿ فَأَنَّىٰ لَهُمْ ﴾سره دي ای فاني لهم ذکراهم اذا جاءتهم ﴿ په درمیان کښ جمله معترضه ده. یعنی چه کله قیامت یامرګ راشي نو بیادغه وخت کښ به دوئ نصیحت منل څه فائده ورکړی؟

﴿فَٱعْلَمْ أَنَّهُۥ ﴾ماقبل ټول سورت مضامینو باندې مرتب دي او بیان دَ دعوې دَ سورت دي، یعنی دَمؤمنانو او کافرانو ذکر اوشو ،د هغوی اوصافو تقابل اوشو ،دهغوی انجام پېته اولیګده نو دینه معلومه شوه چه متصرف ذات په کائنات کښ یو دی،نو په «لااله الا الله» باندي ثابت قدم اوسه، او دغه مذکوره مضامینو نه دا معلومه شوه چه الله تعالی هغه ذات دي چه هدایت کونکي هم دي او ذلت ورکونکي هم دي،خوش بختی ،بدبختی هغه په لاس کښ ده،عزت ذلت فتح او نصرت او هزیمت وشکست هغه په قبضه قدرت کښ دی، هر وخت تاسو ئي په نظر کښ یئ.تاسو هر حالت نه واقف دي، لهذا هغه ته خپل عاجزی اظهار اوکړئ عفو او بخنه ترې اوغواړئ (فتوح الغیب)

﴿فَٱعْلَمْ ﴾معنی ده،اثبت علی التوحیدواستمرعلیه،یعنی په توحید باندی ثابت قدم اوسیږه اودوام پرې کوه،یادَتوحیدپه مقتضیاتوباندې عمل کول مراددی.﴿وَٱسْتَغْفِرْ لِذَنۢبِكَ ﴾ دَ "ذنب" نسبت نبی کریمﷺته په اعتباردَترک دَماهوالافضل،سره شویدی،ځکه دَ "ذنب"دپاره متفاوت درجات دی.نو چه نبیﷺته ئې نسبت اوشی نودَنبیﷺ ذنب اوسیئه په اصل کښ محسنه وی لیکن په قانون دَ "حسنات الابرارسیئات المقربین"ورته ذنْب اوئیلې شی (۲)بعض وائی چه «لذنبک» توطیه اوتمهیددي روستو دَ«للمؤمنین والمؤمنات» دپاره (۳)بعض وائی چه امر حضور ﷺ ته دي لیکن تعلیم دي امت ته دَاستغفارکولو ،امربالاستغفارمع انه مغفورله لیستن به امته (معالم)(۴)څنې مفسرین فرمائي چې نبي کریم ﷺ هروخت ترقي کیده اوچتې درجې ته ، نو زړه درجه به ورته پمنزله د ذنب وه نو دي وجهې نه ورته د استغفار کولو حکم اوشو، وغیر ذلک من الاقوال.

﴿وَلِلْمُؤْمِنِينَ﴾ دلته مضاف حذف دي اى ولذنوب المؤمنين والمؤمنات﴿ وَٱللَّهُ يَعْلَمُ مُتَقَلَّبَكُمْ وَمَثْوَىٰكُمْ ﴾ دا پمنزله دعلت دي دماقبل، يعني په توحيدباندى ثبات اودوام او استغفارغوختل خکه ضروري دى چه الله ﷻ ستاسو دتمامو احوالونه خبردار دي، دمتقلب اود مثوى معنى مفسرينو ډيرې بيان کړيدى، ابن عباس رضي الله عنه وائى دمتقلب نه مراد احوال د دنيا دى اود مثوى نه مراد د قبر او داخرت احوال دى، بعض وائى دمتقلب نه مراد حالت د بيدارئ دې، او د مثوى نه مراد حالت د خوب دې، بعض مفسرينو متقلبكم نه مراد دمعاش لپاره بهرګرځيدل راګرځيدل اغستى دى اومثواکم نه کورونه چې هلته انسان آرام کوی. غوره داده چه ددواړونه مرادټول احوال د انسان دى، (والله اعلم)

| وَيَقُولُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَوْلَا نُزِّلَتْ سُورَةٌ ۖ فَإِذَآ أُنزِلَتْ سُورَةٌ مُّحْكَمَةٌ |
|---|
| اووائى هغه کسان چه ايمان ئى راوړى دي ولې نشى نازلولې يوسورة، نوهرکله نازل کړيشى يوسورة، محکم |
| وَذُكِرَ فِيهَا ٱلْقِتَالُ ۙ رَأَيْتَ ٱلَّذِينَ فِى قُلُوبِهِم مَّرَضٌ يَنظُرُونَ إِلَيْكَ |
| او ذکر شي پکښې حکم دقتال، نوته به وينى هغه خلق چه په زړونو د هغوئ کښې مرض دنفاق دې، چه ګورى به تاته |
| نَظَرَ ٱلْمَغْشِىِّ عَلَيْهِ مِنَ ٱلْمَوْتِ ۖ فَأَوْلَىٰ لَهُمْ ۝ طَاعَةٌ وَقَوْلٌ |
| پشان دکتلو دهغه چا چه بې هوشى راغلى وى په هغه دمرګ، پس غوره ده دوئ له . طاعت کول دپيغمبر اووينا کول |
| مَّعْرُوفٌ ۚ فَإِذَا عَزَمَ ٱلْأَمْرُ فَلَوْ صَدَقُوا۟ ٱللَّهَ |
| سمه، نو کله چې عين وخت شي د قتال ، نو کچرته دوئ ريشتنى کړې وې د الله سره، |
| لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ ۝ |
| نودا به غوره وې دوئ لره. |

﴿وَيَقُولُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ﴾ ددې ځائ نه تراخردسورة پورې دسورة دويمه حصه ده چه پکښې دمنافقانو احوال ذکرکيږى، او ورته زجرونه ذکرکيږى، دائ اول حالت دې، حاصل ئى دادې چه کله دمؤمنانو دخواهش مطابق الله ﷻ څه سورة نازل کړى اوبياخاصکرپه هغې کښې د

جهاد کولو ذکروی،نودې منافقانوباندې سم څه چل اوشی،سترګی ئی وازې شی پیغمبرﷺته داسی ګوری لکه زنکدن ئی شروع وی.

﴿سُورَةٌ مُّحْكَمَةٌ﴾ محکمة یاپمعنی دَ مبیّنة سره دې.یعنی دجهاد واضح حکم وی پکښ (لکه و اقتلوهم ، فضرب الرقاب ..وغیره) دَ پاره دَ دې چه دامنافقین داونه وائی چه مونږ ته دَدې مراد نه دې معلوم، یاپمعنی دَغیرمنسوخ دې،محکم وی منسوخ کیږی نه،دَ دې وجی نه چه دااونه وائی چه حکم دَ جهاد منسوخ دې څکه مونږ جهادنه کوو .قتادهؒ وائی چه: کلّ سورة ذکر فیها الجهاد فهی محکمة(روح،قرطبی وغیره).

﴿فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ﴾مرض دَنفاق اوشک﴿نَظَرَ الْمَغْشِيِّ عَلَيْهِ مِنَ الْمَوْتِ﴾یعنی لکه څرنګه چه دَځنکدن په وخت کښ دَ سترګو نظر روک شی نودغه شان دَجهاد حکم نازلیدلو په وخت کښ دَ منافقانو نظرونه دَ یری او خوف دَ وجه نه ورک شی اوسترګې ئی .بې رونقه شی. یا مراد دادې چه دَبزدلئ پوجه پدغه وخت کښ دَدوئ سترګې خکته شی.﴿فَأَوْلَىٰ لَهُمْ﴾ ددې جملې متعدد توجیهات شوي دي :

(۱)فاولی لهم ، طاعة وقول معروف . دا مکمل یو کلام دې .چې به طور جمله معترضه واقع شوې دې په مابین دماقبل ((نظر المغشي )) او مابعد ((فاذا عزم الامر))،کښ ((اولی)) صیغه د اسم تفضیل ده او خپلې معروفه معنی (غوره والي ) کښې استعمال شوې ده، او مفضل علیه محذوف دې چې هغه د منافقینو حالت مذکوره دې ، او ((طاعة و قول معروف)) ورله مبتدا مؤخر دي ، اي: اولی لهم من ذلک الخوف ان یطیعوا الله ورسوله وان یقولوا قولا معروفا،یعني د دې خوف نه غوره دوئ د پاره دا وه چې الله ﷻ او د هغه رسول اطاعت ئي کړې او سمه خبره ئي کړې وې.

(۲)څنو مفسرینو لیکلي دي چې (( اولی لهم )) جدا جمله معترضه ده د پاره د بدعاء، او ((طاعة و قول معروف)) سره ئي هیڅ تعلق نشته ، هغه کلام مستانف دې او ماقبل سره ئي تعلق دې ،اودی تقدیر باندې دا یا مشتق دې د "ویل" نه پمعنی دَهلاکت، او اصل کښ "اَوْیَل" بروزن افعل وو بیا پکښ قلب اوشو، "یاء" مو "لام" نه بعد یوځله نو اَوْلَیو شو.بیا "قال" قاعدې مطابق

اولیٰ شو يعني دَدوئ دپاره هلاکت دې. یا ولي بلي نه مشتق دې پمعنی دَقرب او اتصال يعنی الله تعالی دی دوئ ته مصيبت او تکليف نيزدې کړی، بهر حال دواړو صورتونو کښې دا جمله بدعاء دپاره ده، او مابعد طاعة سره ئي تعلق نشته هغه ځان له کلام مستانف دې. «طاعة» خبر دې د مبتدا محذوف دپاره ، اي: الامر طاعة وقول معروف ، يعني حکم دوئ ته د اطاعت اودَقول معروف شوي دي.

﴿فَإِذَا عَزَمَ ٱلۡأَمۡرُ﴾ الامر نه مراد امر د قتال دې او عزم نه مراد د قتال شروع کيدل او عين وخت راتلل دي ﴿فَلَوۡ صَدَقُواْ ٱللَّهَ لَكَانَ خَيۡرٗا لَّهُمۡ﴾ ورله جزاء ده نومطلب داشوچه کله دَجهادحکم اوشی او ميدان اولګي نوکه چرته پدغه وخت کښې دوئ خپله وعده ريشتنی کړی اوپه اخلاص سره جهاد ته لاړشی نو دَ دوئ د پاره به پکښې خير وی.

| فَهَلۡ | عَسَيۡتُمۡ | إِن | تَوَلَّيۡتُمۡ | أَن | تُفۡسِدُواْ | فِي | ٱلۡأَرۡضِ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| پس هم دا توقع ده ستاسو نه (اې منافقانو)کچرته اعراض اوکړئ تاسو چې فسادبه اوکړئ په زمکه کښې | | | | | | | |
| وَتُقَطِّعُوٓاْ | أَرۡحَامَكُمۡ ٢٢ | أُوْلَٰٓئِكَ | ٱلَّذِينَ | لَعَنَهُمُ | ٱللَّهُ | فَأَصَمَّهُمۡ | |
| اوپرې به کړئ تاسوخپلولئ ستاسو.داکسان هغه خلق دی چه لعنت ورباندی کړیدې الله ﷻ نوکاڼره کړی ئې دی | | | | | | | |
| وَأَعۡمَىٰٓ أَبۡصَٰرَهُمۡ ٢٣ | | | | | | | |
| اوړندی کړې ئې دی سترګی دَدوئ. | | | | | | | |

﴿فَهَلۡ عَسَيۡتُمۡ﴾ دا خطاب دې منافقانوته په طريقې دَ التفات ، او زجر ورته ذکرکيږی چه تاسوچه دَ جهاد نه اعراض کوئ نوفساد به خورشي، امن امان به ختم شی، صله رحمی به قطع شی او خانه جنګی به شروع شی، دَدينه معلومه شوه چه جهاد دهشت ګردی نه ده بلکه دَدهشت ګردی ختمولوذريعه ده . «هل» دلته د تحقيق او تقرير د پاره دې ، «عسيتم» په معني د تحققتم او توقعتم سره دئ ، «ان توليتم» اي : ان اعرضتم عن القتال ، جزاء محذوفه ده چې هغې باندې «ان تفسدوا» دلالت کوي او «ان تفسدوا» خبر دې د «عسى» يعني کچرته مو جهاد پريخودو نو تاسو نه دا قوي اميد دې چې تاسو به بيا فساد خوره وئ او قطع رحمی او ظلم به کوئ.

بعض وائی چه تولیتم دَولایت نه مشتق دي،مفعول به ئی حذف دي ای تولیتم امور الناس.
یعنی کچرته تاسو متولیان اوحاکمان اوګرځئ دَ خلقو ،حکومت دِرته ملاوْشی نوپه انصاف به قائم پاتی نشئ اوظلم زیاتي به شروع کړئ ؛ ځکه چه تاسو حب دنیا او قوت ایمانی ملاحظه شوي دي،چې صرف دنيوی حظوظ دَپاره دَ جهاد په شان حکم نه خوا عراض کريدي.

﴿أُوْلَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ لَعَنَهُمُ ٱللَّهُ فَأَصَمَّهُمۡ﴾يعنی دَدوئ دَاعمال سيئه وَپه نتيجه کښ ورنه الله ﷻدحق دَاوريدلوصلاحيت اودَهدايت دَلارى ليدلوصلاحيت سلب کړوچه دَجهادفوائدنه آورى اونه ئی وينی.

| |
|---|
| أَفَلَا يَتَدَبَّرُونَ ٱلۡقُرۡءَانَ أَمۡ عَلَىٰ قُلُوبٍ أَقۡفَالُهَآ ۝ إِنَّ ٱلَّذِينَ ٱرۡتَدُّواْ |
| آیانه کوي دوئ فکر په قرآن کښ،بلکه دَدوئ په زړونو باندې تالې دَ زړونو دی . بيشکه هغه کسان چه واپس شویدی |
| عَلَىٰٓ أَدۡبَٰرِهِم مِّنۢ بَعۡدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمُ ٱلۡهُدَى ٱلشَّيۡطَٰنُ سَوَّلَ لَهُمۡ |
| پخپلو شاګانو ورستو دَدينه چه ښه ښکاره شوي وی دوئ ته هدايت،شيطان ښائسته کړيدی دوئ ته ګناهونه دَ دوئ |
| وَأَمۡلَىٰ لَهُمۡ ۝ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمۡ قَالُواْ لِلَّذِينَ كَرِهُواْ |
| اواوګده اميدونه ئی ورکړيدي دوئ ته، دا ارتداد په سبب دَدې چه دوئ ويل هغه کسانوته چه بدئ ګڼړلو |
| مَا نَزَّلَ ٱللَّهُ سَنُطِيعُكُمۡ فِي بَعۡضِ ٱلۡأَمۡرِۖ وَٱللَّهُ يَعۡلَمُ إِسۡرَارَهُمۡ ۝ |
| هغه قرآن چه نازل کړيدي الله ﷻ،چه مونږبه اطاعت کوؤستاسو په ځني کارونوکښ،اوالله عالم دي په پټو جرګو دَ دوئ . |

﴿أَفَلَا يَتَدَبَّرُونَ ٱلۡقُرۡءَانَ﴾ دا بل زجر دي منافقانوته چه دوئ دَقرآن په دلائلو ، مواعظو ، زواجرو باندي غورفکرنه کوی چه هدايت ورته ملاوْشی،اوکه دَ بدعملونوپه نتيجه کښ په زړونودوئ دَ کفرتالي لګيدلي دی نودَغوراوفکردَهدايت موندلواستعدادئی بالکل ختم شويدي ، دا قضيه مانعة الخلوده،يعنی په دواړوخبروکښ يوه ضروری ده،اومانعة الجمع نه ده ځکه چې په منافقانوکښ دواړه خبری موجودي وي.کقوله تعالی ذلک بانهم آمنوا ثم کفروا فطبع علی قلوبهم يا په ﴿أَمۡ عَلَىٰ قُلُوبٍ﴾کښ ام منقطعه دي پمعنی دَبل سره يعنی دوئ په قرآن کښ غورځکه نه کوی چه دَدوئ په زړونواقفال (تالي) لګيدلی دی ﴿أَقۡفَالُهَآ﴾ ضميرراجع

دی قلوب ته یعنی اقفال مختصه بالقلوب چه اقفال دکفر دی، نولکه څرنګه چه دروازی ته تالی اولګی نوخارج نه څیز داخل ته نشی راتلې اوداخل نه خارج ته نشی تلې، نودغه رنګه دَدوئ په زړونو دکفرتالی لګیدلی دی کفرورنه خارج کیدې نشی اوایمان داخلیدې نشی.

﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ ٱرۡتَدُّواْ عَلَىٰٓ أَدۡبَٰرِهِم﴾ دیکښې د عدم تدبر سبب بیانیږي، چې هغه تسویل شیطاني دې او دوئ ته اوګده اوګده امیدونه ورکول دي، «إن الذين» نه مراد منافقان دی چه اسلام ئی راوړې وؤ، او دَ اسلام دَ حقانیت نه ښه واقفه وؤ، لیکن بیائی هم په زړه کښې نفاق پروت وؤ، ﴿ٱرۡتَدُّواْ عَلَىٰٓ أَدۡبَٰرِهِم﴾ یعنی دَ ایمان نه اعراض اوکړی، « الشيطن سول لهم » پوره جمله اسمیه "ان" د پاره خبر دې ﴿سَوَّلَ لَهُمۡ﴾ ای زيّن لهم خطاياهم(قرطبی).

﴿وَأَمۡلَىٰ لَهُمۡ﴾ دَدې فاعل هم یاشیطان دې، ای مدّلهم فی الامل ووعدهم طول العمر (ایضا) یعنی شیطان په دهوکه کښې اچولی دی چه ګناه کوه کوه ډیروخت دې بیابه چرته په یوه موقع توبه اوباسې، بعض وائی چه فاعل دَ املی الله تعالی دې، یعنی الله ﷻ ورته مهلت ورکړیدې چه فورائی مؤاخذه نه کوی، عذاب پری نه راولی.

قتاده رحمه الله اوبعض نوروائی چه دا آیت نازل دې په باره دَاهل کتابو کښې چه حضور ﷺ ئی په هغه اوصافو متصف بیا موندلوچه دَدوئ په کتابونو کښې موجودوؤلیکن بیاهم په کفر او انکار دَ بعثت باندی کلک ولاړوؤ، نودَ﴿مِّنۢ بَعۡدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمُ ٱلۡهُدَى﴾ نه مراداوصاف او علامی دَ نبی کریم ﷺ دی، دَدینه تعبیرپه ارتدادسره ځکه اوشوچه دَنبی کریم ﷺ دَتشریف راوړلو نه مخکښې به ئې دَاتباع دعوه کوله، لیکن چه حضور ﷺ تشریف راوړلونوبیائی ورسره ضد او حسدشروع کړو، کمافی البقرة.

﴿ذَٰلِكَ﴾ اشاره ده ارتدادته دَهدایت نه، او سبب د ارتداد بیانیږي، ﴿بِأَنَّهُمۡ قَالُواْ﴾ ضمیرونه منافقانو ته راجع دی ﴿لِلَّذِينَ كَرِهُواْ﴾ نه مرادیهود یا مشرکان دی، چه بدئ ګڼړلو نزول دَقرآن په نبی کریم ﷺ باندی ﴿فِي بَعۡضِ ٱلۡأَمۡرِ﴾ نه مراد(۱)یاعداوت دې دَاسلام اودَنبی کریم ﷺ سره، یعنی منافقانو اهلِ کتابو ته ئې اوونیل چه که تاسودَاسلام اودَحضور ﷺ سره

دشمنی کوئ نومومنږهم تاسوسره یو . لکه په سورة حشرآیت ۱۱ کښې دی.الم ترالی الّذین نافقوا یقولون لاخوانهم الّذین کفروامن اهل الکتاب لئن اخرجتم لنخرجنّ معکم .الآیة

(۲)یاورنه مراد باطنًا اتباع ده یعنی مونږ به ظاهراً اتباع د پیغمبر کوؤ او باطنًا عقیدهٔ تاسو سره یو . ﴿وَٱللَّهُ يَعْلَمُ إِسْرَارَهُمْ﴾یعنی دوئ چه کومی پټې خبری یهودوته وائی الله ﷻ په هغې پوهه اوخبرداردې اسرار بکسرالهمزه مصدردې یعنی رازداری.اوبفتح الهمزه هم په یوقرائت کښې راغلې دې.جمع د سر ده یعنی په زونه ددوئ.

| |
|---|
| فَكَيْفَ إِذَا تَوَفَّتْهُمُ الْمَلَٰٓئِكَةُ يَضْرِبُونَ وُجُوهَهُمْ وَأَدْبَارَهُمْ ﴿٢٧﴾ ذَٰلِكَ |
| پس څه حال به وی ددوئ کله چه وفات کوی دوئ لره فرښتې وهی به مخونه ددوئ اوشاګانې ددوئ داعذاب |
| بِأَنَّهُمُ اتَّبَعُوا مَآ أَسْخَطَ اللَّهَ وَكَرِهُوا رِضْوَانَهُۥ فَأَحْبَطَ |
| په سبب ددی چه دوئ اتباع کړیده دهغه چه غصه کوی الله ﷻ اوبدئ کنړلې ده رضاد الله ﷻ پس برباد کړل الله ﷻ |
| أَعْمَٰلَهُمْ ﴿٢٨﴾ أَمْ حَسِبَ الَّذِينَ فِى قُلُوبِهِم مَّرَضٌ أَن لَّن يُخْرِجَ اللَّهُ |
| (نیک) عملونه ددوئ.آیاګمان کوی هغه خلق چه دهغوئی په زړونو کښې بیماری ده داچه چرته به هم رانښکاره نه کړی الله |
| أَضْغَٰنَهُمْ ﴿٢٩﴾ وَلَوْ نَشَآءُ لَأَرَيْنَٰكَهُمْ فَلَعَرَفْتَهُم |
| بغضونه ددوئ او که مونږ غوختلې نو ضرور به موښودلې وې تا ته دوئ . نو تا به پیژندلې وې دوئ |
| بِسِيمَٰهُمْ وَلَتَعْرِفَنَّهُمْ فِى لَحْنِ الْقَوْلِ وَاللَّهُ يَعْلَمُ أَعْمَٰلَكُمْ ﴿٣٠﴾ |
| په علامو خپلو سره . اوته به پیژنې دوئ په طرز د خبرو سره . اوالله ﷻ پوهیږي په عملونوستاسو، |
| وَلَنَبْلُوَنَّكُمْ حَتَّىٰ نَعْلَمَ الْمُجَٰهِدِينَ مِنكُمْ وَالصَّٰبِرِينَ ۙ وَنَبْلُوَا۟ |
| اومونږبه خامخاازمیښت کوؤپه تاسو تر دې چه معلوم کړو مونږ جهاد کونکی ستاسو نه او صبر کونکی،او تحقیق به کوؤ |
| أَخْبَارَكُمْ ﴿٣١﴾ إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَصَدُّوا عَن سَبِيلِ اللَّهِ وَشَآقُّوا |
| ستاسو د احوالو بیشکه هغه کسان چه کفرئی کړیدې اومنع کوی خلق دلاري دالله ﷻ اومخالفت کوی |

| الرَّسُوْلَ مِنْۢ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمُ الْهُدٰى لَنْ يَّضُرُّوا اللّٰهَ شَيْـًٔا |
|---|
| دَپیغمبرﷺورستودَدینه چه ښکاره شویدې دوئ ته هدایت،هرګزضررنشی رسولې دوئ الله ﷻته هیڅ، |
| وَسَيُحْبِطُ اَعْمَالَهُمْ ﴿٣٢﴾ |
| او نزدې ده چه برباد به کړی الله ﷻ عملونه د دوئ |

﴿فَكَيْفَ إِذَا تَوَفَّتْهُمُ﴾ تخویف دې منافقانوته په عذاب دځنکدن سره،چې څه حال به وی دَدوئ چه کله ئی ځنکدن وی اوفرشتې دَمرګ ئی په مخونواوپه ادبارو وهی،په مخونواوپه ادبارو وهل لکه چه تعذیب دې نودغه شان دانهایت تذلیل اوبی عزتی هم ده،نوځکه ئی تخصیص اوشو،یاترینه مراد ورستو شاته ټول بدن دې.حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه کوم کافر،فاسق مړکیږی نو دَ ځنکدن په وخت کښ ئی فرشتې په مخ اوپه ملاوهی(اعاذناالله بفضله).

﴿ذَٰلِكَ﴾اشاره عذاب مذکورته ده،او دهغې سبب بیان دې ﴿اتَّبَعُوا مَا أَسْخَطَ اللَّهَ﴾ کفر، کتمان دَصفاتودَنبی کریمﷺ، دغه رنګه نورمعاصی چه دادَالله ﷻ دَناراضګئ اوغضب اسباب دی.﴿وَكَرِهُوا رِضْوَانَهُ﴾ایمان اونیک اعمال ورنه مراددی چه دَالله ﷻ دَراضی کیدلو اسباب دی،﴿فَأَحْبَطَ أَعْمَالَهُمْ﴾یعنی په نیک اعمالوبه ورته په آخرت کښ هیڅ ثواب نه ملاویږی.

﴿أَمْ حَسِبَ الَّذِينَ﴾دابل زجردې منافقانوته،چه دَدوئ څه ګمان دې چه الله ﷻ به دَدوئ حالت حضورﷺاومسلمانانوته ښکاره نکړی؟ اودَدوئ دَاسلام اومسلمانانوسره پټه دشمنی،حسد ،کینه به دغه شان مستوره وی؟هرګزنه بلکه دَدوئ حالت به ښکاره کیږی

﴿مَّرَضٌ﴾مرض دَ نفاق،حسد،اودشمنی دَ مسلمانانو سره﴿أَضْغَانَهُمْ﴾جمع دَضغن ده پټ عداوة، حسد ،کینه ته وائی.

﴿وَلَوْ نَشَاءُ لَأَرَيْنَاكَهُمْ﴾هم ضمیرراجع دې منافقانوته(۱)جمهورومفسرینودآیت مطلب داسی بیان کړیدې حه،کچرته زمونږ رضاوې نو ای پیغمبره!ﷺ تاته به موښودلې وې منافقان

او هر یو منافق به دی فرد افرد اُپیژندلې وې لیکن دَیو خاص حکمت او مصلحت په بنا باندې چه موقع دَ توبه ورکول دی ورته اوستاری کول دی په هغوئ داسې او نه شو . البته ﴿وَلَتَعۡرِفَنَّهُمۡ فِي لَحۡنِ ٱلۡقَوۡلِ﴾ ته به ئي دَ خپل فطانت، ایمانی فراست، ذهانت سره او پیژنی. په انداز کلام دَدوئ سره، ځکه چه منافق سرې دَخبرونه پیژندلې کیږي.

حضرت شیخ الهند رحمه الله دَترجمی مطابق په ﴿لَأَرَيۡنَٰكَهُمۡ﴾ باندې وقف دې او ﴿فَلَعَرَفۡتَهُم﴾ جدا جمله ده، نو مطلب به ئی داسی شی چه، که زمونږ رضاوې نوښودلې به وې مونږ تا ته منافقان، لیکن عدم مشیت دې نو عدم روئیت دې، یعنی تا ته مو په علم قطعی او دلیل قطعی سره نه دی ښودلی، لکه په سورة توبه (۱۰۱) کښې دی، لاتعلمهم نحنُ نعلمهم، هلته ورنه مراد هم عدم قطعی دې، البته ﴿فَلَعَرَفۡتَهُم بِسِيمَٰهُمۡ﴾ ته به یی په علامو سره پیژنې، یعنی په دلیل ظنی سره چه دَهغی بیان دادې چه ﴿وَلَتَعۡرِفَنَّهُمۡ فِي لَحۡنِ ٱلۡقَوۡلِ﴾

﴿وَٱللَّهُ يَعۡلَمُ أَعۡمَٰلَكُمۡ﴾ خطاب عام دې، نو مؤمنانو ته بشارت دې او منافقانو ته وعید دې، ﴿وَلَنَبۡلُوَنَّكُمۡ﴾ په جهاد او په نورو اعمالِ شاقۀو سره، دلته هم خطاب عام دې ﴿حَتَّىٰ نَعۡلَمَ﴾ مراد دَعلم نه امتیاز راوستل دی. ﴿وَنَبۡلُوَاْ﴾ ظهور او تحقیق کول ورنه مراد دی ﴿أَخۡبَارَكُمۡ﴾ ای احوالکم.

﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ﴾ دا په آخر دَسورة کښې بیان دَاحوالو دَمشرکانو دې، چه دَدوئ کفر او مخالفت دَپیغمبر ﷺ سره الله تعالیٰ ته هرګزڅه ضرر نشی رسولې. او انجام اعتبار سره په دنیا کښې هم ناکامي د دوئ وي او په آخرت کښې هم، «لن یضروا الله شیئا» کښې د دنیا ناکامئ ذکر او شو ، چې رسول ﷺ په مقابله کښې څومره پلانونه دوئ جوړ کړي دي هغه به تول شند شي ، او هیڅ ضرر به ورته اونه رسوي او ﴿وَسَيُحۡبِطُ أَعۡمَٰلَهُمۡ﴾ کښې د آخرت ناکامئ ذکر دې ، چې نه به ورته هغه نیک اعمال فائده ورکړي ، چې په دنیا کښې په هغې ځان سترې کړې وي.

| يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ أَطِيعُواْ ٱللَّهَ وَأَطِيعُواْ ٱلرَّسُولَ وَلَا تُبۡطِلُوٓاْ أَعۡمَٰلَكُمۡ ۝ |
|---|
| اې مؤمنانو تابعداری کوئ دَالله تعالیٰ او تابعداری کوئ دَپیغمبر ﷺ او مه باطلوئ عملونه خپل. |

| |
|---|
| إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَصَدُّوا عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ ثُمَّ مَاتُوا وَهُمْ كُفَّارٌ |
| بیشکه هغه کسان چه کفرئی کړیدي اومنع کوی خلق دلارې دالله ﷻ نه بیامړه شی اودوئ کافران وی |
| فَلَن يَغْفِرَ اللَّهُ لَهُمْ ﴿٣٤﴾ فَلَا تَهِنُوا وَتَدْعُوا إِلَى السَّلْمِ |
| نوهرګزبه مغفرت نکوی الله ﷻ دوئ ته.نوتاسوسستی مه کوئ اومه راغواړئ کافران صلح ته، |
| وَأَنتُمُ الْأَعْلَوْنَ وَاللَّهُ مَعَكُمْ وَلَن يَتِرَكُمْ أَعْمَالَكُمْ ﴿٣٥﴾ |
| اوتاسوبه غالب یئ اوالله ﷻ تاسوسره دی اوهرګز به نه کموئ ستاسو نه ستاسو عملونه . |

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ﴾ دا مؤمناتوته تشجيع على القتال ده.چه الله ﷻ اودهغه رسول ﷺ درته دَ جهاد حکم اوکړی نو جهاد ته ځئ، منافقینو غوندې طرز مه اختیاره وئ ﴿وَلَا تُبْطِلُوٓاْ أَعْمَٰلَكُمْ﴾ بمخالفة الرسول والشرک،یعنی دَخپلوعملونوثواب په مخالفت دَرسول الله ﷺ سره مه برباده وئ ځکه په کوم عمل کښ دَحضور ﷺ طریقه نه وی نوهغه باطل عمل وی،دغه رنګه په شرک سره هم اعمال باطلیږی"لئن اشرکتَ ليحبطنّ عملک"فقهاء کرامورحمهم الله دَدې آیت په ظاهر سره استدلال نیولې دې پدی چه"لزم النفل بالشروع"یعنی نفلی عمل خواه که مونځ وی یا روژه وی په شروع کولوسره لازم اوواجب ګرځی.«ان الذين كفروا وصدوا» دیکښې د کافرانو اخروي ناکامي ذکر دي

﴿فَلَا تَهِنُوا﴾"وهن"سستی کولوته وائی په سبب دَیرې دَمرګ یاپه سبب دَمحبت دنیا سره، یعنی دَ مرګ دَ یرې په سبب دَجهادنه مه پاتی کیږئ،مرګ خوبه خامخاراځی،نودَدشمن په مقابله کښ نامردی اوسستی مه کوئ.﴿وَتَدْعُوٓاْ إِلَى ٱلسَّلْمِ﴾ای ولاتدعواالی السّلم،یعنی کافرانوته دَصلح دعوت مه ورکوئ ځکه دادلیل دې چه تاسوکمزورې یئ.البته کچرته کافران ابتداءً صلح طلب کړی نوصلح کول جائزدی کچرته مصلحت پکښ وی لکه په سورة انفال کښ دی"وان جنحوا للسّلم فاجنح لها".

﴿وَأَنتُمُ ٱلۡأَعۡلَوۡنَ﴾ دا دَنیا کامیابی ده ﴿وَٱللَّهُ مَعَكُمۡ﴾ یعنی الله ﷻ به ستاسو نصرت کوی ﴿وَلَن یَتِرَكُمۡ أَعۡمَٰلَكُمۡ﴾ دا دآخرت کامیابی ده، چه الله ﷻ به ستاسو نیک عملونه، نه ضائع کوی.

| |
|---|
| إِنَّمَا ٱلۡحَیَوٰةُ ٱلدُّنۡیَا لَعِبٞ وَلَهۡوٞۚ وَإِن تُؤۡمِنُواْ وَتَتَّقُواْ یُؤۡتِكُمۡ أُجُورَكُمۡ |
| بیشکه ژوند دَدنیا لوبه او تماشه ده او کچرته تاسو ایمان راوړئ او تقویٰ اختیار کړئ. دربه کړی تاسو ته ثوابونه ستاسو. |
| وَلَا یَسۡـَٔلۡكُمۡ أَمۡوَٰلَكُمۡ ۝٣٦ إِن یَسۡـَٔلۡكُمُوهَا فَیُحۡفِكُمۡ تَبۡخَلُواْ |
| اونه غواړی الله ﷻ ستاسو نه ټول مالونه ستاسو، کچرته او غواړی ستاسو نه مال او تنگ کړی تاسو نو بخل به وکړئ تاسو |
| وَیُخۡرِجۡ أَضۡغَٰنَكُمۡ ۝٣٧ هَٰٓأَنتُمۡ هَٰٓؤُلَآءِ تُدۡعَوۡنَ |
| او ښکاره به کړی الله ﷻ کینې ستاسو. خبردار! تاسو اې منافقانو هغه خلک ئې چې دعوت درکولیشی تاسو ته. |
| لِتُنفِقُواْ فِی سَبِیلِ ٱللَّهِ فَمِنكُم مَّن یَبۡخَلُۖ وَمَن یَبۡخَلۡ |
| چه خرچ کړئ مال په لاره دَالله ﷻ کښې، پس ځنې په تاسو کښې داسې دی چه بخل کوی. اوځوک چه بخل کوی |
| فَإِنَّمَا یَبۡخَلُ عَن نَّفۡسِهِۦۚ وَٱللَّهُ ٱلۡغَنِیُّ وَأَنتُمُ ٱلۡفُقَرَآءُۚ |
| نو پس بیشکه دې منع کوی خیر دَخپل ځان نه، اوالله ﷻ غنی (بی حاجته) دې اوتاسو فقرا (حاجتمند) یئ |
| وَإِن تَتَوَلَّوۡاْ یَسۡتَبۡدِلۡ قَوۡمًا غَیۡرَكُمۡ ثُمَّ لَا یَكُونُوٓاْ أَمۡثَٰلَكُم ۝٣٨ |
| اوکچرته تاسو اعراض اوکړو نو په بدل کښې به پیدا کړی قوم بل ستاسو په ځای. بیا به نوی هغوئ ستاسو په شان. |

﴿إِنَّمَا ٱلۡحَیَوٰةُ ٱلدُّنۡیَا لَعِبٞ وَلَهۡوٞ﴾ دی آیتونو کښې دَ جهاد فی سبیل الله او انفاق فی سبیل الله ترغیب ذکر کیږی چه، دآخرت په مقابله کښې دنیا هیڅ څیز ندې، دُنیا خو بذاته لهو و لعب ده، نو خپل ځان، مال دَدې په لهویاتو باندې مه لگوئ، ځکه دا د قیمتی عمر ضائع کول دی، بلکه خپل ځان، مال په ایمان، تقویٰ، جهاد باندې اولگوئ چه الله ﷻ به درته دَدې اجر او بدله درکوی.

﴿وَلَا يَسْـَٔلْكُمْ أَمْوَٰلَكُمْ﴾ عطف دې په جزااو مرتب دې په شرط «ان تؤمنوا » يعني ايمان راوړلو نه په دې وجه اعراض مه کوئ چې بيا به درنه اسلام او الله ﷻ د ټول مال مطالبه کوي، واورئ چې الله ﷻ ستاسونه دټول مال په جهاد کښې خرچ کولو مطالبه نه کوي چې تاسو د دې يرې نه ايمان پريګدئ.

﴿إِن يَسْـَٔلْكُمُوهَا فَيُحْفِكُمْ﴾ او که بالفرض شريعت ستاسو نه مطالبه اوکړي او د ټول مال مطالبه اوکړي نو بيا ستاسو بخل شروع کړئ او ډير مفاد پرستو او کمزور ايمان والو باطني حال به معلوم شي او پټې کينې به ئي ښکاره شي ﴿فَيُحْفِكُم﴾ د "احفاء" نه مشتق دې انتها او مبالغې ته وائي په يوکارکښې، يعنې ستاسونه په مال غوښتلوکښې مبالغه اوکړي چه ټول مال خرچ کړئ.

﴿هَٰٓأَنتُمْ هَٰٓؤُلَآءِ﴾ دا په آخر کښې يو بل زجر ذکر کيږي منافقانو ته چه دَ ماقبل مضمون تاکيد دې، چه کله دوئ ته دَالله ﷻ په لاره کښې دَخرچ کولودعوت ورکړيشي نودوئ بخل کوي او مال نه خرچ کوي« هأنتم» کښې «ها» دپاره دَتنبيه ده. «انتم » مبتدا دې او «هؤلاء» ورله خبر دې ،او معنې په ئي داسې شي چې تاسو دا خلق يئ ، او دا تعبير په څه خاص وصف کښې شهرت دپاره استعماليږي ، لکه مونږ پښتو کښې وايو: څه خو خه پيژنم تاسو دا خلق يئ ،ته هغه سړي نه ئي چې...

﴿تُدْعَوْنَ﴾ دا جمله مستانفه ده ، بعض وائي چې «هؤلاء» منادی دې د حرف ندا محذوف د پاره، او «تدعون» خبر دې د «انتم»، او زمخشري ليکي چې «هؤلاء» دلته اسم شاره نه ده بلکه اسم موصول دې پمعنی دَ "الذی"سره .«تدعون» يې صله ده«کشاف».

﴿فَإِنَّمَا يَبْخَلُ عَن نَّفْسِهِۦ﴾ دَبخل په صله کښې"عن"راغلې دې نودامتضمن دې معنی دَصارفاً للخير ،ته يعنی څوک چه بخل کوی نودې دَخپل ځان نه خيراړه وی اومنع کوی. ﴿وَٱللَّهُ ٱلْغَنِىُّ﴾ يعنی الله ﷻ چه تاسوته دَمال خرچ کولوترغيب درکوی نودا په دې وجه نه چه الله ﷻ محتاج دې بلکه الله ﷻ خوغنی ذات دې تاسوفقراءاومحتاج يئ. ﴿وَإِن تَتَوَلَّوْا۟﴾ يعنی که

تاسو دَ الله تعالیٰ حکم نه اعراض اوکړئ اودَالله په لاره کښې مال خرچ نه کړئ،نو بیا دا هم یاد اوساتئ چه الله تعالیٰ په دې قادردې چه تاسوختم کړی اوستاسو په عوض کښې بل قوم داسې پیدا کړی چه هغه به ستاسو پشان بخیلان نه وی بلکه دَالله تعالیٰ اطاعت کونکی به وی.

په حدیث کښې راغلی دی چه صحابه ؤعرض اوکړوچه یارسول الله ﷺ دغه بل قوم به څوک وی؟ چه که مونږاعراض اوکړو،نوحضور ﷺ دَحضرت سلمان فارسی رضی الله عنه په اوږه باندې لاس کیخودلو اووئی فرمایل چه هذا و قومه دې اودَده قوم،اوبیائی اوفرمائیل:والّذی نفسی بیده لو کان الایمان منوطًا بالثریّا لتناوله رجال من فارس،دَالله تعالیٰ په ذات مې دی قسم وی کچرته ایمان ثریاستورې ته هم ورسیږی نودَفارس خلق به یې دَ هلته نه ئې هم حاصل کړی.

| ركوعاتها (۴) | سورة الفتح مكية | اٰياتها (۲۹) |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بيحده مهربان او ډير رحم كونكې دې شروع كوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۴۸) وحسب النزول (۱۱۱)**

سورة فتح مدنى سورة دې،ترتيب قرآنى لحاظ سره(۴۸)دې اوترتيب نزولى په اعتبارسره(۱۱۱)دې،نزلت بعدالجمعة قبل المائدة.

**ربط** : ئى ماقبل سورة دادې چه په ماقبل سورة كښ اعلان دَجهادوؤېدى سورة كښ دَفتح اعلان دې چه په جهادسره دَمسلمانانوفتح اوغلبه رازى.

**دسورة دَمضامينواجمالى خلاصه**

دَسورت دوه حصى دي،اوله حصه تر دويمى ركوع اختتام آيت نمبر ۱۷ پورى ده ،ديكښ اول دَ فتح اعلان ،بيان نبى ﷺ په حق كښ دهغى ثمرات، بيا مؤمنانو صحابؤ په حق كښ او دهغى ثمرات،اوبيا كفاروپه حق كښ اودَ هغى ثمرات ذكر كيږى.همدغه شان دنبى كريم ﷺ اطاعت ترغيب اودَمخالفت تحذير ذكر كيږى،اودَمنافقينو عذرونه بيانيږى.دويمه حصه كښ دَدى ټولو مضامينو اعاده ده.

**تفصيلي خلاصه**

**اوله حصه:**

آيت نمبر ۱ ،اعلان فتح

آيت نمبر ۲ ،۳ كښ نبى ﷺ په حق كښ د صلحى حديبيى څلورثمرات بيانيږى.

آيت ۴ ، ۵ كښ صحابؤو په حق كښ څلور ثمرات ذكر كيږى.

آيت ۶ ، ۷ كښ كفاروپه حق كښ څلور نتائج ذكر كيږى

آيت ۹ ،۸ ،كښ ترغيب دي اطاعت د رسول ته.

آيت ۱۰ كښ بشارت دې په اطاعت باندې.

آيت نمبر ۱۱ ،۱۴ پورى د منافقينو اول حالت ذكركيږى،اودَهغې تفصيلي جائزه ده

آیت نمبر ،۱۲، ۱۵ کښې منافقینو دویم حالت ذکر او دهغې جائزه ده.
آیت نمبر ۱۷ کښې د معذرینود عذربیان دې
**دویمه حصه:**
آیت:۱۹، ۲۰، ۲۱ کښې په حدیبیه کښې شریک صحابهٔ کرامو دپاره انعامات ذکر کیږی.
آیت ۲۲ ،نه تر۲۲ پورې حدیبیه په موقع باندی دقتال او دکفارو مغلوبیت اوعدم قتال حکمتونه ذکر کیږی.
آیت نمبر ۲۷ کښې جواب د شبهې ذکر کیږي.
آیت نمبر ۲۸ ترغیب دې دَ اطاعت رسول
آیت ۲۹ کښې اوصاف صحابه.

**شان نزول د سورت**

سورۃ فتح په حدیبیه کښې نازل شویدې،حضرت انس فرمائی چه دَصلح حدیبیه نه ورستوچه کله حضورﷺ واپس شومدینی منورې ته تشریف راوړلواودَصحابه کرامو په زړونو کښې دَدې خبری صدمه وه چه عمره ئی ادانه کړه،نوپه لاره کښې دا سورۃ نازل شو(چه گویا صلح حدیبیه شرائط اوفی الحال عمره نه ادا کول شکست مه گڼئ اوپدی مه خفه کیږئ، دا شکست نه دې بلکه فتح مبین ده).

**دَصلح حُدیبیه مختصره واقعه**

په سنه۲هـ شپږمه هجرئ کښې په مدینه کښې حضورﷺ خوب اولیدلوچه سره دَ صحابهٔ کرامو مکې ته راغلی یو اوعمره موادا کړیده،بعضِ کسانودَعمرې نه فراغت باندې حلق او بعضِ کسانو قصرکړیدې،داخوب نبی کریمﷺ صحابه وُته بیان کړو،چونکه دَنبی خوب هم دَ وحی یوصورت وی، او دَ صحابهٔ کرامو په زړونو کښې واړه یادونه راویخ شول نودوئ فوراً تیاری اوکړه،حضورﷺ ورته اگرچه یوخاص وخت نه وُمتعین کړې مگردَشدت اشتیاق پوجه تولوداا وگڼړله چه اوس به داخوب پوره کیږي،دَ صحابه کرامو په تیاری باندی حضورﷺ هم عمری ته دَتللواراده اوکړه،اوورسره ئی خوا او شا قبائلو ته هم پیغام اولیږلواودَعمری دعوت ئی ورله ورکړو،لیکن په هغوئ کښې منافقانو دَ تللو نه انکاراوکړواوبهانې ئی جوړی کړی چه تفصیل ئی ورستوراځی

چنانچه ۲ هجری دَذی القعده په میاشت کښ دَپیرپه ورځ حضور ﷺ غسل اوکړواونوې لباس ئې واچولواوپخپلې اوښې قصوی باندې سورشولو ،دَصحابه کرامو لښکرئی دَځان سره روان کړوچه دَهغی تعدادپه اکثروروایاتونوکښ(۱۴۰۰)څوارلس سوه راغلي دي،قافله روانه شوه اودَهدي ځناورئی هم دَځان سره روان کړل،دَذوالحلیفه مقام نه ئی احرامونه هم اوتړل چه کفارمکه پوهه شی چه دَدوئ مقصدجنګ کول ندی بلکه عمره کوی

په لاره کښ نبی اکرم ﷺ ته یوکس اطلاع ورکړه چه دَمکې کافران ستاسودَراتلونه خبر شویدی، ستاسودَمقابلې دَپاره جمع دی اوهرګزتاسومکې ته نه پریدی،اوحضرت خالدبن ولید سره دَیوجماعت نه غمیم مقام ته رارسیدلي دي ،نبی ﷺ ته چي پته اولګیده نولاره یې بدله کړه او په بله لاره تلو تلو تردې چی حدیبیه مقام ته نیزدی ورسیدلو ،

دَحضور ﷺ اوښه کیناستله،دَ ډیر کوشش باوجود هم نه پاسیدله، صحابه کرامو اووې چه "خلاتِ القصوىٰ" یعنی قصویٰ اوښه لټه شوه،حضور ﷺ اوفرمایل:ماخلاتِ القصوىٰ،وماذاک لها بخلق ولکن حبسهاحابس الفیل،یعنی دالټه شوې نه ده اونه دادَدې عادت دې بلکه داهغه ذات منع کړیده چه اصحاب الفیل ئی منع کړی وؤ ، بیائی ارشاداوفرمایلو.چه قسم په هغه ذات چه دَچاپه قبضه کښ ځماروح دې چه که اهلِ مکه زمونږه نه دَداسې څیزمطالبه اوکړی چه په هغې کښ دَحرماتُ الله احترام مقصود وی نوځه به ئې خامخامنم،دی نه بعد بیا اوښه پاځیدله اوقافله روانه شوله،تردې چی حدیبیه ته را اورسیدل اوهلته یی پړاو واچولو

نومختصراً داچه حدیبیه کښ دوران قیام دافیصله اوشوه چه مشرکین مکه سره مذاکراتو دَ پاره حضرت عثمان رضی الله عنه دې مکې ته اولیږلې شی اومشرکانو ته دَدې وضاحت اوکړی چه ځمونږ اراده صرف عمره کول دی نورځه مقصدندې لهذامونږمه منع کوئ. حضرت عثمان رضی الله عنه مکې ته راغې ابوسفیان وغیره سره ئی خبری اوشوی اودَ صحابه کرامو رضی الله عنهم دَراتلومقصدئی ورته ښکاره کړلولیکن هغوئ بالکل اونه منله اوورته ئی اووې چه که ته یواځې طواف کول غواړې نواوکه ورنه مونږمحمد ﷺ اودَهغه ملګری هرګزدلته نه پریدو. عثمان رضی الله عنه اوفرمایل:چه ځه هرګزدَالله ﷻ دَرسول علیه السلام نه بغیرطواف اوعمره نه کوم.قریشوچه دا واؤریدل نوعثمان رضی الله عنه ئی دَ واپس تللو نه منع کړو ، صحابه کراموته خبرراورسیدلوچه عثمان رضی الله عنه شهید کړیشو ،صحابه کراموته داخبراوریدل ډیره لویه واقعه وه،هرسړې مضطرب او پریشانه وؤ ،نبی اکرم ﷺ پدغه وخت کښ دَیوې ونې لاندې کیناستلو اوصحابه کرام رضی الله عنهم ئی

جمع کړل او بیعت ئی ورنه واخستلو ،چه مونږ دَ مکي والؤو نه دَ عثمانؓ انتقام اخلو ، او بیا ئی په آخرکښ خپل یو لاس دَبل لاس دَپاسه کیخلودلو او وئی فرمایل چه دا دَعثمانؓ دَجانبه بیعت دي،دَ صحابهٔ کرامودي بیعت ته بیعت رضوان وئیلې کیږی،چه ورستوپه آیت نمبر(۱۸)کښ تذکره ده.

دَصحابهٔ کرامو دا جذبه او بیعت علی الجهادنه چه دَمکي کافران خبرشونو په زړونوکښ رُعب راغې اوپخپله صلحې ته اماده شول،اوعثمانؓ ئی واپس پریخودلو،اوباقاعده مذاکراتو آغاز یی اوکړو ،څوکسانو کوششونونه بعد یی بالآخر سهیل بن عمرو ئی خپل سفیر مقرر کړو چه دَنبی کریمﷺ سره دَصلحی شرائط مقرر کړی او دا مسله ختمه شی

حضورﷺ چه کله سهیل اولیدلو چه راغې نو پطور دَنیک فال ئی اوفرمایل سهل لکم من امرکم چه اوس ستاسو معامله اسانه شوله،غرض دا چه دَطویل گفت وشنیدنه ورستوپه یو څو شرائطو سره صلحه اوشوله نبی اکرمﷺ دَصلح نامې دَلیکلو دَپاره حضرت علیؓ را اوغوښتلو ورته ئی اوفرمایل اولیکه بسم الله الرحمن الرحیم سهیل اوویل داسی مه لیکئ بلکه مونږ چه کومه وایو هغه اولیکئ چه هغه باسمک اللّهم ده،نبیﷺ دا منظوره کړله.

حضرت علیؓ په صلحنامې باندې بطور عنوان اولیکل،هذا ماقاضیٰ علیه محمّد رسول الله، سهیل اووئیل چه زمونږ خو تاسره تنازعه هم پدی خبره ده چه تا دَالله تعالیٰ رسول نه منو ،رسول الله مه لیکئ،محمد بن عبد الله اولیکئ، حضرت علیؓ دَ دې نه انکار اوکړو ، حضور ﷺ پخپله رسول الله وران کړو ،اومحمدبن عبدالله ئی اولیکلو.

البدایه والنهایه کښ دَصلحنامې متن داسې نقل شویدې هذا ماصالحَ علیه محمّد بن عبد الله سهیل بن عمرو:

(۱)اصطلحاعلی وضع الحرب عن الناس عشرسنینَ یامن فیهنّ الناس ویکفُ بعضهم عن بعضٍ

(۲)وعلی انه من اتیٰ محمداً من قریش بغیر اذن ولیّه ردّه علیه

(۳) ومن جاءقریشاًممن مع محمدٍلایردوه علیه

(۴)وان بیننا عیبةٌ مکفوفةٌ

(۵)وانّه لااسلال ولااغلالَ

(۶) وانّه من احبَّ ان یّدخل فی عقد محمّدٍ و عهدهٖ دخل فیه

(۷)ومن احبّ ان يَدخل في عقدقريش وعهدهم دخل فيه

(۸)وانکَ ترجع عامک هذا فلا تدخل علينا مکة

(۹)وانه اذاکان عامٌ قابلٌ خرجناعنک فدخلتهابأصحابک فاقمت بها ثلاثًا

(۱۰)معک سلاح الراکب السيوف في القرب لا تدخلها بغيرها

يعنې لس(۱۰)کاله پوری به جنګ بندوی،کچرته يوسړي دَقريشونه بغيرداَجازت نه مسلمان شي اوتاسوته راشي نوهغه به واپس کوليشي اوکه څوک دمسلمانانومونږته راشي نه هغه به نه واپس کيږي.دَمعاهدې په مده کښې به دَجانبينُ نه دآمد اورفت سلسله به جاري وي په امن سره،مذکوره شرائطوکښې به خيانت نه وي،تمام قبائل به آزادوی چه دَهرچاسره معاهدهٔ معاقده کوی،تاسوبه دې کال بغيردَعمرې نه واپس څئ اوآئندهٔ کال به عمره اداکوئ،اسلحه به درسره نه وي مګرپه قدردَحاجت اوهغه به هم دَتيکو(نيام)نه بهرنه رااوباسی.

معاهده چه کله مکمله شوه اوصحابه کرام واپس راتلل نوډيرخفه وؤنوپه لاره کښې الله ﷻسورة فتح نازل کړو.چه خفه کيږئ مه اوداصلح شکست مه ګنړئ بلکه دافتح مبين ده.

تنبيه:واقعه دَصلح حديبيه مونږدلته بغرضِ افهام مختصره ذکرکړيده صرف هغه مقصودی اجزا ذکر دی چه په سورة کښې ئی تذکره ده دَبعض اجزاء تذکره به ورستوهم کيږي، تفصيلی واقعه په البدايه والنهايه وغيره دسيرت او دَ تاريخ په کتابونوکښې ملاحظه کوليشئ(والله اعلم واتم علمه).

| إِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا مُّبِينًا ① لِّيَغْفِرَ لَكَ اللَّهُ مَا تَقَدَّمَ |
|---|
| بيشکه فتح درکړه مونږتاته فتح ښکاره،دَدې پاره چه مغفرت اوکړی تاته الله ﷻ دَهغه چه مخکښې تيرشويدی |
| مِن ذَنبِكَ وَمَا تَأَخَّرَ وَيُتِمَّ نِعْمَتَهُ عَلَيْكَ وَيَهْدِيَكَ صِرَاطًا مُّسْتَقِيمًا ② |
| کومُ ګناه دَ ستا.اوهغه چه ورستهودی.او چی پوره کړی نعمت خپل په تا باندې او روان کړي تا په لارې سيدها باندې |
| وَيَنصُرَكَ اللَّهُ نَصْرًا عَزِيزًا ③ |
| اومدد اوکړی ستاالله ﷻ مدد غالب |

﴿ إِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا مُّبِينًا ﴾دا اعلان د فتحې دې ، دَفتح مبين په مصداق کښې دَ علماؤو ډير اقوال دي: بعض وائي چه مرادورنه فتح مکه ده،مکه اګرچه پدغه وخت کښې نه وه فتح شوې،ليکن دَيقيني امرنه تعبيرپه ماضي سره کيږي،نودَ﴿فَتَحْنَا لَكَ ﴾معنی ده حکمنالک بالفتح يعنی حکم مو اوکړو تا ته دَ فتح،ليکن دَاکثروعلماؤقول دادې چه دَفتح مبين،نه مرادصلح حديبيه ده چونکه صلح حديبيه دَفتح مکه سبب وه،نوځکه ورته فتح اوويلې شوه،اطلاق دَسبب په مسبب اوشو.

حضرات محدثين رحمهم الله فرمائی چه صلح حديبيه په ظاهرکښې اګرچه دَمسلمانانوپه حق کښې شکست اوذلت په نظرراځی.ليکن پدی سره په حقيقت کښې دَفتح مکه دَپاره لاری کولاوې شوې ځکه:

(۱)چه دَصلح په وجه دَمکې اومدينه په مينځ کښې دَ آمدورفت سلسله شروع شوه دَ اسلام د دعوت او نشر دَپاره لارې کولاؤ شوی، مدينی ته به وفود تلل راتلل اسلام به ئې قبولو، خالدبن وليد ﷺاودَعمروبن عاص ﷺپه شان بهادرخلق په اسلام کښې داخل شول،په واقعه حديبيه کښې دَ مسلمانانوتعدادڅوارلس ياپنځلس سوه وؤاودوه کاله ورستودَفتح مکه په موقع لس زره تعدادوؤ.

(۲)دغه رنګه دَصلح حديبيه په موقع کښې دکافرانوسفيرانودَصحابه ئې کراموجان نثاری، اودَحضور ﷺسره بې انتها محبت ئې اوليدلوچه دَ حضور ﷺدَ اودس اوبه هم زمکې ته نه پريخودې،عروه بن مسعودچه تراوسه لامسلمان نه وؤاودکافرانودَطرفه صلح ته راغلې وؤ چې واپس لاړو ، نوقريش مکه ته ئې اوويل چه ځه دَقيصراوکسریٰ اونجاشی دربارونوته هم تلې يم،ليکن ما دَ محمد ﷺدَملګروپشان تابعدارملګری نه دی ليدلی،کچرته تاسوجنګ کوئ نو دوئ خپل ملګرې چرته هم يواځې نه پريدی،نوپدی سره دکافرانوپه زړونوکښې رُعب راغې،اوهم ددې رعب نتيجه وه چه کله قريشودَمکی دَمعاهدی خلاف ورزی اوکړه نوپه سنه ۸هـ کښې نبی اکرام ﷺدَمکې فتح کولوتياری اوکړه نودکافرانودَطرفه هيڅ مقابله اونشوه او ډيرپه اسانئ سره مکه مکرمه فتح شوه،چه تفصيل به ئې انشاءالله په سورة ممتحنه کښې راځی.

(۳)مدينه مکه او خيبر مينځ کښې راتله،مکې کښې مشرکين وو او خيبر کښې يهود ،دواړه دَ مسلمانانو سخت دشمنان او اسلام نشر و اشاعت دپاره غټ رکاوټ وو ،دې وجهې نه دوئ ختمول ضروری وو، دواړو سره په يووخت کښې مقابله کول دَ تدبير خلاف وه ځکه چې دواړه غټ قوتونه وو،او داسې هم نشوه کيدې چې مسلمانان خپل ټول قوت يوطرف ته متوجه کړی، ځکه چې بل طرف نه دحملې خطره وه،صلح حديبيې فائده دا اوشوه چې مسلمانان دَ مکې طرف نه مطمئن شو نو په خيبر يې حمله اوکړه او هغه يې فتح کړو ،اوبل طرف ته ورته مکه فتح کول هم آسان شو ،ځکه چې يهودو خطره ختمه شو او دَ خيبر دَوجهې نه ورته معاشی استحکام هم ميلاؤ شو.

حاصل دَماسبق دا شوچه دَفتح مکې سبب صلح حديبيه وه نو ځکه په آيت کريمه کښې صلح حديبيې ته فتح مبين اووئيلې شوه.

حضرت عبدالله بن مسعودﷺاوبراء بن عازبﷺوغيره صحابه کراموبه فرمائيل چه تاسو خو مکه فتح کولوته فتح مبين وايئ(چه پدغه کښې خوشک نشته دې)ليکن مونږه خو صلح حديبيه فتح گنړو ،داقول هم دليل دې پدې خبره چه دَ﴿فَتْحًا مُّبِينًا﴾مصداق صلح حديبيه ده (والله اعلم).

﴿لِّيَغْفِرَ لَكَ ٱللَّهُ﴾فتح اعلان او بشارت نه بعد دَهغې ثمرات اونتائج ذکر کيږی،دی آيتونو کښې دَنبی کريم ﷺ دپاره څلوره انعاماتو وعده ذکر کيږی:(۱)مغفرت (۲)اتمام نعمت(۳)هدايت د صراط مستقيم(۴)نصرت عزيز،

دا **اول انعام** تذکره ده لام په ليغفر کښې يا(۱)لام اراده دې او اراد فعل او ان مصدريه ورنه ورستومقدردی،ای ارادغفران ذنوبک.(۲)يا لام تعليليه دې يعنی دَفتح په سبب الله ﷻ تاته مغفرت اوکړی،فتح مبين سبب دَمغفرت پدی اعتبارسره دې چه دَ صلح په وجه دَاسلام قبولوکسانوپه تعداد کښې زياتې اوشوچه په هغې سره دَحضورﷺپه اجراوحسناتوکښې هم اضافه اوشوه اوحسنات کفاره دَسيئاتودی.

دَاهل سنت والجماعت صحيح عقيده دا ده چه تمام انبياءﷺ قبل النبوة،بعدالنبوة او دَ صغيره گناهونو او دَ کبيره گناهونود صدور نه هم معصوم دی اوپه آيت کريمه کښې خو

حضور ﷺ ته دَذنب نسبت شویدې نودینه معلومیږی چه دپیغمبر ﷺ نه هم ګناه کیدیشی. مفسرینو دَقرآن اودَغه رنګه شارحینو دَحدیث دَ دې آیت ډیر توجیهات بیان کړیدی.

(۱)یوه توجیه داده چه دلته مضاف محذوف دې،من ذنبک ای من ذنب اُمتکَ یعنی د حضور ﷺ ذنب مرادندې بلکه دَامت ذنب ورنه مراددې.نبي کریم علیه السلام سره به اکثردَامت دَ ګناهونو فکر ملګرې وؤ.الله تعالیٰ ورته اطلاع ورکړه چه ستااُمت به معاف کومه،داتوجیه اګرچه په ظاهرکښ صحیح معلومیږی لیکن ډیره غوره نه ده ځکه چه په ورستوپه آیت نمبر(۵)کښ مؤمنانوته دَمغفرت بشارت مستقلاً ذکرکیږی.

(۲)دویمه توجیه داده چه نبی کریم ﷺ ته دَذنب نسبت کول دَ-حسناتُ الابرار سیئات المقربین- دَ قبیلی نه دې،دَپیغمبر ﷺ ذنب په حقیقت کښ ذنب نه دی بلکه خلاف اولی اوترک دَ ما هو الافضل والاحسن ته ئی ذنب وئیلې کیږی،لکه واقعه دَعبدالله مکتوم رضی الله عنه شوه چه سورة دَعبس وتولّی پرې نازل شوې وؤ.

(۳)دریمه توجیه داده چه دَ ذنب نه اجتهادی خطاء مراد ده جه دَانبیاؤ علیهم السلام نه هم ممکنه ده

(۴)خلورمه توجیه داده چه علامه کشمیری رحمه الله فرمائی چه دَذنب نه مراد دَ مشرکانو الزمات دی یعنی چه الله تعالیٰ ستانه دَمشرکانو الزمات لری کړی،دَدینه علاوه نور توجیهات هم پکښ شته دې.

﴿مَا تَقَدَّمَ مِن ذَنْبِكَ وَمَا تَأَخَّرَ﴾تقدم اوتاخرچونکه متقابلین دی دَ دواړو ذکر دَ استغراق او دَ شمول دَپاره کیږی نودَدی وجه نه بعض وائی چه﴿مَا تَقَدَّمَ﴾ او﴿وَمَا تَأَخَّرَ﴾ کنایه ده دَټولوذنوبونه،یعنی ټول ګناهونه به معاف کړی،بعض وائی تقدم اوتاخرپه اعتبار دَ نبوت سره دې﴿مَا تَقَدَّمَ﴾ای قبل النبوة، ﴿وَمَا تَأَخَّرَ﴾ ای بعد النبوة بعض وائی چه تقدم تاخرپه اعتبار دَ هجرت سره دې،ای قبل الهجرة وبعدالهجرة،زیاته مناسبه دَمقام سره داده چه تقدم تاخر په اعتباردَفتح سره شی،ای قبلَ الفتح وبعدالفتح.

﴿وَيُتِمَّ نِعْمَتَهُ عَلَيْكَ﴾دیکښ **دویم انعام** ذکر دې، اتمام دَ نعمت نه مراد غلبه دَ دین ده، یعنی دین به غالب شی،چه دا لویٔ نعمت دې﴿وَيَهْدِيَكَ صِرَاطًا مُّسْتَقِيمًا﴾دیکښ **دریم انعام**

ذکر دي، "یهدیک" په معنی دَ "یثبتک" سره دي یعنی الله ﷻ به تاله په سیدهالارې باندې محکم کړي او دا واضحه ده ځکه چه دَفتح په وجه هغه خلق ختم شي چه دصراط مستقیم باندې دَ تللو دَ پاره رکاوټ او مانع جوړیږي. ﴿نَصْرًا عَزِيزًا﴾ دیکښې **څلورم انعام** ذکر دې.اې **نصرافیه عزّ ومنعة**(بحر) داسې نصرت به دی الله ﷻ او کړي چه هغه به عزت او غلبې والا وي،نو په دی کښې اشاره ده فتوحاتو ته،چنانچه په سنه۷هـ کښې خیبرفتحه شو چه دَمسلمانانو په عزت کښې اضافه اوشوه اودغه رنګه په ۸هـ کښې مکه مکرمه فتحه شوه.

| هُوَ الَّذِيٓ اَنْزَلَ السَّكِيْنَةَ فِيْ قُلُوْبِ الْمُؤْمِنِيْنَ لِيَزْدَادُوْٓا اِيْمَانًا |
|---|
| الله ﷻ هغه ذات دي چه نازله وی اطمینان په زړونودمؤمنانوکښې دپاره ددې چه زیات کړی ایمان |
| مَّعَ اِيْمَانِهِمْ ۭ وَلِلّٰهِ جُنُوْدُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۭ وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيْمًا حَكِيْمًا ۝ |
| سره دایمان ددوئ نه،اوخاص الله ﷻ لره دی لښکرې داسمانونواودزمکې،او الله ﷻ پوهه دې حکمت والا دې |

﴿هُوَ ٱلَّذِيٓ أَنزَلَ ٱلسَّكِينَةَ﴾ دی آیتونو کښې د **صحابه کرامو په حق کښې صلح حدیبیه ثمرات** او اثرات ذکر کیږي، چې هغه دا دي: (۱)انزال سکینه(۲)زیادت ایمان(۳)دخول جنت (۴)تکفیر سیئات.

دا دَ **اول انعام** بیان دی چه انتهائی پریشان کن حالاتو کښې الله ﷻ په دوئ سکینه نازله کړه، دَ سکینې معنٰی،تسلی اواطمینان قلبی ده،یعنی الله ﷻ دَ صلح حدیبیه په موقع دَمسلمانانو په زړونوکښې اطمینان اوتسلی واچوله چه په هغې سره دَ دوئ په نور ایمانی او انشراح صدرکښې اضافه اوشوه اوفیصلې دَرسول ﷺ ته ئی غاړه کیخودله،اګرچه دوئ ته دَ صلح دَ شرائطو په وجه ډیرزیاته پریشانی لاحقه شوی وه،لکه حضرت عمر رضی الله عنه دَ ډیرې پریشانئ په وجه عرض اوکړو چه "السنا علی الحق وهم علی الباطل" آیا مونږ په حقه او دوئ په ناحقه نه دی؟ نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل،ولې نه! بیائی عرض اوکړوچه "الیس قتلانا في الجنة وقتلاهم في النار" آیازمونږمقتولین به په جنت کښې اودَدوئ به په جهنم کښې نه وی،نبی کریم علیه السلام ورته اوفرمائیل،هم داسی ده،نوبیائی عرض اوکړوچه بیاولې مونږدومره کمزوری شرائط منو؟

حضورﷺ ورته جواب ورکړو چه څه دَالله تعالیٰ نبی یم. الله تعالیٰ به هرګزما نه ضائع کوی. بیا حضرت عمرؓ هم دغه خبری دَابوبکرؓ سره اوکړی هغه ورته هم دغه جواب ورکړو، آخر دا چه تسلی ئی اوشوه او اواحرام ئی کولاؤکړو.

﴿لِيَزْدَادُوٓاْ إِيمَٰنًا مَّعَ إِيمَٰنِهِمْ﴾ دا دَ **دویم انعام او ثمری** بیان دی چه دَسکینی پوجه الله تعالیٰ به دوئ ایماني کیفیت کښې اضافه اوکړه، بعضِ علماؤلکه امام بخاریؒ وغیره دَ دې آیت نه استدلال کړیدې پدی چه ٫الایمانُ یزیدُ و ینقصُ ٫ایمان کمیږی زیاتیږی،لیکن محققین علماء چه په هغی کښې امام ابوحنیفهؒ هم دې دا وائی چه٫ **الایمان لا یزیدُ ولا ینقصُ**٫ ایمان کښې کمې زیاتې نه راځی ځکه چه ایمان تصدیق ته وائی اوهغه بسیط دې زیادت، نقصان نه قبلوی،دلته پدی آیت کریمه او په نورو آیاتونو اودغه شان په احادیثوکښې چه کوم زیاتیدل راغلی دی نودَهغی نه مرادپه اوصافواوآثاروکښې زیاتې مراددې،نفسِ ایمان کښې زیاتی ندې مراد ،یا زیادت په اعتبارد٫مومن بهٖ٫سره دې.

نو دلته مطلب داشو چه صحابهٔ کراموچه اول عزم اوبیعت علی القتال کړې وؤ،نوهغه ئی هم دَایمان اثروؤ،اوبیائی چه دَرسول اللهﷺ په فیصلی راضی شول اوترک دَقتال ئی اوکړونودائی هم دَایمان اثروؤ،اول ئی چه عزم دَقتال وؤنوپه اثردَایمان کښې ئی اضافه شوې وه اوورستوئی چه کله صلح قبوله کړه نوبیائی هم په اثردَایمان کښې اضافه اوشوه،اومراد دَ اضافې نه انشراح صدرکښې اضافه ده.

﴿وَلِلَّهِ جُنُودُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ﴾ داجمله معترضه ده دَپاره دَبیان دَعلت دماقبل چه الله تعالیٰ فتحه درکوی،سکینه نازله وی،داپدی وجه چه جنوددَاسمانونو اودَزمکی دَالله تعالیٰ په قبضه کښې دی،اوکه دَالله تعالیٰ خوښه شی نودکفارودَهلاکت دَپاره به خپلی لښکری را اولیږی، لیکن تاسوته چه حکم کوی نودَخپل مصلحت اوحکمت په بناءباندی کوی ځکه چه الله تعالیٰ ﴿عَلِيمًا حَكِيمًا﴾دې،منجمله دهغی نه دَخپلوبندګانو ابتلاءاوامتحان کول دی.

| لِّيُدْخِلَ الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَٰتِ جَنَّٰتٍ تَجْرِى مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَٰرُ |
|---|
| دپاره ددې چه داخل کړی الله تعالیٰ مؤمنان سری اومؤمنانې ښځې جنتونوته چه بهیږی به دلاندې دهغونه ولې |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| خٰلِدِيْنَ | فِيْهَا | وَيُكَفِّرَ | عَنْهُمْ | سَيِّاٰتِهِمْ | وَكَانَ | ذٰلِكَ |
| همیشه به وی دوئ په هغوکښ اولږي(معاف)کړی دَدوئ نه ګناهونه ددوئ.اوده دغه(داخلیدل جنت ته) | | | | | | |
| عِنْدَ اللّٰهِ فَوْزًا عَظِيْمًا ۝ وَّيُعَذِّبَ الْمُنٰفِقِيْنَ وَالْمُنٰفِقٰتِ وَالْمُشْرِكِيْنَ | | | | | | |
| په نزددَالله ﷻ کامیابی لویه،اودَپاره دَدې چه عذاب ورکړی منافقانواومنافقاتوښځوته اومشرکانوته | | | | | | |
| وَالْمُشْرِكٰتِ الظَّآنِّيْنَ بِاللّٰهِ ظَنَّ السَّوْءِ عَلَيْهِمْ دَآئِرَةُ السَّوْءِ | | | | | | |
| اومشرکاتوښځوته چه ګمان کونکی دی په الله ﷻ باندې ګمان بد،پدوئ باندې دې ګردش بددَزمانې، | | | | | | |
| وَغَضِبَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ وَلَعَنَهُمْ وَاَعَدَّ لَهُمْ جَهَنَّمَ وَسَآءَتْ مَصِيْرًا ۝ | | | | | | |
| اوغضب دې دَالله ﷻ پدوئ اولعنت ئی دې پدوئ اوتیارکړې ئی دې دوئ دپاره جهنم.اوډیربدځائ دَورتلودې جهنم | | | | | | |
| وَلِلّٰهِ جُنُوْدُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَكَانَ اللّٰهُ عَزِيْزًا حَكِيْمًا ۝ | | | | | | |
| اوخاص الله ﷻ لره دی لښکرې دَاسمانواوزمکې.او الله ﷻ غالب حکمت والادې | | | | | | |

﴿لِّيُدْخِلَ الْمُؤْمِنِيْنَ﴾دا **دریمه ثمره ده** د صلح حدیبیه. شان نزول دَدې آیت دا دې چه کله دا آیاتونه «لیغفر لک الله الخ» نازل شول اونبی کریم علیه السلام صحابؤو ته بیان کړل نوهغوئ غرض اوکړو · هنيئا مريئًا لك يا رسول الله لقد بيّن الله لكَ ماذا يفعلُ بكَ، فماذا يفعل بنا؟يعنی ستا دَ پاره دې مغفرت مبارک وی، زمونږدَپاره څه دی؟ نودا آیاتونه نازل شو.

﴿وَالْمُؤْمِنٰتِ﴾ذکر دَتعمیم دپاره دې اودَپاره دَدفع دَتوهم،چه ښځې باقاعده اګرچه په دې سفرکښ نه وی شریکې لیکن بیا هم مستحق دَ دې انعام دی.

﴿وَيُكَفِّرَ عَنْهُمْ﴾دیکښ **خلورمی ثمری او انعام** بیان دې.چې ګناهونه به ورله الله ﷻ معاف کړی،

**فائده**: تکفیر دسیئاتو مقدم دې په اخال دجنت،یعنی ګناهونو معافي رومبې کیږی هغی نه بعد به جنت ته داخلول کیږی لیکن دلته جنت کښ داخلولو تذکره مقدم کړیشوه په تکفیر سیئات ،ځکه دا مطلوب اعلی دې.

﴿وَكَانَ ذَٰلِكَ عِندَ ٱللَّهِ فَوۡزًا عَظِيمٗا﴾ يعنى دَدنياظاهرى، مادى فتح لويه كاميابى نده بلكه لويه كاميابى دآخرت كاميابى ده چه انسان جنت ته داخل شى اودجهنم نه بچ شى ﴿ذَٰلِكَ﴾ اشاره دخول دَجنت نه ده، علامه شبيراحمدعثمانى رحمه الله فرمائى چې: څنې نقلي پيران يا مغلوب الحال بزرگان کله دا خبره کوي چې د جنت طلب هڅې يو فضول شې دې ، نو دې آيت نه معلومه شوه چې الله تعالى په نيز دا لوئ کمال دې.

﴿وَيُعَذِّبَ ٱلۡمُنَٰفِقِينَ﴾ دى آيتونو کښ دَ **کفارو او منافقينو حق کښ دَ صلح حديبيه اثراتو او نتائجو** بيان دې، چې هغه دا دي: (۱)تعذيب المنافقين والمشركين. (۲)اسلام خلاف دَدوئ تدابير ناکام ونامراد کيدل(۳)دَ الله تعالى غضب ولعنت مستحق کيدل، (۴)دخول جهنم.

دا **اوله ثمره** ده دَ چه صلح حديبيه اوديکښ نزول دَسکينى اونصرت دَمؤمنانوسبب دَ عذاب دې دَ منافقانو او مشرکانو، څکه چه په نزول دَسکينى اونصرت سره به دَاسلامى فتوحاتودروازه کولاوشى چه دادَمنافقانواودکافرانودَهزيمت اوشکست سبب دې. ﴿ٱلظَّآنِّينَ بِٱللَّهِ ظَنَّ ٱلسَّوۡءِ﴾ يعنى دَ الله تعالى په وعدو بدگمانى کوى، منافقانو بدگمانى دا وه چه مسلمانان چه عمرى ته ځى نوخامخابه جنگ پيښيږى اومسلمانان به ټول تباه کيږى، يوبه هم واپس نشى څکه چه دَوطن نه لرى، فوج کم، دَ دشمن وطن به وى نو مونږولې خپل ځانونه دَدوئ سره په هلاکت کښ واچوو، لکه په ورستوآيت(۱۲) کښ دَدې ذکردې چه: بل ظننتم الَن يقلب الرسول.....الخ، هم دى وجهې نه دوئ دَمسلمانانوسره عمرې ته نه لاړل.

اودکافرانوبدگمانى داوه چه دامسلمانان خوپه ظاهرکښ عمرې ته راغلى دى خوپه چل سره په بيت الله اوپه مکې باندې قبضه کوى

﴿عَلَيۡهِمۡ دَآئِرَةُ ٱلسَّوۡءِ﴾ دادَ کفارو په حق کښ دَ صلح حديبيى **دويم اثر** دې چى اسلام خلاف دَ دوئ منصوبى او پلانونه به شنډ شى، دى تشريح مطابق داپيشن گوئي ده د دې خبرې چې دوئ سوء ظن به په دوئ واقع کيږي او بدگمانئ مطابق معامله به ورسره کيږي ، دې آيت دويم تفسير داهم بيان شويدې چه داکفاروته بدعاء ده ﴿دَآئِرَةُ﴾ مصدردې په وزن دَاسم فاعل، يا اسم فاعل دې دَ 'دَارَ يَدُورُ' نه دائره خط محيط ته وائى، اطلاق ئى په کلام عرب کښ په حادثه باندى کيږى څکه چه حادثه هم سړى باندې احاطه کوى.

﴿وَلِلَّهِ جُنُودُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ﴾ دَسابقی جملې معترضې اعاده اوتکرار دې برائ تاکید، یا تکرارندې بلکه دلته دَجنودنه مراد جنود دَهلاکت دی ځکه دلته ﴿عَزِيزًا﴾ ذکر شو او په ماقبل کښې ورنه جنود دَنصرت مراد دی ځکه هلته ﴿عَلِيمًا﴾ ذکر شو

| إِنَّآ | أَرۡسَلۡنَٰكَ | شَٰهِدًا | وَمُبَشِّرًا | وَنَذِيرًا | لِّتُؤۡمِنُواْ |
|---|---|---|---|---|---|
| بیشکه مونږلیږلې ئی تهٔ ای محمده ﷺ گواهی کونکې اوزیرې ورکونکې اویره ونکې، چه ایمان راوړئ تاسو | | | | | |
| بِٱللَّهِ | وَرَسُولِهِۦ | وَتُعَزِّرُوهُ | وَتُوَقِّرُوهُ | وَتُسَبِّحُوهُ | بُكۡرَةً وَأَصِيلًا ⑨ |
| په الله جل جلاله اوپه رسول دَهغه اومدداوکړئ دَرسول اوعزت ئی اوکړئ، اوپاکی بیان کړئ دَالله جل جلاله سحر اوبیگاه، | | | | | |
| إِنَّ | ٱلَّذِينَ | يُبَايِعُونَكَ | إِنَّمَا | يُبَايِعُونَ | ٱللَّهَ يَدُ ٱللَّهِ فَوۡقَ |
| بیشکه هغه کسان چه بیعت کوی تاسره بیشکه دوئ بیعت کوی الله جل جلاله سره، لاس حمایت دَالله جل جلاله دَپاسه | | | | | |
| أَيۡدِيهِمۡۚ | فَمَن | نَّكَثَ | فَإِنَّمَا | يَنكُثُ عَلَىٰ نَفۡسِهِۦۖ | وَمَنۡ أَوۡفَىٰ |
| دلاس دَدوئ دې، پس چاچه بیعت مات کړونوبیشکه ضرر د ماتولو به په هم ده وی، اوچاچه وفااوکړه | | | | | |
| بِمَا | عَٰهَدَ | عَلَيۡهُ | ٱللَّهَ | فَسَيُؤۡتِيهِ | أَجۡرًا عَظِيمٗا ⑩ |
| په هغه چه وعده ئی کړیده په هغې الله جل جلاله سره نوزرده چه ورېه کړی ده ته الله جل جلاله اجرلوئ | | | | | |

﴿إِنَّآ أَرۡسَلۡنَٰكَ شَٰهِدٗا﴾ په دی کښې ترغیب دې نصرت دَنبی علیه السلام ته چې دومره عظیم الشان صفاتو والا پیغمبر مو درلیږلې دې نودَ دې مقصد هم دا دې چې تاسو پرې ایمان راوړئ او د هغه مدد او اطاعت ئي اوکړئ، ﴿شَٰهِدٗا﴾ دَالله جل جلاله په وحدانیة، یا په خپل امت یاپه تبلیغ دَسابقه انبیاءکرامو باندی گواه، دَدې آیت تفسیرپه احزاب وغیره هم تیرشویدې. ﴿لِّتُؤۡمِنُواْ بِٱللَّهِ﴾ خطاب صرف امت دې یعني رسالت مقصد دا دې چې تاسو په الله جل جلاله او په دې پیغمبر باندې ایمان راوړئ، او یا خطاب نبی اکرم ﷺ اوامت دواړو ته دې، نو دینه معلومه شوه چه حضور ﷺ په خپل رسالت باندې دَایمان راوړلو مکلف دې ﴿وَتُعَزِّرُوهُ وَتُوَقِّرُوهُ﴾

﴿وَتُسَبِّحُوهُ﴾ "تعزير" وئيلې کیږي نصرت او مدد ته ، "توقير" وئيلې کیږي تعظیم یعني ادب او احترام ته او "تسبيح" وئيلې کیږي پاکي بیانولو ته د نقائصو او د عیبونو نه،او ضمیر منصوب په درې واړو افعالو کښې راجع دې الله ته، او دَ تعزیر او توقیر نه مراددَالله ﷻ دَ دین اعانت اوتعظیم دې، او یا په ﴿وَتُعَزِّرُوهُ﴾او﴿وَتُوَقِّرُوهُ﴾کښې راجع دې نبی اکرم ﷺ ته او﴿وَتُسَبِّحُوهُ﴾ کښې الله ﷻ ته راجع دې،نو آیت کښې درې قسم حقوق بیان شو ،یودَ الله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ مشترکه حق چې هغه ایمان دې ، دویم خاص د رسول حقوق چې د هغه تعزیر او توقیر دې او دریم خاص د الله ﷻ حقوق چې هغه تسبیح او پاکي بیانول دي . ﴿ بُكْرَةً وَأَصِيلًا ﴾ کنایه ده دَعموم الاوقات نه یاورنه مرادمونځ دَسهار،مازیګردې. کمامرّفی سورة الاحزاب.

﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ يُبَايِعُونَكَ ﴾پدی کښې بشارت دې بیعت کونکو صحابؤو ته چه دَ حضورﷺ سره ئې په انتقام دَحضرت عثمانؓ بیعت کړې وو، تفصیل ئې نیزدې راروان دې ﴿إِنَّمَا يُبَايِعُونَ ٱللَّهَ﴾ ځکه چه په حقیقت کښې مقصوددَدوئ طاعت الهی باندې بیعت کول وو.

"بیعت" دَ بیع نه دې،بیعت کونکې هم دَخپل ځان اومال سودا دَ الله ﷻ او دَ هغه دَ رسول ﷺ سره کوی،ځکه داسی عهداومعاهدی ته بیعت وئیلې کیږی،حضورﷺ په زمانه کښې به دَ بیعت مختلف قسمونه وؤ ،بیعت علی الاسلام،بیعت علی الهجرة،بیعت علی الجهاد دغه رنګه بعض صحابه کرامو به ارکان دَاسلام باندې دَ پابندئ کولو ،هرمسلمان سره دَ خیر خواهئ کولو ،اودغه رنګه نورو امورو باندې بیعت کړې وؤ ، ډیراحادیث پدې شاهددی،نن صبا دَ طریقت دَ مشائخو سره بیعت کول هم جائز بلکه بهتر عمل دې کچرته شیخ ظاهر دَ شریعت سره مزین اومتبع سنت وی.

﴿يَدُ ٱللَّهِ فَوْقَ أَيْدِيهِمْ﴾ کنایه ده دَحمایت اونصرت دَالله ﷻ نه،نوداَماقبل"انمایبایعون الله"تاکیدشو"یدالله"دَمتشابهاتونه دې معني حقیقی ئې الله ﷻ ته معلومه ده،ظاهری او متعارفه معنی ورنه مرادکول صحیح نه دی ځکه چه دَدې نه ظاهری معنی اراده کول دَ مشبهه وؤ مذهب دې،نه دَاهل سنت والجماعت،نوځوک چه دَدې نه ظاهری متعارفه معنی مرادکوی او بیا ورته مذهب دَسلفووائی،نوداقول غلط دې،مکمل اومدلّل تفصیل دَدې مسئلی دَدې

تفسیر په جلد اول(ص۴۴۲)کښې وأخر متشابهات په تشریح کښې ملاحظه کړئ(والله یهدی الی الحق والی سواء الصراط).

﴿عَلَيْهُ ٱللَّهَ﴾ علیهٔ کښې ها ضمیر ضمیر مجرور مبنی علی الکسر وی خو دلته لفظ جلاله تفخیم سره ونیلو رعایت دَ دوجهې نه په دې ضمه راغلی ده .ځکه چې کسری په صورت کښې لام کښې تفخیم نشی راتلی او پُر نشی ویلې کیدې (روح المعانی).

| سَيَقُولُ لَكَ ٱلْمُخَلَّفُونَ مِنَ ٱلْأَعْرَابِ شَغَلَتْنَآ أَمْوَٰلُنَا |
|---|
| زردې چه وائی به تاته ورستوپاتې شوی دَبانډه چیانونه چې مشغوله (منع) کړی وُو مونږه مالونو خپلو |
| وَأَهْلُونَا فَٱسْتَغْفِرْ لَنَا ۚ يَقُولُونَ بِأَلْسِنَتِهِم مَّا لَيْسَ فِى قُلُوبِهِمْ ۚ |
| اوکډو خپلو نو بخنه اوغواړه مونږ لره،وائی دوئ په ژبو خپلو هغه خبرې چه نشته دې په زړونودوئ کښې. |
| قُلْ فَمَن يَمْلِكُ لَكُم مِّنَ ٱللَّهِ شَيْـًٔا |
| ته اوایه اې پیغمبره!پس څوک دې چه مالک به شی ستاسو دَ پاره دَ الله ﷻ دَطرفه دَ څه څیز |
| إِنْ أَرَادَ بِكُمْ ضَرًّا أَوْ أَرَادَ بِكُمْ نَفْعًۢا ۚ بَلْ كَانَ ٱللَّهُ بِمَا |
| کچرته اراده اوکړی الله ﷻ تاسو ته دَ څه تکلیف یا اراده اوکړی تاسو ته دَ څه فائدې ، بلکه دې الله ﷻ په هغه |
| تَعْمَلُونَ خَبِيرًۢا ⑪ بَلْ ظَنَنتُمْ أَن لَّن يَنقَلِبَ ٱلرَّسُولُ وَٱلْمُؤْمِنُونَ |
| چه تاسونی کوئ خبردار،بلکه گمان کوؤتاسوداچه هرګزبه راواپس نشی پیغمبرﷺاومؤمنان |
| إِلَىٰٓ أَهْلِيهِمْ أَبَدًا وَزُيِّنَ ذَٰلِكَ فِى قُلُوبِكُمْ وَظَنَنتُمْ ظَنَّ ٱلسَّوْءِ |
| کډو خپلو ته کله هم،او ښائسته کړې شوې وؤ دا گمان ستاسو په زړونو کښې اوگمان کولوتاسوگمان بد، |
| وَكُنتُمْ قَوْمًۢا بُورًا ⑫ وَمَن لَّمْ يُؤْمِنۢ بِٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ فَإِنَّآ |
| اووئ تاسوقوم هلاک کیدونکې،اوڅوک چه ایمان رانه وړې په الله ﷻ اوپه رسول دهغه نوبیشکه |

اَعْتَدْنَا لِلْكٰفِرِيْنَ سَعِيْرًا ﴿١٣﴾ وَلِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ يَغْفِرُ

مونږ تیار کړیدي دپاره د کافرانو اور د جهنم ، او خاص الله لره ده بادشاهي د اسمانونو او زمکو . مغفرت کوي

لِمَنْ يَّشَآءُ وَيُعَذِّبُ مَنْ يَّشَآءُ وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ﴿١٤﴾

چاته ئی چه خوښه شی اوعذاب ورکوی چاته ئی چه خوښه شی.اودې الله ﷻ بار بار بخښونکې ډیر رحم کونکی

﴿سَيَقُوْلُ لَكَ الْمُخَلَّفُوْنَ ﴾پدې آیاتونوکښ هغه قبائلو **منافقانوحالت** بیان دې چه صلح حُدیبیه کښ نه وؤشریک شوی،پدی آیت کښ د هغوئ **اول حالت** تذکره کیږی چه دوئ به دَخپل نه تللو دَپاره مختلفې حیلې بهانې او عذرونه لټوی اوتاته به ئې پیش کوی.

په ابتداء کښ تیرشویدی چه حضور ﷺ عمرې ته دَتللوپه وخت کښ دوئ ته هم دعوت ورکړو ، لیکن دوئ دَجنګ اومرګ دَخوف پوجه پاتی شول،نبی اکرام ﷺ اوصحابه کرام چه مدینه ته واپس راتلل او منافقانو ته اطلاع ملاو شوه، نو دَ خپلې بې عزتئ خوف ورسره پیدا شو ، نودَخپل عدم شمولیت دَپاره ئی بهانې تلاش کړې،لیکن الله ﷻ دَدې اطلاع حضور ﷺ ته مدینه ته رسیدلونه مخکښ ورکړه

مخلّف معنی ده ورستوپاتې کړې شوې،اودوئ خوپه خپل اختیارسره پاتې شوی وؤ ، نو متخلفون وئیل پکار وؤ لیکن ((مخلفون)) ورته ځکه اووئیلې شوچه دَدوئ پاتې کیدل اثر دَ قهر دَ الله تعالی دې،نودوئ په قهردَالله ﷻ سره پاتې کړې شوی وؤ.

﴿شَغَلَتْنَا أَمْوَالُنَا وَأَهْلُوْنَا ﴾یعنی زمونږعذرداوؤچه زمونږ کورونه خالی وؤ ، دَ مالونو او دَ بچو دَ حفاظت دَپاره بل څوک نه وؤځکه مونږپاتی شواوتاسره نه لاړو.﴿فَاسْتَغْفِرْ لَنَا ﴾په دروغه دَ دې اظهاردې چه مونږ صحیح مسلمانان یو ، خودغه قصور رانه شویدې اوس ته دَالله ﷻ نه زمونږ دَ پاره مغفرت اوغواړه.﴿يَقُوْلُوْنَ بِاَلْسِنَتِهِمْ﴾یعنی دوئ چه طلب دَمغفرت کوی اودَمال اولاد حفاظت عذرکوی دادروغ وائی.

﴿قُلْ فَمَنْ يَّمْلِكُ لَكُمْ ﴾یعنی دَنفع نقصان مالک خوصرف الله ﷻ دې،نودَمال،اولاد حفاظت څه عذرنه دې،اونه پدې حفاظت سره ضرر دفع کیدلې شی،که الله ﷻ اوغواړی

نوستاسو په موجود ګئ به ورته نقصان اورسوی. ﴿أَوْ أَرَادَ بِكُمْ نَفْعًا﴾ دینه مخکښ "اومن یمنع النفع" مقدر دي، یعنی چه الله ﷻ ورته نفع رسول غواړی نوستاسو عدم او مسافرت دَهغی مانع نشی کیدي.

﴿بَلْ كَانَ ٱللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرًا﴾ نوستاسو په باتی کیدلو باندی اوستاسو په مقصد باندی هم خبیر دي، چه دَهغې بیان دادي ﴿بَلْ ظَنَنتُمْ أَن لَّن يَنقَلِبَ ٱلرَّسُولُ﴾ چه نبی اکرم ﷺ او مؤمنان به هیڅ کله مدینه ته واپس رانشی او کافران به ئي په یو ځل ختم کړی نو په دی وجه تاسو پاتې شوی وئ، نه دَ هغه دروغو عذرونو په وجه، ﴿وَظَنَنتُمْ ظَنَّ ٱلسَّوْءِ﴾ ظن سابق ورنه مراددي چه "ان لن یقلب الرسول" اعاده ئی دَشدة توبیخ په وجه اوشوه ﴿قَوْمًا بُورًا﴾ بوراً جمع د "بائر" ده (هلاک کیدلو والا) یعنی تاسو دَ خپلې فاسدې عقیدې او بدنیتئ په وجه دَالله ﷻ د عذاب مستحق یئ.

﴿وَمَن لَّمْ يُؤْمِنۢ بِٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ﴾ تخویف اخروی دې، ﴿وَلِلَّهِ مُلْكُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ﴾ یعنی بادشاهی دَاسمانو او زمکې دَالله ﷻ په قبضه کښ ده، چاته معافی کول، یا عذاب ورکول هم دَهغه په اختیارکښ دی نو تاسو دهغه نه معافی اوغواړئ، مغفرت به درته اوکړی خکه ﴿وَكَانَ ٱللَّهُ غَفُورًا رَّحِيمًا﴾ بعض روایانو کښ دی چه بعضِ حضرات دَدغونه بیا ورستو تائب او مخلصان شوی وو.

| سَيَقُولُ ٱلْمُخَلَّفُونَ إِذَا ٱنطَلَقْتُمْ إِلَىٰ مَغَانِمَ لِتَأْخُذُوهَا |
|---|
| زرده چه وائی به ورستو پاتې کړې شوی کله چه لاړشئ تاسو غنیمتونو ته چه واخلئ هغه |
| ذَرُونَا نَتَّبِعْكُمْ يُرِيدُونَ أَن يُبَدِّلُوا۟ كَلَٰمَ ٱللَّهِ |
| «دابه وائی چه پریږدئ مونږ چه اتباع (لاړشو) اوکړو ستاسو، غواړی دوئ چه بدل کړی حکم دَالله ﷻ. |
| قُل لَّن تَتَّبِعُونَا كَذَٰلِكُمْ قَالَ ٱللَّهُ مِن قَبْلُ فَسَيَقُولُونَ |
| نه ورته اووایه هرګزمه ځئ تاسو مونږ سره، هم داسې وئیلی وو الله ﷻ مخکښ ددې نه نو زرده چه وائی به دوئ |

| بَلْ | تَحْسُدُوْنَنَا | بَلْ | كَانُوْا | لَا | يَفْقَهُوْنَ | اِلَّا | قَلِيْلًا ⑮ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| بلكه | حسدكوئ تاسو | مونږ .سره | (داسې | نده)بلكه | دوئ | نه پوهيږي | مگر كم |

﴿سَيَقُولُ ٱلْمُخَلَّفُونَ﴾دابيان دَ **دويم حالت** دې د هغه منافقانوته چه دَحضورﷺسره په سفر دَ عمرې کښې نه وؤشريک شوی، چه دوئ په سخته کښې مسلمانانو سره نه شريک کيږي خوکله چه ورته نفع خکاری نو بيا ځان دَپاره دَهغې مطالبه کوی،نوهم دې وجهې نه دوئ به ستاسو نه دَخيبر غنائمو کښې شرکت مطالبه کوی.

په رواياتوکښې راغلی دی چه کله نبی اکرم عليه السلام دَحديبيه نه واپس راغې نو الله تعالیٰ ورته په خيبرباندی دَحملی کولوحکم اوکړواودَخيبرفتح کولواودَهغی غنائمو ملاويدلووعده ئی ورسره هم اوکړه،اوپه وحی غيرمتلوسره ورته داحکم هم اوشوچه دَخيبرپه غنيمتونوکښې به صرف هغه خلق شريک وی چه په حديبيه کښې شريک وؤ،چه دَمکې دَغنيمتونوعوض اوګرځی. نوپه دغه وخت کښې متخلفين هم دَحضورﷺسره دَتللو اراده اوکړه ځکه چه خيبرکښې مالونه، باغونه ډيروؤ، امکان دَ فتحې ډيروؤ،اوخوف خطره نه وه نوځکه دوئ هم تيار شول، نو الله تعالیٰ منع کړل اوپيغمبر عليه السلام ته حکم اوشوچه چه دوئ ته اووايه چه تاسوهرګزيدی سفر کښې مونږسره نشئ تللې،که دوئ تاسوسره ځی نودَدې مطلب به داوی چه دوئ دَالله تعالیٰ په حکم بدله وی حالانکه دَالله تعالیٰ حکم بدليدونکې نه دې.

﴿إِلَىٰ مَغَانِمَ﴾مرادورنه دَخيبرغنائم دی﴿يُرِيدُونَ أَن يُبَدِّلُوا كَلَٰمَ ٱللَّهِ﴾کلام الله نه مرادهغه حکم دَالله تعالی دې په وحی غيرمتلوسره بيان شوې وو، چه غنائم دَ خيبر به صرف اهل حديبيه دَ پاره وی،﴿لَّن تَتَّبِعُونَا﴾ نفی پمعنی دَنهی ده،يعنی مه ځئ.﴿قَالَ ٱللَّهُ مِن قَبْلُ﴾ای من قبل ان تَهَيَّأ للخروج معنا(روح المعانی)

**فائده**: دا آيت په حجيت حديث او هغې وحی کيدلو باندې واضح دليل دې،ځکه چې مخکښې خو دَالله تعالیٰ کلام چرته هم دې باره کښې نه دې ذکر شوې.

﴿فَسَيَقُولُونَ بَلْ تَحْسُدُونَنَا﴾يعنی دوئ به وائی چه هيڅ دَالله تعالیٰ حکم نه دې بلکه تاسو مونږ سره حسدکوئ په مال غنيمت کښې،﴿بَلْ كَانُوا لَا يَفْقَهُونَ﴾ رددې ددوئ دَقول،چه دوئ نه

پوهيږي مګرپه صرف په أمورودُنيا .کچرته پوهيدلې نودوئ به دغه قول نه وې کړې،ځکه چه دَ صحابه کرامو مقصد خومال غنيمت حاصلول ندی چه تاسو سره حسد اوکړی،بلکه دَهغوئ ټول استعداد خوپه رضادَ الله ﷻ کښې استعمالیږی.

| |
|---|
| قُل لِّلْمُخَلَّفِينَ مِنَ الْأَعْرَابِ سَتُدْعَوْنَ إِلَىٰ قَوْمٍ أُولِي بَأْسٍ |
| اووايه ورستوپاتې کړې شوؤ ته دَ بانډه چيانو نه ، زرده چه را اوبه غوښتلې شئ تاسويوقوم ته چه خاوندان دَجنګ |
| شَدِيدٍ تُقَاتِلُونَهُمْ أَوْ يُسْلِمُونَ ۖ فَإِن تُطِيعُوا |
| سخت دی.جنګ به کوئ تاسوهغوئ سره يا دا چه دوئ اسلام راوړی. پس کچرته تاسوياخبره اومنله |
| يُؤْتِكُمُ اللَّهُ أَجْرًا حَسَنًا ۖ وَإِن تَتَوَلَّوْا كَمَا تَوَلَّيْتُم مِّن قَبْلُ |
| نودربه کړی تاسوته الله ﷻ اجرښائسته،اوکه تاسوبيااعراض اوکړولکه چه اعراض موکړې وو مخکښې |
| يُعَذِّبْكُمْ عَذَابًا أَلِيمًا ﴿١٦﴾ لَّيْسَ عَلَى الْأَعْمَىٰ حَرَجٌ وَلَا عَلَى الْأَعْرَجِ حَرَجٌ |
| نوعذاب به درکړی تاسوته عذاب دردناک.نيشته دې په ړوند باندې څه ګناه اونه په ګډباندې څه ګناه |
| وَلَا عَلَى الْمَرِيضِ حَرَجٌ ۗ وَمَن يُطِعِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ يُدْخِلْهُ |
| اونه په بيمارباندې ګناه(په ترک جهاد)اوخوک چه تابعداری اوکړی دَالله ﷻ اودَرسول دَهغه داخل به کړی |
| جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ ۖ وَمَن يَتَوَلَّ يُعَذِّبْهُ عَذَابًا أَلِيمًا ﴿١٧﴾ |
| هغه جنتونوته چه بهيږی به لاندې دَ هغې نه ولې، او څوک چه اعراض اوکړی نوعذاب به ورته ورکړی عذاب دردناک. |

﴿قُل لِّلْمُخَلَّفِينَ مِنَ الْأَعْرَابِ﴾يعنی متخلفين ته اووايه چه مواقع دَجنګونونورې هم راتلونکی دی چه په هغې کښې به تاسوته دَشرکت دعوت ملاویږی،اودَډيرسخت سخت قومونوسره به دَمسلمانانوجنګونه راځی،نوکه تاسوبيادَالله ﷻ اودَهغه دَرسول ﷺ اطاعت اوکړولواوپه جنګ کښې شريک شوی نوالله ﷻ به درته ډيرغنيمتونه درکړی اوکه دَاوسنی په شان مواعراض اوکړونوعذاب اليم به درکوی.

﴿إِلَىٰ قَوْمٍ أُولِي بَأْسٍ شَدِيدٍ﴾دَدې قوم په تعيين کښې اختلاف دې.

(۱) بعضِ وائی دَدې نه مراددَعربو قبائل لکه هوازن، ثقیف وغیره مراددی چه دَحنین په مقام کښې ورسره دَمسلمانانو جنګ شوې وؤ.

(۲) بعضِ وائی چه مرادورنه دَمسیلمة الکذاب اودَهغه ملګری دی، چه دَابوبکرصدیق په زمانه خلافت کښې ورسره جهادشوې وؤ، رافع بن خدیج فرمائی چه مونږبه داآیت لوستلو ، خو نه پوهیدلو چه دې نه څوک مراددی حتّی چه ابوبکرصدیق مونږ دَ بنی حنفیه (مسیلمة الکذاب ملګرو) سره دَجنګ کولودَپاره رااوغوښتلو مونږپوهه شوچه هم دوئ ورنه مراددی.

(۳) بعضِ وائی مرادورنه دَروم اوفارس خلق دی چه حضرت عمر ورسره جهادکړې وؤ لکه دَقادسیه جنګ، اودَیرموک، جنګ، اودَدوئ سره دَجنګ په نتیجه کښې مسلمانانوته ډیر مال غنیمت ملاؤشوې وؤ.

**فائده:** طیبی رحمه الله فرمائی چې دا آیت خلفاء ثلاثؤو ابوبکر، عمر اور عثمان رضی الله عنهم د خلافت حقیت دلیل دې؛ ځکه چې ((ستدعون)) کښې داعی یا نبی به وی یا غیر ، او اول احتمال نشی کیدې، ځکه نبی ته دَ (( قل لن تخرجوا معي ابدا ولن تقاتلو معي عدوا)) حکم وؤ، دویم احتمال په صورت کښې به یاعلی رضی الله عنه مراد وی، یا خلفاء ثلاثه، علی رضی الله عنه مراد نشی کیدې، ځکه چه هغه قتال خوارج او باغیانو خلاف وؤ، چې هغه مسلمانان وؤ او دلته ((او یسلمون)) نه معلومیږی چه دا جنګ به دَ کفارو خلاف وی ،لهذا دویم صورت متعین شو ،چې مراد ترینه خلافاء ثلاثهٔ دی ،بیا دَهغوئ په اطاعت باندې ((اجرا حسنا)) بشارت او عدم اطاعت باندې ((عذابا الیما)) وعید ذکر شو، چې دې نه د هغوئ خلافت حقیت طرف ته اشاره اوشوه (فتوح الغیب)

﴿تُقَٰتِلُونَهُمۡ أَوۡ يُسۡلِمُونَ﴾ قضیه مانعة الخلو ده او ((او)) تنویع دَپاره دې، یعنی یا به قتال وی ،یا به اسلام راوړی، که ((قوم)) نه بنی حنیفه او نور عرب قومونه مراد شی نو ((یسلمون)) خپله ظاهری معنی باندی محمول دې او که ترینه نور قومونه مراد شی نو بیا انقیاد په معنی کښې دې، نو دا اعتراض نشی کیدې چې بعض قومونو سره خو نه قتال شویدې، اونه هغوئ اسلام راوړې دې بلکه صلح ورسره شویده

﴿أَجْرًا حَسَنًا ﴾يعنى مال غنيمت،نصرت وغيره په دنياكښ. اوجنّت په آخرت كښې﴿ كَمَا تَوَلَّيْتُم مِّن قَبْلُ ﴾اى في الحديبية.

﴿ لَّيْسَ عَلَى ٱلْأَعْمَىٰ حَرَجٌ ﴾پدى كښ دمعذورينوبيان دې اوهغوئ ته تسلى ده چه دوئ دَ زجر مذكور نه مستثنى دى.

| |
|---|
| لَقَدْ رَضِيَ اللَّهُ عَنِ الْمُؤْمِنِينَ إِذْ يُبَايِعُونَكَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ فَعَلِمَ |
| يقيناراضى شوې دې الله ﷻ دَمؤمنانو(صحابؤ)نه كله چه بيعت ئى كولوتاسره لاندې دَونې نه نوعالم ووالله ﷻ |
| مَا فِي قُلُوبِهِمْ فَأَنزَلَ السَّكِينَةَ عَلَيْهِمْ وَأَثَابَهُمْ فَتْحًا |
| په هغه اخلاص چه دَدوئ په زړونوكښ وُونونازل ئى كړودَزړه اطمينان پدوئ اوبدله كښ ئى ورته ورکړه فتح |
| قَرِيبًا ۞ وَمَغَانِمَ كَثِيرَةً يَأْخُذُونَهَا ۗ وَكَانَ اللَّهُ عَزِيزًا حَكِيمًا ۞ |
| نزدې(فتح خيبر)اوغنيمتونه دير چې اخلي به دوئ هغه،او الله ﷻ غالب حكمت والادې |

﴿ لَّقَدْ رَضِيَ ٱللَّهُ عَنِ ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴾دادَسورة **دويمه حصه** ده چه پكښ دَاولې حصې دَ مضامينو اعاده كيږى،او دې آيتونو كښې صحابه كرامو باندې د انعاماتو بيان دې ،او دا **اول انعام** دې چې رضا الهي او د ريشتني مؤمن والي بشارت او سند دې هغه صحابؤو ته چه په بيعت الرّضوان كښ شريک شوى وؤ.

بيعت الرضوان دَحديبيه په مقام كښ دَهغه بيعت نوم دې چه حضورﷺ دَصحابؤنه دَيوې ونې لاندې اغستې وؤپه هغه وخت كښ كله چه نبى كريمﷺته داخبر ملاؤ شو چى كافرانو حضرت عثمان رضى الله شهيد كړو نونبى ﷺ صحابه كرام راجمع كړل،اودَعثمانؓ په انتقام اغستلوباندى ئى ورنه بيعت واغستلو.دې بيعت ته بيعت الرضوان په دې وجه وئيلې كيږى چه پديكښ شريک صحابؤو ته الله ﷻ دَخپل رضااعلان اوكړو.

صحيحنو كښ دَجابرؓنه روايت دې چه دَحديبيه په موقع كښ حضورﷺمونږته او فرمائيل "انتم خيراهل الارض"په بل روايت كښ راغلى دى چه"لايدخل النّاراحدٌممن بايع تحت الشجرة"يعنى چه كوموخلقودَ ونې لاندې دَحضورﷺسره بيعت كړې وؤپه هغوئ كښې به هيڅ

ځوک هم جهنم ته نه داخلیږي.دابشارتونه په دې دلالت کوي چه ددې ټولو حضراتو خاتمه به په ایمان اوعمل صالح باندي وي.نوپه دې آیت کښې دَشیعه ګانو په غلطې عقیدې باندې واضح رد دې چه په ابوبکرصدیق رضي الله عنه اوعمرفاروق رضي الله عنه وغیره صحابوؤ باندې دَ کفر او نفاق الزام لګوي، او دا خبره هم په اتفاق دَ مؤرخینو ثابته ده چه خلفاءاربعه په دې بیعت کښې موجود وؤ حضرت عثمان رضي الله عنه موجودنه وؤلیکن دَهغه دَطرفه حضور ﷺ بیعت کړې وؤچه خپل ښې لاس ئې په چپ لاس باندې کیښودلو اوونې فرمائیل چه دابیعت دپاره دَعثمان رضي الله عنه دې.

﴿فَعَلِمَ مَا فِي قُلُوبِهِمْ﴾ یعني دَهغوئ په زړونو کښې چه کوم دَصدق،اخلاص اودَوفاجذبات وؤ الله تعالیٰ په هغې عالم وؤ،بعض وائي چه دَ﴿مَا فِي قُلُوبِهِمْ﴾ نه مرادصلح اودَهغې دَشرائطونه چه کوم غم،او اضطراب دَصحابوؤکرامو زړونو ته رسیدلې وؤ،مراددې،اوداقول زیات مناسب دې دَورستو﴿فَأَنزَلَ ٱلسَّكِينَةَ عَلَيْهِمْ﴾سره،دا دویم انعام دې شرکائ حدیبیه دپاره چه دَ صبر او اتباع دَ رسول سکینه ورباندې الله تعالیٰ نازله کړله(بحرالمحیط).

﴿وَأَثَٰبَهُمْ فَتْحًا قَرِيبًا﴾ دادریم انعام دې،چه الله تعالیٰ ورله نقده فتح او ډیر غنیمتونه ورکړي نزدې فتح نه مرادفتح دَخیبرده چه صرف دوه میاشتې ورستوفتح شو،چه دا یوه لویه صوبه وه اودَیهودیانو مرکزوؤ،﴿ وَمَغَانِمَ كَثِيرَةً ﴾ یعني غنیمتونه دَخیبرچه دومره کثیرمال غنیمت مخکښې مسلمانانو ته نه وؤملاؤشوې، دکجورو باغونه. دَ تیلو، ګبین، ذخائر، او دَ ګډو بیزو رمې،.او دَ اوښانو قطارونه او دَ دې نه علاوه نقدې روپئ، اوزیورات په کثرت سره ملاؤ شول . ﴿وَكَانَ ٱللَّهُ عَزِيزًا حَكِيمًا﴾نوپه خپل زوراوحکمت سره ئې دَحدیبي دَ نقصانونو معاوضه صحابوؤ ته ورکړه.

| وَعَدَكُمُ ٱللَّهُ مَغَانِمَ كَثِيرَةً تَأْخُذُونَهَا فَعَجَّلَ لَكُمْ هَٰذِهِۦ وَكَفَّ |
|---|
| وعده کړیده تاسو سره الله تعالیٰ دَغنیمتونو ډیروچه تاسوبه ئې اخلئ نوزر ئې درکړل تاسو ته دا (دَخیبرغنائم)اومنع ئې کړل |
| أَيْدِيَ ٱلنَّاسِ عَنكُمْ وَلِتَكُونَ ءَايَةً لِّلْمُؤْمِنِينَ وَيَهْدِيَكُمْ صِرَٰطًا |
| لاسونه دَخلقوستاسو نه ، اوچې اوګرځي دامنع کول دلیل دَ پاره دَ مؤمنانو او روان کړی تاسو په لارې |

| مُسْتَقِيمًا ⑳ وَّأُخْرَىٰ لَمْ تَقْدِرُوا عَلَيْهَا قَدْ أَحَاطَ اللَّهُ بِهَا ۚ |
|---|
| برابري، اونور داسې غنيمتونه چه نشته دې قدرت ستاسو دَهغې په اغستلو ،بيشکه احاطه کړېده الله جَلَّ جَلاله په هغې، «ستاسو لپاره» |

| وَكَانَ | اللَّهُ | عَلَىٰ | كُلِّ | شَيْءٍ | قَدِيرًا ㉑ |
|---|---|---|---|---|---|
| اودې | الله جَلَّ جَلاله | هرځه | باندې | قدرت | لرونکې |

﴿وَعَدَكُمُ اللَّهُ مَغَانِمَ كَثِيرَةً﴾ دا **خلورم انعام** دې، دَ ډېر غنيمتونو نه مراد دلته دَ جمهورو مفسرينو په نيزد هغه تمام غنيمتونه دی چه ترقيامته پورې به مسلمانانو ته حاصليږي «روح المعاني». ﴿فَعَجَّلَ لَكُمْ هَٰذِهِ﴾ اشاره دَخيبرغنيمتونو ته ده. ﴿وَكَفَّ أَيْدِيَ النَّاسِ﴾ دَ «الناس» نه مراد(۱) يادَخيبر خلك اودَهغوحليفان بنی غطفان اوبنی اسدوغيره دی چه دَاهل خيبر دَ نصرت دَپاره راغلی وؤالله جَلَّ جَلاله ئې په زړونوكښې رعب واچولواودَمسلمانانوسره ئې جنگ اونکړو(۲)ياورنه مرادکفارمکه دی چه دَحديبيه په مقام کښې الله جَلَّ جَلاله دَصلح صورت پيداکړواوجنگ اونشو(۳) بعضِ وائی چه مرادورنه يهوددی،چه کله حضورﷺاوصحابه حديبيه اوخيبرته رااُووتل نودوئ دَصحابؤپه اهل وعيال باندی دَحملې کولواراده اوکړه «زاد المسير، کشاف،روح وغيره».

﴿وَلِتَكُونَ آيَةً لِلْمُؤْمِنِينَ﴾ حکمت او علت بيانيږي د فتح خيبر، واؤ حرف عطف دې او معطوف عليه ورله مقدر دې ، چې هغه "لِغايات و حِكَمٍ" دي ، لام دپاره د تعليل دې ،او معطوف او معطوف عليه دواړه علت دي د پاره «فعجل لكم هذه» او ضمير مستتر په «لتكون» كښې راجع دې «هذه» ته ،او يا د «فعجل لكم هذه» او «وكف ايدي الناس عنكم» دواړو مجموعې دپاره علت دې او دې تقدير باندې ضمير مستتر د "فجعل اوكف"مجموعی نه كوم امور اوخصال حاصليږی هغی ته راجع دې (التحرير والتنوير)، اي: فعجل لكم هذه وكف ايدي الناس عنكم لغايات وحِكَم ولتكون اية...

«اية » نه مراد يا (۱)علامت دی، يعنی فتح دَخيبر وغيره دا علامت اونشانی ده مؤمنانو دَ پاره دَ فتح دمكى. (۲)او يا دليل دې يعنی دا دليل دې مؤمنانو دپاره چی الله جَلَّ جَلاله نصرت اومدد دَ دوئ شامل حال دې.

﴿وَيَهۡدِيَكُمۡ صِرَٰطٗا مُّسۡتَقِيمٗا﴾ دابل علت اوثمره ده ،هدايت نه مراد اضافه او ادامت دی.
يعنی الله ﷻ په وعده مونور هم يقين راشي او په خپل دين باندی تا دم مرګ مستقيم پاتی شي، دادَشرکاء بيعت رضوان دپاره په ايمان حالت باندی مريدلو بشارت دی.

﴿وَأُخۡرَىٰ لَمۡ تَقۡدِرُواْ عَلَيۡهَا﴾ دا **پنځم انعام دي** ((اخری)) مبتدا دی ((لم تقدرو عليها)) ورله صفت دی يعنی نور داسی ډير غنيمتونه دی چه هغی حاصلول ستاسود وس کارنه دی، اوتاسو په هغی قادر نه يئ او مراد ورنه د روم فارس غنيمتونه دی

﴿قَدۡ أَحَاطَ ٱللَّهُ بِهَا﴾ اي لاجلکم ، دا خبر دی. يعنی الله ﷻ تاسوله ښاتلی دی او تاسوله بو دَ هغی حصول قدرت درکړی ځکه چی الله ﷻ ته څه ګرانه نده.بعضو﴿لَمۡ تَقۡدِرُواْ عَلَيۡهَا﴾ معنی دا کړيده چی تاسو خيال او اندازی دَ هغه غنيمتونو نه بهر دی، ((قد احاط الله بها))بس الله ﷻ ته دَهغی پته او علم دی. اول صورت کښی احاطه نه مراد احاطه قدرت او دويم صورت کښی احاطه علمی ده،

| وَلَوۡ قَٰتَلَكُمُ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ لَوَلَّوُاْ ٱلۡأَدۡبَٰرَ ثُمَّ لَا يَجِدُونَ |
|---|
| اوکه جنګ کړی وی تاسوسره کافرانوخامخاګرځولي به وی دوئ شاګانی(شکست خورده)بيابه نه وموندلي دوئ |
| وَلِيّٗا وَلَا نَصِيرٗا ۝ سُنَّةَ ٱللَّهِ ٱلَّتِي قَدۡ خَلَتۡ مِن قَبۡلُۖ وَلَن تَجِدَ |
| دوست اونه مددګار.داعادت دَالله ﷻ دی هغه چه يقيناتيرشويدی مخکښ،اوهرګزبه ته اونه مومندی |
| لِسُنَّةِ ٱللَّهِ تَبۡدِيلٗا ۝ وَهُوَ ٱلَّذِي كَفَّ أَيۡدِيَهُمۡ عَنكُمۡ وَأَيۡدِيَكُمۡ |
| دَعادت دَالله ﷻ دپاره بدليدل،اوالله ﷻ هغه ذات دی چه منع ئي کړل لاسونه دَهغوئ ستاسونه اولاسونه ستاسو |
| عَنۡهُم بِبَطۡنِ مَكَّةَ مِنۢ بَعۡدِ أَنۡ أَظۡفَرَكُمۡ عَلَيۡهِمۡۚ وَكَانَ ٱللَّهُ |
| دَهغوئ نه په مينځ دَمکي کښ ورستودَدينه چه غلبه ئی درکړيوه تاسوته په هغوئ،اودی الله ﷻ |
| بِمَا تَعۡمَلُونَ بَصِيرًا ۝ |
| په هغه عملونوچه تاسوئی کوئ ليدونکی. |

﴿وَلَوْ قَٰتَلَكُمُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟﴾ خطاب مؤمنانو ته دي، اودکافرانو نه مراداهل مکه دی او مطلب دادې چه په حدیبیه کښ چه تاسو الله ﷻ دَقتال نه منع کړئ نو په دې وجه نه ، چې ستاسو نصرت ئی نه کولو ،بلکه د دې ځان له جدا حکمت وو ، کچرته هغوئ تاسو سره قتال کړې وې اوصلح ئی نه وې کړې نوشکست به ورته ملاویدلو ،اوبیابه ئی هیڅ څوک مددگار او کارساز نه وو ،ځکه چی دَ هغوئ مغلوبیت مقتضایات موجود وو ،﴿سُنَّةَ ٱللَّهِ ٱلَّتِى﴾ دا د کفارو مغلوبیت علت بیان دې؛یعني دوئ به ځکه مغلوبه کیدلې چی کفر باطل او اسلام حق دې او دا دَ الله ﷻ سنت جاریه قدیمه دې چې حق له غلبه ورکوی او باطل مغلوبه وی، کماقال الله کتب الله لاغلبن انا ورسلي لیکن منع وقتال ډیر حکمتونو باندی مبنی دې.

﴿وَهُوَ ٱلَّذِى كَفَّ أَيْدِيَهُمْ عَنكُمْ﴾دې آیت کښ دَ **منع قتال حکمتونه** بیانیږی ،« کف ایدیهم عنکم » **اول حکمت** دې، یعنی کچرته جنگ شوی وی نو خامخا به خون ریزی کیده،او دَ مسلمانانو طرف نه مړی کیدل او قوت کښ به یی څه نه څه ضعف راتلو نو الله ﷻ دَدوئ مجتمع قوت بحال پریخودو او منتشر کیدو نه یی بچ اوساتلو ﴿وایدیکم عنهم﴾دا **دویم حکمت** دی دیکښ دی طرف ته اشاره که تاسو هغوئ سره پنجه آزمائی کړې وې نو یو اوگد او طویل وخت به یی اخستې وې اودَجنگ سترې په هغې مستزاد وې ،خوالله ﷻ په تاسو احسان اوکړوچې دَتصادم نه یی هم بچ کړئ اوفتح قریب اوعاجله ئي درله هم درکړه .

پدی آیت کښ هغې واقعی ته اشاره ده چه په صحیح مسلم کښ دَحضرت انس ﷺ نه روایت دې چه مونږدَحدیبې په مقام کښ وؤچه دکافرانواتیا(۸۰) مسلح کسان دَجبل تنعیم طرف نه حدیبیه ته راغلل پدی نیت چه که دوئ ته موقع ملاؤشی نوپه دهوکې سره به په نبی کریمﷺاوپه صحابه کراموباندې حمله اوکړی،لیکن صحابهٔ کراموهغوئ اونیول اوبارگاه رسالت ته ئی حاضرکړل،چونکه جرم ئی شدیدوؤنوسزاورته ورکول صحیح وؤلیکن دَدې باوجود نبی کریمﷺازادکړل هیڅ ئی ورته اونه وئیل،چنانچه هم دا عمل دَ صلح سبب اوگرځیدلو ، نوپه آیت کریمه کښ هم دغه واقعی طرف ته اشاره ده.

﴿بِبَطْنِ مَكَّةَ﴾مرادورنه حدیبیه ده ځکه چه دَحدیبې بعضِ حصه په حرم مکه کښ داخله ده،﴿وَكَانَ ٱللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرًا﴾الله ﷻ ستاسو کارونه لیدل او دهغې نتائجو نه هم خبر وو ،چی

هغه دَحکمت د تقاضی خلاف وؤ،نودې وجهې داسې څه موقع پیدا نه کړه چه قتل وقتال ته ترینه نوبت راشی.

| |
|---|
| هُمُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَصَدُّوْكُمْ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَالْهَدْيَ |
| دا (کافران)هغه دی چه کفرئی کړیدې اومنع کړی یئ تاسودَمسجدحرام نه اومنع کړی ئی دی څناوردَقربانئ |
| مَعْكُوْفًا اَنْ يَّبْلُغَ مَحِلَّهٗ ۭ وَلَوْلَا رِجَالٌ مُّؤْمِنُوْنَ وَنِسَاۗءٌ |
| تړلی شوی،دَدینه چې اورسیږی ځائ خپل ته، اوکچرته نه وې سړی مؤمنان اوښځې |
| مُّؤْمِنٰتٌ لَّمْ تَعْلَمُوْهُمْ اَنْ تَطَــُٔوْهُمْ فَتُصِيْبَكُمْ |
| مؤمنانې، چې نه دي معلوم تاسو ته هغوئ داچه دَخپولاندې به ئی کړئ نواوبه رسیږی تاسونه |
| مِّنْهُمْ مَّعَرَّةٌۢ بِغَيْرِ عِلْمٍ ۚ لِيُدْخِلَ اللّٰهُ فِيْ رَحْمَتِهٖ |
| دَهغوئ په وجه نقصان په بی خبرئ سره،دَپاره دَدې چه داخل کړی اللهﷻ په رحمت خپل کښ |
| مَنْ يَّشَاۗءُ ۚ لَوْ تَزَيَّلُوْا لَعَذَّبْنَا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْهُمْ |
| هغه څوک چه ئی اوغواړی،کچرته جداشوي وې دامؤمنان نوخامخابه عذاب ورکړې وې مونږکافرانوته دَدوئ نه |
| عَذَابًا اَلِيْمًا ۝ |
| عذاب دردناک |

﴿هُمُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا﴾دیکښ دَ اهل مکۀو دَ مغلوبیت مقتضیات بیانیږی،یعنی کچرته حدیبیه په مقام کښ دوئ مسلمانوسره جنګ کړې وې نو الله ﷻ به مسلمانانو له غلبه ورکړې وې او دوئ به یی مغلوبه کړې وې ،ځکه چی دوئ د مغلوبیت اسباب هلته هم موجود وؤ،چی هغې کښ څه اسباب دادی(۱)﴿کفروا﴾دوئ کافران دی،(۲) (( وصدوکم ))دوئ ظالمان او سرکشه وؤ،تاسو ئې په ناحقه دَ مسجد حرام نه منع کړئ اوکوم دَقربانئ څاروی راوستی وؤ هغه یی پرې نخول. ﴿وَٱلْهَدْىَ﴾ عطف دې په"کم"ضمیرمنصوب باندې په ﴿وَصَدُّوكُمْ﴾ کښ ای وصدّوکم والهدیَ،"هدی" هغه څناورته وائی چه حاجی یامعتمرئی دَخپل ځان سره حرم ته

بوځی چه نیت دَذبح ورستودَفراغت دَمناسکونه.﴿أَن يَبْلُغَ مَحِلَّهُۥ﴾ بدل اشتمال دي دَ﴿وَٱلْهَدْىَ﴾ په،﴿مَحِلَّهُۥ﴾ هغه ځائ چه حاجی یامعتمرپکښ دَقربانئ ځناورذبح کوی،کوم چه په منٰی کښ دَمنحرپه نوم باندی موسوم دي.

﴿ وَلَوْلَا رِجَالٌ مُّؤْمِنُونَ ﴾پدی کښ **دریم حکمت** دَ منع دَ قتال نه په حدیبیه کښ ذکرکیږی چه الله ﷻ تاسودَقتال نه ځکه منع کړئ چه په مکې کښ مؤمنان سرِی اومؤمنانې ښځې اوسیدلی چه خپل ایمان ئی پټ کړې وۀ،نوکه جنګ موکړې وې نوهغوئ به موهم په لاعلمئ کښ قتل کړې وې نوداخبره به تاسوته تکلیف ده وه.

«رجال مؤمنون» مبتدادي او خبر يې محذوف دې، چې موجودون دي ، أى رجال مؤمنون و نساء مؤمنات موجودون ﴿لَّمْ تَعْلَمُوهُمْ﴾دا صفت ثانی دي دپاره د «رجال» او«نساء»،او عدم علم عام دي ،اشخاص او دَهغوئ ایمان دواړه ترینه مراد دی یعنی مکه کښ ځنی کسان داسی دی چی هغوئ ایمان راوړې دي ، تاسولي اګر چه پیژنئ خو د هغوئ ایمان علم درته نشته ، ځنی کسان داسې دی چه تاسو به نه دهغوئ ایمان نه واقف ئي او نه دَهغوئ خاندان نه ،چه څوک دی ،﴿أَن تَطَـُٔوهُمْ﴾ وطء معنی ده خپو لاندې کول ،مراد ترینه دلته بې خبرئ کښ قتلول دی، دا پوره جمله بتاویل مصدر بدل الاشتمال دې دَ«رجال» نه یعنی که دغه مؤمنانواو مؤمناتو د قتل خطره نه وې چې دَ کومو ایمان راوړو تاسوته پته نشته او هغوئ ایمان راوړیدي، جواب دَ لولا محذوف دي چه لأذن لکم دي،یعنی که دغه خبره نه وې نو تاسوته به مکې ته دَ داخلیدلو اجازت او دَ قریش مکۆو سره دَجنګ اجازت درکړې شوې وۀ،

﴿فَتُصِيبَكُم مِّنْهُم مَّعَرَّةٌۢ﴾ معرة په اصل کښ عیب ته وائی ،دلته ورنه مرادکفاره او یا دَ کافرانو پیغور دې، یعنی که تاسوپه بې خبرئ کښ مسلمانان قتل کړې وې نوکفاره به درباندې راغلې وه، او دغه رنګه کافرانوبه تاسوته پیغوردرکولوچه اوګورئ خپل مسلمانان رونړه ئی قتل کړل.

﴿لِّيُدْخِلَ ٱللَّهُ فِى رَحْمَتِهِۦ﴾دا **څلورم حکمت** دي چه الله ﷻ تاسوځکه دَقتال نه منع کړئ چه دَ بعضِ خلقو مسلمانیدل مقدر وۀ،الله ﷻ دَهغوئ په نصیب کښ ایمان راوړل مقررکړی وۀ

کچرته قتال موکړې وې نوهغوئ به بی ایمانه دَدنیانه تلی وو. اوداواضحه ده چه دَصلح نه ورستو په دووَ کلونو کښې په کثیرتعداد سره خلق مسلمانان شول. دَصلح حدیبیه په وخت کښې دَ مسلمانانو تعداد څوارلس یاپنځلس سوه وو او چه دوه کاله ورستو مکه فتح کیدله نو مسلمانان لس زره وو. ﴿لَوْ تَزَيَّلُوا﴾ پمعنی دَ "تمیّزوا" دې، یعنی کچرته په مکه کښې اباد مسلمانان دَ کافرانو نه جدا اوسیدلې نومونږ به کافرانوته دَمسلمانانو دَلاسه درناک عذاب ورکړې وې.

| إِذْ جَعَلَ الَّذِينَ كَفَرُوا فِي قُلُوبِهِمُ الْحَمِيَّةَ حَمِيَّةَ الْجَاهِلِيَّةِ فَأَنزَلَ اللَّهُ |
|---|
| کله چه (ځکه چه) اوګرځوؤکافرانوپه زړونوخپلوکښې غیرت، غیرت دَجاهلیت نونازل کړواللهﷻ |
| سَكِينَتَهُ عَلَىٰ رَسُولِهِ وَعَلَى الْمُؤْمِنِينَ وَأَلْزَمَهُمْ كَلِمَةَ التَّقْوَىٰ |
| اطمینان خپل په رسول خپل باندې اوپه مؤمنانوباندې اولازم‌کلکه‌ئې کړه دوئ سره کلمه دَتقوی |
| وَكَانُوا أَحَقَّ بِهَا وَأَهْلَهَا ۚ وَكَانَ اللَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمًا ﴿٢٦﴾ |
| اووؤدوئ زیات حقداردَدې اولائق ئې وؤ، اواللهﷻ په هرڅیزباندې ښه پوهه دې |

﴿إِذْ جَعَلَ الَّذِينَ كَفَرُوا﴾ دیکښې د **کفارو مغلوبیت یو بل مقتضی** ذکر کیږی ځکه چې دوئ صلح حدیبیه په موقع باندې انتهائی ضد اوهټ دهرمی مظاهره کړی وه، حتی که چې بسم الله الرحمن الرحیم او دَنبیﷺ نو مبارک سره رسول الله لیکل یې برداشت نکړو، اودَدوئ په مقابله کښې نبیﷺ او مؤمنانو د انتهائي تحمل مظاهره اوکړه، او ضد جواب په ضد سره ورنکړو، حالانکه دا دَ ډیر لوئ امتحان ساعت وؤ، خو اللهﷻ خپل فضل معامله دوئ سره اوکړه،

﴿حَمِيَّةَ الْجَاهِلِيَّةِ﴾ بدل دي دَ "الحمية" نه چه مونږ به مسلمانان مکې ته پری نګدو، اود غه شان دَ صلح په شرائطو کښې ئې هم دَ جاهلیت مظاهره وکړه چه "بسم الله الرحمن الرحیم" مه لیکه، او "محمّد رسول الله" مه لیکه وغیره. ﴿وَأَلْزَمَهُمْ كَلِمَةَ التَّقْوَىٰ﴾ کلمة التقوی نه مراد بعض مفسرینو دَ رسول کریم صلی الله وسلم اطاعت اغستې دې یعنی اللهﷻ ورته په دی سخته موقعه باندی دَنبیﷺ اطاعت او د حکم تعمیل توفیق ورته ورکړو، حالانکه صحابه کرام ډیر زیات غصه او پریشان نه وؤ (تفسیر ماجدي)

عامو مفسرينو دينه مراد كلمه لااله الاالله اغستى ده ،يعنى الله ﷻ ورته دَانعام په طور ايمان او په لا اله الاالله باندې ثابت قدمي نصيبه اولازمه كړه چې داخاتمه بالخير اووبالايمان ضمانت او خبرصادق دي.

﴿وَكَانُوٓا أَحَقَّ بِهَا﴾ كلمة التقوىاول تفسير مطابق مطلب يې دادې چې دوئ شايان شان دا وو چې دوئ اطاعت د رسول كړې وې ،ځكه چې اطاعت كول دَ دوئ علامت وو، اودَنبى ﷺ حقيقي جان نثاران وو، دويم تفسير مطابق مطلب دادې چې الله ﷻ په علم كښې هم دا خلق دَ دې كلمې مستحق او لائق او اهل وو،نو ځكه يې په دنيا دَخپل نبى صحبت دپاره دوئ انتخاب اوكړو ،اوآخرت كښې به ورله دَدې اجر وركوى ﴿وَكَانَ ٱللَّهُ بِكُلِّ شَيۡءٍ عَلِيمٗا﴾نو په حكمتونو اورازونو دَصلح باندې هم پوهه دې.

| لَّقَدۡ صَدَقَ ٱللَّهُ رَسُولَهُ ٱلرُّءۡيَا بِٱلۡحَقِّۖ لَتَدۡخُلُنَّ ٱلۡمَسۡجِدَ ٱلۡحَرَامَ |
| --- |
| يقيناًربښتياخودلى دې الله ﷻرسول خپل ته خوب په حقه سره،خامخابه داخليږئ تاسومسجدحرام. ته |
| إِن شَآءَ ٱللَّهُ ءَامِنِينَ مُحَلِّقِينَ رُءُوسَكُمۡ وَمُقَصِّرِينَ لَا تَخَافُونَۖ فَعَلِمَ |
| انشاءالله په امن سره خريونكى دَسرواو نو خپلو.او لنډه وونكى،نه به يريږئ دَدشمن نه،نوعالم وو الله ﷻ |
| مَا لَمۡ تَعۡلَمُواْ فَجَعَلَ مِن دُونِ ذَٰلِكَ فَتۡحٗا قَرِيبًا ۝ هُوَ ٱلَّذِيٓ |
| په هغه څه چې نه وئ خبرتاسو،نوويئ گرځوله مخكښې دَداخليدونه مكې ته فتح قريبه الله ﷻ هغه ذات دې |
| أَرۡسَلَ رَسُولَهُۥ بِٱلۡهُدَىٰ وَدِينِ ٱلۡحَقِّ لِيُظۡهِرَهُۥ عَلَى ٱلدِّينِ |
| چه راليږلې ئى دى رسول خپل په هدايت سره اوپه دين حق سره دپاره دَدې چه غالب ئى كړى په دينو |
| كُلِّهِۦۚ وَكَفَىٰ بِٱللَّهِ شَهِيدٗا ۝ |
| ټولو، اوكافى دې الله گواه. |

﴿لَّقَدۡ صَدَقَ ٱللَّهُ رَسُولَهُ﴾ داجواب دَشبهې دې،په ابتداءكښې تيرشويدى چه حضور ﷺ خوب ليدلې وؤچه مونږمكې ته تلى يوؤعمره موكړيده بعضِ صحابؤحلق كړيدې بعض

قصر، خوب دَپیغمبرﷺ خووحی وی لیکن اوس دلته په حدیبیه کښې خوپه ظاهرکښې دَ دې خلاف معلومیږی، اودغه رنګه صحابه کرامﷺ چه دَحدیبیه نه راواپس شول عمره ئې اونکړه نو منافقانو اعتراض اوکړوچه وَ الله ما حلقنا و لا قصرنا و لا رأینا المسجد الحرام ' نو الله ﷻ دا آیت نازل کړو، چه الله ﷻ به دَخپل رسول ﷺ خوب ریشتنې کوی. خامخابه مسجدحرام ته داخلیږی، اوبنه په امن، اطمینان سره به عمره کوی.

﴿إِن شَآءَ ٱللَّهُ﴾ دادَشک دَپاره نه دې بلکه(۱) دَتاکیداوتحقیق دپاره دې(۲)، ابوعبیده رحمه الله فرمائی "ان" یعنی دَ "اذ" سره دې یعنی چه کله الله ﷻ اوغواړی(۳) دغه رنګه پدی کښې تعلیم دې بندګانوته چه په هرکارکښې ان شاءالله وائی(۴) بعضِ وائی داعلی وجه الحکایة، ذکر شویدې چه په خوب کښې حضورﷺ ته دغه رنګه وئیلی شوی وؤ، ﴿ءَامِنِينَ﴾ یعنی دَدشمن نه به په امن کښې یئ، ﴿مُحَلِّقِينَ رُءُوسَكُمْ وَمُقَصِّرِينَ﴾ یعنی بعضِ به حلق کوی اوبعضِ قصر، تقدیم دَحلق په قصرباندی دلالت کوی پدې چه په حلق افضل دې دَقصرنه، اودغه رنګه په حدیث کښې محلقینو ته درې ځلې دعا شویده، اللّهم اغفر للمحلقین، قالوا: یا رسول الله! و المقصّرین، قال: اللّهم اغفرللمحلقین ثلاثًا ، قالوا: یارسولَ الله والمقصرین، قال: والمقصرین.

﴿فَعَلِمَ مَا لَمْ تَعْلَمُوا۟﴾ یعنی دَخوب تعبیرپوره کولوکښې چه کوم تاخیروشودَهغی په حکمت تاسونه پوهیږئ بلکه الله ﷻ پوهیږی یاداچه په صلح کښې چه کوم خیروؤهغه تاسوته نه وؤ معلوم ، لیکن الله ﷻ ته معلوم وؤهغه داوؤچه﴿فَجَعَلَ مِن دُونِ ذَٰلِكَ﴾ اشاره تعبیر دَ خوب او واقع کیدلو دَ خوب ته ده یعنی دَ دې تعبیر پوره کیدلو نه مخکښې به تاسوته فتح قریبه درکړی چه فتح دَ خیبر ده، نو تاسوته به قوت حاصل شی نو پوره په اطمینان سره به عمره اوکړئ. ﴿فَتْحًا قَرِيبًا﴾ فتح دَخیبرورنه مرادده.

﴿هُوَ ٱلَّذِىٓ أَرْسَلَ رَسُولَهُۥ﴾ پدی آیت کښې الله ﷻ مزیددَخپل رسول علیه الصّلوٰة و السّلام صداقت اولوئ شان بیانوی. دَآیت مزیدتفسیراوتشریح په دریم جلددَدې تفسیر دَسورة التوبه آیت نمبر(۳۳) کښې شویده هلته ئې اوګورئ. ﴿ وَكَفَىٰ بِٱللَّهِ شَهِيدًا ﴾ په نبوت اوپه رسالت

دَرسول اکرمﷺاودغه رنګه په وعدوخپلوچه دين اسلام ته به په ټولو اديانوغلبه ورکوی«روح المعانی»

| مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ وَالَّذِيْنَ مَعَهٗٓ اَشِدَّاۗءُ عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَاۗءُ بَيْنَهُمْ |
|---|
| محمدﷺرسول دَاللهﷻدي،اوهغه صحابه چه دَده سره دی سخت دی په کافرانو،رحم کونکی دی په خپل مينځ کښ |
| تَرٰىهُمْ رُكَّعًا سُجَّدًا يَّبْتَغُوْنَ فَضْلًا مِّنَ اللّٰهِ وَرِضْوَانًا ۡ سِيْمَاهُمْ |
| وينی به ته دوئ لره رکوع کونکی سجده کونکی.غواړی دوئ فضل د اللهﷻ نه او رضا، نخښي دَدوئ |
| فِيْ وُجُوْهِهِمْ مِّنْ اَثَرِ السُّجُوْدِ ذٰلِكَ مَثَلُهُمْ فِي التَّوْرٰىةِ ۚ وَمَثَلُهُمْ |
| په مخونودَدوئ کښ دی دَوجه دَاثردَسجدونه.دغه صفت دَ دوئ دي په توراة کښ. او صفت دَ دوئ دي په |
| فِي الْاِنْجِيْلِ ۚ كَزَرْعٍ اَخْرَجَ شَطْــَٔهٗ فَاٰزَرَهٗ فَاسْتَغْلَظَ فَاسْتَوٰى |
| انجيل کښ ، دوئ پشان دَ هغه فصل دی چه را اوباسی خپل تيغ ، بيا قوی کړی هغې لره ، نوغټ شی بيا برابرشی |
| عَلٰي سُوْقِهٖ يُعْجِبُ الزُّرَّاعَ لِيَغِيْظَ بِهِمُ الْكُفَّارَ ۭ وَعَدَ اللّٰهُ |
| پخپلې تنې باندې،خه لګي په زميندارانو ،چه اوسوزي پدوئ سره کافران او وعده کړيده اللهﷻ |
| الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ مِنْهُمْ مَّغْفِرَةً وَّاَجْرًا عَظِيْمًا ۝ |
| دَ هغو کسانو سره چه ايمان ئی راوړيدې اوعملونه ئی کړيدی نيک دَدوئ نه دَمغفرت اودَاجرلوئ |

﴿مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ﴾دادَحضورﷺپه رسالت دګواهئ بيان دې، مشرکانوپه صلح نامه کښې دَحضورﷺدَنوم مبارک سره دَ"رسول الله"دَليکلونه انکاراوکړونوالله ﷻدَهغې په بدله کښ ترقيامته کښ پوری لوستونکی کتاب کښ اوليکلوچه ترقيامته پورې نه ورانيږی.

﴿وَالَّذِيْنَ مَعَهٗٓ﴾مبتداده اومابعدئی خبردې،پدې آيت کښ دَصحابه کراموپوځوفضائل اوصفات ذکرکيږی دپاره دَاتباع،ابن عباسؓفرمائي دَدينه مرادهغه صحابه دی چه په صلح حديبيه کښ دَحضورﷺسره موجودوؤ،ليکن جمهورمفسرين فرمائی چه ټول صحابهؓ ورنه

مرادد ی. ﴿أَشِدَّآءُ عَلَى ٱلْكُفَّارِ﴾دا د صحابهٔ کرامو اول صفت دې چه دَدين اواسلام په باره کښ دکافرانو په مقابله کښ دوئ ډيرسخت وی حتّی چه دَنسبی رشته دار(پلار،خوې،ورور)وغيره هم لحاظ نکوی.

﴿رُحَمَآءُ بَيْنَهُمْ﴾دائی دويم صفت دې چه په يوبل باندې مهربان،دَيوبل سر مددکونکی دی.حسن بصری رحمه الله فرمائی چه شدت دَصحابهٔ کرامودکفاروسره دې حدته رسيدلې وۀچه خپلی جامې(کپړې)ئی هم دکافرانو دَجامونه بچ ساتلې اوخپل بدنونه به ئې هم دهغوئ دَبدنونه بچ ساتل،اوخپل مينځ کښ مهربانی اورحم دې حدته رسيدلې وۀچه يومؤمن به بل مؤمن اوليدلو نو مصافحه اومعانقه به ئې ورسره کوله.الله تعالیٰ دادواړه صفات په نورو صفاتوباندی مقدم کړل ځکه دادواړه صفات دَايمان کامل صفات دی،په بخاری وغيره کښ حديث دې چه"من احبّ لله وابغض لله فقداستكمل ايمانه".

﴿تَرَىٰهُمْ رُكَّعًا سُجَّدًا﴾دائی دريم صفت دې اول دوه صفتونوکښ کمال دَايمان طرف ته اشاره وه اوپدی صفت کښ کمالِ عمل طرف ته اشاره ده،ځکه چه په عملونوکښ دَټولونه افضل عمل مونځ دې،دا صفت دليل دکثرت دَ مونځ دې دَصحابه کرامو رضی الله عنهم.

﴿يَبْتَغُونَ فَضْلًا﴾دائی څلورم صفت دې،چه په مونځونوکولواوذغه رنګه نورونيک عملونو کولونه مقصوددوئ دَالله تعالیٰ نه دَ ثواب او رضا طلب وی. ريا، شهرت يا څه نور مقصد ئی نه وی، يعنی هرعمل کښ ئی اخلاص وی.﴿فَضْلًا﴾نه مرادثواب الهی دې،حضرت شاه ولي الله رحمه الله فرمائی چه دَ﴿ فَضْلًا ﴾ نه مراددَژوند دَتيرولولوازمات اوضروريات دی،لکه رزق وغيره شو،چه په سورة الجمعه کښ دَهغی دَطلب کولوهم ترغيب دې.

﴿سِيمَاهُمْ فِى وُجُوهِهِم﴾دائی پنځم صفت دې چه کثرت دَمونځونواوسجدوپوجه دَدوئ په مخونوباندی نشانات وی،دَدې نشاناتونه مراددَمحراب هغه نخه نه ده مراد چه دَ بعضِ خلقو په تندی باندی جوړه شوې وی،دَبعضِ متقدمينونه نقل دی چه: كنّا نصلّى فلايُرىٰ بين اعيننا شئ ونرىٰ احدنا الآن يصلى فنرى بين عينيه ركبة البعير، فماندرى اثقلت الرؤس ام خشنت الارض(روح المعانی) بلکه مراددَې نشاناتو نه

(۱) هغه نورانيت دې چه دَمونځ په برکت سره حاصليږي خصوصاً دَ تهجد په مونځ سره لکه په روايت کښې دي: من كثر صلاته بالليل حسنُ وجهه بالنهار (ابن ماجه).

(۲) بعض فرمائي چه دَدينه مراد بنه عادتونه او خشوع او تواضع ده چه دَمونځ په برکت سره حاصليږي كقوله تعالى: انّ الصّلوة تنهىٰ عن الفحشاء والمنكر

(۳) بعض فرمائي چه دَدينه مراد زيږوالي دَمخونو دي چه دَشوګيره کونکو په مخ راځي.

(۴) بعضو دَ ابن عباس رضي الله عنه نه نقل کړيدی چه انّه قال في الآية: بياضٌ يُغشىٰ وجوههم يومَ القيامة. يعنی دَدی نه مراد هغه سپين والي دي چه دَقيامت په ورځ به دَمونځ کونکو په مخونو باندې خور وی (روح المعاني) والله اعلم.

ځنې مفسرين ليکي چې آيت کښې مذکور صفاتو کښې خلفاءِ اربعو طرف ته هم اشاره ده ﴿ وَٱلَّذِينَ مَعَهُۥٓ ﴾ کښې اشاره ده حضرت ابوبکرصديق رضي الله عنه ته چه حضور ﷺ ورته فرمائيلي وو "انّ الله معنا" ﴿أَشِدَّآءُ عَلَى ٱلۡكُفَّارِ﴾ کښې اشاره ده حضرت عمر رضي الله عنه ته، چې دې دکافرانو په مقابلې کښې ډير سخت وو خاص کر دَ حديبيه په موقع کښې ﴿رُحَمَآءُ بَيۡنَهُمۡ﴾ کښې اشاره ده حضرت عثمان رضي الله عنه ته چه دې په مسلمانانو باندې ډير مهربان وو، او هم دَمسلمانانو دَپاره دَحديبيه په موقع کښې مکې ته تلې وو. ﴿تَرَىٰهُمۡ رُكَّعٗا سُجَّدٗا﴾ ديکښې اشاره ده حضرت علي رضي الله عنه ته، چې د دوئ کثرت عبادت معروف دې،

﴿ذَٰلِكَ﴾ اشاره ده ټول مذکورصفاتو ده، ﴿مَثَلُهُمۡ فِي ٱلتَّوۡرَىٰةِۚ وَمَثَلُهُمۡ فِي ٱلۡإِنجِيلِ﴾ ددې په تفسير کښې دوه احتماله دي:

(۱) يو داچه وقف په ﴿ فِي ٱلتَّوۡرَىٰةِ ﴾ باندې اوکړيشی نو مطلب به داشی چه په توراة کښې دَدوئ دغه صفات ذکروؤ او ﴿وَمَثَلُهُمۡ فِي ٱلۡإِنجِيلِ﴾ جدا جمله ده ﴿وَمَثَلُهُمۡ﴾ مبتداده او ﴿ كَزَرۡعٍ ﴾ ئی خبر دې يعنی مثال دَ صحابه ؤ په انجيل کښې پشان دَفصل دې.

(۲) دويم داچه وقف په ﴿فِي ٱلۡإِنجِيلِ﴾ باندې اوکړيشی، نو مطلب به داشی چه دَصحابه کرامو صفات په انجيل او تورات دواړو کښې دغه شان دی او دَ ﴿كَزَرۡعٍ﴾ نه مخکښې "هم" يا "مثلهم" مقدر دې او دَدې نه بل نوې مثال دَصحابه کرامو رضي الله عنهم بيانيږي، چه دَدوئ مثال داسې دې لکه چه دَ

فصل اوبوټی اول تیغ ښکاره شی نو کمزوري وی﴿فَـَٔازَرَهُۥ﴾بیا الله ﷻ هغی فصل لره قوی کړی چه په هواګانو وغیره آفتونو سره نه خرابیږی.﴿فَٱسۡتَغۡلَظَ ﴾نو بیا غټ شی او نور هم کلک شی.

﴿فَٱسۡتَوَىٰ عَلَىٰ سُوقِهِۦ﴾یعني بیا پخپلی تنې باندی اودریږی او زمیندار ورته خوشحالیږی نو دغه شان مثال دَصحابه کرامو دی چه په ابتداء کښ کمزوری وؤ هر مسلمان به خپل اسلام پټولو، بیا الله ﷻ دَ حضرت عمر رضی الله عنه اودغه شان نورو ډیرو صحابهٔ پوجه اسلام قوی کړو،بیا اسلام نور هم قوی شو کله چه دَمکې نه بهر په ګرد و نواح کښ خلق مسلمانان شول. بیا په مدینه کښ الله ﷻ مسلمانانو ته خپل مضبوط او مستقل حکومت ورکړو.

﴿أَخۡرَجَ شَطۡـَٔهُۥ ﴾شطء دَ غنمو ، وربشو یا دَ کجورو تیغ ته وائی﴿أَخۡرَجَ﴾کښې ضمیر د فاعل راجع دې((زرع))ته،اونسبت دَاخراج زرع ته مجازی دې،یا فاعل الله ﷻ دې ﴿فَـَٔازَرَهُۥ﴾ دَ ازر نه مشتق دې قوت ته وئیلې کیږی ای اعانه وقواه(روح المعانی) ﴿فَٱسۡتَغۡلَظَ ﴾یعنی باریک والې ئی ختم شی غلظت پکښ پیداشی.﴿فَٱسۡتَوَىٰ عَلَىٰ سُوقِهِۦ﴾ای فاستقام علی قصبه و اصوله. ﴿يُعۡجِبُ ٱلزُّرَّاعَ ﴾ یعنی دَ هغې په قوة، کثفات او حسن منظر وربا ندی ډیر خه لګي او خوشحالیږی.

﴿لِيَغِيظَ بِهِمُ ٱلۡكُفَّارَ﴾متعلق دې دَمحذوف سره،ای شبّهوابذلک لیغیظ.....الخ(جلالین) یعنی الله ﷻ دوئ زیات کړل اوقوی کړل په شان دَفصل دَپاره دَدې چه غصه اوخفه شی پدې سره کافران،یعنی دَ صحابه کرامو ترقی اوطاقت دکافرانو دَغیظ اوغضب باعث دې،داآیت واضح دې چه دَصحابه کرامو سره بغض لرونکی کافردې،دَدې وجه نه امام مالک رحمه الله او نورو علماؤ استدلال کړیدې چه شیعه ګان کافران دی ځکه چه دوئ دَصحابه کرامو رضی الله عنهم سره بغض کوی.

﴿وَعَدَ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ ﴾دابشارت دې صحابه کرامو رضی الله عنهم ته دَمغفرت اواجرعظیم په﴿مِنۡهُم ﴾ کښ من یامؤکده دې یعنی صحابه کرامو کښ هریوصحابی مستقل طورباندی دَدې بشارت حق داردې،یا من بیانیه دې اوروافضو(شیعه ګانو)چه دا من تبعیضیه ګرځولې دې نو دادَ آیت سیاق سباق سره هم منافی اومبنی دې دَدوئ په بغض اوحسدباندې.

| رکوعاتها (۲) | سورة الحجرات مدنية | آیاتها (۱۸) |
| --- | --- | --- |
| | بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ | |
| | خاص په نوم د الله چه بیحده مهربان او ډیر رحم کونکي دي شروع کوم | |

**ترتيبها حسب التسلسل (۴۹) وحسب النزول (۱۰۶)**

سورة الحجرات مدنی دي ترتیب قرآنی لحاظ سره (۴۹) دي اوترتیب نزولی لحاظ سره (۱۰۲) دي، سورة المجادله نه ورستو اوسورة التحريم نه قبل نازل شویدي، زمانه دنزول ئی بعدالهجرة ده، طوال مفصل کښې دااولنې سورة دي، دحجرات نه تر البروج پورې سورتونوته طوال مفصل وئيلې كيږي چه دسهارپه مونځ کښې ئې وئیل مسنون دی.

**ربط**: سورة فتح کښې اعلان دفتح وؤپدي سورة کښې دقوانينو دژوندتیرولوبیان دي چه مسلمانان منظم اومتفق شی.

**دسورة دمضامينواجمالی خلاصه**

دسورة دوه حصې دی اوله حصه کښې دپیغمبرﷺ دادابوبیان دي، اومسلمانانوته دمعاشرت دادابوتعلیم دي دویمه حصه کښې شکوه ده داعرابونه، اودتوحیدبیان دي دماقبل سورة محمدﷺ اوسورة فتح نه علی سبیل الترقی.

**تفصيلي خلاصه**

**اوله حصه**:

داولی حصې تفصیل دادې چه پدیکښې وه (۷) آداب او قوانین مذکوردی، اول دوه دحضورﷺ سره متعلق ددی اوباقی پنځه دعاموخلقوسره متعلق دی:

اول قانون ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تُقَدِّمُواْ بَيۡنَ يَدَيِ ٱللَّهِ﴾ آیت (۱)

دویم قانون ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَرۡفَعُوٓاْ أَصۡوَٰتَكُمۡ﴾ آیت (۲، ۳)

دریم قانون ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِن جَآءَكُمۡ﴾ آیت (۶) نه تر آیت (۸) پوری.

څلورم قانون ﴿وَإِن طَآئِفَتَانِ مِنَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ ٱقۡتَتَلُواْ﴾ آیت (۹، ۱۰)

پنځم قانون ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا يَسۡخَرۡ قَوۡمٞ مِّن قَوۡمٍ﴾ آیت (۱۱)

شپږم قانون﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱجْتَنِبُواْ كَثِيرًا ﴾آيت(۱۲).

ووم قانون﴿يَـٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ إِنَّا خَلَقْنَـٰكُم مِّن ذَكَرٍ﴾آيت(۱۳).

**دويمه حصه:**

دَدويمې حصې تفصيل دادې: ﴿قَالَتِ ٱلْأَعْرَابُ ءَامَنَّا﴾آيت(۱۴) زجراوشكوه ده هغه اعرابوته چه خپل ايمان ئې په حضورﷺباندې زباته ولو.﴿إِنَّ ٱللَّهَ يَعْلَمُ غَيْبَ ٱلسَّمَـٰوَٰتِ﴾ايت(۱۸) دَتوحيدبيان دې على سبيل الترقي.

| يَـٰٓأَيُّهَا | ٱلَّذِينَ | ءَامَنُواْ | لَا | تُقَدِّمُواْ | بَيْنَ | يَدَىِ | ٱللَّهِ | وَرَسُولِهِۦ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اې | ايمان | والو! | مه | وړاندې | كيږئ | دَاللهﷻاودَرسول | دَهغه | نه |

| وَٱتَّقُواْ | ٱللَّهَ | ۚ | إِنَّ | ٱللَّهَ | سَمِيعٌ | عَلِيمٌ | ① |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اواويريږئ | دَاللهﷻ نه، | | بيشكه | اللهﷻ | هرڅه | اوريدونكې، | ښه پوهه دې، |

﴿يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تُقَدِّمُواْ ﴾ دااول قانون دې چه دَباقي قوانينو دَپاره بنياد اواساس دې، او دا قانون مُتعلق دې دَحضورﷺسره،حاصل ئې دادې چه اى مؤمنانو!دَدين اودَدنيا په هيڅ معامله كښ دَاللهﷻ دَ كتاب اودَهغه دَرسولﷺمخالفت مه كوئ،پخپله توګه څه فيصله مه كوئ،اومه خپل عقل او رائ ته ترجيح وركوئ،بلكه دَخپل ژوندتول انفرادى، اجتماعى انتظامات په دې دواړو تيره وئ،كمافي الحديث: تركتُ فيكم امرين لن تضلّوا ما تمسكتم بهما...الكتاب وسنتي.

داحكم دَحضورﷺپه ژوندكښ هم وؤاواوس هم دې،اوس به ورباندې عمل پدې طريقه كيږى چه اول به په هرمسئله اومعامله كښ دَنبى اكرمﷺدَقول يادَفعل صراحت به تالاش كيږى، اوچه كله صراحت نشى ملاؤنوپه نصوص منقوله ؤكښ مجتهدفكراوتأمل كوى او استنباط به ورنه كوى اوعام سړې به دَيوامام تقليدكوى.هرچه باغيان دَقياس اواجماع او دَ تقليد دى نودَهغوئ دپاره داآيت هيڅ كليهٔ استدلال نشى جوړيدلې ځكه قياس،اجماع،ياقول دَ يو امام تقديم ندې په كتاب الله ياپه سنت(قرطبى).

دَدې آياتونو دَشان نزول په باره کښې مفسرينوډيراقوال ذکرکړيدي چه په هغې کښې دا قول هم دې (کمارواه البخاری) چه يوځل دَبنوتميم قبيلې څه خلق دَحضورﷺ په خدمت کښې حاضرشول دَدې دپاره چه پدوئ څوک حاکم اومشرمقررکړې نوابوبکرﷺ دَقعقاع ابن معبد په حق کښې رائ ورکړه چه دې دې مشر شي، حضرت عمرﷺ دَاقرع ابن حابس په حق کښې رائ ورکړه، ابوبکرﷺ اوفرمائيل چه تادا رائ څما دَ مخالفت دَوجه نه ورکړه، عمرﷺ اوفرمائيل ستادَمخالفت دَوجه نه مې نه ده ورکړې، پدې معامله کښې دَدواړوحضراتورضی الله عنهما په مينځ کښې څه ترخې خبرې اوشوې اواوازونه ئې هم اوچت شول. نوپه دې باندې داآياتونه نازل شول (روح المعاني).

په بخاری وغيره کښې دی چه دَ دې آياتونو دَ نازليدونه ورستوبه حضرت عمرﷺ دَ حضورﷺ په مخکښې داسې په مزه خبرې کولې چه بيابه ورنه تپوس کوليشو چه تاڅه اووې.

﴿لَا تُقَدِّمُوا﴾ دايالازمی دې دَقَدَّمَ نه پمعنی دَتقدَّم، ای لاتتقدموا يعنی مه مخکښې کيږئ دَ اللهﷻ اودَرسولﷺ نه يعنی مخالفت ئې مه کوئ، يامتعدی دې اومفعول ئې حذف دې دَپاره دَ قصد دَ تعميم يعنی هيڅ امرخپل مه مخکښې کوئ په اللهﷻ اوپه رسولﷺ دَهغه ﴿وَاتَّقُوا اللَّهَ﴾ تقوىٰ سبب دې دَاطاعت دَامردَاللهﷻ اودَرسولﷺ دَهغه نوځکه ئې حکم اوشو. ﴿إِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ﴾ اللهﷻ هرڅه آوری او په هر څه پوهه او خبر دې نو دَ داسې ذات حق دا دې يره ورنه اوکړېشي.

| يَٰأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَرْفَعُوٓا۟ أَصْوَٰتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ ٱلنَّبِىِّ وَلَا تَجْهَرُوا۟ لَهُۥ بِٱلْقَوْلِ |
| --- |
| اې مؤمنانو! مه اوچتوئ اوازونه خپل پورته دَاوازدَنبیﷺ نه اوپه زوره اوازمه کوئ ده ته |
| كَجَهْرِ بَعْضِكُمْ لِبَعْضٍ أَن تَحْبَطَ أَعْمَٰلُكُمْ وَأَنتُمْ لَا تَشْعُرُونَ ﴿٢﴾ |
| لکه په زوره اوازکوی بعضِ ستاسونه بعضْ ته چه ضائع نشی عملونه ستاسواوتاسوبه نه پوهيږئ نه پئ خبر). |

﴿يَٰأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا لَا تَرْفَعُوٓا أَصْوَٰتَكُمْ﴾ دا دويم قانون دې پديکښې دَحضورﷺ متعلق دوه ادبونه ذکردی، **اول ادب** دادې چه دَحضورﷺ په مجلس کښې دَحُضورﷺ دَآوازنه خپل آوازمه اوچتوئ، په خکته آوازسره خبرې کوئ، **دويم ادب** ﴿وَلَا تَجْهَرُوا لَهُ﴾ دَحضورﷺ سره داسې بې

تکلفه اوپه زوره خبرې مه کوئ لکه څرنګه چه دَیوبل سره کوئ. په اول ادب کښې مطلقًانهی وه درفع صوت نه، په مجلس دَنبی ﷺ که دَنبی علیه السلام سره وی او که دیو بل سره خبری کول وی. په دویم ادب کښې دَ حضور ﷺ سره دَخبرو کولو بیان دې، بعضِ وائی چه په اول ادب کښې نهی دَرفع صوت ده دَ صوت دَنبی علیه السلام نه اوپه دویم کښې نهی دَمساواة دَجهرده، چه دَنبی علیه السلام دَاوازسره به هم خپل اواز نه برابروئ بلکه خکته به ئې ساتئ،

بعضِ وائی چه دَ﴿وَلَا تَجْهَرُوا لَهُ بِالْقَوْلِ﴾ معنی داده چه په یامحمد، یااحمد سره ورته خطاب مه کوئ بلکه یانبی الله، یارسول الله ورته وایئ(روح المعانی).

﴿أَن تَحْبَطَ أَعْمَالُكُمْ﴾علت دې دَماقبل دواړوادابودپاره، ای لئلاّتحبط اعمالکم، یاپکښې مضاف مقدردې ای خشیة اَن تحبطَ اعمالکم، مطلب دادې چه خپل اوازونه دَحضور ﷺ په اوازمه اوچتوئ دَپاره دَدې چه ستاسونیک عملونه، ضائع نشی.

**دلته دا اشکال دې** چه حبطِ اعمال یعنی نیک عملونه ضائع کولو والا عمل خو صرف کفر دې. په معصیت اوګناه سره خو اعمال نه ضائع کیږی نو په مذکوره عمل سره حبط دَ اعمالو څنګه اوشو، اودغه رنګه پدې سره مذهب دَمعتزله اوخوارجوثابت شوچه په معصیت سره انسان دَایمان نه خارجیږی؟

حکیم الامت مولانااشرف علی تهانوی رحمه الله په بیان القرآن کښې لیکلی دی چه څماپه زړه کښې دَدې آیت په تفسیرکښې ډیرتشویش وۀچه دَآیت کریمه داسې توجیه بیان کړیشی چه دَڅه بعید تاویل ارتکاب پکښې اونکړیشی، متعددوتفاسیروکښې مې تلاش اوکړولیکن څمازړه نه په څه توجیه سره شفاءملاؤنشوه، اخرمې دَالله تعالی نه دعااوکړه اودَمولانارومی رحمه الله دَ کلام نه مې استمداداوکړوچه دَده په کلام کښې څه داسې مضمون ظاهر شی چه دَآیت په تفسیرکښې معین شی، هرکله چه مې مثنوی کهلاؤ کړونوداشعرمی اولیدلو:

چون دل آن شاه زین ضان خون بود عصمت اوانتَ فیهم چون بود

یعنی چه کله زړه دَپیغمبر ﷺ دَدوئ نه ناراضه وی، نودوئ به څرنګه دَعذاب الهی نه محفوظ شی. نوپه شعرکښې تأمل کولوسره مې فوراًداخبره زړه ته راغله چه بی ادبی سبب دَ ناراضګئ دَ پیغمبر علیه السلام دې ، او دَ پیغمبر ﷺ ناراضګی سبب دَ ناراضګئ دَ الله تعالی دې، او

الله ﷻ چه ناراضه شي نو توفيق ورنه سلب کړي، نو داخطره د کفرده او کفرحابط د اعمالو دي نولهذا پيدې سره حبط د اعمالو راځي(بيان القرآن ج۲ ص۴۱).

﴿وَأَنتُمْ لَا تَشْعُرُونَ﴾ حال دي د ﴿أَن تَحْبَطَ أَعْمَالُكُمْ﴾ نه. يعنې په مجلس د نبي عليه السلام کښې رفع صوت اوجهربالقول مه کوئ مباداپدې وجه ستاسونيک عملونه حبط شي اوتاسوته به احساس هم نه وي چه حبط د رفع صوت اوجهربالقول پوجه راغلي دي.

**فائده(۱):** بعدد نزول د آياتونومذکورؤنه د صحابؤداکيفيت جوړشوي وؤچه ابوبکر ﷺ عرض اوکړوچه يارسول الله! والله څه به اوس ترمرګه پوري تاسوسره داسې خبري کوم لکه څوک چه بل سره سرګوشي کوي، اود حضرت عمر ﷺ کيفيت مخکښې بيان شوچه دومره وروخبرې به ئې کولې چه بعضِ اوقات به ورنه دوباره تپوس کوليشو، دغه رنګه ثابت بن قيس ﷺ چه دې طبعاً جهير الصوت وؤ، د دې آيات د نزول نه ورستوپه کورکښې کيناستلو اوجړل به ئې اووئيل به ئې چه انامن اهل النار يوڅوورځوپوري چه حضور ﷺ ده لره خپل مجلس کښې اونه موندلونوسعد ﷺ نه ئې تپوس اوکړوچه ثابت چرته دي آيابيماردي؟ سعد ﷺ د لاعلمۍ اظهاراوکړواوبيا د ثابت ﷺ کورته راغې، ثابت ﷺ ورته اووې انزلت هذه الآية ولقدعلمتم انى ارفعكم صوتاعلى رسول الله ﷺ فانامن اهل النار نوحضرت سعد ﷺ د دې تذکره نبي عليه السلام ته اوکړو، نونبي عليه السلام اوفرمايل: بل هومن اهل الجنة(روح المعاني، بحواله بخاري ومسلم).

**فائده(۲):** علماؤليکلي دي د حضور ﷺ د قبرمبارک سره هم آوازاوچتول اوپه زوره خبرې کول منع دي اوګناه دي، څکه چه حضور ﷺ ته برزخي حيات حاصل دي، دغه رنګه چه حديث بيانيږي نوهم په زوره خبرې کول ګناه دي، ابوحيان رحمه الله اوقرطبي داهم ليکلي دي چه علماچونکه وارثان د انبياؤدي نود هغوئ په مجلس کښې هم په زوره خبرې کول مکروه اومنع دي.

| إِنَّ الَّذِينَ يَغُضُّونَ أَصْوَاتَهُمْ عِندَ رَسُولِ اللَّهِ أُولَٰئِكَ الَّذِينَ امْتَحَنَ اللَّهُ |
|---|
| بيشکه هغه خلق چه ښکته کوي اوازونه خپل د رسول الله ﷺ په خواکښې داهغه خلق دي چه خالص کړيدي الله ﷻ |
| قُلُوبَهُمْ لِلتَّقْوَىٰ ۚ لَهُم مَّغْفِرَةٌ وَأَجْرٌ عَظِيمٌ ۞ إِنَّ الَّذِينَ يُنَادُونَكَ |
| زړونه د دوئ د پاره د تقوی، دوئ د پاره مغفرت اواجرعظيم دي، بيشکه هغه کسان چه اوازونه کوي تاته |

| |
|---|
| مِنْ وَّرَآءِ الْحُجُرٰتِ اَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُوْنَ ۝ وَلَوْ اَنَّهُمْ صَبَرُوْا حَتّٰى |
| دَ باهر دَ كورونو نه اكثر په دوئ كښ نه پوهيږي ، او كچرې دوئ صبركړې وې تردې |
| تَخْرُجَ اِلَيْهِمْ لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ ۭ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۝ |
| چه ته بهرته راوتلې وې دوئ ته نودابه غوره وه دوئ دپاره،اوالله ﷻ بخښونكې رحم كونكې دې |

﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ يَغُضُّونَ أَصْوَٰتَهُمْ﴾ دابشارت اخرويه دي هغه كسانوته چه دَحضور ﷺ په مجلس كښ خپل اوازونه خكته ساتي،بعضِ وائي چه داآيات نازل دي په باره دَشيخينورضى الله عهنماكښ چه دآيات سابقه دَنزول نه ورستوبئ اوازونه خكته ساتل.﴿ٱمْتَحَنَ ٱللَّهُ قُلُوبَهُمْ﴾ امتحنَ په معنى دَ اخلص دي،لكه څرنګه چه سره زر ويلى كړيشي اوخالص كړيشي نودغه شان دَصحابه كرامو ﷺ زړونه الله ﷻ دَتقوىٰ دپاره خالص كړيدى چه دَدوئ په زړونوكښ صرف اوصرف تقوىٰ ده بغيردَتقوىٰ نه پكښ بل څه نشته دي،اوالمراداخلصهاللتقوىٰ اى جعلهاخالصة لاجل التقوىٰ...الخ(روح المعانى).ابن عباس ﷺ دَ﴿ٱمْتَحَنَ ٱللَّهُ﴾معنى كوى چه طهرهم من كلّ قبيح يعنى الله ﷻ دوئ دَهرقبيح كارنه پاک كړيدى اودَدوئ په زړونوكښ خوفِ خدااوتقوى كرخولې ده(قرطبى).

﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ يُنَادُونَكَ﴾ پديكښ زجردې بى ادبى كونكوته،دآيت په شانِ نزول كښ مفسرينو ليكلى دى چه يوه ورځ دَبنوتميم څه اعربيان(باندہ چيان)مدينه ته راغلل دَحضور ﷺ سره دَملاقات په نيت،دَغرمې وخت وؤحضور ﷺ قيلوله كوله نودوئ ورته دَدروازونه چغى اواوازونه شروع كړل چه يامحمّد اُخرُج الينا، يا محمّد اُخرُج الينا نودَدوئ په دې بى تهذيبئ اوعاميانه اندازباندى الله ﷻ داآياتونه نازل كړل،چه كوم خلق حضور ﷺ ته داسې اوازونه كوى نودوئ ((لايعقلون)) دى.

﴿مِن وَرَآءِ ٱلْحُجُرَٰتِ﴾ حجرات دَحجرة جمع ده،دَازواج مطهراتوكوټى اوكورونه ورنه مراد دى،﴿أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُونَ﴾ذكردَاكثردې ليكن مرادورنه كل دي﴿وَلَوْ أَنَّهُمْ صَبَرُوا۟﴾ يعنى دوئ صبراوكړى اوستاسوراوتلوته انتظاراوكړى نودابه دوئ دپاره ډيرخه وى څكه چه په

ديکښ به دَحضورﷺ ادب اوتعظيم ملحوظ وی.﴿وَٱللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾نوپدی وجه ئی فوراً مؤاخذه اونکړه.

| يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِن جَآءَكُمۡ فَاسِقُۢ بِنَبَإٖ فَتَبَيَّنُوٓاْ أَن تُصِيبُواْ |
|---|
| اې ايمان والؤ!کچرته راشی تاسوته فاسق په څه خبرسره نوبښه تحقيق ئی کوئ،هسې نه،چه اورسوئ تکليف |
| قَوۡمَۢا بِجَهَٰلَةٖ فَتُصۡبِحُواْ عَلَىٰ مَا فَعَلۡتُمۡ نَٰدِمِينَ ۝٦ |
| يوقوم ته په بې خبرئ سره نوشئ به تاسوپخپلوکړوباندې پښيمانه |

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِن جَآءَكُمۡ فَاسِقُۢ بِنَبَإٖ﴾دا دريم **قانون** دې چه دَعامې معاشرې سره متعلق دې،حاصل ئی دادې چه اې مؤمنانو!کله چه تاسوته څوک څه خبر راوړی بالخصوص فاسق، فاجر،نوپه هغی باندې عمل کولونه مخکښ دَهغی تحقيق کوئ،هسې نه چه چاته څه نقصان اورسوئ اوبيا په خپلوکړوباندې پښيمانه يئ.

**شان نزول**:دا آيت دَاکثرومفسرينوپه نزددَوليدبن عقبهﷺپه باره کښ نازل دې،چه دې نبیﷺدَبنی مصطلق قبيلی ته دَزکواة راوړلودپاره ليږلې وو،دَدې صحابیﷺاودَدغه قوم په مينځ کښ پخوانئ دَجاهليت په دورکښ دُشمنی وه،قوم په هغه ورځ چه دَنبیﷺدَقاصد دَ راتلو ورځ وه ټول دَاستقبال دَپاره دکلی نه بهرته راأووتل،صحابیﷺ گمان اوکړوچه دوئ لکه دَ خما مقابلی اوقتل دپاره راوتلی دی،نوواپس راغې اونبیﷺ ته ئی اووې چه دوئ دَ زکوة ورکولونه انکاراوکړو،اومرتدشويدی اوخمادَقتل دَپاره راوتلی وو.

حضورﷺپدی خبره باندې ډيرخفه شواودَدغه قوم سره ئی دَجهادکولواراده اوکړه،کله چه دوئ ته دَحضورﷺدَارادې علم اوشونودَهغوئ کسان دَحضورﷺخدمت کښ حاضر شول اوعرض ئی وکړوچه ستاسوقاصدراغلې وؤاوموږپه طوردَاستقبال بهرته راوتلی وؤزموږاراده وه چه دَ اللهﷻدَحکم موافق دَخپل مالونوزکوة هغه ته حواله کړوليکن هغه دَلارې نه واپس شو.

بياحضورﷺدَتحقيق حال دپاره دَخالدبن وليدﷺ په امارت کښ يوجماعت اوليږلو او ورته ئی اوفرمائيل"انظرفان رأيتَ منهم مايدلّ علی ايمانهم فخذ منهم زکاة اموالهم وان لم تری ذلک فاستعمل فيهم ماتستعمل في الکفار"يعنی ورشه اوګوره کچرته هغوئ په ايمان باقی وی نو

زکوٰة ورنه راوړه اوکه نه وی نو هغه معامله(قتال)ورسره وکړه چه د نورو کافرانو سره کیږی، خالدبن ولید ﷺچه راغې اودَقوم سره نزدې ئی پړاؤواچولونودمانښام اذان اوبیادَماسخوتن اذان ئی واؤریدلو اوسهرته قریب ئی په تهجدواوپه تلاوت قرآن باندې اولیدل،بیائی ورنه زکاتو نه واخستل اوواپس راغې اوحضورﷺ ئی خبرکړو،نوپدی باندې داآیت کریمه نازل شو.

دآیت کریمه په دې **شان نزول باندی اشکال** دې چه داخوصحابیﷺ ته فاسق اوونیلې شو نعوذ بالله،حالانکه صحابهﷺ ټول عدول اوثقه د ،دَدې شکال مختلف جوابونه شویدی:

(۱)حضرت مولانااشرف علی تهانویﷺفرمائی چه په آیت کریمه کښ دَ﴿فَاسِقٌ﴾ دَ مبالغې فی الحکم دپاره دې،یعنی دلته خوصحابیﷺعادل دې اوبیاهم دَتحقیق حکم دې نو که یوفاسق راشی اوڅه خبردرکړی نوپه طریقه اولی سره تحقیق کوئ.

(۲)خو راجحه خبره دا ده چې د ((فاسق)) مصداق دا صحابي هډو سره دې نه ، بلکه روایاتو کښې راځي چې دې کله قوم ته نیزدې اورسیدو او قوم ئي سره د اسلحو نه بهر اولیدو نو یو کس ده ته اوئیل چې دا قوم ستا د قتلولو دپاره راوتلې دې ، چونکه د زړې دشمنئ په وجه دا عین ممکن وه نو ده دَ هغه په خبره اعتماد او یقین اوکړو او واپس نبي کریم ﷺ ته راغې ، او طبري په روایت کښې دي چې دا شیطان وو چې ده ته ئي دا خبره کړې وه ، نو مصداق ((فاسق)) دا خبر ورکونکې دې ، نه ولید بن عقبه،﴿أَن تُصِيبُوا﴾ای لئلاّ تصيبوا يا كراهة ان تُصيبوا.

| وَاعْلَمُوْٓا | اَنَّ | فِيْكُمْ | رَسُوْلَ | اللّٰهِ | لَوْ | يُطِيْعُكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوپوه شئ چه بیشکه په تاسوکښ موجوددې رسول دَاللهﷺ،کچرې هغه اطاعت اوکړی ستاسو | | | | | | |

| فِيْ | كَثِيْرٍ | مِّنَ | الْاَمْرِ | لَعَنِتُّمْ | وَلٰكِنَّ | اللّٰهَ | حَبَّبَ | اِلَيْكُمُ | الْاِيْمَانَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| په ډیروکارونوکښ نوپه ګناه اومشقت کښ به پریوځئ،لیکن اللهﷻمحبوب کړیدې تاسوته ایمان | | | | | | | | | |

| وَزَيَّنَهٗ | فِيْ | قُلُوْبِكُمْ | وَكَرَّهَ | اِلَيْكُمُ | الْكُفْرَ | وَالْفُسُوْقَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوښائسته کړې ئی دې په زړونوستاسوکښ اوبدیې ښکاره کړیدې تاسوته کفراوفسق | | | | | | |

| وَالْعِصْيَانَ ۚ أُولَٰئِكَ هُمُ الرَّاشِدُونَ ۝ فَضْلًا مِّنَ اللَّهِ وَنِعْمَةً ۚ |
|---|
| اونافرمانی د اخلق هم دوئ هدایت موندونکی دی،دوجه دفضل دالله ﷻ نه اودوجه دنعمت نه |
| وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ۝ |
| اوالله ﷻ پوهه حکمتونو والادي |

﴿وَاعْلَمُوا أَنَّ فِيكُمْ رَسُولَ اللَّهِ﴾ دا داول قانون سره متعلق دي،چه دا دالله ﷻ لوئ نعمت دي چه دهغه رسول په تاسو کښ موجوددي نو د دې نعمت شکريه داده چه په هيڅ معامله کښ دهغه دقول ياعمل نه مخالفت مه کوئ بلکه دهغه اتباع کوئ اوهغه پخپله اتباع مه مجبوره وئ خکه﴿ لَوْ يُطِيعُكُمْ فِي كَثِيرٍ مِّنَ الْأَمْرِ ﴾کچرته هغه ستاسواتباع اوکړی نو په دې به د ستاسو نقصان وي اګرچه هغه امر دنيوی ولې نه وی،اوتاسو ته پکښ ظاهری نفع ولې کښ نه خکاری، ليکن درحقيقت ديکښې تاسو ته نقصان وی.﴿لَعَنِتُّمْ ﴾د عنت نه مشتق دې دګناه معنی ئی هم ده،يعنی تاسوبه په ګناه کښ واقع شئ، اوپه څه مصيبت کښ واقع کيدلوته هم وانی.

﴿وَلَٰكِنَّ اللَّهَ حَبَّبَ إِلَيْكُمُ الْإِيمَانَ﴾ ليکن الله ﷻ تاسو د دې نقصان نه بچ کړئ،اوهغه داسی چی تاسوته يی ايمان توفيق درکړيدې،ايمان،عمل صالح،اواطاعت رسول يی تاسو ته محبوب کړې دې ،او کفر وفسوق او هرقسم ګناهونه ئي ستاسو زړونو کښ نفرت اچولې دې نودې وجهې نه تاسو خپل قول باندی درسول ﷺ قول له ترجيح ورکوئ اواطاعت يی کوئ، دې تفسير مطابق دا ستدراک دې د «لعنتم» نه.

حضرت الشيخ فرمائی چه ديکښ د صحابوؤ اعتذار بيان دې ،چه کله نبی ﷺ ته د بنی مصطلق د ارتداد خلاف واقع خبر ميلاؤ شو نوځنو صحابو مشوره اوکړه چی فورا دی په دوئ حمله اوکړيشی ليکن نبی ﷺ داسی اونکړو،بلکه تحقيقات يی اوکړو،نو خبر د هغی خلاف راوتلو ،نو الله ﷻ « لو يطعيکم في کثير من الامر » کښ دی طرف ته اشاره اوکړه چی خپل آراء او مشورو منلو زور په نبی ﷺ مه راولئ،کنې ډير نقصان به اوموندئ اوګناه کښ به مبتلا شئ،

﴿وَلَٰكِنَّ ٱللَّهَ حَبَّبَ إِلَيْكُمُ﴾دیکښې د دې بیان دې چه صحابه کرامو رائ ورکول څه ذاتی تعصب او عناد باندی مبنی نه وه بلکه ایمان دَمحبت او کفر وعصیان دَنفرت دوجهی نه هغوئ دا مشوره ورکړې وه،اګر چه صحیح اقدام هغه وو چې نبی ﷺ کړیدې. نو دا استدراک دې دَ دې وهم چې سابق کلام نه پیدا کیږي.

﴿وَٱلْفُسُوقَ﴾غټ ګناهونه﴿وَٱلْعِصْيَانَ﴾واړه ګناهونه﴿فَضْلًا﴾مفعول له دې دَپاره دَ﴿حَبَّبَ﴾

، ﴿وَٱللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ﴾چنانچه دَدې علم کامل په بنیاد دَهرحکم او قانون مصلحت پیژني.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَإِن | طَآئِفَتَانِ | مِنَ | ٱلْمُؤْمِنِينَ | ٱقْتَتَلُوا۟ | فَأَصْلِحُوا۟ بَيْنَهُمَا |
| اوکه چرې دوه ډلې دَمؤمنانوپه خپل مینځ کښې جنګ شروع کړی نوصلحه کوئ په مینځ دَدوئ کښې، | | | | | |
| فَإِنۢ بَغَتْ | إِحْدَىٰهُمَا | عَلَى | ٱلْأُخْرَىٰ | فَقَٰتِلُوا۟ | ٱلَّتِى تَبْغِى |
| کچرته زیاتې اوکړی یوه ډله په بلې ډلې باندې نوجنګ کوئ تاسودَهغی ډلې سره چه زیاتې ئې کړیدې | | | | | |
| حَتَّىٰ تَفِىٓءَ | إِلَىٰٓ | أَمْرِ ٱللَّهِ | فَإِن | فَآءَتْ | فَأَصْلِحُوا۟ بَيْنَهُمَا |
| تردې چه هغه رااوګرځی حکم دَالله ﷻ ته ، نو کچرته را اوګرځی نو صلحه اوکړئ په مینځ دَدواړوکښې | | | | | |
| بِٱلْعَدْلِ | وَأَقْسِطُوٓا۟ ۖ | إِنَّ | ٱللَّهَ | يُحِبُّ | ٱلْمُقْسِطِينَ ⑨ |
| په انصاف سره او انصاف اوکړئ ، بیشکه الله ﷻ محبت کوی انصاف کونکوسره. | | | | | |

﴿وَإِن طَآئِفَتَانِ مِنَ ٱلْمُؤْمِنِينَ﴾دا **خلورم قانون او ادب** دې،دَپیغمبر ﷺ اطاعت کولونه ورستو په تاسو اصلاح دَذات البین ضروری ده چه دَمسلمانانوپه مینځ کښې اتحاد اتفاق برقرار وی، دَ دې قانون اصل اوبالذات مخاطب اولوالامر اوحاکمان دی اوبالواسطه عامة المسلمین هم دی، چه کله دَ مسلمانانو دَ دوؤ ډلو په مینځ کښې جنګ جګړه پیښه شی نو په امام المسلمین باندې واجبه ده چه دَدواړوپه مینځ کښې صلحه اوکړی،دَ صلحې کوشش باوجود کچرته یوه ډله په بلې باندې ظلم اوکړی او دَ جنګ نه نه منع کیږی اودغه رنګه بغاوت وکړی، نو امام المسلمین باندی لازمه ده چه دَباغی فرقې خلاف قتال اوکړی تردې صلحې ته تیاره

شي او جنګ بند کړي . دَ فرقِ باغيه سره قتال او دَ هغې دَ احکامو تفصيلات په کتابونو دَ فقه کښې ليکلې شويدی.

دَآيت کريمه شانِ نزول دَصحيحينو دَروايت موافق دَانصارو دَ دوؤ ډلو "اوس" او "خزرج" په باره کښې شويدې، حضورﷺ دَهغوئ په مينځ کښې دَدې آيت ماتحت صلحه اوکړه اودَهغوئ پخوانئ دشمنئ ختمې شوې. ﴿ٱقۡتَتَلُوا﴾ جمع ذکرشوه په اعتبارِدَمعنى سره ځکه هره طائفه(ډله) يوجماعت دې اوپه﴿بَيۡنَهُمَا﴾کښې رعايت دَلفظ کړې شويدې.﴿فَإِن فَآءَتۡ فَأَصۡلِحُوا﴾ يعنى چه بغاوت کولوالافرقه دَبغاوت اودَقتال نه منع شي نوصرف پدی اکتفاء مه کوئ بلکه زړه دشمنی اوبُغض ختمولو دَ پاره دَ دواړو په مينځ کښې عدل او انصاف سره صلحه اوکړئ چه دَآئنده دَپاره جنګ بياشروع نشی.

**فائده:** په آيت کښې استدلال دې په وجوب دَقتال دَطائفى باغيه سره اګرچه مؤمنه وى او په حديث کښې چه راغلى دی"سباب المسلم فسوقٌ وقتاله كفرٌ"(بخاری)مسلمان ته کنځل کول فسق دې اوقتلول ئې کفردې،دَدينه مرادهغه دې چه بې ګناه اوباغى نه وى،دغه رنګه دَآيت نه داهم معلومه شوه چه مرتکب دَګناه کبيره دَايمان نه خارج نه دې. ځکه چه قتال اوبغاوت ګناه کبيره ده ليکن په آيت کښې مرتکب نه تعبيرپه مؤمن سره شويدې.

| إِنَّمَا ٱلۡمُؤۡمِنُونَ إِخۡوَةٌ فَأَصۡلِحُوا بَيۡنَ أَخَوَيۡكُمۡۚ وَٱتَّقُوا ٱللَّهَ |
|---|
| بيشکه مؤمنان ټول رونړه رونړه دی نوصلحه کوئ په مينځ دَرونړوخپلوکښې اويريږئ دَاللهﷻنه |
| لَعَلَّكُمۡ تُرۡحَمُونَ ۝١٠ |
| دَپاره دَدې چه په تاسورحم اوکړېشی. |

﴿إِنَّمَا ٱلۡمُؤۡمِنُونَ إِخۡوَةٌ﴾دا دَ ځلورم قانون سره متعلق اودَهغى تاکيد دې،يعنى مؤمنان ټول رونړه رونړه دی، نو دَ دې تقاضا دا ده چه دَ يو بل سره دې جنګ نه کوی،دَ يو نه ځه خطاء اوشی نو بل دې ورته معافی کوی اوکچرته په دوؤ ډلوکښې څوک معافئ ته تيار نه وی نوعامة المسلمين دې دَ دواړو په مينځ کښې صلحه اوکړی ، پدې وجه چه دا اسلامی اخوت باقی پاتې وی.﴿بَيۡنَ أَخَوَيۡكُمۡ﴾دَتثنيه ذکرپدې وجه اوشوچه اشاره شی ديته چه دَاقل په مينځ کښې

ضلحه ضروری ده نو دکشیرو په مینځ کښ خوپطریقه اولی ضروری ده، لتضاعف الفتنة والفساد فيه (روح).

اصلاح بین الناس یعنی دَخلقو په مینځ کښ صلحه کول ډیرلوئ ثواب دي ابودرداء ﷺ فرمائی چه حضور ﷺ اوفرمائیل الااخبرکم بافضل من درجة الصّیام والصّدقة والصّلوٰة آیاځه تاسو ته دَ نفلی روجو او دَ صدقې او دَ نفلی مونځ کولو دَ درجه نه زیات افضل عمل اونه ښایم؟ مونږ عرض اوکړو ضرور اوښایه، بیا ئې اوفرمائیل اصلاح ذات البین او بیائی او فرمائیل و فساد ذات البين هی الحالقة یعنی یو بل سره بُغض کول حالق دي، یعنی دین لره ختمونکي دي (مشکاة ازابوداؤدوالترمذی).

| |
|---|
| يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا يَسْخَرْ قَوْمٌ مِّنْ قَوْمٍ عَسٰٓى اَنْ يَّكُوْنُوْا خَيْرًا |
| اي مؤمنانو مسخرې دې نه کوی یوقوم په بل قوم پورې (څکه چه) کیدیشی داچه هغوئ غوره وی |
| مِّنْهُمْ وَلَا نِسَآءٌ مِّنْ نِّسَآءٍ عَسٰٓى اَنْ يَّكُنَّ خَيْرًا مِّنْهُنَّ |
| دَدوئ نه، اونډې کوی مسخرې ښځې په نورو ښځو پورې کیدیشی داچه هغوئ غوره وی دَدوئ نه، |
| وَلَا تَلْمِزُوْٓا اَنْفُسَكُمْ وَلَا تَنَابَزُوْا بِالْاَلْقَابِ ۭ بِئْسَ الِاسْمُ الْفُسُوْقُ |
| اومه کوئ عیب جوئي پخپلو ځانونو (رونړو) او مه بلئ یو بل په بدو نومونو سره ، ډیر بد دې نوم فسق والا |
| بَعْدَ الْاِيْمَانِ ۚ وَمَنْ لَّمْ يَتُبْ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ ⑪ |
| ورستو دَ ایمان نه ، او څوک چه توبه او نکړی نو دغه کسان هم دوئ ظالمان دی |

﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا يَسْخَرْ﴾ داپنځم قانون دې، پدیکښ دَجنګ جګړوختمیدلو اسباب او دَ اصلاح بین النّاس اسباب ذکردی. پدې آیت کښ دَدرې کارونونه منع راغلیده: (۱) په چا پورې خنداکول اوهغه سپک ګنړل (۲) دَبل چاعیب جوئي کول اوهغه ته طعنه ورکول (۳) بل څوک په داسې نوم اولقب سره بلل چه هغه ئې بدګنړی او خفه کیږی پرې، کچرته دَدې کارونو دَ ارتکاب نه اجتناب اوکړیشی نو یقینًا به فساد ، جنګونه ختم شی

﴿عَسَىٰٓ أَن يَكُونُوا۟ خَيْرًا مِّنْهُمْ﴾ تعلیل دي د نهی مذکوري. حونکه دتوقو اومسخری بنیادی سبب بل ورته حقیر ځکاریدل او خپل ځان ورته هغه نه افضل او بهتر ځکاریدل وی نو دې وجهې نه الله ﷻ اوفرمائیل کیدیشی چه مسخور افضل او بهتر وی د ساخر نه د الله ﷻ په نیز، نو په دی وجه دچا تحقیر کول او هغه سپک ګنړل نه دی پکار، بعض وائی معنی داده چی هیڅ څوک دې هم بل لره حقیر نه ګنړی، کیدیشی چه محقَر (بالفتح) عزت مند جوړشی او محقِر (بالکسر) ذلیل اوګرځی لکه په حدیث کښ دي لاتظهر الشماتة لاخیک فیرحمه الله ویبتلیک(ترمذی)

یو شاعر وائی

لاتهین الفقیر علک ان ترکع یوما والدهر قد رفعه

﴿وَلَا نِسَآءٌ مِّن نِّسَآءٍ﴾ (قوم) په ضمن کښې زنانؤو ذکر هم راغې خو چونکه په ښځو کښ دغه اخلاقی بیماریٔ ډیره وی نو ددې وجه نه د هغوئ ذکر بیا مستقلاً اوشو، بعض وائی چه د قوم اطلاق صرف په رجالو باندی کیږی لکه په دې شعر کښې دي

أ قــوم آلُ حصــن أم نســاء

نو ځکه د نساؤ ذکر مستقلاً اوشو.دا حکم د سړو په ښځو پورې او د ښځو د سړو پورې د مسخرو کولو هم دې لیکن دې باوجود د دې ذکر اونشو نو په دیکښې یو بل حکم طرف ته هم اشاره اوشوه چې د مرد و زن اختلاط شرعًا ممنوع اومذموم دې نو چه اختلاط نشته دې نو تسخر د رجالو په زنانؤو پورې یا بالعکس هم نه دې متحقق.

نورخلق سپک اوحقیرګنړلو نه تعبیرپه حدیث پاک کښ په کبر سره شویدې. الکبر بطر الحق وغمطُ النّاس (ابوداؤد) او کبر یعنی تکبر د الله ﷻ په نزد مبغوض .ترین عمل دې. علماؤو دا هم لیکلی دی چه داضروری نه ده چه بل پورې خندا صرف په ژبې سره وی بلکه په سترګو یا د سر په اشارې سره هم په چا پورې توقې کول حرام او ناجائز دی،کقوله تعالی ویلٌ لکلّ همزةٍ لمزةٍ.

﴿وَلَا تَلْمِزُوٓاْ أَنفُسَكُمْ﴾دادويم نصحيت دې يعنى يومسلمان دى دَبل مسلمان عيب جوني نه كوى اوپه هغه دى طعنه نه لگوى،دا نهى هم عامه ده دَ چا دَ خبرو پيښې كول او دَ تللو پيښې كول او دَ چاپه قد و قامت كښې عيب ښكاره كول دا ټول ناجائز او حرام دى.

حضرت عائشهﷺفرمائى چه ما يوځل دَنبىﷺ په مخكښ (بطورعيب) اووې چه دَ صفيهﷺ قد خو بس دومره غونته دې ، نو حضورﷺ اوفرمائيل: لقد قلتِ كلمةً لو مُزج بها البحر لمزجته(مشكاة)يعنى تاداسى خبره(غيبت)اوكړوچه كچرته دا دَ سمندرسره ملاؤكړيشى نو هغه به هم خراب كړى(نونيک اعمال خوپه طريقه اولى خرابه وى).

(أَنفُسَكُمْ )نه مراد"اخوانكم" دې،والمعنى لاتعيبُوا اخوانكم من المسلمين لانّهم كانفسكم (زادالمسير) بل مسلمان ته طعنه وركول گوياخپل ځان ته طعنه وركول دى،يادا چه ته بل چاته طعنه وركوې نوهغه به تاته طعنه دركوى نوگوياته خپل ځان ته طعنه وركوې،نوپدې وجه ذكردَ﴿أَنفُسَكُمْ﴾ اوشو.

﴿وَلَا تَنَابَزُواْ بِٱلْأَلْقَٰبِ﴾دادريم نصيحت دې،((تنابز)) دَ "تَبَز" نه دې، بې كاره لقب ته وائي، او تنابز په بې كاره لقب سره رابللو ته وائي ، "القاب"جمع دَلقب ده دلته ورنه مرادلقب سوء دې،يعنى نه دې بلى بعضِ ستاسى بعضُونورولره په داسى لقب سره چه هغه ئى بدګڼړى اوخفه كيږى پرى،لكه مسلمان ته"اې كافره"اې هندو؟اې فاسقه؟ وئيل اودغه رنګه اې خبيثه؟ اې حرامې،اې خره،اې سپيه! اې بيغرته! وغيره وئيل داټول حرام اوناجائزدى،دغه رنګه دَچاخپل اصل نوم ورانول هم حرام دى.

البته فقهاؤتصريح كړيده چه څوک په عيب دارنوم سره مشهوراومعروف شوې وى اوهغه وركښ خپل توهين نه ګڼړى اونه خفه كيږى نوبياجائزدى،لكه تُوررنګ والاته"تورې"وئيل وغيره يا لكه بعضِ رواة دَ احاديثو په اخفش،اصم،اعرج وغيره سره مشهور دى، ابن عباسﷺ فرمائى دَ ((تنابزوا بالالقاب )) نه مراد دا دې چه يوسړې په هغه ګناه سره رابلل چه هغه ورنه توبه اوباسلى وى.

معاذﷺنه روایت دي چه حضورﷺفرمائی من عیّر اخاه بذنب لم یمت حتّی یعمله (مشکوة) اي: من ذنب قد تاب منه یعنی څوک چه پخپل مسلمان ورور باندې دَ څه ګناه عیب اولګوی نو دا سړې به ترهغه وخته پورې نه مړکیږی ترڅوچه پدی ګناه کښې مبتلا شوې نه وی.

﴿بِئۡسَ ٱلِاسۡمُ ٱلۡفُسُوقُ﴾دَدې په تفسیرکښې دوه احتماله دی: **یو دا** چه ((الفسوق))بدل دې دَ ((الاسم)) نه، نومعنی به داشی چه ډیر بد دې نوم چه هغه فسوق دې. یعنی چه دلالة کوی په فسق باندې،لکه اې فاسقه، اې زاني، اې غله وئیل، نودغه شان نومونه وئیل ډیر بد دی.

**دویم داچه**((الفسوق))صفت تسبیبی دې دَ((الاسم)) دپاره، نومعنی به داشی چه ډیربد دې هغه نوم چه هغه سبب دَفسق دَقائل ګرځی، یعنی دَهغی په وئیلوسره قائل فاسق ګرځی﴿بَعۡدَ ٱلۡإِيمَٰنِ﴾ای بعدَ قبول الایمان، یعنی دَایمان راوړونه بعداوس دَفسق عمل کول ډیربد دی،

﴿بِئۡسَ ٱلِاسۡمُ ٱلۡفُسُوقُ﴾ اصل کښې بِئْسَ اَلِاسْمُ الْفُسُوْقُ وو،الاسم والا همزه وصلی درج کښې راتلو د وجهې نه اوغورځیده، نو د 'لام' او 'سین' په مینځ کښې اجتماعِ ساکنین راغله نو د هغې ختمولو د پاره اول ساکن چې لام دې ، له خو کسره ورکړه نو لِاسْم الفسوق شو

﴿فَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلظَّٰلِمُونَ﴾یعنی حقوق العبادتلف کونکی دی

| يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱجۡتَنِبُواْ كَثِيرٗا مِّنَ ٱلظَّنِّ إِنَّ بَعۡضَ ٱلظَّنِّ إِثۡمٞۖ وَلَا تَجَسَّسُواْ |
|---|
| اې ایمان والؤخان ساتئ دَډیرودګمانونونه،بیشکه بعضِ ګمان ګناه دي اومه لټوئ عیبونه دَیوبل |
| وَلَا يَغۡتَب بَّعۡضُكُم بَعۡضًاۚ أَيُحِبُّ أَحَدُكُمۡ أَن يَأۡكُلَ لَحۡمَ أَخِيهِ |
| اوندې کوی غیبت بعضِ ستاسودَبعضو،آیاخوښوی یوکس ستاسونه داچه اوخوری غوښه دَورورخپل |
| مَيۡتٗا فَكَرِهۡتُمُوهُۚ وَٱتَّقُواْ ٱللَّهَۚ إِنَّ ٱللَّهَ تَوَّابٞ رَّحِيمٞ ⑫ |
| چه مړوی،نوتاسو خو بدګڼئ دا، او اویریږئ دَ اللهﷻ نه ، بیشکه الله ﷻ توبه قبلؤنکي رحم کونکې ذې |

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱجۡتَنِبُواْ كَثِيرٗا مِّنَ ٱلظَّنِّ﴾دا **شپږم قانون** دې پدیکښې هم دَ څو کارونو نه منع راغلیده دَپاره دَتنازع ختمیدلواواصلاح بین الناس راتللو. اول داچه په چابدګمانی مه

کوئ چه کیدیشی پدی سرې کښې به داعیب اوګناه وی،دونم داچه که ګمان راشی نوبیائی تفتیش اوجاسوسی مه کوئ،دریم داچه که عیب مو اولیدلونوبیائی بل چاته بیان مه کوئ.

﴿ كَثِيرًا﴾یامحذوف مفعول مطلق دپاره صفت دې اې:اجتنبوا اجتنابًاکثیرًایعنی ډیرزیات ځان ساتئ دَبدګمانئ نه،یادَ﴿مِّنَ ٱلظَّنِّ ﴾ سره لګی،یعنی دَډیروګمانونونه ځان ساتئ.﴿إِنَّ بَعْضَ ٱلظَّنِّ إِثْمٌ﴾ خامخاپه بعضِ ګمان کولوکښې ګناه وی،دَدینه معلومیږی چه ځنې ګمان ګناه نه دې مثلاً،۱،په اللهﷻ باندې ښه ګمان بلکه داخوواجب دې،۲،مؤمنانوصالحانوباندې ښه ګمان کول،۳،دیوسړی نه دَڅه نقصان خطره وی نوهغه سره په ناسته پاسه کښې احتیاط کول وغیره بعضِ وائی چه﴿بَعْضَ ٱلظَّنِّ﴾نه مرادهغه ګمان دې چه یقین پرې اوکړیشی.

﴿وَلَا تَجَسَّسُوا۟﴾دادویم نصیحت دې،اودفع دَتوهم ده،توهم داچه بدګمانی خو ناجائز ده. لیکن دَ یقین حاصلولو دَ پاره به تفتیش اوتحقیق صحیح وی.جواب اوشوچه دَچاتجسسَ مه کوئ، علماؤو لیکلی دی چه دَ چا عیب یا څه ګناه یا بدحالی معلومول، په پټه دَ چا خبرې آوریدل داټول په تجسس کښې داخل دی چه داعمل ګناه اوناجائز دې،په یوحدیث کښې ارشاد دې چه ایّاکم والظنّ فانّ الظّن اکذب الحدیث، ولاتحسّسوا ولاتجسّسوا ولاتناجشوا ولاتحاسدوا و لاتباغضوا ولاتدابروا وکونوا عباداللہ اخوانًا،مشکاة:۴۲۷،یوحدیث په اخرکښې نبی کریمﷺ فرمائی چه څوک دَبل مسلمان ورورعیب ښکاره کولوکوشش کوی اللهﷻ دَهغه عیبونو ښکاره کوی تردې پورې چه په خپل کورکښې ئې رسواکړی.

﴿وَلَا يَغْتَب بَّعْضُكُم بَعْضًا ﴾دادریم نصیحت دې اودَفع دَتوهم ده چه بدګمانی اوتجسس ناجائزدی لیکن کچرته بغیر دَ تجسس نه چاپه بل کس کښې عیب اولیدلو نو بیا ئې یو بل ته بیانول اوهغه عیب ځکاره کول جائزدی؟جواب اوشوچه نه دی جائز، ځکه داغیبت دې.

دَغیبت تعریف په حدیث کښې داسې راغلې دې،ابوهریرهؓ نه روایت دې چه نبی کریم ﷺ دَ صحابه ؤ نه تپوس اوکړو چه اتدرون ما الغیبة؟ ناسو ته پته ده چه غیبت څه ته وائی؟ صحابؤو عرض اوکړوچه الله ورسوله اعلم بیانبی اکرمﷺاوفرمائیل: ذکرکَ اخاکَ بمایکره، خپل مسلمان ورور داسې یادول چه په هغه بد لګی،یو صحابی عرض اوکړو چه کومه خبره څه بیانوم کچرته هغه خبره په هغه کښې موجوده وی،نو بیا نبی کریمﷺاوفرمائیل چه هغه خبره دَ

گناه په هغه کښې موجود وي اوته ئې بيانوې نوهم داخو غيبت دې اوکچرته تاداسې خبره اوکړه چه په هغه کښې نه وي موجوده ، نو بيا خو تا په هغه تهمت اولګولو .

په يوحديث کښې غيبت ته اشدمن الزنا،وئيلې شويدی دغيبت کولومذمت اوقباحت ورستو په آيت کريمه کښې راروان دې اواحاديث،اقوال دَسلفو .خلفوهم په دی کښې کثيردی چه مواعظوکښې دَهغې مطالعه کيدېشي.

علماؤداهم ليکلی دی چه لکه څرنګه غيبت کول ګناه دې نودغه شان غيبت آوريدل هم ګناه دې،په مجلس کښې چه دَچاغيبت کيږی نوپه سامع باندی لازمه ده چه هغه کس تری نه منع کړی،په يوروايت کښې چه نبی کريمﷺداسې فرمائيلی "من ذبّ عن لحم اخيه بالمغيبة كان حقًاعلى الله ان يّعتقه من النار"(مشكاة :ص ۴۲۴)يعنی دَاللهﷻ په ذمه باندې دَهغه کس دَ جهنم نه آزادول لازم دی څوک چه دَخپل مسلمان ورور دفاع اوکړی چه دَ هغه غوښه دَ غيبت پوجه خوړلې کيږی.په يوحديث کښې دی،من راىٰ عورةً فسترهاكان كمن احيىٰ موؤودةً چاچه بل کښې څۀ عيب اوليدو اوبيائې پرې پرده واچوله دا داسې دې لکه ژوندئ خخه کړې شوې حسئ يې ژوندئ کړه(مشكوة:۴۲۴).

﴿ أَيُحِبُّ أَحَدُكُمْ أَن يَأْكُلَ ﴾دازجراوقباحت ذکرکيږی غيبت کونکوته به طور مثال،يعنی څوک په تاسوکښې دا خوخوي چې انسان وي ، بيا ئې ورور وي ، بيا مړ هم وي او د هغه غوښه او خوري، نو دا څوک خوخوي چې دَخپل مړورورمرداره غوښه اوخوری،بلکه هر کس ئې بدګڼرې نودغه رنګه غيبت کول هم بداوګڼرئ،﴿ مَيْتًا ﴾حال دې دَ"لحم"نه او ضمير په "فكرهتموه" کښې ظاهره داده چه راجع دې«اكل» ته ،ياراجع دې «لحم» ته.

| يَٰٓأَيُّهَا | ٱلنَّاسُ | إِنَّا | خَلَقْنَٰكُم | مِّن | ذَكَرٍ | وَأُنثَىٰ | وَجَعَلْنَٰكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اې خلقو | بيشکه | مونږپيداکړی | يئ | تاسودَيوسړی(ادم)نه | اودَيوې | ښځې(حوا)نه،اوګرځولی .موږ | تاسو |
| شُعُوبًا | وَقَبَآئِلَ | لِتَعَارَفُوٓا۟ | ۚ | إِنَّ | أَكْرَمَكُمْ | عِندَ | ٱللَّهِ |
| غټې قبيلې | اووړې قبيلې | دَپاره دَدې چه يوبل اوپيژنئ، | | بيشکه | ډيرعزت مندستاسونه | په نزد | دَاللهﷻ |

| اَتْقٰىكُمْ | اِنَّ | اللّٰهَ | عَلِيْمٌ | خَبِيْرٌ | ⑬ |
|---|---|---|---|---|---|
| ههغه دې چه ډیرتقوی دار وی ستاسونه،بیشکه | | الله جل جلاله | پوهه دې | او خبردار دې | |

﴿ يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ اِنَّا خَلَقْنٰكُمْ ﴾داووم(۷)قانون دې،پدیکښ منع راغلیده دَنسبی تفاخرنه،چه په نسب فخرمه کوئ ځکه دادَنفرت اوعداوة باعث دې،اودغه رنګه دَالله تعالیٰ په درګاه کښ دَ عزت اوکرامت داورمدارنسب نه دې بلکه ایمان،عمل صالح،تقوی ده،نوکه فخرکوئ پدې سره ئې اوکړئ ولله درالجامی حیث قال:

بندهٔ عشق شدی ترک نسب کن جامی
که درین راه فلان ابن فلان چیزی نیست

﴿مِّنْ ذَكَرٍ وَّاُنْثٰى ﴾یعنی دَادم علیه السلام اوحواء علیها السلام نه، نو د یو مور او پلار نه مو پیدا کړی یئ نو بیا په څه بنیاد تاسو تفاخر کوئ ﴿شُعُوْبًا ﴾جمع دَشعبٌ ده اوچتې طبقې دَ نسب ته وائی ﴿وَقَبَآئِلَ ﴾ جمع دَقبیلة ده دَشعوب نه وړې طبقې ته وائی عربو خپل نسبت اوقومیت دپاره شپږ طبقات جوړکړی وو:(۱)شعب(۲)قبیله(۳)عماره(۴)بطن(۵)فخذ(۶)فصیله،تولونه قریب تر فصیله بیا فخد،بیا بطن الی آخره.

﴿لِتَعَارَفُوْا ﴾مضارع ده یوه تاحذف شویده،یعنی چه یوبل اوپیژنئ،قریب او بعید او پیژنئ، نو دَ قریب سره به صله رحمی وغیره کوئ اوپه میراث کښ به ورته حصه ورکوئ،لکه په حدیث کښ دی،تعلّموامن انسابکم ماتصلون به ارحامکم.دی دپاره نه یئ تقسیم کړی شوی چې قومیت په بنیاد تعصب اوجهګړې شروع کړئ،اوبعض مفسرینو یې دامعنی هم کړیده چې قومونو اوخاندانو کښ مو دې دپاره تقسیم کړی یی چې خپل نسب او پیژنئ او د بل نسب طرف ته څوک دعوه اونکړی.

﴿اِنَّ اَكْرَمَكُمْ عِنْدَ اللّٰهِ اَتْقٰىكُمْ ﴾یعنی قبیلی اوخاندانونه دَ فخر د پاره نه دی بلکه دَ تعارف دَپاره دی،او دَ فخر څیز تقوی ده،ځکه چه دَ الله تعالیٰ په نزد دَ تولو نه زیات عزت مند دَ تولو نه لوئ تقوی دار دې،حضرت جابربن عبدالله رضی الله عنه فرمائی چه حضور صلی الله علیه وسلم مونږته په خطبة الوداع کښ اوفرمائیل: یاایهاالناس الاانّ ربکم واحدٌ، لافضل لعربیٌ علی عجمیٌ و لا لعجمیٌ

علی عربیٍّ ولا لِأسودَ علی احمرَ و لا لِاحمر علی اسودَ الاّ بالتقویٰ اوبیائی اوفرمائیل:الاهل بلّغتُ قالوا:بلٰی یارسول الله قال فلیبلّغ الشاهدُ الغائب«روح المعانی بحواله بیهقی».

﴿إِنَّ ٱللَّهَ عَلِيمٌ﴾ای علیم بظواهرکم﴿خَبِيرٌ﴾ببواطنکم.

| قَالَتِ ٱلۡأَعۡرَابُ ءَامَنَّاۖ قُل لَّمۡ تُؤۡمِنُواْ وَلَٰكِن قُولُوٓاْ |
|---|
| اوویل بانده چیانوچه ایمان راوړي دي مونږ ، ته ورته اووایه ایمان مو نه دي راوړي لیکن وایئ |
| أَسۡلَمۡنَا وَلَمَّا يَدۡخُلِ ٱلۡإِيمَٰنُ فِي قُلُوبِكُمۡۖ وَإِن تُطِيعُواْ |
| چه اسلام موراوړي دي،اولاتراوسه پوري ندي داخل شوي ایمان په زړونوستاسوکښی،کچرته تاسواطاعت کوئ |
| ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ لَا يَلِتۡكُم مِّنۡ أَعۡمَٰلِكُمۡ شَيۡـًٔاۚ إِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٞ رَّحِيمٌ ﴿١٤﴾ |
| دَالله اودرسول دَهغه کم به نه درکوي تاسوته الله جل جلاله ستاسو دَ عملونو نه هیڅ څیز. بیشکه الله جل جلاله بخونکي رحم کونکي دي. |
| إِنَّمَا ٱلۡمُؤۡمِنُونَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ بِٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ ثُمَّ لَمۡ يَرۡتَابُواْ |
| بیشکه مؤمنان خوهغه دی چه ایمان ئی راوړي وی په الله جل جلاله اوپه رسول دَهغه بیائ شک نه وی کړي |
| وَجَٰهَدُواْ بِأَمۡوَٰلِهِمۡ وَأَنفُسِهِمۡ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِۚ أُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلصَّٰدِقُونَ ﴿١٥﴾ |
| اوجهادئی کړي وی په مالونوخپلواوځانونوخپلوسره په لاره دَالله جل جلاله کښی،دغه خلق هم دوئ رشتني دي‌پخپلودعوؤکښی. |

﴿قَالَتِ ٱلۡأَعۡرَابُ ءَامَنَّا﴾دا دَ سورة دویمه حصه ده پدیکښی دَبعضِ اعرابونه شکوه ذکرکیږی،دلته چه دکومواعرابوذکردي نودَبعضِ مفسرینوپه نزدمرادورنه دَبنواسداوخزیمه منافقین دی چه دَمدینی په جوارکښی اوسیدل په قحط سالئ کښی مبتلاشوی وؤ، دَ حضور ﷺ په خدمت کښی راغلل اومحض دَصدقاتودَوصولئ دپاره ئی دَاسلام اظهاروکړو اوپه نبی کریم ﷺ باندې ئي احسان کولوچه اوګوره نوروخلقوسره تاسو جهادکوئ اومونږبغیردَجنګ نه مسلمانان شوی یو،نولهذازمونږزیات خیال اوساته اوصدقات راکړه،نوالله جل جلاله داآیت نازل کړواودَدوئ دَدعوې ردئی اوکړو.

﴿وَلَٰكِن قُولُوٓاْ أَسْلَمْنَا﴾چونکه دَدویٰ په زړونوکښې ایمان نه وو.دعوه ئې صرف دَظاهری افعالو په بناء کوله نو پدې وجه قرآن دَدویٰ دَایمان نفی اوکړه چه ﴿ءَامَنَّا﴾مه وایئ بلکه﴿أَسْلَمْنَا﴾ وایئ ځکه چه دَاسلام معنی په ظاهری افعالوکښې اطاعت کول ده اودویٰ په ظاهری طورسره اطاعت کونکی وو،زړونوئې دَنورایمانی نه خالی وو.اسلام اوایمان کښې فرق شته او که نه؟ اوکه وی نو څه فرق دې؟دا یو طویل معرکة الآرا بحث دې.دې دپاره بخاری مسلم شروحو ته رجوع اوفرمائی ﴿لَا يَلِتْكُم﴾ ای لاینقصکم.

﴿إِنَّمَا ٱلْمُؤْمِنُونَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ﴾پدې کښې دَحقیقی ایمان صفات ذکرکیږی چه حقیقی اوکاملین مؤمنان هغه دی چه داصفات پکښې موجودوی صرف زبانی اظهارسره سړې مؤمن نشی جوړیدلې لکه اعراب ئې چه دعوه کوی.﴿وَجَٰهَدُواْ بِأَمْوَٰلِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ﴾پدیکښې دکافرانوسره قتال،خپل نفس سره جهاد،ځان دَغیرشرعی کارونونه منع کول خپل نفس په دینی تقاضو باندی لګول،تول پکښې داخل دی صاحب دَروح المعانی فرمائی﴿فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ﴾فی طاعته عزّوجل علی تکثر فنونها من العبادة البدنیة المحضة والمالیة الصرفة والمشتملة علیهما معًا کالحج والجهاد﴿أُوْلَٰٓئِكَ﴾الموصوفون بماذکرمن الاوصاف الجمیلة.

| قُلْ أَتُعَلِّمُونَ ٱللَّهَ بِدِينِكُمْ وَٱللَّهُ يَعْلَمُ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ |
|---|
| ته اووایه آیاخبرورکوئ تاسوالله ﷻته پخپل دین،حالانکه الله ﷻعالم دې په هغه څه چه په اسمانونوکښې دی |
| وَمَا فِي ٱلْأَرْضِ ۚ وَٱللَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ⑯ يَمُنُّونَ عَلَيْكَ |
| اوپه هغه څه چه په زمکه کښې دی،اوالله ﷻپه هرڅه ښیزباندې عالم دې،احسان اړه وی دویٰ په تاباندې |
| أَنْ أَسْلَمُواْ ۖ قُل لَّا تَمُنُّواْ عَلَيَّ إِسْلَٰمَكُم ۖ بَلِ ٱللَّهُ يَمُنُّ |
| داچه دویٰ اسلام راوړې دې،ته اووایه احسان مه اړه وئ په ماباندې دَخپل اسلام،بلکه الله ﷻاحسان کریدې |

| عَلَيۡكُمۡ أَنۡ هَدَىٰكُمۡ لِلۡإِيمَٰنِ إِن كُنتُمۡ صَٰدِقِينَ ۝١٧ إِنَّ ٱللَّهَ |
|---|
| په تاسودډي چه هدايت ئې کړيدې تاسوته دايمان کچرته يئ تاسوريشتني(پخپلودعوؤکښ)بيشکه الله تعالی |
| يَعۡلَمُ غَيۡبَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِۚ وَٱللَّهُ بَصِيرُۢ بِمَا تَعۡمَلُونَ ۝١٨ |
| عالم دې په غيب داسمانونواودزمکې،اوالله تعالی ليدونکې دې دهغه عملونوچه تاسوئې کوئ. |

﴿ قُلۡ أَتُعَلِّمُونَ ٱللَّهَ ﴾دازجردې اعرابوته تعليم دلته پمعنى د اخبار سره دې اى تخبرونه سبحانه وتعالى بقولكم امنايعنى آياتاسوپه امنا سره الله تعالی ته خبرورکوئ چه مونږايمان راوړې دې،حالانکه الله تعالی خوپه تمامومغيباتودآسمانونواودزمکې عالم دې نوستاسوپه دعوې هم عالم دې.

﴿يَمُنُّونَ عَلَيۡكَ أَنۡ أَسۡلَمُواْ﴾داهم اعرابوته زجردې،چه خپل اسلام په نبی علیه السلام مه ازباته وئ،بلکه داخودالله تعالی احسان اومنئ چه دايمان هدايت ئې درته اوکړو،کماقال الشيخ سعدى رحمه الله.

منت منه که خدمت سلطان همی کنم　　منت شناس ازوکه بخدمت گذاشته

﴿قُل لَّا تَمُنُّواْ عَلَيَّ إِسۡلَٰمَكُمۖ﴾منصوب بنزع الخافض دې،اى باسلامكم﴿بَلِ ٱللَّهُ يَمُنُّ عَلَيۡكُمۡ أَنۡ هَدَىٰكُمۡ لِلۡإِيمَٰنِ ﴾که څوک اشکال اوکړى چه په دوئ کښې خو ايمان په حقيقت کښې نه وؤ موجود ، کماقال تعالى﴿قل لم تؤمنوا ﴾نوبيا څنګه د ايمان د هدايت احسان اثبات ورباندې کيږي.

**جواب**(۱)دادې چه دلته الله تعالی داسې اونه فرمائيل"أن رزقكم الايمان"بلکه"ان هداكم" ئې اوفرمائيل اوهداية دلته پمعنى دمطلق دلالة اواراءة الطريق سره دې په ارسال درُسل په واضحومعجزوسره.(۲)**دويم جواب** دادې چه الله تعالی ددې نه ورستوشرط ذکرکړيدې چه﴿إِن كُنتُمۡ صَٰدِقِينَ ﴾ اوجواب دشرط محذوف دې اى ان كنتم صادقين فى ادّعاكم فلله المنة عليكم. يعنى که تاسوپه خپله دعوه کښې صادق يئ نوداخودالله تعالی په تاسواحسان دې،چه ايمان ئې درکړيدې،نوداپه دې دلالت کوى چه دوئ مؤمنان نه وؤ،نودماقبل سره ئې منافات نشته.

﴿ إِنَّ ٱللَّهَ يَعْلَمُ غَيْبَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ ﴾ دا په آخر دَسورة کښ بيان دَمسئلی دَتوحيد دي علی وجه الترقی دَماقبل سورتونو نه، « والله بصير بما تعملون » نو په حقيقی توگه سره ايمان راوړئ، ځکه چه الله ﷻ په ښکاره او په خفيه عملونو ستاسو ليدونکي دي.

## سورة السبأ



## سورت الفاطر

سورة یٰسین

سورة الصّٰفّٰت



سورة ص

سورة المومن



سورة حم سجدة

سورة الشورى



سورة حم زخرف

سورة الفتح



سورت الحجرات